وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ

تفسير

# احسن الكلام

بلغة البشتو

الجزء الثانى

دويم جزء

د سورة البقرة آية ۱۷۷ نه تر سورة ال عمران آية ۱۳۹ پورے


الناشر

جامعة عربية لاشاعة التوحيد والسنة

پنج پیر پشاور

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ

تفسیر

# احسن الکلام

بلغة البشتو

للشیخ أبی زکریا عبد السلام الرستمی

الجز الثانی / دویم جز

از سورة بقره آیت 177 تا سورة آل عمران آیت 129

الناشر:
جامعة عربیة لاشاعة التوحید والسنة
بده بیر - پشاور

کتاب: تفسير احسن الكلام جز:ثانی (دویم)

مؤلف: شيخ القرآن علامه سيد عبد السلام رستمی حفظه الله

کاتب: ارقم جان خدره خیل پشاور

تاریخ طباعت: یوولسم ایډیشن (11) جولائی 2006ء جمادی الثانی 1427ھ

دملاویدو پته: ایوب اسلامی مکتبه وکیسټ مرکز پشت قصه خوانی بازار پشاور

ناشر: دار التفسیرجامعه عربیه، سیفن چوک کوهات روډ پیښور

پي ډي ايف کمپوزنګ- عابد منصور مردانوي
تحریک طالبان پاکستان حلقه مردان
abidmansoor05@gmail.com

# دَ مضامينو فهرست جلد ۲

لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ

نه ده نیکی (خاص) دا خبره چه اوګرځوئ مخونه خپل طرف دَ

الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ

مشرق او مغرب ته اولیکن نیکی (نیکی) دَ هغه چا ده چه ایمان ئې راوړے وی

بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكِتٰبِ

په الله تعالیٰ او په ورځ روستنئ او په ملائکو او په کتابونو

وَالنَّبِيّٖنَ ۚ وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِى الْقُرْبٰى

او په پیغمبرانو باندے او ورکوی مال په مینه دَ هغه خپلوانو ته

وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ۙ وَالسَّآئِلِيْنَ

او یتیمانو او مسکینانو او مسافرو ته او سوال کوؤنکو ته

وَفِى الرِّقَابِ ۚ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ۚ

او په آزادولو دَ څټو نو کښ، او پابندی کوئ دَ مانځه او ورکوئ زکوٰة

وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا ۚ

او پوره کوؤنکے وئ دَ وعدو خپلو کله چه وعده اوکړی

وَالصّٰبِرِيْنَ فِى الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ

(او دَ صفت لائق دی) صبرناک په سختئ (مالی) کښ او په مرضونو کښ او په وخت

الْبَاْسِ ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ۗ وَاُولٰٓئِكَ

دَ جنګ کښ، دغه کسان (رشتینی) دی او دغه کسان

هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿۱۷۷﴾

خاص دوی پرهیزګاران دی۔

تفسیر :- ۱۷۷ :- خلاصه دَ دے حصے : دَ دے آیت نه تر ۲۳۵ پورے
دَ سورت دریمه حصّه ده په باره دَ امور انتظامیه او دَ قتال فی سبیل اللّٰه

کښې او په دے حصه کښې څلور بابونه دی۔

اول باب تر ۱۹۵ پورے دے او په دے باب کښې لس اموره ذکر کوی د پاره د تهذیب د نفوسو (په ښه عقیده، اعمالو او اخلاقو سره) او دیته اصلاح د افرادو وئیلے شی د دینه پنځه اموره د زړه (عقیدے) سره تعلق لری او پنځه د ظاهری اعمالو سره، او دیته د نیکئ کارونه وئیلے شی۔ او بیا څلور اموره سیاسیه ذکر کوی چه د هغے نه دوه د نفوسو د حفاظت سره تعلق لری، اول حفاظت ظاهریه دے او هغه قصاص دے په ۱۷۸ کښې دویم د نفس روحانی حفاظت دے چه هغه روژے نیول دی په ۱۸۲ کښې۔ او دوه اموره د مالونو د حفاظت سره تعلق لری اول حفاظت په وصیتِ شرعیه کولو سره په ۱۸۰ کښې۔ او دویم ځان بیچ کول دی د حرامو مالونو او په باطلو ذریعو سره مال حاصلولو نه او خصوصاً د رشوت نه په ۱۸۸ کښې۔ بیا د نظم وضبط او اتحاد د بقاء د پاره ذکر دے د حساب کولو په سپوږمئ سره په ۱۸۹ کښې۔ بیا امر دے په قتال سره د مقصد د قتال د پاره، او د قتال د علتونو ذکر دے او آداب دی په اعتبار د مکان او په اعتبار د زمان سره او امر دے په مال خرچ کولو سره د الله تعالیٰ په لار کښې۔

ربط:۔ د مخکښې سره دا دے چه هر کله قباحتونه او بدئ د اهل کتابو ذکر شوے نو دوی اعتراض اوکړو چه مونږ خو اهل البر (نیکو کارونو والا) یو په سبب د حقانیت د قبلے زمونږ، نو په دے آیت کښې د هغے جواب کوی او تفسیر د بِر (نیکئ) ذکر کوی۔

تفسیر:۔ غوره دا ده چه دا اهل کتابو او مؤمنانو ټولو ته خطاب دے۔ د قبلے د بدلیدلو په وخت کښې اهل کتابو او مؤمنانو د قبلے په باره کښې دومره بحث ومباحثه شروع کړه چه ټوله نیکی ئے په قبله پورے منحصر کړه نو الله تعالیٰ د هغے د رد د پاره اوفرمائیل چه (لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ) آه

سوال:۔ هر کله چه روستو ئے اقامة الصلوٰة ذکر کړیدے نو د مونځ پابندی خو بغیر د قبلے نه نشی کیدے نو دا خو تعارض معلومیږی؟

**جواب:-** دلته دَ قبلې ته نفي دَ مطلق نيکۍ مراد نهٔ ده بلکه نفي دَ نيکۍ منحصر کولو په قبله کښې مراد ده په دليل دَ دې چه البرّ يې خبر مقدم معرفه ذکر کړې ده يعني قبلې شرعي ته مخ کولو کښې نيکي خاص نهٔ ده بلکه دا خو دَ نيکۍ يو جزء دے۔ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ، دا دواړه طرفونه يې دَ مثال په طور وئيلي دي يا دا چه په مشرق کښې قبله دَ نصارا وُ وه. او مغرب دَ بيت المقدس کښې قبله دَ يهود يا نو وه دَ هغوي دَ دعوے موافق يې ذکر کړيدي.

**تنبيه:-** اوس هم دا مسئله ده چه اهلِ قبله ته کافر نشي وئيلے کيدے ليکن دَ هغې مقصد صرف قبله نهٔ ده ځکه چه قاديانان او شيعه کان خو کعبه شريفه قبله مني او حال دا دے چه هغوي مسلمانان نهٔ دي۔ بلکه مقصد دَ هغې دا دے چه اهلِ قبله هغه خلقو ته وئيلے شي چه په هغوي کښې دَ کفر دَ نښو نه هيڅ يوه نښه موجود نه وي او نه وي صادر شوے دَ هغوي نه دَ اسبابو دَ کفر نه (شرح فقه اکبر ص۱۸۹)۔ او څوک چه دَ ضرورياتو دَ دين نه انکار کوي نو هغه ته اهلِ قبله نشي وئيلے کيدے (نبراس)

---

وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ، په عبارت کښې تقدير مراد دے يعني ذَا الْبِرِّ مَنْ اٰمَنَ يا بِرَّ مَنْ اٰمَنَ، يا مصدر په معنی دَ فاعل سره دے يعني اَلْبَارُّ۔ او ذکر کوي ايمان په پنځو څيزونو او ديته اُصول الايمان وئيلے شي، اول اصل: ايمان بالله دے چه په هغې کښې ايمان په وجود دَ الله تعالیٰ سا تل او په توحيد دَ هغه دَ ربوبيت او الوهيت او په تشريع (احکامو) او اسماؤ صفاتو داخل دے۔ دويم اصل: ايمان دے په ورځې دَ آخرت باندے مراد دَ دينه ايمان دے په داسے طريقه څه رنګه چه قرآن کريم او احاديث مبارکه کښې دَ هغې تفصيلات ذکر دي۔ دريم اصل: ايمان لرل دي په ملائيکو، يعني دَ ملائيکو په هغه صفاتو او احوالو ايمان لرل دي چه څهٔ رنګه په قرآن او سنت کښې دي۔ څلورم اصل: ايمان لرل دي په ټولو نازل کړے شوؤ کتابونو باندے او اَلْكِتَابِ مفرد دے دَ جنس نهٔ استغراق فائده کوي۔ پنځم اصل: ايمان دے په هغه ټولو رسولانو باندے کوم چه اجمالي ذکر دي په قرآن او سنت کښې نو په هغوي باندے اجمالي ايمان لرل او کوم چه تفصيلاً ذکر دي نو په هغوي باندے تفصيلي ايمان

لړ سره دَ ایمان نه په صفت دَ ختم نبوت دَ آخری نبی (صلی الله علیه وسلم) سره۔ وجه دَ دے دا ده چه یو مکلف دَ پاره مبدا او منتهیٰ او وسط ضروری دے نو ایمان په الله تعالیٰ باندے مبدا دے او ایمان په آخرت باندے منتهیٰ ده او ایمان په وسط باندے خو ایمان دے په رسولانو باندے لیکن رسالت دَ بشر موقوف دے په رسالت دَ ملائیکو او په نقل دِ وحی باندے نو دَ دے وجے ئے ایمان په ملائیکو او کتابونو مخکښ کړو په ایمان بالرسل باندے۔ او ایمان په تقدیر داخل دے په ایمان دَ علم او قدرت دَ الله تعالیٰ کښ او ثابت دے په کتابونو الهیٰو او احادیثو مبارکو کښ نو دَ هغے جدا ذکر کولو ته حاجت پاتے نۀ شو اګرچه هغه هم دَ اُصولو دَ ایمان نه یو اصل دے۔ وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ دَ ایمانیاتو نه روستو اعمال دَ جوارحو دی او هغه هم پنځه ذکر دی۔ اول په هغے کښ حقوق مالیه (عبادات مالی) ادا کول دی۔ حُبِّهٖ، په دے کښ څلور وجوه دی اول دا چه ضمیر راجع دے مال ته او مراد دَ حُبِّ مال نه حالت دَ صحت دے چه دَ غِنا (مالداری) اُمید لری او دَ غریبئ نه یره کوی۔ دوېم دا چه محبت دَ مال دا دے چه محبوب مال ورکوی یعنی کره مال۔ دریم دا چه ضمیر راجع دے ایتاء ته یعنی محبت کوی دَ ایتاء (ورکولو) سره او مراد تری نه اخلاص او طلب دَ رضا دَ الله تعالیٰ دے۔ څلورمه وجه دا چه ضمیر راجع دے الله تعالیٰ ته (اللباب)۔

ذَوِي الْقُرْبٰى، په دے کښ شپږ مصارف (دَ خرچ کولو ځایونه) ذکر کوی او دَ ترتیب وجه ئے دا ده چه اولیٰ فالاولیٰ مخکښ کوی نو فقیر چه رشته دار وی نو اول هغه له ورکول غوره دی ځکه چه دا صدقه او صله رحمی دواړه دی۔ بیا ورپسے بے پلاره بچے چه فقیر او ډیر محتاج دے هغه ئے په وَالْيَتٰمٰى سره ذکر کړو۔ بیا هغه څوک چه حاجت ئے همیشه نه دے بلکه وقتی حاجت لری چه ابن السبیل (مسافر) دے۔ بیا هغه څوک چه حاجت ئے معلومیږی په سوال کولو سره او که هغه غنی هم وی لیکن یو ضرورت ورته پیدا شوے وی نو هغه ئے په السائلین سره ذکر کړو۔ بیا هغه څوک چه ملکیت ئے نۀ وی اګرچه کسب کولے شی۔ او عدم ملکیت ماده دَ احتیاج ده نو هغه ئے ذکر کړو په وفی الرقاب سره۔ او په دے کښ مریئے (غلام وینځه) مکاتب، مدبر، قرضدارے او مسلمان قیدی ټول داخل دی۔

تنبیه:- مراد د ایتاء المال نه ادائیږی ده په طریقه د وجوب سره د دریو وجونه، اوله وجه داده چه په دے باندے ئے صدق او تقوٰی مرتب کړیه لکه أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ او صدق او تقوٰی په أمور واجبه سره راځی (اللباب). دویمه وجه دا چه مخکښ ئے ایمانیات او روستوئے عملی فرائض ذکر کړیدی نو دا قرینه ده چه دلته هم واجب کار مراد دے. دریمه وجه دا ده چه مراد په دے سره اتصاف دے په دے صفت سره چه همیشه د پاره او همیشوالے دلالت کوی په واجب کیدلو باندے او هر کله چه دلته طریقه د وجوب مراد ده نو زکوٰة خو روستو ذکر دے نو معلومه شوه چه د زکوٰة نه علاوه نور حقوق مالیه مراد دی چه هغه دفع کول د حاجات ضروریه دی، لکه مجبوره شخص راګی، نهٔ ئے ته خوراک ورکول او بربنډ ربے جامو ته لباس ورکول وغیره.

وَأَقَامَ الصَّلَوٰةَ وَآتَى الزَّكَوٰةَ، دا دواړه فرائض دی، او ذکر د زکوٰة دلیل دے چه مخکښ اتی المال کښ زکوٰة مراد نهٔ دے. وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُوا، دا خلورم عمل دے د جوارحو او دا معطوف دے په مَنْ آمَنَ باندے یا خبر دے د مبتدا پټے یعنی هم الموفون. یا دا عطف دے په پټ ضمیر فاعل د آمن باندے. او مراد د عهد نه عام دے هغه ټولو عهود الهیه، ایمانیه او عملیو ته چه په قرآن او سنت کښ ذکر دی او هغه عهود هم پکښ داخل دی چه خلق ئے په کوړنئ کښ یو بل سره کوی نو دا ټولو معاملاتو او عقود شرعیو ته شامل دے او لفظ د اذا عاهدوا دلالت کوی چه د عهد سره متصل د هغے وفا هم کوی.

سوال:- د الموفون په ځائے ئے وَأَوْفَىٰ ولے اُونه وئیلو چه په اقام باندے عطف شی؟

جواب:- صله چه کله اُوږده شی نو بیا عطف په موصول باندے په کلام کښ حسن پیدا کوی.

جواب ۲:- هر کله چه په اول کښ ئے ایمانیات ذکر کړل او هغه په شرع سره معلومیږی او په مینځ کښ ئے أمور عقلیه ذکر کړل او وفا په عهد باندے هم په شرع سره معلومیږی د دے وجے نه ئے په اول باندے عطف کړو.

وَالصّٰبِرِيْنَ، دا دَ جوارحو پنځم عمل دے۔ او هر کله چه دَ صبر خصلت جامع دے په ټولو خصلتونو دَ خير کښ نو دَ دے وجے نه ئے په جدا اعراب سره ذکر کړو۔ دَ الصّٰبِرِيْنَ په نصب کښ څو اقوال دي۔ اول دا چه دا مخصوص دے په مدح سره او لفظ دَ اَمْدَحُ يا اَخُصُّ بِالْمَدَحِ په ديکښ پټ مراد دے۔ او کسائي وئيلي دي چه دا معطوف دے دَ ذَوِي په مفعولونو باندے او مراد دَ دے نه هغه فقراء دي چه ځان ساتي دَ سوال کولو نه په وخت دَ مصائبو کښ۔ فِي الْبَاْسَاۗءِ وَالضَّرَّاۗءِ، بأساء استعماليږي په مالي سختو او مصيبتونو کښ او ضرآء په بدني تکليفونو کښ استعماليږي وَحِيْنَ الْبَاْسِ، مراد دَ دے نه قتال في سبيل الله دے ابن کثير دَ ابن مسعود او ابن عباس رضي الله عنهم او ډيرو تابعينو نه دا سے نقل کړيدے او په لفظ دَ بأس کښ اشاره ده چه په قتال في سبيل الله کښ صبر ته هغه وخت ډير ضرورت وي چه سختي راشي۔ اُولٰۗىِٕكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا، رشتيني دي په دعوىٰ دَ نيکئ او دَ ايمان کښ ځکه چه په دے صفاتو کښ تاکيد دَ ايمان دے په اقوالو او اعمالو دَ خير سره۔ وَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ، ځکه چه دوی دَ ټولو محرماتو نه ځان ساتي او دَ طاعاتو پابندي کوي۔

فائده ١:- قرطبي وئيلي دي چه دا ايت مشتمل دے په شپاړس قواعدو باندے چه هغه دا دي: ايمان په الله تعالىٰ باندے او په اسماؤ صفاتو دَ هغه او ايمان په نشر حشر، ميزان، صراط، حوض، شفاعت او جنت او جهنم باندے۔ او ايمان په ملائيکو او کتابونو منزلو او په رسولانو باندے۔ او مال خرچ کول په صحيح ځايونو کښ که واجب وي او که مستحب وي۔ او صله رحمي او لحاظ کول دَ يتيمانو او مسکينانو او لحاظ کول دَ مسافرو او دَ ميلمنو، او لحاظ کول دَ سوال کوونکو او دَ ستونو دَ آزادولو، پابندي کول دَ مونځ او ورکول دَ زکوٰة، او وفا کول په وعدو باندے او په سختو باندے صبر کول۔ او په ديکښ هره يوه قاعده په تفصيل کښ مستقل کتاب ته محتاج ده۔ او دا ټول دَ نيکئ اعمال دي۔

فائده ٢:- په دے آيت کښ تعريض دے په اهلِ کتابو باندے چه هغوی په بعض ملائيکو او په بعضِ انبياؤ ايمان نهٔ راوړی او حقوقو دَ

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ

اے ایمان والو فرض کړے شویدے په تاسو باندے

الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى ۭ اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ

قصاص (جاری کول) په باره د قتل کړے شو کښ (په قتل عمد سره) آزاد په وړلے کیږی په بدل د آزاد کښ

وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى ۭ

او مرئے په وړلے کیږی په بدل د مرئي کښ او زنانه په وړلے کیږی په بدله د زنانه کښ،

فَمَنْ عُفِيَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ

نو هغه څوک چه معافي او کړے شو هغه ته د طرف د رور د هغه د څه څیز نو لازم دی وروسته کرځیدل

بِالْمَعْرُوْفِ وَاَدَاۗءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ ۭ

(په وارث باندے) په ښه طریقے سره او لازم دی په قاتل باندے) اداء کول وارث ته په ښائسته طریقے سره،

انسانانو کښ خیانتونه کوی او په وعدو باندے وفا نهٔ کوی (لکه چه په دے سورت کښ مخکښ ذکر شوی دی) او تعریض دے په مشرکانو باندے چه په هغوی کښ دا صفات د نیکئ نیشته۔

**فائده ۳:۔** ابن عاشور وئیلی دی چه په دے آیت کښ ئے ټول انفرادی او اجتماعی فضائیل راجمع کړیدی ځکه چه ایمان او مونځ منبع ده د انفرادی فضیلتونو او زکوٰة ورکول اصل دے د اجتماعی نظام۔ او په وعدو باندے وفا کولو کښ انفرادی فضیلت (کمال د نفس) او اجتماعی فضیلت (چه اعتماد کول دی په یو بل باندے) دواړه راجمع دی۔ او صبر مجمع ده د هر قسم فضیلت او په دے کښ شجاعت د اُمت ته هم اشاره ده۔

(تفسیر التحریر والتنویر)

ذٰلِكَ تَخْفِيفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ ؕ

دا حکم (د معافی) آسانتیا ده ستا د رب د طرف نه او خاص مهربانی ده،

فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ

نو چا چه زیاتے اوکړو روستو د عفو نه نو ده لره

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۷۸﴾ وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ

عذاب دردناک دے۔ او ستاسو دپاره په قصاص کښ

۱۷۸ ربط: د مخکښ آیت سره دا دے چه په دیکښ اوس هغه بر (نیکی) ذکرکوی چه مقتضا د ایمان ده او په هغے سره سیاسی نظام صحیح کیږی او حفاظت د افرادو او نفوسو په کښ حاصلیږی۔ لیکن کتابیان (نصاریٰ) دانۀ منی او یهودیان په کښ د خاتناتو او قوموتو فرق کوی د بعضو نه قصاص اخلی او د بعضو نه ئے نۀ اخلی او حال دا دے چه په تورات کښ هم حکم د قصاص فرض وو بغیر د دیت نه لکه چه په سورۃ مائده ۴۵ کښ ذکر دی۔ دا رنګ مشرکینو او جاهلیت والو په دے کښ افراط کوو چه د یوتن په بدل کښ به ئے ډیر کسان وژل۔ تو په دے آیت کښ په ټولو بانډے ردکوی۔

کُتِبَ، اصل د کتابت هغه لیکل دی (نقش د حرفونو) او په دے نقش کښ کلکوالے مراد وی، نو اطلاق ئے کیږی په معنیٰ د حق بانډے او په معنیٰ د فرضیت سره راځی۔ عَلَيْكُمُ، دا خطاب دے اُمت ته په مجموعی طور سره او هر یو جدا جدا مراد نۀ دے او اُمت د دے آدائیږی په طریقه د خلیفه جوړولو سره کولے شی او اقامت د خلافت (په شرطونو سره) د اُمت فریضه ده۔ یا په دے سره مخاطب اولیاء او وارثان د مقتول دی لیکن سره د جواز د معافئ کولو ته چه هغه روستو ذکر کیږی۔ یا په دے سره قاتلان مخاطب دی او مراد د دے نه ځان سپارل دی د قصاص د پاره۔

اَلْقِصَاصُ، قرطبی وغیلی دی چه دا د قصّ الاثر نه اخستلے شوے دے او په معنیٰ د اتبع (پل پسے ګرځیدلو) دے لکه په سورۃ کهف ۶۴ او قصص ۱۱ کښ دی۔ یا قص په معنیٰ د قطع (پریکولو) دے۔ او په قصاص شرعی کښ

دا دواړه معنے پرتے دی. او د مشقی وئیلی دی چه قصاص په عرف کښ دَ برابروالی نه عبارت دے یعنی چه دَ انسان سره داسے کار اُوکړے شی چه کوم هغه دَ بل سره کړے وی. فِی الْقَتْلٰی، جمع دَ قتیل ده او په وزن دَ فعلی دے. او په هغه فعل کښ استعمالیږی چه په چا باندے په زور اُوکړے شی (لکه جرحیٰ او زمنیٰ وغیره). اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰی بِالْاُنْثٰی، مخکښ جمله تامه مستقله وه په باره دَ قصاص دَ نفس کښ او په دے جمله کښ ذکر دے دَ بعضِ جزئیاتو دَ هغے نه دَ دوؤ فائدو دَ پاره اوله دا چه دا رد دے په اهلِ جاهلیت باندے چه هغوی دَ مرئي (غلام) په بدل کښ دَ حُر (آزاد) نه قصاص اخستلو نو هغوی ئے په دے تخصیص سره منع کړل (اللباب). دویمه فائده دا چه په دے کښ اشاره ده جاری کولو دَ قصاص ته په ټولو اقسامو دَ نفسونو کښ، ځکه نفس به یا مذکر وی یا مؤنث او هر یو به یا آزاد وی یا به مملوک وی نو په ټولو اقسامو کښ قصاص شته. او دَ بعضِ اهلِ علمو په نیز دلته حصر مراد دے او هغے ته اعتبار دَ مفهوم مخالف هم وئیلے شی یعنی قتل دَ حُر خاص دے په قتل دَ حُر پورے په بدل دَ عبد (مرئي) کښ نشی قتل کیدلے (او په دے مسئله کښ دَ اهلِ علمو اختلاف هم شته دے) او قتل دَ عبد خاص دے په قتل دَ عبد پورے په بدل دَ حُر کښ نشی قتل کیدلے او دَ دے قول هیڅوک قائل نیشته). او قتل دَ اُنثیٰ خاص دے په انثیٰ پورے دَ مذکر (نارینه) په بدل کښ به زنانه نشی قصاص کیدلے (دَ دے هم هیڅوک قائل نیشته) نو غوره دا ده چه دلته حصر مراد نهٔ دے. دَ دے مزید تفصیل په تفسیر قرطبي وغیره تفاسیر الاحکام کښ اُوګورئ او دا رنګ په احادیثو صحیحهٔ کښ. فَمَنْ عُفِیَ لَهٗ مِنْ اَخِیْهِ شَیْءٌ، په دے جمله کښ ذکر دَ بل حکم دے. عُفِیَ په معنیٰ دَ ترک (پریښودلو) سره دے یعنی قصاص اخستل پریږدی. یا په معنیٰ دَ محو کولو سره دے. مَنْ نه مراد قاتل دے. اَخِیْهِ نه مراد مقتول دے هغه ته اخیه دَ دے دَ پاره او وئیلے شو چه معافئ کولو ته شفقت او رغبت پیدا شی. او په دیکښ دلیل دے چه په قتل (چه ګناه کبیره دے) سره دَ ایمان نه نه اُوځی نو اسلامی رورولی ئے باقی پاتے ده. په دلیل دَ اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ سره. (سورهٔ حجرات-۱)

او مِنۡ دَ طرف دَ پاره دے یعنی ولی دَ مقتول دِے معافی اُوکړی قاتل ته دَ قصاص اخستلو ته۔ شَیۡءٌ ئے نکره وئیلے ده چه دلالت کوی په لږه حصه معاف کولو باندے اودَ هغې صورت دا دے چه دَ مقتول مثلاً دوه اولیاء برابروی یو معافی دَ قصاص نه اُوکړی او هغه بل نۀ وی کړے نو هم معافی اُوشوه او هم قصاص ساقط شو ځکه چه په قتل کښ تجزی نۀ کیږی۔ فَاتِّبَاعٌۢ بِالۡمَعۡرُوۡفِ، دا جزا ده دَ پاره دَ شرط یعنی فَمَنۡ عُفِیَ، او په دیکښ لفظ پټ مراد دے یعنی فَعَلَیۡهِ اِتِّبَاعٌ، یعنی په ولی دَ قاتل باندے لازم دی چه په قاتل پسے اُوگرځی (که په هره ذریعه سره وی) او دیت ترینه طلب کړی او دا دلیل دے چه معافئ کولو سره دیت نخپله لازمیږی او دا مذهب دَ ډیرو اهلِ علمو دے۔ او دَ احناف و په نیز باندے دیت نه لازمیږی ترڅو پورے چه شرط دَ دیت ئے نۀ وی لګولے۔ او دا دَ ظاهر آیت نه خلاف دے۔ مَعۡرُوۡفِ، دا لفظ په قرآن کښ اته دیرش کرته راغلے دے۔ او معروف هر هغه څیز (قول او فعل) ته وئیلے شی چه په شرع یا په عقل سره دَ هغې حسن معلومیږی۔ دلته مراد په مطالبه دَ دیت کښ سختی نه کول دی چه هغه احسن طریقه ده۔ نو اتباع (گرځیدل) دَ پاره دَ مطالبے دَ دیت دَ مقتول دَ ولی حق دے او معروف والے (په ښه طریقے سره) په هغې کښ واجب دے۔ وَاَدَآءٌ اِلَیۡهِ بِاِحۡسَانٍ، دَ دینه مخکښ هم عَلَیۡهِ لفظ پټ مراد دے یعنی په قاتل باندے ادا کول دَ دیت واجب دی دَ مقتول ولی ته۔ اِحۡسَانٍ نه مراد بغیر دَ ټال مټول نه دیت ورکول دی۔ او کومه آدائیږی چه بغیر دَ ټال مټول نه حقدار ته اُوشی نو هغه ئے احسان گنړی په ځان باندے۔ ذٰلِكَ تَخۡفِیۡفٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ وَرَحۡمَةٌ، ذٰالِكَ اشاره ده معافئ کولو او دیت اخستلو ته۔ او دا تخفیف په دے وجے سره دے چه اختیار دے په مینځ دَ دریو څیزونو کښ چه قصاص، دیت او عفوه کول دی (او په یهودیانو باندے صرف قصاص واجب وو۔ او په نصارأو باندے صرف عفوه واجب وه) دا ابن کثیر دَ سعید بن جبیر رضی الله عنه نه روایت ذکر کړیدے۔ او رحمت په معنٰی دَ وسعت ورکولو دے۔ فَمَنِ اعۡتَدٰی بَعۡدَ ذٰلِكَ، مراد دَ اعتداء نه دَ معافئ کولو او دیت اخستلو نه روستو دَ قاتل وژل دی (ابن عباس رضی الله عنهما، قتاده)

حَيٰوةٌ يّٰاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ (۱۷۹)

ژوند دے اے صفا عقل والو د دے د پاره چه تقوی حاصله کړئ۔

فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ، په دے کښ یو قول دا دے چه هغه به (چاچه اعتداء کړے ده) خامخا قتل کیدے شی، دیت اخستل او معافی کول به ورته نه وی (قتاده، حسن او سعید بن جبیر)۔ دویم قول دا دے چه دا عذاب په آخرت کښ مراد دے ځکه چه عَذَابٌ اَلِيْمٌ مطلق ذکر شی تو مراد ترینه عذاب د آخرت وی او دا قول د اکثرو اهلِ علمو دے او قوی دے۔

۱۷۹ دا آیت جواب د سوال دے چه فرض کول د قصاص خو د رحمت د الله تعالیٰ سره مناسب نه دی ځکه چه بنده کمزورے دے۔ حاصلِ جواب دا دے چه په تشریع د قصاص کښ لوئے حکمت دے۔

وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ، سوال دا دے چه حیات خو ژوند دے او قصاص کښ مرګ راځی نو دا څه رنګه صحیح کیږی؟

جواب ۱:۔ مراد د دے نه قصاص اخستل نه دی بلکه قانون د قصاص جاری کول دی ځکه چه څوک د چا د قتل اراده کوی نو هغه ته به دا معلومه وی چه ځما نه خو به ضرور قصاص اخستلے کیږی نو د قتل کولو نه به منع کیږی نو حیات دا دے چه دے هم ژوندے پاتے شو او هغه بل هم د قتل نه بچ شو او د دے دوارو خاندانو نه هم د فتنے او د دشمنئ نه بچ شول۔

جواب ۲:۔ د یو شخص نه قصاص اخستل سبب دے د پاره د منع کولو د نورو خلقو د قتل و قتال نه۔

جواب ۳:۔ مراد د حیات نه سلامتیا ده د آخرت د عذاب نه۔ او دا بنا دے په هغه قول چه د دنیا د عقوبتونو سره د آخرت عذاب معاف کیږی۔

جواب ۴:۔ د ژوند نه مراد امن دے چه په قصاص جاری کولو سره د نفوسو د ژوند امن پیدا کیږی۔

يّٰاُولِي الْاَلْبَابِ، اَلْبَابِ جمع د لُبّ ده هغه عقل ته وئیلے شی چه خالی وی د خواهشاتو او وهمونو نه۔ یعنی په حکمت او فائدو د قصاص باندے دا سے خالص عقل والا پوهیږی۔ په دیکښ اشاره ده چه کوم خلق قانون د قصاص ته ظلم وائی نو د هغوی عقل صحیح او خالص نه دے بلکه هغه بے عقله دی۔ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ، مراد د تقوی نه عامه معنیٰ ده

كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ

فرض کړے شوی دے په تاسو باندے کله چه را نزدے شی یو ستا سو ته مرګ

إِنْ تَرَكَ خَيْرًا ۖ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ

که چرے پریخودلے وی مال، وصیت کول مور او پلار ته

وَالْأَقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ ۖ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴿١٨٠﴾

او خپل خپلوانو ته په نیکه (شرعی) طریقے سره، دا حق واجب دے په متقیانو باندے۔

ځکه چه اجراء او منل د قانون د الله تعالیٰ سبب د پاره د پیښ آکیدلو د تقوی دے۔ ۱۸۰ په دے آیت کښ دویم حکم سیاسی ذکر کوی د مالونو د امن او حفاظت د پاره۔ ربط: د مخکښ سره دا دے۔ قرطبی وئیلی دی چه هرکله د مقتول د ولی د پاره ئے حق د قصاص ذکر کړو نو چه هغه د چانه قصاص اخلی نو هغه مرګ ته نزدے شو نو د هغه د پاره حکم د وصیت ذکر کوی۔ مهائمی ذکر کړیدی چه مخکښ انواع د بر ذکر کیدل او دا هم حکم د احکامو د برنه دے نو د دے وجے نه ئے دلته ذکر کړو۔ او هرکله چه د انسانیت تقاضا داده او هر انسان لره د دے لحاظ پکار دے نو د دے وجے نه يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ئے ورسره ذکر نه کړو۔

كُتِبَ عَلَيْكُمْ، د کتابت نه روستو لفظ د علی دلالت کوی په ایجاب باندے او کله کله د استحباب د پاره هم استعمالیږی۔ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ، لفظ د إِذَا د ظرف د پاره دے۔

سوال:۔ هرکله چه په انسان باندے مرګ راشی نو بیا خو خبرے نشی کولے؟

جواب:۔ مراد د دے نه علامات د مرګ دی۔ یا حضور په معنیٰ د نزدیکت دے او دغه وخت خا مخا د وصیت کولو دے۔

إِنْ تَرَكَ خَيْرًا، دا شرط دے او د دے په جزاء کښ اختلاف دے۔ یو قول دا دے چه جزاء ئے پټه ده یعنی فَلْيُوصِ (وصیت دِے اُوکړی)۔ دویم قول دا دے چه كُتِبَ د دے جزاء ده او دا په نیز د هغه چاچه مخکښ والے د جزاء په شرط باندے جائز ګنړی۔ خَيْرًا دلته مال ته وئیلے شی او دمشقی په اللباب کښ د خیر اتّه معانے په قرآن کښ ذکر کړی دی۔

اوله معنیٰ مال لکه دا آیت دے۔ دویمه معنیٰ ایمان (سورۂ انفال ۲۳ نک) دریمه معنیٰ غوره والے لکه خیرالرّازِقِین کښ۔ څلورمه معنیٰ عافیت د مصیبت نه (سورۂ یونس ۱۰۷)۔ پنځمه معنیٰ ثواب (سورۂ حج ۳۶)۔ شپږمه معنیٰ طعام (سورۂ قصص ۲۴)۔ اوومه معنیٰ کامیابی او غنیمت (سورۂ احزاب ۲۵) او اتمه معنیٰ اسونه (سورۂ ص ۳۲) دلته عام دے که مال یې لږ وی اوکه ډیر وی۔

اَلۡوَصِیَّۃُ، وصیت په اصل کښ هر هغه څیز ته وئیلے شی چه د هغے په باره کښ حکم او تاکید کیدے شی۔ او په عرف کښ وصیت خاص دے په هغه کارپورے چه د مرګ نه روستو د هغے د کولو او جاری کولو تاکید کولے شی۔

سوال:۔ دا تائب فاعل د کُتِبَ دے نو بیا ولے په کُتِبَ یې مؤنث ذکر کړے وے؟

جواب:۔ دا په معنیٰ د ایصاء سره دے یا دا مؤنث حکمی دے یا ئے په مینځ کښ فاصله ډیره ده نو د دے وجې نه کُتِبَ مذکر صیغه ذکر شوه۔

لِلۡوَالِدَیۡنِ وَالۡاَقۡرَبِیۡنَ، لام په خپله معنیٰ سره دے او والدین او اقربین موصی لهم دی (هغه څوک چه د هغوی د پاره د مال د څه حصے ورکولو وصیت اُوکړی)۔ بِالۡمَعۡرُوۡفِ، دا په معنیٰ د عدل سره دے او د دے مقصد دا دے چه مال اړله یه غوره والے نهٔ ورکوی په فقیر باندے (سراج المنیر) او په ترمذی او احسان سره (ابن کثیر) او چه زیاتے او کمے په کښ نه وی۔ او دا سپارلے شوے دے اجتهاد د مړکیدونکی او حالت د موصی لهٔ ته (قرطبی)۔ او چا چه وئیلی دی چه مراد د دینه دریمه حصه ده نو هغه خاص دے په وخت د حکم د میراث کښ۔ حَقًّا عَلَی الۡمُتَّقِیۡنَ، دا مفعول مطلق دے د پاره د کتب په موصوف پټ سره یعنی کُتِبَ کِتَابًا حَقًّا۔ یا تاکید دے د مضمون د جملے یعنی حُقَّ ذَالِكَ حَقًّا او حق په معنیٰ د لازم او واجب سره دے۔

سوال:۔ دا خو په ټولو مؤمنانو باندے واجب دے نو تخصیص د متقیانو ئے ولے اُوکړو؟

جواب ۱:۔ مراد د متقین نه هغه مؤمنان دی چه اراده لری د حصول د تقویٰ په ادا کولو د واجباتو سره۔ جواب ۲:۔ حق په معنیٰ د امر مناسبه

لائق سره دے او متقین په خپله معنیٰ سره مراد دے۔
فائده :- په دے کښ د علماؤ اختلاف دے چه دا منسوخ دے او که محکم دے؟ نو بعض مفسرینو وئیلی دی چه دا آیت (په باره د وصیت د والدینو او اقربینو د پاره) منسوخ دے په آیت د میراث سره او حدیث صحیح کښ دی چه لاوصیۃ لوارث او دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه هغه وئیلی دی چه مخکښ زمانه کښ مال به صرف د ولد د پاره وو او د مور پلار د پاره صرف وصیت وو، نو الله تعالیٰ منسوخ کړو د دے نه هغه چه د الله تعالیٰ خوښه وه (بخاری) او بعض مفسرینو لکه ضحاک، طاؤس او حسن بصری وئیلی دی چه آیت اګرچه عام دے لیکن دا خاص دے په باره د هغه والدینو کښ چه حقدار د میراث نهٔ وی. د دے وجے نه چه هغوی کافران یا مریان وی۔ او هغه اقرباء چه حق د میراث نه لری د وجے د لرے والی د نسب نه۔ او دا قول طبری غوره کړیدے او د زهری نه هم دا سے نقل دی۔ یا یله توجیه د عدم نسخ دا ده چه لِلْوَالِدَيْنِ الخ کښ لام په معنیٰ د اِلیٰ سره دے او والدین او خپلوان به وصیان وی (هغه څوک چه یو شخص د مرګ په وخت کښ بل چا لره د څه کارکولو د پاره مقرر کړی) نو مراد دا دے چه په وخت د مرګ کښ یو شخص دِ خپل مور او پلار او خپلوانو ته اووائی چه ځما په مال کښ حکم د میراث شرعی اُوچلوئی او د هیڅ یو تن مقرر حصه مه کموئی نو تقدیر د عبارت دا دے چه كُتِبَ عَلَيْكُمْ مَا وَصَّى اللهُ بِهٖ مِنْ قَوْلِهٖ يُوْصِيْكُمُ اللهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ (سورۃ نساء ۱۱) دا قول امام رازی، ابو مسلم اصفهانی او دمشقی ذکر کړیدے او په دے توجیه کښ دا هم داخل ده چه والدینو او خپلوانو ته دِ اووائی چه ځما په مال کښ غیر شرعی صدقات او تقسیمونه مهٔ کوئی لکه اسقاطونه، ماښامونه او کلیزے وغیره چه په دے ملک کښ رواج دے۔ دا رنګ که د چا نه مال باقی نه وی پاتے شوے لیکن دین خو د هغه پاتے کیږی لکه انبیاء علیهم السلام نو هغوی دِ خپلو وارثانو ته وصیت اُوکړی په باره د دین او توحید او د اعمالو کولو د سنت سره موافق لکه چه په دے سورت کښ ذکر وو وَوَصّٰى بِهَا اِبْرٰهِيْمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ۔

فَمَنْ بَدَّلَهٗ بَعْدَ مَا سَمِعَهٗ فَاِنَّمَآ

نو چا چه بدل کړو دا وصیت روستو دَ هغې نه چه واوریدلو هغه تو یقیناً

اِثْمُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يُبَدِّلُوْنَهٗ ؕ

ګناه دَ دے په هغه کسانو باندے ده چه بدلوی دا وصیت ،

اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ؕ ﴿۱۸۱﴾ فَمَنْ خَافَ

یقیناً الله تعالیٰ هر څه آوری او په هر څه عالم دے. نو څوک چه ویره کوی

مِنْ مُّوْصٍ جَنَفًا اَوْ اِثْمًا فَاَصْلَحَ

دَ وصیت کوؤنکی نه دَ کږیدلو (په خطا) یا دَ ګناه (قصداً) نو صلح اوکړی

فائده ۲۸:- دَ دے نه معلومه شوه چه کوم آیت په تلاوت کښ باقی پاتے دے او هغے ته علماؤ منسوخ الحکم وئیلے وی نو دَ هغے یو حکم منسوخ وی او بل حکم یئے باقی پاتے وی او کله ایجاب منسوخ وی او استحباب باقی وی نو په دے طریقے سره دَ قرآنی آیت استیصال (بیخکنی) نه کیږی.

۱۸۱ په دے آیت کښ زور نه ده په بدلولو دَ وصیت باندے او تاکید دے دَ بقاء په صحیح وصیت باندے. په بَدَّلَهٗ او سَمِعَهٗ کښ ضمیر وصیت ته راجع دے ځکه چه وصیت په معنیٰ دَ ایصاء سره دے. سَمِعَهٗ دا عام دے یعنی چه په خپله دَ وصیت کوؤنکی وصیت واوری یا دهٔ ته علم دَ هغے په صحیح شهادت سره حاصل شی.

فَاِنَّمَآ اِثْمُهٗ ، دا ضمیر راجع دے تبدیل ته.

عَلَى الَّذِيْنَ يُبَدِّلُوْنَهٗ ، دا تصریح کول دلیل دے چه وصیت کوؤنکے په دے کښ ګناهګار نه دے ځکه چه لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى قانون الٰهی دے.

اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ، په دے کښ تخویف (یره) دے تبدیل او جنف (کوږ والی) کوؤنکو ته.

بَيْنَهُمْ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

په مینځ دَ دوی کښ تو نیشته ګناه په هغه باندے ، یقینًا الله تعالیٰ

غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٨٢﴾ ع يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ع۲۲

بخنه کوونکے او رحم کوونکے دے. اے ایمان والو

۱۸۲ په دے آیت کښ عامو مسلمانانو ته دَ اصلاح دَ پاره ترغیب دے.

فَمَنْ خَافَ ، دا خوف په معنیٰ دَ علم سره دے ځکه چه دَ دے دَ ناکاره نتیجے نه یره کیږے شی، دَ دے وجے نه دیته ئے خوف وئیلے دے.

جَنَفًا اَوْ اِثْمًا ، جنف جور او ظلم او میلان ته وئیلے شی خو مراد هغه میلان دے چه دَ صحیح طریقے نه قصدًا او عمدًا واوړی. او اِثْمَ نه دلته مراد میلان دے په جهل سره او بعضِ مفسرینو برعکس فرق لیکلے دے. او مراد دَ دے نه وصیت کول دی په خلاف دَ حق نه. قرطبی دَ هغے مثالونه ذکر کړی دی، لکه چه میراث دَ بعضِ وارثانو قطع کړی یا اذیت ورکړی وارثانو ته په وصیت کولو سره زیات دَ ثلث نه یا وصیت اُوکړی خپل ځوم (دَ لور خاوند) ته یا اولاد دَ لور ته. او ځه وایم چه وصیت اُوکړی په بدعاتو کولو سره په ځلویښتمه کولو یا په ماښامونو یا په حیله دَ اسقاطِ مروجه سره یا په کلیزو وغیره کولو سره نو دا هم دَ حق نه خلاف دے.

فَاَصْلَحَ بَيْنَهُمْ ، ضمیر دَ بَيْنَهُمْ راجع دے وصیت کوونکی او هغه چا ته چه وصیت ورته اُوکړے شی یا وارثانو ته. او مراد دَ اصلاح نه دَ هغه وصیت شرعي طریقے ته راګرځول او دَ بدعاتو او دَ ظلم نه خالی کول دی.

فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ، هرکله چه په دے اصلاح کښ تبدیل دَ وصیت لازمیږی نو وهم دَ ګناه پیدا کیږی نو دَ دے وجے نه ئے نفی اُوکړه دَ ګناه نه.

اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ، هغه وصیت کوونکے چه لاړون دے وی او اصلاح اُومنی او خپلے غلطئ نه توبه اُوکړی نو الله تعالیٰ ورته بخنه کوی او رحم کوی په هغه باندے.

سوال:- خوف په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه په زمانه مستقبل کښ وی او وصیت خو واقع شوے دے نو څه رنګ ئے لفظ دَ خوف ذکر کړو؟

جواب ۱:- خوف په معنیٰ دَ علم دے مجازًا لکه چه مخکښ ذکر شو.

كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى

فرض کړے شوېدی په تاسو باندے روژے نیول لکه چه فرض کړے شوی وے په

الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٨٣﴾

هغه کسانو باندے چه ستاسو نه مخکښ وو دے دپاره چه تقوی حاصله کړئ۔

جواب ۲:- اصلاح کوؤنکی ته په علاماتو سره معلوم شی چه وصیت کوؤنکے جنف یا اثم کوی نو د وصیت نه مخکښ یٔ اصلاح اُوکړی۔

جواب ۳:- وصیت کوؤنکے روستو د جنف او اِثم نه رجوع اُوکړی د خپل وصیت نه مخکښ د مرګ نه نو جنف او اثم معلق دے۔

۱۸۳ ربط:- د مخکښ آیت سره، قرطبی وئیلی دی چه هرکله مخکښ بعض فرائض (قصاص، وصیت) په مکلفینو باندے ذکر کړل نو اُوس بله فریضه ذکر کوی په تعبیر د کُتِبَ سره۔ او ابوحیان وئیلی دی چه اول فریضه د قصاص ذکر شوه چه په هغے کښ هلاکت او مرګ د نفسونو دے او ډیر سخت حکم دے، بیا یٔ وصیت ذکر کړو چه هغه مال راویستل دی او هغه پشان د روح د انسان دے او دا هم سخت کار دے نو اُوس حکم د روژے ذکر کوی چه په هغے بدن کمزورے کیږی او دا هم سخت عمل دے نو دا تنزل دے د اَشق نه شاق ته۔ دا رنګ مخکښ په بِر کښ درے ارکان د اسلام ذکر شول چه ایمان، مونځ او زکوٰة دے نو اُوس څلورم رکن ذکر کوی چه روژه ده۔ او ابن عاشور وئیلی دی چه روژه داسے عبادت دے چه تزکیه د نفس پیدا کوی او په دے کښ اصلاح د افرادو ده فردًا فردًا او د دے افرادو نه اجتماعیت جوړیږی نو دا حکم یٔ په احکام سیاسیه اجتماعیه کښ د دے وجے نه شمار کړے شویدے۔ او په دے سره امن د نفسونو هم راځی په روحانی طریقے سره۔ په دے آیت کښ د روژے فرضیت ذکر دے او ورسره د هغے فائدے په اختصار سره ذکر دی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا، دا جمله دلالت کوی چه روژه نیول مقتضا د ایمان ده۔ كُتِبَ، د قصاص او صوم په باره کښ یٔ كُتِبَ په صیغه د مجهول سره ذکر کړے دے اګرچه د دے فاعل معلوم دے چه الله تعالیٰ دے

لیکن دا دَ تکلیف او مصیبت کاروته دی نو صراحتًا نسبت یې الله تعالیٰ ته مناسب نه دے او هر کله چه رحمت او غلبه ورکول او ایمان دَ خیر کاروته او دَ ظاهری خوشحالئ سببونه دی نو دَ هغے نسبتونه صراحتًا الله تعالیٰ ته کړے شوی دی لکه په سورۂ انعام ۵۴، سورۂ مجادله ۲۱، ۲۲ کښ دی۔

سوال:۔ سورۂ مائده ۴۵ کښ دَ قصاص نسبت په صیغه دَ معلوم سره کړے شوے دے؟

جواب:۔ هلته خطاب یهودیانو سره دے نو دَ هغوی دَ مغضوبیت دَ وجے الله تعالیٰ ځان ته دَ ترهیب دَ پاره نسبت صریحی کړے دے۔

الصِّيَامُ، په لغت کښ بند یدل دی دَ یو څیز نه او اُودریدل په یو ځائے باندے۔ او په شریعت کښ بند یدل او منع کیدل دی دَ خوراک، څښکاک او جماع (مفطرات) نه سره دَ علم نه په صوم باندے او سره دَ نیت نه دَ طلوع دَ صبا نه تر غروب دَ نمر پورے۔ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ، په دے تشبیه کښ دوه قولونه دی اول دا چه تشبیه صرف په فرضیت کښ ده او فائده دَ تشبیه دا ده چه روژه دَ مشقت عبادت دے، نو کله چه ذکر شوه چه دا فریضه په مخکنو اُمتونو باندے هم وه نو په دے سره مشقت آسان شو۔ دویم قول دا چه دا تشبیه په شمار کښ ده او په دیکښ ډیر اقوال دی۔ اول قول دا چه دا درے ورځے دی چه هغے ته ایامِ بیض وئیلے شی (دَ میاشتے دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاریخ) او بیا منسوخ شوی دی په روستو آیت سره۔ دویم قول دا چه دا عینِ رمضان دے چه فرض وو په یهودیانو او نصاراؤ باندے لیکن نصاراؤ په کښ دَ ځان نه زیاتے اُوکړو او پنځوس ورځے ترینه جوړے کړے۔ او مراد دَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ نه ټول اُمتونه دی دَ آدم علیه السلام نه تر آخری نبی او اُمت پورے۔ یعنی هیڅ دین سماوی دَ عبادت دَ روژے نه خالی نۀ وو لکه چه حدیث دَ بخاری کښ راغلی دی بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ یعنی هره زمانه کښ دَ هر نبی دین، دینِ اسلام وو او بنیاد یې دغه پنځه فرائض وو چه یو په هغے کښ روژے دَ رمضان دی۔ او بعض مفسرینو وئیلی دی چه مراد دَ مِنْ قَبْلِكُمْ نه یهود او نصارٰی دی۔ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ، دا حصول دَ پرهیزګارئ فائده ده دَ روژے نیولو۔ او ترجاج وئیلی دی

أَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ ؕ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ

ستاسو نه نو څوک چه وي ورځې دي شمارلے شوے،

مَّرِيْضًا أَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ

ناجوړه یا وي په سفر باندے (او پر بر دي روژے) نو پوره ؤ باندے شمارل دي د ورځو

أُخَرَ ؕ وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ

نورو نه (د پاره د قضا)، او په هغه کسانو باندے چه طاقت د روژے نه لري فدیه ده

طَعَامُ مِسْكِيْنٍ ؕ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا

چه خوراک د مسکین دے (د یو ورځ د پاره)، نو چا چه اخلاص سره اوکړو نیک کار

فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ ؕ وَأَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ

نو دا ډیره فائده مند ده د پاره د هغه، او روژے نیول ډیر خیر دے تاسو د پاره

إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۴﴾ شَهْرُ رَمَضَانَ

که چرے تاسو علم لرئ. (دغه ورځے) میاشت د رمضان ده

چه مراد د دے نه تقوی ده د ګناهونو نه ځکه چه روژے سره نفس د شهواتو نه بچ شي او ګناهونه خو په شهوت سره پیدا کیږي. او حدیث کښ هم د دے تائید شته دے چه اَلصَّوْمُ جُنَّةٌ (روژه ډال دے د ګناهونو نه) او بل حدیث کښ وارد دي چه چا دروغ وئیل او ناکاره عمل په روژه کښ نه وي پریښودلے نو د ده په صرف خوراک او څښکاک پریښودلو باندے الله تعالیٰ هیڅ پروا نه کوي.

س ۱۸۴ په دے آیت کښ د روژے مدت ذکر کوي، بیا د روژے د رخصت د پاره عذرونه او حکم د فدیے ذکر کوي. أَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ، د دینه مخکښ فعل (صوموا) پټ دے. او څوک چه وائي چه دا نصب (زور) د وجے د الصیام نه دے نو ابوحیان په هغے باندے رد کړے دے. او لفظ د معدودات د پاره دلېږوالي دے ځکه چه لږ څیز شمارلے کیږي. او بله معنیٰ د معدودات دا ده چه تقدیر ئے کړے شوے دے په خاص عدد (شمار) سره. او د

ایام معدودات په باره کښې د بعضو مفسرینو وینا داده چه د دیته د رمضان د میاشتې ورځې مراد دي چه په لفظ د شهر رمضان سره د هغې بیان دے او تعبیر په لفظ د أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ سره د دے حکم د درونوالي د دفع کولو د پاره دے. فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا، مراد د مرض نه هغه مرض دے چه ضرر او تکلیف په نفس کښې په حرکت سره او په زیادت د مرض پېښېدو سره وي. یا ماهر طبیب، ډاکټر چه دیته اړه وي هغه یې د روژې نیولو نه منع کړي (نیشاپوري). أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ مراد د سفر نه سفر شرعي دے او هغه په نیز د درے امامانو (شافعي، مالک او احمد رحمهم الله) شپاړس فرسخه دے (څلور بریده) او هر فرسخ درے میله دے نو ٤٨ اته څلویښت میلونه شول. او میل دولس زره قدمونه یعني (د خپو د تلو په مقدار) نو څلور زره عرفي قدمونه یعني ګامے شوے چه هغې ته څلور زره خطوات ویلے شي. او په نیز د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه درے ورځے منزل کول دي او لفظ د علیٰ د پاره د تصریح دے په کولو د سفر باندے ځکه چه لفظ مسافر هغه چا ته هم ویلے شي چه د سفر اراده لري او سفر یې لا نه وي شروع کړے نو داسے شخص له رخصت نیشته (او په دیکښې اختلاف شته دے). فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ، لفظ عدت یې ویلے دے او صیام یې نهٔ دے ویلے دا دلیل صریح دے چه برابر والے د قضا په شمار د ورځو کښې ضروري دے. لفظ د اُخریٰ یې نه دے ویلے بلکه لفظ د اُخر یې ویلے دے، د دے د پاره چه اشاره شي چه دا صفت د عدت نه دے بلکه صفت د ایام دے. دا دلیل دے چه په قضا روژو راوړلو کښې پرله پسے والے او زر نیول شرط نه دے او په روستو کولو کښې یې کفاره هم نیشته (خو په دے مسئله کښې هم اختلاف شته دے). وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ، په دے جمله کښې د مفسرینو دوه قولونه دي اول قول امام بخاري د ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت کړے دے چه دا په اول د اسلام کښې وو چه روژه فرض شوه لیکن سره د روژے نیولو د طاقت نه اجازت وو چه څوک روژه نه نیسي نو د هغې په فدیه کښې د مسکین ته طعام ورکړي لیکن دا حکم منسوخ شو په روستو آیت سره چه فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ، نو بنا په دے قول يُطِيقُونَهُ په ظاهري معنیٰ سره دے. دویم قول

د ابن عباس او علي رضی الله عنهم نه روایت دے چه دا په باره د ډیر بوډا (ضعیف) نارینه او بوډۍ زنانه کښې دے. او هغه مریض چه د جوړیدلو اُمید یې نه وي (ابوحیان) او ملحق ده په دے پورے حامله او مرضعه زنانه هم چه په ځان یا په بچي باندے یره لري. دا رنګ هر هغه څوک چه د روژے نیولو په وجے سره د سختے بیمارۍ او د هلاکت یره وي (ابن عاشور) لیکن په باره د بوډا کاتو او دائمي مریض کښې احنافو په نیز باندے قضا راوړل دي او په فدیه کښې یې اختلاف دے.

سوال:- په روستو قول باندے خو یُطِیْقُوْنَهٗ نه صحیح کیږي ځکه چه په دوي کښې خو طاقت نیشته؟

جواب:- په دریو طریقو سره دے. اوله طریقه دا ده چه په دیکښې (لا) پټ دے لکه سورة نساء ۱۷۶ کښې. دویمه طریقه: اطاق یطیق باب افعال دے او په دیکښې همزه د سلب د پاره ده یعني چه طاقت یې سلب شوے وي. دریمه طریقه دا ده چه طاقت لفظ په هغه ځائے کښې استعمالیږي چه قدرت د یو کار وي خو سره د ډیر مشقت نه (آلوسي). او طاقت د قدرت هغه درجه ده چه عجز ته نیز دے وي (ابن عاشور) او فراء بغوي هم تفسیر د طاقت په جهد او مشقت سره کړیدے. او تائید د دے بل قراءت دے د ابن عباس رضی الله عنهما نه چه وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطَوَّقُوْنَهٗ فَلَا يُطِيْقُوْنَهٗ او دا قراءت په طریقه د تفسیر سره دے په دے توجیها تو سره ضمیر د يُطِيْقُوْنَهٗ روژے ته راجع دے او فراء په معاني القرآن کښې وئیلي دي چه ضمیر فدیه ته راجع دے ځکه چه فدیه مذکر دے په تاویل د طعام سره او مبتدا مؤخر ده او عَلَى الَّذِيْنَ خبر مقدم دے. نو په دیکښې اشاره ده چه څوک د مسکین د طعام طاقت لري نو په هغه باندے فدیه واجب ده. او په قول د امام شاه ولي الله دهلوي په دے توجیه سره اشاره ده صدقه فطر ته چه هغه واجب ده. فدیه: په اصل کښې هر هغه بدل ته وئیلے شي چه قائم وي د یو څیز په ځائے باندے او جزاء ته هم وئیلے شي. او طعام په معنیٰ د اطعام (خورولو) سره دے او دا بیان د فدیے دے او په لفظ مسکین سره مصرف د فدیے ذکر دے او هغه په نیز د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه نیم صاع د غنمو دے او د

الَّذِیٓ اُنۡزِلَ فِیۡہِ الۡقُرۡاٰنُ ھُدًی

داسے میاشت چہ شروع شوی دے پہ ھغے کښں نزول د قرآن ھدایت دے

لِّلنَّاسِ وَبَیِّنٰتٍ مِّنَ الۡھُدٰی وَالۡفُرۡقَانِ ج

دپارہ د ټولو خلقو او ښکارہ احکام دی د ټیر شوی ھدایاتو د قسم نہ او د جدا ئی راوستلو پہ مینځ د حق او باطل کښں

فَمَنۡ شَھِدَ مِنۡکُمُ الشَّھۡرَ فَلۡیَصُمۡہُ ط

نو څوک چہ حاضر شو ستاسو نہ دے میاشت تہ نو روژہ دِ اونیسی د ھغے،

وَمَنۡ کَانَ مَرِیۡضًا اَوۡ عَلٰی سَفَرٍ

او څوک چہ وی ناجوړہ یا وی پہ سفر باندے

فَعِدَّۃٌ مِّنۡ اَیَّامٍ اُخَرَ ط یُرِیۡدُ اللّٰہُ

نو پہ دہ باندے شمارہ کول دی د دریځو نورو نہ، غواړی اللہ تعالیٰ

نورو طعام نو تہ پورہ صاع دے۔ او پہ قول د ابن عباس رضی اللہ عنہما کښں دوہ وختہ خوراک ورکول مراد دی (معالم التنزیل)۔

فَمَنۡ تَطَوَّعَ خَیۡرًا فَھُوَ خَیۡرٌ لَّہٗ، مراد د دے نہ پہ قول د مجاھد سرہ زیادت دے پہ یو مسکین باندے یعنی دوہ مسکینانو تہ دِ دوہ فدیئے ورکړی۔ او پہ قول د زھری باندے د فدیئے سرہ دے روژہ یوځائے کړی لیکن تَطَوَّعَ لفظ دلالت کوی پہ ھغہ عمل چہ اخلاص سرہ اُوکړے شی او خیر نہ مراد ھغہ عمل دے چہ پہ دلیل شرعی سرہ ثابت وی۔ وَاَنۡ تَصُوۡمُوۡا خَیۡرٌ لَّکُمۡ، بنا پہ قول د نسخ باندے معنٰی دا دہ چہ سرۂ د طاقت نہ روژہ نیول غورہ دی د صرف فدیئے ورکولو نہ۔ او بنا پہ دویم قول چہ بوډاګان او حاملہ او مرضعہ زنانہ سرۂ د مشقت نہ روژہ اُونیسی نو داغورہ دہ د روژے نہ نیولو او فدیئے ورکولو نہ۔ او امام رازی وئیلی دی چہ دا خطاب عام دے ټولو مسلمانانو تہ د روژے ترغیب دے۔

اِنۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ، جزاء ئے پټہ دہ چہ فَالصَّوۡمُ خَیۡرٌ لَّہٗ (روژہ نیول غورہ دہ ھغہ د پارہ)۔

بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ ز

په تاسو باندې آسانتیا او نه غواړي په تاسو باندې تنګسیا

وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ

او دې د پاره چه پوره کړې شماره او دې د پاره چه لوئي اوائې د الله تعالیٰ

عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿١٨٥﴾

په هغه طریقې سره چه هدایت یې کړې دې تاسو ته او دې د پاره چه تاسو شکر اوکړئ.

ف۱۸۵ او په دې آیت کښې تعین د میاشت د روژې دې او د هغې (رمضان) عظمت ذکر کوی۔ او فرضیت د روژې د دغه میاشتې په علم (معلومیدلو) سره دې۔ او رخصت دې په وخت د مرض او د سفر کښې سره د فرضیت د قضا نه۔ او په آیت کښې سره د دغې حکمونو نه نور حکمتونه الٰهیه ذکر کوی۔ شَهْرُ رَمَضَانَ، په دې کښې ډیر اقوال دی، اول قول د فراء بغوی دې چه دا خبر دې او مبتداء پټه مراد ده یعنی ذالکم شهر رمضان، او په ذالکم سره اشاره ده ایامًا معدودات ته نو په دې سره تقدیر (اندازه کول) د ایام اُوشو په میاشت د رمضان سره۔ او په نیز د اخفش المکتوب علیکم صیام شهر رمضان دې یعنی فرض کړې شوی دی په تاسو باندې روژې نیول د میاشت د رمضان او دویم قول د کسائی دې چه دا بدل دې د الصیام نه چه په اول د آیت کښې ذکر دې۔ دریم قول د ابوعلی فارسی دې چه شَهْرُ رَمَضَانَ، مبتداء ده او الَّذِيَ أُنْزِلَ اه جمله د دې صفت دې او خبر یې پټ دې یعنی هوالذی فُرِضَ عَلَیکم صَوْمَهٗ (دا هغه میاشت ده چه فرض کړې شوې ده په تاسو باندې روژه نیول د هغې)۔ څلورم قول د بعض نحویانو مفسرینو دا دې چه دا مبتداء ده او الَّذِيَ أُنْزِلَ فِيهِ یې خبر دې۔ رَمَضَانَ، په حساب شرعی د هلال (سپوږمئ) سره دا نوم دې د دغه میاشت۔ او دا د رمض نه اخستلې شوې دې۔ رمض سوزیدلو ته وئیلې شی نو په دې میاشت کښې په مختلف عبادا تو سره ګناهونه سوزی۔ دا رنګ په وخت د نوم کیښودلو کښې په دې میاشت کښې ډیره ګرمی وه۔ او بعضو وئیلی دی چه رمض

هغه یاران ته وئیلے شی چه زمکه دَ دوړو نه پاکوی نو دارنګ دَ رمضان دَ میاشتے روژے زړونو لره دَ ګناهونو نه پاکوی (اللباب). او لفظ دَ شهر دلالت کوی چه مراد دَ دے نه ټولے ورځے دَ دے میاشتے دی ځکه چه لفظ شهر احاطه کوی په ټولو ورځو دَ میاشت باندے. اَلَّذِیۡۤ اُنۡزِلَ فِیۡهِ الۡقُرۡاٰنُ، په دے جمله کښ مراد اظهار دَ فضیلت دَ دے میاشتے دے۔ او مناسبت دَ دے میاشتے دَ قرآن سره دا دے چه مقصد په قرآن کښ هدایت او صفائی (تزکیه) دَ مؤمنانو ده دَ ګمراهئ او دَ ګناهونو نه او په روژے سره هم دَ زړونو طهارت حاصلیږی نو دواړه اسباب دَ طهارت په دے میاشت کښ جمع شوی دی۔

اُنۡزِلَ، **سوال:-** صحیح روایاتو سره ثابت دی چه قرآن کریم په دروَیشت[۲۳] کالو کښ نازل شوے دے او دلته وائی چه په رمضان کښ نازل شوید ے۔

**جواب:-** دلته دَ انزال نه مراد ابتدا دَ نزول ده یعنی نزول شروع شوے په رمضان میاشت کښ دے، او دا قول دَ محمد بن اسحاق دے۔ او دَ سفیان بن عُیینه قول دے چه مراد دَ دے نه انزال دَ قرآن دے په باره دَ فضیلت دَ رمضان کښ۔ او ابن الانباری وئیلی دی چه دَ دے نه مراد انزال دے په باره دَ فرضیت دَ رمضان کښ۔

**سوال ۲:-** او په سورة القدر کښ دی چه قرآن په شپه دَ قدر کښ نازل شوے دے؟۔

**جواب:-** دَ دے دواړو تعارض نیشته. دَ ابن عمر رضی الله عنهما روایت دے چه دا دلیل دے چه لیلة القدر په میاشت دَ رمضان کښ ده۔ او هر چه روایت دَ نازلیدلو دَ قرآن دے په یو ځل سره دَ لوح محفوظ نه آسمان دَ دنیا ته او بیا دَ آسمان نه زمکے ته په دیروَیشت[۲۳] کالو کښ نو دَ دے تفصیل په سورة القدر کښ اُوګورئ۔

اَلۡقُرۡاٰنُ، دا لفظ په قرآن کښ اته پنځوس[۵۸] کرته ذکر دے. او قرآنًا نکره لس کرته او قرآنهٗ دوه کرته ذکر دے. دا لفظ په اکثرو ځایونو کښ نوم دے دَ دے کتاب اطلاق ئے په ټول او لږ دواړو باندے کیدے شی او کله کله په معنیٰ دَ نفس قراءت باندے استعمالیږی لکه قُرۡاٰنَ الۡفَجۡرِ (سورة اسراء کښ دا معنیٰ ده) اکثر اهلِ علمو وئیلی دی

چه قرآن لفظ دَ قَرْءٌ نه اخستلے شوے دے او قرء په لغت کښ جمع کولو ته وئیلے شی او قرآن هم سورتونه او آیتونه دَ یو بل سره جمع کړی دی او احکام، قصص، مثالونه او دلائل په توحید دَ الله تعالیٰ او په صدق دَ آخری نبی صلی الله علیه وسلم ئے راجمع کړی دی۔ او خازن دَ امام شافعیؒ نه نقل کړی دی چه قرآن مهموز نه دے یعنی دَ قرء نه ماخوذ نه دے نو بعضِ علماؤ وئیلی دی چه دَ قَرْنٌ نه اخستلے شوے دے په معنیٰ دَ یو ځائے کولو سره۔ او قرطبی وئیلی دی چه قرآن په معنیٰ دَ مقروء دے او نوم دے دَ کلام دَ الله تعالیٰ او مخلوق نه دے۔ او اتفاق دَ اهلِ سنت والجماعت (سلف صالحینو) دا دے چه دا قرآن مسموع، متلو، او مقروء دے لفظًا او حرفًا کلام الله دے۔ او چا چه دا قول کړے دے چه کلامِ لفظی قرآن نه دے بلکه کلامِ نفسی قرآن دے نو دا قول او تقسیم بدعت دے او خلاف دے دَ عقیدے دَ سلفو صالحینو نه او نور تفصیل او تحقیق په کتابونو دَ عقیدے دَ سلفو صالحینو کښ موجود دے۔

هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِّنَ الْهُدَىٰ وَالْفُرْقَانِ، دا ذکر دَ عظمت دَ قرآن دے په دوو اوصافو سره اول هدًی او مراد په دے سره هدایتِ عامه دے دَ عقائدو او احکامو۔ دویم وصف وَبَيِّنٰتٍ دے دا عطف دَ خاص دے په عام باندے دَ وجے دَ اهمیت او اشرفیت دَ بینات نه۔ یعنی هدایت کښ بعضِ خفی دے او بعضِ جلی دے نو په بینات کښ جلی هدایت مراد دے چه هغه حلال وحرام او مواعظ واضحه دی او مِنَ الْهُدَىٰ وَالْفُرْقَانِ ټولو کتابونو الٰهیو ته اشاره ده او قرآن دَ هغے نه بعض دے۔ نو دَ اول هُدًى نه مراد هدایت دَ قرآن دے او دَ دویم نه مراد هدایت دَ مخکنو کتابونو دے یا دَ اول نه مراد اُصول او عقائد دی او دَ دویم نه مراد فروع او احکام دی او الفرقان کښ اشاره ده هغه دلیلونو ته چه دَ حق او باطل جدائی راولی۔ فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ، هر کله چه عظمت دَ رمضان دَ مباشت ذکر شو نو اُوس ادا دَ حق دَ هغے ذکر کوی دَ دے وجے نه ئے "فا" ذکر کړے ده۔ شَهِدَ په معنیٰ دَ حَضَرَ دے یا په معنیٰ دَ عَلِمَ دے لیکن په معنیٰ دَ رَاٰی (لیدلو) سره نه دے دَ دوه وجونه اوله وجه دا چه دَ لیدلو

دَ پارہ شاهد استعمالیږی شَهِدَ ته استعمالیږی۔ دویمه وجه داچه بناء په دے معنیٰ (رأی) به لیدل دَ سپوږمئ دَ هر یو شخص دَ پاره شرط شي او دا شرط ممکن نه دے۔ هرکله چه شَهِدَ په معنیٰ دَ حَضَرَ شي نو اَلشَّهرَ مفعول فیه دے یعنی څوک چه حاضر وی په دے میاشت کښ په خپل کور او مقام کښ او نور شرعی عذر ونه یٔے نه وی۔ او چه په معنیٰ دَ عَلِمَ شی نو اَلشَّهْرَ مفعول بِهٖ یه په تقدیر دَ دخول الشهر یا حلول الشهر سره وی۔ او په حدیث (صوموا الرؤیته وافطروا الرؤیته) کښ رؤیت په معنیٰ دَ عَلِمَ سره دے او علم (خبریدل) دَ میاشتے خو برابره خبره ده که په خپلو لیدلو سره وی او که دَ بل عادل شخص او شاهد په لیدلو سره وی او برابره خبره ده که دا لیدل په هر ځائے کښ شوی وی یا په یو علاقه کښ لیدل اُوشی او نورو علاقو والو ته صحیح خبر اُورسیږی، نو ظاهر دَ آیت او حدیث په دے باندے دلیل دے اګرچه په دیکښ دَ ابن عباس رضی الله عنهما دَ روایت دَ وجے نه اختلاف شته۔ او هغه دلالت کوی په اعتبار دَ اختلاف دَ مطالعو باندے۔ تفصیل یٔے دَ احکامو په کتابونو کښ اُوګورئ۔

وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ، سوال راځی چه داجمله خو مخکښ آیت کښ تیره شوے ده؟

اول جواب دا دے چه مخکښ آیت کښ دَ ایامِ معدودات نه دَ ایام بیض روژے مراد وے رمضان نه وو مراد نو دَ هغے سره یٔے دغه عذر ذکر کړو۔ او دلته روژه دَ رمضان ذکر شوه نو بیا یٔے داجمله ذکر کړه۔ دویم جواب دا دے چه هلته دَ ایام نه مراد رمضان وو لیکن هرکله چه فَمَنْ شَهِدَ مِنكُمُ آه عام ذکر شو نو وهم راغے چه دا به مریض او مسافر ته هم شامل وی نو دَ دے وهم دَ دفع کولو دَ پاره یٔے دا رخصت دوباره ذکر کړو، او دَ اختصار دَ پاره یٔے دلته مِنكُمْ ذکر نکړو۔ دریم جواب: روستو علتونه ذکر کول مقصد وو نو دَ دے وجے نه یٔے معلول دوباره ذکر کړو چه بیان دَ علتونو ته نزدے شی۔

يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ، هرکله چه دلته احکام پنځه وو اول سقوط دَ فرضیت دَ ادا دَ مسافر او مریض نه۔ دویم تخصیص

د ورځو نه کول د قضا روژو را ورلو د پاره۔ دریم فرضیت د قضا روژو موافق د ورځو د ادا (پاتے شوو) سره۔ څلورم حکم فرضیت د نفسِ قضا راوړلو۔ پنځم پابندی کول د دے احکامو۔ تو د دے په ترتیب سره ئے د دے علتونه ذکر کړل چه يُرِيدُ اللّٰهُ آه د اول حکم علت دے۔ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ آه د دويم حکم علت دے۔ وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ د دريم حکم علت دے۔ وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ د څلورم او وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ د پنځم حکم علت دے۔

**سوال:۔** د دے نه معلومیږی چه يُسر (آسانتیا) د بندګانو د الله تعالیٰ په ارادے سره دے او عُسر د دوی د الله تعالیٰ په ارادے سره نه دے۔ او دا خو خلاف دے د قول د الله تعالیٰ وَمَا تَشَاءُونَ اِلَّا اَنْ يَّشَاءَ اللّٰهُ نه او د نورو آيتونو د عموم د ارادے الٰهی نه؟

**جواب:۔** دلته په اراده کښ مراد صرف مشیت نه دے بلکه په احکامو، اوامرو او نواهیو کښ يُسر او عُسر مراد دے یعنی الله تعالیٰ بندګانو ته د ګران کارونو تکلیف نه ورکوی بلکه د آسان کارونو حکم ورکوی په دلیل د لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا (سورة بقره ۲۸۶) سره۔

وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ، دا معطوف دے په ماقبل جملے پاندے یعنی لِتُيَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا۔

وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰكُمْ، عَلٰى په خپله معنیٰ سره دے او لفظ د حامدين پټ مراد دے۔ یا عَلٰى په معنیٰ د لام د علت دے او ما مصدریه دے یا موصوله دے۔ په دے تکبیر کښ دوه قولونه دی۔ اول دا چه مراد د دے نه د اخترونو تکبیرات دی په شپه او ورځ د اخترونو کښ او روستو د مونځونو د اخترونو نه، سره د اختلاف د اماما نو نه۔ دويم قول، مراد د تکبیر نه تعظیم د الله تعالیٰ دے۔ مَا هَدٰكُمْ کښ اشاره ده چه طريقه او الفاظ د تکبیر او تعظیم به موافق د شریعت سره وی په مینځ عو ځان نه جوړ شوی طریقو او الفاظو سره به نه وی۔

وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ، مراد د شکر نه عمل کول دی په احکامو د الله تعالیٰ په اخلاص د نیت سره بغیر د ریا او سُمعت نه۔

وَاِذَا سَاَلَكَ عِبَادِیْ عَنِّیْ فَاِنِّیْ قَرِیْبٌ ؕ

اوکوم وخت چه تپوس اوکړی ستا نه بندګان زما په باره زما کښ نو یقینًا زهٔ نزدے یم،

اُجِیْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ اِذَا دَعَانِ فَلْیَسْتَجِیْبُوْا لِیْ

قبلوم دُعا دَ دعا کوونکی کله چه زما نه دعا غواړی نو زما احکام دِ پوره قبول کړی

وَلْیُؤْمِنُوْا بِیْ لَعَلَّهُمْ یَرْشُدُوْنَ ﴿۱۸۶﴾

او یقین دِ اوساتی په ما باندے دَ دے دَ پاره چه دوی مقصد ته اورسیږی۔

۱۸۶ په دے آیت کښ اشاره ده چه روژه سبب دَ قربت الٰهی او سبب دَ اجابت دَ دُعا دے۔ دَ دے وجے نه دَ روژے دَ افطار په وخت کښ دَ دُعا کولو ترغیب په احادیثو کښ موجود دے۔

ربط:۔ دَ دے آیت دَ مخکښ سره په یوشو وجود دے۔ اوله وجه دا چه هرکله مخکښ آیت کښ تکبیر او شکر ذکر کړے شو او هغه سبب دَ قربت دَ خاص بندګانو دے الله تعالیٰ ته نو اُوس دَ هغے بدله ذکر کوی چه هغه قربت دَ الله تعالیٰ دے بندګانو ته یعنی اول سبب دے دَ پاره دَ قربت او اجابت دَ الله تعالیٰ لکه چه صحیح حدیث کښ وارد دی چه څوک الله تعالیٰ ته یو لبشت نزدے کیږی نو الله تعالیٰ ورته یو ذراع نزدے کیږی (الحدیث) دویمه وجه دا چه اول ئے امر دَ تکبیر ورکړو نو اُوس رغبت دَ دُعا ورکوی، اشاره ده چه دَ دُعا نه مخکښ ذکر او ثناء دَ الله تعالیٰ پکار ده۔ دریمه وجه دا ده چه هرکله په روژه کښ دَ تشدید دَ حکم دَ وجے نه دَ بعض صحابه کرامو نه مخالفت صادر شوے وو او بیا هغوی پښیمانه شول او توبه ئے اوویستله نو الله تعالیٰ خبر ورکړو په دے آیت سره دَ توبے دَ قبولیت دَ هغوی او دَ نسخ دَ تشدید۔ نو دا تمهید دے دَ پاره دَ روستو آیت۔

وَاِذَا سَاَلَكَ عِبَادِیْ عَنِّیْ، دَ دے تپوس په باره کښ ډیر اقوال دی دَ مفسرینو۔ اول قول هغه دے چه په ربط کښ دریمه وجه ذکر شوه۔ دویم قول فراء بغوی دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدے چه دا دَ یهودو په جواب کښ دے چه هغوی وئیل چه الله تعالیٰ

ډیر لرے دے په آسمانونو کښ دے تو څه رنګ دُعا کانے آوری. دریم قول ابن جریر او ابن کثیر ذکر کړیں ے چه یو بانړه چی د نبی صلی الله علیه وسلّم نه تپوس اُوکړو چه رب زمونږ نزدے دے چه په پټه ورته دعا پیش کوو او که لرے دے چه چغې ورته اووهو. څلورم قول ابن جریر د قتاده نه نقل کړے دے چه صحابه کرامو تپوس کړے ووچه د رب نه دُعا په څه طریقے سره اُوغواړو تو دا جواب اُوشو. پنځم قول د عطاء نه روایت دے چه دوی تپوس کړے ووچه په کوم وخت کښ دُعا غواړو. شپږم قول د حسن بصری نه روایت دے چه صحابهٔ کرامو تپوس کړے ووچه رب زمونږ کوم ځائے دے. خوغوره خبره دا ده چه دا آیت دے ټولو اقوالوته شامل اوعام دے. او دا آیت جواب دے د دغه ټولو سوالونو.

فَاِنِّیْ قَرِیْبٌ، دا سے ئے اُونه وئیل چه قُلْ لَّهُمْ (دوی ته اووایه) دا د کلام د اختصار د پاره او د زیات اطمینان ورکولو د پاره دے ګویا چه الله تعالیٰ پخپله جواب ورکوی د زیادت قرب د وجے نه. قَرِیْبٌ، قرب صفت د الله تعالیٰ په درے آیتونو کښ راغلے دے اول دا آیت دے. دویم اِنَّ رَبِّیْ قَرِیْبٌ مُّجِیْبٌ (سورة هود ۶۱) دریم اِنَّهٗ سَمِیْعٌ قَرِیْبٌ (سورة سبا ۵۰) او په صفت د نصرت الٰهی کښ په سورة بقره ۲۱۴ کښ، او صفت د رحمت الٰهی په سورة اعراف ۵۶ کښ، او اقرب صفت په سورة ق ۱۶ کښ او سورة واقعه ۸۵ کښ.

فائده :- قرب مشترک استعمالیږی په مکان، زمان، نسبت او رتبه، رعایت (حفاظت) او په قدرت کښ، تو قرب د الله تعالیٰ، هغه په اعتبار د علم او قدرت، سمع او اجابت سره دے. تو دلته قرطبی اجابت، علم او فضل کول ذکر کړی دی او خازن علم او حفظ ذکر کړیدے چه نه دے پټ په هغه باندے هیڅ څیز. او ابن جریر سمع او اجابت ذکر کړے دے. تو دا تاویل (مذموم) نه دے بلکه حمل د مشترک لفظ دے په یو معنیٰ باندے او دا سے تحقیق په لفظ د محکم کښ هم دے. او بعضو علمائو وئیلی دی چه دا د متشابهاتو نه دے لیکن په دواړو قولونو سره، سرهٔ د فوقیت د الله تعالیٰ نه په عرش باندے هیڅ مناقات

نه لري يعنې د عرش د پاسه دے او سرۀ د هغې نه هر څيز نه د قرب صفت لري.

فائده ۲۸: دا ښکاره دليل دے چه په ذکر د الله تعالىٰ او دُعا کښې جهر کول او چغې وهل د سنت نه خلاف کار دے او څوک چه دينه دين او ثواب وائي نو بدعت دے. او تائيد د دے هغه حديث د بخاري شريف دے چه دلته ابن کثير او نورو مفسرينو ذکر کړے دے چه يا ايها الناس اربعوا على انفسكم فانكم لا تدعون اصم ولا غائبا انما تدعون سميعًا بصيرًا (اے خلقو په ځان باندے ترس اوکړئ ځکه چه تاسو آواز نه کوئ کونړ او غائب ته بلکه تاسو خو آواز کوئ آوريدونکي او ليدونکي (ذات) ته نو هغه خلق چه بغير د دليل شرعي خاص نه ذکر، دُعاګانے او تکبيرونه په جهر سره کوي نو هغوي د دے آيت او حديث مخالفت کوي.

أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ، دا صفت دے د قريب يا دويم خبر دے د انّي د پاره. يا استيناف دے توبيان دے د قربت الٰهيه. أُجِيبُ د اجابت نه اخستلے شوے دے او اجابت په لغت کښې مطلق جواب ورکولو ته وئيلے شي که هغه په نعم (هاؤ) سره وي او که په لا (نه) سره وي. ليکن په عرف کښې خاص دے په اجابت د نعم سره. او فرق د اجابت او استجابت په مينځ کښې دا دے چه استجابت خاص دے په اجابت پوره کولو د مقصد سره يعنې چه څه څيز څوک غواړي نو هغه ورکړے شي. او اجابت عام دے که پوره مقصد حاصل شي يا نه. اجابت په قرآن کښې په باره د دُعا کښې په سورة ابراهيم ۴۴، سورة نمل ۶۲ او سورة يونس ۸۹ کښې ذکر دے او په باره د دعوت کښې په سورة قصص ۶۵، سورة احقاف ۳۱ او سورة مائده ۱۰۹ کښې ذکر دے. او استجابت په قرآن کښې اته ويشت ۲۸ کرته ذکر دے په دريو طريقو سره. اوله طريقه، دُعا قبلول په پوره مقصد ورکولو سره لکه په سورة آل عمران ۱۹۵، سورة انفال ۹، سورة يوسف ۳۴ او سورة انبياء ۸۴، ۷۶، ۸۸، ۹۰ کښې او نور آيتونه هم دي. دويمه طريقه پوره حکمونو ته منل لکه دا آيت او سورة آل عمران ۱۷۲، سورة

رعد سا ۱۴، سورۃ انعام سا ۳۶، سورۃ شوریٰ سا ۲۶ او دغسے نور آیتونه.
دریمه طریقه دعوت قبلول دی لکه سورۃ انفال سا ۲۴، سورۃ اسراء
سا ۵۲ اوسورۃ ابراهیم سا ۲۲ -
دَعْوَةَ الدَّاعِ اِذَا دَعَانِ، دعوت، داع او اِذَا دَ عموم دَ پاره دی.
**سوال:** دَ دے عموم نه معلومیږی چه الله تعالیٰ دَ هرچا هره یوه
دُعا قبلوی اوحال دادے چه دَ بندګانو ډیرے دُعاګانے نه قبلیږی؟
**جواب ۱:** اجابت درے قسمه دے اول دَ چا مقصد پوره کول،
دویم دَ هغې اجر او ثواب ورکول او دریم دَ هغه نه بل مصیبت لرے
کول - دا په حدیث دَ مسند کښ دی او هغه ابن کثیر په سند سره
نقل کړیدے -
**جواب ۲:** دا مقید دے په قید دَ مشیت الٰهی سره په دلیل دَ سورۃ
انعام سا ۴۱ اوسورۃ اسراء سا ۱۸ سره - او دا رنګ په نورو آیتونو کښ
قیودات دی لکه تضرع او اخفاء (پټه وئیل) سورۃ اعراف سا ۵۵ - او
خوف، طمع کول سورۃ اعراف سا ۵۶ - اضطرار او ډیره عاجزی کول
سورۃ نمل سا ۶۲ - اوعدم اعتداء (دَ حدود شرعیه نه تجاوز نه کول)
سورۃ اعراف سا ۵۵ - دا رنګ قیودات په احادیثو کښ هم دی. یعنی
چه ګناه په کښ نهٔ وی، او پریکول دَ صله رحمئ په کښ نه وی،
الحدیث (احمد، ترمذی)، استعجال په کښ نه وی یعنی دُعا نه
پریږدی په دے وجه سره چه زر وے نه قبلیږی (صحیحین) یقین
کول په اجابت دَ دُعا باندے (مسند احمد)، په خوراک څښاک
اولباس کښ دَ حرام نه ځان ساتل (الحدیث)، اِنْ شِئْتَ په نه
وائی (بخاری، مؤطا) او دا رنګ په اوقاتو دَ اجابت کښ به وی چه
هغه وخت دَ پیشمنی او دَ شپے آخری دریمه حصه ده او وخت دَ روژے
ماتولو دے او په مینځ دَ اذان او اقامت کښ، په وخت دَ نزول دَ باران
کښ، په صف دَ قتال فی سبیل الله کښ، دَ جمعے دَ ورځے په یو وخت
کښ اوچه په مکانونو دَ اجابت کښ وی چه هغه کعبه شریفه ده،
او لاندے دَ میزاب (پرنالے) دَ رحمت نه، حرم مکی او ریاض الجنت
او دغسے نور مکانونه او وختونه چه مفسرینو او محدثینو شمار کړیدی-

أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ

حلال کړے شویدے ستاسو دپاره په شپه د روژه نیولو کښ بوخائے کیدل

إِلَىٰ نِسَائِكُمْ ۚ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ

خپلو بیبیانو سره دوی جامه ده ستاسو د پاره

وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ

او تاسو جامے یئ د دوی د پاره، عالم دے الله تعالیٰ چه یقینًا تاسو

نو آیا تو نه د دُعا د اجابت په دے قیودا تو سره مقید دی ۔ او الله تعالیٰ غفور او عفوٌ کریم دے کله بغیر د دے قیودا تو نه هم اجابت کوی۔
فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي، استجابت کښ معنیٰ د طلب ده یعنی طلب د اجابت د دُعا دِے کوی (ابن عطیه)۔ او مجاهد وئیلی دی چه دعوت کَ الله تعالیٰ (چه ایمان او اطاعت دے) هغه دِ پوره قبول کړی او په هغے کښ دغه تیر شوی قیودات ایجابی او سلبی داخل دی۔
وَلْيُؤْمِنُوا بِي، سوال :۔ لفظ د عبادی دلالت کوی چه دوی خو ایمان والا دی نو بیا ئے دا لفظ د څه د پاره ذکر کړو۔ او دارنګ فَلْيَسْتَجِيبُوا کښ که استجابت په ایمان سره مراد وی نو وَلْيُؤْمِنُوا خو تکرار دے او که استجایت په عملو نو سره وی نو هغه خو د ایمان نه روستو دی؟۔
جواب :۔ مراد د دے نه په ایمان باندے دوام د استقامت دے یا ایمان او یقین کول په استجایت د دُعا باندے مراد دے۔ یا مراد د دینه کمال د ایمان دے په طاعا تو سره (بحر، اللباب)۔
لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ، ماده د رشد په قرآن کښ نورلس [۱۹] کرته ذکر ده او رشد مصالح د دُنیا او د دین حاصلول دی۔ او کله دا صرف د مصلحت دُنیوی د پاره ذکر وی لکه سورة نساء [۶] او سورة هود [۷۸] کښ۔ او اکثر د مصلحت دُنیوی او دینی دواړو د پاره مستعمل راځی۔ دلته هم مراد دا دے چه په استجایت او ایمان سره دینی او دنیوی مصالح او منافع حاصلیږی۔ اشاره ده چه الله تعالیٰ د دے قائدے نه محتاج نه دے بلکه انسان او بنده محتاج دے۔

كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ

(نزدے) دے چہ نقصان کئیں ہم اچولی وخپل ځانونه خپل نو آسانتیا ئے راوستله په تاسو باندے

وَعَفَا عَنْكُمْ فَالْـٰٔنَ بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا

او فراخی اوکړه تاسو له، نو اوس یوځائے کیدل کوئ د بیبیانو خپلو سره او لټوئ

مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى

هغه چه حلال کړے دے الله تعالی تاسو لره، او خوراک کوئ او څکاک کوئ تردے پورے

يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ

چه ښکاره شی تاسو ته تار سپین د تار

الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ

تور نه د صبا نه، بیا پوره کړئ روژه

اِلَى الَّيْلِ وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَاَنْتُمْ عٰكِفُوْنَ

تر شپے پورے اومه یوځائے کیږئ د بیبیانو سره په داسے حال چه معتکف یئ

فِى الْمَسٰجِدِ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا

په جماعتونو کښ، دا ذکر شوے پولے مقرر د الله تعالی دی نو مه نزدے کیږئ دیته په مخالفت کولو سره

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۱۸۷﴾

دغسے بیانوی الله تعالی احکام خپل خلقو ته دے د پاره چه تقوٰی حاصله کړئ۔

۱۸۷ په دے آیت کښ د رمضان مبارک د شپے او د ورځے احکام ذکر کوی، چه د شپے رفث، خوراک څښکاک تر فجر پورے حلال دے او د فجر نه روستو تر ماښام (شپے) پورے دا درے واړه څیزونه منع دی۔

ربط:۔ د دے آیت اول د يُرِيْدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ سره دے۔ یعنی په دے آیت کښ د دے امت سره یو آسانتیا ذکر کوی د روژے په باره کښ۔ دویم ربط ئے د فَلْيَسْتَجِيْبُوْا سره دے یعنی په دے آیت کښ دا سے

احکام ذکر کوی چه دَ هغې استجابت ضروری دے۔ دریم ابو حیان ذکر کړی دی چه هرکله مخکښ یٔې كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ ذکر کړے وو چه دَ هغې نه تشبیه دَ عدد، کتابت، شرطونو او نورو تکالیفو دَ صوم ته اشاره وه۔ او دا رنګ اهلِ کتابو ته امر وو چه روستو دَ اُودهٔ کیدلو دَ ماښام نه په تا سو خوراک څښکاک او جماع منع ده۔ او په ابتداء دَ اسلام کښې دا حکم په مسلمانانو باندے هم وو لیکن الله تعالیٰ دَ لُطف او رحمتِ خاصه دَ وجے نه په دے آیت کښې دا حکم دَ دوی نه منسوخ کړو۔

سبب دَ نزول دَ آیت:۔ جمهورو مفسرینو او امام بخاری او ابوداؤد او نورو محدثینو وئیلی دی چه په اول دَ اسلام کښې چه هرکله روژه فرض شوه نو حکم دا وو چه ماښام افطار کوئی لیکن دَ ماسخوتن دَ مونځ نه روستو یا دَ اُودهٔ کیدلو نه روستو په دوی باندے خوراک څښکاک او جماع حرام وه لیکن دَ بعضِ صحابه کرامو لکه (عمر او کعب انصاری رضی الله عنهما) نه دَ دے حکم خلاف اُوشو په خطایئ اجتهادی سره او قیس بن حرمه رضی الله عنه دَ دوه ورځو او شپو دَ مسلسل خوراک نه کولو دَ وجے نه بے هوشه شو نو الله تعالیٰ دغه حکم په دے آیت سره منسوخ کړو او په دے اُمت باندے یٔې تخفیف او آسانتیا راوستله او ابومسلم اصفهانی وئیلی دی چه دا حکم په شرع دَ نصرانیت کښې وو لیکن زمونږ په شریعت کښې منسوخ شو لیکن دَ لفظ دَ اُحِلَّ او تَخْتَانُوْنَ دَ دلالت نه معلومیږی چه دا قول ضعیف دے۔

أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ، مراد دَ دے نه هره شپه دَ روژے دَ میاشت ده۔ هرکله چه دَ روژے نیت دَ شپے نه کیږی دَ دے وجے نه دَ لیله اضافت یٔې الصیام ته اوکړو۔ الرَّفَثُ اِلٰى نِسَآئِكُمْ، لفظ دَ اِلٰی یٔې دَ دے وجے نه راوړو چه په دیکښې معنیٰ دَ افضاء (ور رسیدلو) مراد ده۔ رفث په اصل کښې فحش کلام ته وئیلے شی۔ او زجاج دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړے دے چه رفث یو جامع کلمه ده دَ پاره دَ هر هغه قول او فعل چه انسان یٔې دَ خپل اهل نه غواړی او شرط په کښې دا دے چه په حضور دَ اهل (ښځه) کښې وی او رفث جماع ته هم وئیلے شی۔

فائدہ:- په کلام د الله تعالیٰ کښې د جماع نه په کنایاتو راو مهذب کلماتو سره تعبیرونه شوي دي لکه افضاء، تغشاها، لا مستم، دخلتم بهن، فأتوا حرثکم، تمسوهن، استمتعتم بهن، لا تقربوهن. او د هر ځائے مناسبت سره دغه الفاظ راوړلے شوي دي. دلته د لفظ رفث راوړلو د پاره مفسرينو داوجه ذکر کړيده چه په وخت د حرمت کښې دا عمل شوے وو نو په دیکښې په يو وجے سره قباحت موجود وو او لفظ هم په قباحت باندے دلالت کوي.

هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ، دا د أُحِلَّ لَكُمْ د پاره اول علت دے. په تشبيه د ښځے خاوند د لباس سره ډير وجوهات دي. اوله وجه داچه لکه څه رنګه چه لباس او بدن يو بل سره خوخت او لازم او ملزوم دي دا سے زوجين هم دي. دويمه وجه داچه لباس بدن لره پټوونکے دے نو دا رنګ ښځه خاوند د يو بل د پاره پرده ده د فحش کارئ او بدنامئ نه. دريمه وجه: د مجاهد قول دا دے چه په لباس کښې د بدن د پاره سکون او آرام وي نو دغه شان ښځه خاوند هم د يو بل د پاره د تسکين او آرام سبب وي. څلورمه وجه: قول د ربيع دے چه ښځه په شان د فراش (تولائي) او خاوند په شان د لحاف (بړستنے) دے. نو هر کله چه دا دواړه د يو بل سره پوره ارتباط لري او يو بل ته محتاج دي، نو د دوي د پاره هر کله چه د وړځے ممانعت وو نو د دغه وجوهاتو د وجے نه د شپے اباحت ضروري شو. عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُونَ أَنْفُسَكُمْ، دا د أُحِلَّ لَكُمْ د پاره دويم علت دے. يعني د خيانت (ګناه) نه د بچ کولو د پاره الله تعالیٰ په دے حکم کښې تخفيف او فراخي راوسته أَنْفُسَكُمْ په معنیٰ د يو بل په نقصان او ګناه کښې اچولو دے لکه د تَقْتُلُونَ أَنْفُسَكُمْ په شان يا په معنیٰ د خپلو ځانونو دے چه هر يو خپل ځان په ګناه کښې اچوي. تَخْتَانُونَ، د خيانت نه اخستے شويدے په اصل کښې په امانت کښې د نقصان کولو په معنیٰ باندے دے او ګناه کول هم په حقوق الله کښې خيانت کول دي. نو دلته د مفسرينو دوه قولونه دي اول داچه مراد په دے سره هغه عمل دے چه بعض صحابه کرامو نه صادر شوے وو چه مخکښې د هغے ذکر شويدے

او هغه په اعتبار دَ ظاهر سره دَ الله تعالیٰ په حکم کښ خیانت کول وو لیکن صحابه کرامو دَ هغې نه توبه او ویستله او هغه توبه الله تعالیٰ قبوله کړه په قرینه دَ فَتَابَ عَلَيْكُمْ سره او هغه گناه یې معاف کړه په قرینه دَ عَفَا عَنْكُمْ سره. نو دا دلیل دے چه صحابه کرام اگرچه معصوم نه دی لیکن دَ هر گناه کولو نه روستو یې سمدستي توبه او استغفار کړے دے او دَ هغې قبولیت او معافي په قرآن کښ ذکر ده او دا په اُمت کښ ډیره لویه مرتبه ده - دویم قول دا دے، چه کښې عمل دَ صحابه کرامو اجتهادی خطائی وه نو معنیٰ دَ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ دا ده چه که چرے دا حکم (دَ حرمت) الله تعالیٰ همیشه دَ پاره باقی پریښودلے وے نو تاسو به خپل ځانونه په گناه کښ اچولے وے لیکن الله تعالیٰ په تاسو باندے تخفیف راوستو او فراخی یې په حکم کښ اوکړه نو تَابَ عَلَيْكُمْ په معنیٰ دَ خَفَّفَ دے او عَفَا په معنیٰ دَ وَسَعَ دے نو دَ عبارت تنجیز په معنیٰ دَ تعلیق سره دے او دا سے په کلام کښ معروف دے. (قرطبی، اللباب) او دا دویمه توجیه غوره ده ځکه چه گناه کول سبب دَ آسانتیا او نسخ دَ پاره مناسب نه دے او دا رنګ په دے توجیه کښ دَ صحابه کرامو گناه کول هم نه ثابتیږی.

فَالْئٰنَ بَاشِرُوْهُنَّ، ابو البقاء وئیلی دی چه اَلْئٰنَ دَ زمانه حاضر دَ پاره دے او په ماضی قریب او مستقبل قریب باندے هم دلالت کوی دَ دے وجے نه دَ دیته روستو یې صیغه دَ امر (چه دَ استقبال دَ پاره ده) ذکر کړې ده - یا دلته عبارت پټ دے یعنی، فَالْئٰنَ اَبَحْنَا لَكُمْ مُبَاشَرَتَهُنَّ فِي لَيْلَةِ الصِّيَامِ - بَاشِرُوْهُنَّ، مباشرت په اصل کښ پیوست کیدل دی دَ څرمن دَ یو بدن دَ بل بدن دَ څرمن سره او په جماع کښ دا صورت جوړیږی نو دَ دے وجے نه دَ دینه مراد جماع کول دی. او نور مقدمات دَ جماع په قُبل، لمس وغیره سره دی چه هغه پکښ هم داخل دی.

وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللهُ لَكُمْ، په مَا كَتَبَ کښ ډیر اقوال دی، اول قول دا چه مراد دَ دینه ولد (ځوئے یا لور) دے او ابتغاء نه مراد نیت او اراده کول دی او كَتَبَ نه مراد تقدیر کول دی او مقصد دا دے چه دَ نکاح او جماع مقصد صرف شهوت رانی نه ده بلکه دَ نسل زیاتول مقصد دی دَ دے

وجے نه هغه تن بیرونه چه جاهلان خلق یۓ ذ منع ذ نسل (منصوبه بندئ) ذ پاره استعمالوی اوضبط تولیدکوی نو هغه ذ شریعت ذ عظیم مقصد نه خلاف دی۔ دویم قول؛ مراد ذ دے نه هغه محل دے چه الله تعالیٰ ذ هغې جماع اواستعمال حلال کړے دے لکه په دے سورت ۲۲۳ کښ دی نو مراد ذ کَتَبَ نه اَحَلَّ دے۔ دریم قول داچه مراد ذ دے نه هغه اوقات دی چه په هغې کښ شرعًا جماع کول جائز وی یعنې چه حالت ذ حیض او نفاس وغیره کښ نه وی۔ څلورم قول، مراد ذ دے نه بیبیانے او وینزے دی۔ نور اقوال هم په دیکښ شته خو هغه بعید دی۔ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا، داعطف دے په بَاشِرُوهُنَّ باندے او دا یۓ ذ دے وجے نه ذکر کړو لکه چه مخکښ ذ دے حکم نه ذخوب کولو نه روستو مباشرت او جماع منع وه نو دارنګ خوراک څښکاک هم منع وو نو ذ هغې ټولو تحلیل او اجازت اوکړے شو. او په دیکښ اشاره ده پیشمنې کولو ته چه هغه سنت یا واجب دے ذ روژه نیوونکو ذ پاره حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ، داغایه ذ مباشرت او ذ خوراک څښکاک ذ شپې ده۔ يَتَبَيَّنَ، تبیین او تبیان ډیر ښکاره کیدلو ته وئیلے شي اګرچه په معنیٰ ذ صرف وضاحت او ښکاره کیدلو سره راځي۔ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ، هرکله چه په وخت ذ صبح صادق کښ ذ مشرق ذ طرف نه اوږد سپین والے ښکاره شي او ذ پاسه ترینه توره شپه اوږده ښکاري نو ذ اول ذ تشبیه ذ پاره یۓ سپین تار او ذ دویم ذ تشبیه ذ پاره یۓ تور تار ذکر کړو۔ بیا ذ شک ذ ازالے ذ پاره یۓ ذ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ بیان په مِنَ الْفَجْرِ سره ذکر کړو نو ذ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مقصد پخپله معلوم شو او دیته تشبیه وئیلے شي ځکه چه مشبه بِهٖ او مشبه دواړه یۓ ذکر کړی دی۔ او په دے تشبیه کښ فائده داده چه دلته مراد صبح کاذب نه دے ځکه هغه ذ تار په شان اوږد په آسمان کښ نه ښکاري۔ فائده:۔ دلته ذ مفسرینو او اهلِ علمو دوه قولونه دی۔ اول قول دادے چه ذ فجر صادق (چه ذ آسمان په مشرقي افق کښ پلنه ګرځه جوړه شي) په صرف ښکاره کیدلو سره امساک (ذ روژے شروع کیدل)

فرض دی۔ ابوحیان او قرطبی وئیلی دی چه دا دَ جمهور علماؤ مذهب دے او په دے باندے ډیر اخبار راغلی دی او دَ عامو خلقو عمل په عامو زمانو کښ په دے باندے روان دے او دا مقتضیٰ دَ حدیث دَ مسعود او سمره بن جندب رضی الله عنهما ده او دا دواړه مرفوع احادیث دی۔ او دویم قول دَ بعضِ صحابه کرامو او تابعینو نه نقل دے چه هرکله دَ صبا رڼا دَ غرونو په سرونو او په لارو کښ خوره شی نو امساک شروع کیږی۔ قرطبی اول قول غوره کړے دے۔

سوال:۔ چه يَتَبَيَّنَ په معنیٰ دَ ښه ښکاره کیدلو سره دے نو دا خو تائید کوی دَ دویم قول؟

جواب ۱:۔ هرکله چه په صبح کاذب (چه پشان دَ ذنب السرحان دے) کښ هم لږه رڼا ښکاره کیږی او په صبح صادق کښ ښه رڼا ښکاره کیږی نو لفظ دَ يَتَبَيَّنَ دلالت کوی په تائید دَ اول قول باندے۔

جواب ۲:۔ جصاص وئیلی دی چه فعل کله دَ قرب دَ فعل دَ پاره راځی یعنی چه نزدے شی رڼا۔

جواب ۳:۔ ابوحیان وئیلی دی چه فجر انفجار دَ رڼا ته وئیلے شی یعنی ښه رڼا کول، نو لفظ دَ فجر دلالت کوی چه دَ صبح صادق اول سر مراد دے۔ نو دَ دے تحقیق نه معلومه شوه چه په وخت دَ شک کولو دَ فجر راختلو کښ چا خوراک څښکاک اُوکړو نو دَ آئنده دَ پاره به دا سے کار نه منع کولے شی او په وجوب دَ قضاء کښ دَ ائمو مجتهدینو اختلاف دے۔

ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى الَّيْلِ، هرکله چه مخکښ فرضیت دَ روژے ذکر شوے وو لیکن دَ هغے پوره کول دَ غایه دَ شپے پورے ذکر نه وُو نو دلته ئے هغه دواړه ذکر کړل۔ او امر دَ اتمام دَ وجوب دَ پاره دے ځکه چه روژه واجب (فرض) ده او هرکله چه خوراک څښکاک او مباشرت مباح اُمور دی نو او امر په هغے سره په دے آیت کښ هم دَ اباحت دَ پاره دی لیکن دَ هغے دَ اعتقاد اباحت دَ روژے په شپه کښ فرض دے۔ دَ دے وجے نه ئے په صیغو دَ او امرو سره ذکر کړی دی۔

إِلَى الَّيْلِ، شپه دَ جنس دَ وړځ نه ته ده غایه دَ حکم دَ مغیا نه بهرده

لیکن د شپې د علم د ثبوت د پاره داخلیدل یو جزء د شپې رچه د ماشام اوله تیاره وی) لازم دے۔

وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ، هرکله چه په رمضان کښ سنت د اعتکاف ثابت دے او هغه د رمضان په آخری عشره کښ دے۔ د دے وجے نه ئے هغه د صوم رمضان د احکامو په آخر کښ ذکر کړو۔ او دا رنګ په دیکښ دفع کول د یو وهم دی، هغه وهم دا دے چه په شپه د روژه کښ اجازت د مباشرت اوشو نو هغے نه چه اعتکاف والا هم د دینه فائده واخلی، بلکه په حالت د اعتکاف کښ مباشرت په شپه او ورځ دواړو کښ منع دے۔ او دلته په مباشرت کښ د هغے اسباب هم داخل دی یعنی ښکلول اولاس لګول په شهوت سره او دا سے نور حرکات، ځکه چه منع د یو عمل نه هغه منع وی د هغے د اسبابو نه هم۔ عَاكِفُونَ عکوف په لغت کښ لزوم دے په یو څیز او توجه کول دی۔ او په عام عرف کښ توجه او لزوم کول دی په یو څیز باندے په طریقه د تعظیم سره۔ او په اصطلاح د شریعت کښ (قرطبی وئیلی دی) چه لزوم د یو خاص طاعت دے په یو خاص وخت کښ په خاص شرطونو سره په یو خاص ځائے کښ (په نیت سره)۔ فِي الْمَسَاجِدِ، دا متعلق دے د عَاكِفُونَ سره او دا ښکاره دلیل دے چه اعتکاف شرعی خاص دے په مسجد پورے۔ قرطبی وئیلی دی چه په دے باندے اجماع د اُمت ده۔ او قول د ابو حیان دلته خطاء دے او دا حکم د نارینوٴ او زنانوٴ دواړو د پاره دے چه اعتکاف به په مسجد کښ کوی ځکه چه په زمانه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کښ هم زنانوٴ اعتکاف په مسجد ونو کښ کولو۔ تو په کور کښ یو خاص ځائے چه د مونځ د پاره تیار شوے وی (او زنانه په کښ مونځ کوی) په هغے کښ د اعتکاف د پاره صحیح دلیل نیشته۔ دا رنګ څوک چه په غرونو، غارونو او خوشی ځایونو کښ چیلے اُویاسی نو هغه بدعات دی د شریعت نه د هغے هیڅ ثبوت نیشته۔

فائده:- په عام مسجد ونو کښ د اعتکاف کولو په باره کښ

اختلاف دے۔ دَ حذیفه او سعید بن المسیب رضی الله عنهما په نیز
دَ مسجد حرام، مسجد نبوی او مسجد اقصی نه علاوه په بل
مسجد کښ اعتکاف کول جائز نه دی۔ او دَ علی او ابن مسعود
رضی الله عنهما او بعضِ تابعینو په نیز په هر جامع مسجد کښ
اعتکاف کول جائز دی۔ او دَ امام مالک یو قول دے چه دَ سعید
بن جبیر او ابو قلابه رحمهما الله وغیره تابعینو په نیز په هر
مسجد کښ چه په هغې کښ جماعت کیږی او دَ هغې امام او مؤذن
وی نو په هغې کښ اعتکاف جائز دے۔ او دا قول دَ امام شافعی،
امام ابو حنیفه او ابن عُلَیّه او ابن المنذر رحمهم الله وغیرهم دے
او دا دَ امام بخاری هم مسلک دے او دَ دوی دلیل دا آیت کریمه دے
ځکه چه لفظ دَ مساجد عام دے او دَ تخصیص دپاره حدیث صحیح
مرفوع بلا شبه نیشته۔

سوال :- مرفوع حدیث خو په دے باب دَ تخصیص کښ شته دے
چه بیهقی او طحاوی په مشکل الآثار کښ او ابن ابی شیبه په
خپل مصنف کښ ذکر کړے دے۔ او نورو کتابونو کښ هم شته
او ظاهر اسناد دَ هغې صحیح دی؟

جواب ۱:- قرآن کریم په دے باره کښ قطعی الثبوت او قطعی الدلالت
دے ځکه چه الف لام په المساجد کښ دَ پاره دَ استغراق دی او
صیغه هم دَ جمع ده۔ او هغه ټولو افرادو ته قطعاً شامل وی څو
پورے چه دَ تخصیص دلیل نه وی۔ او دغه حدیث اګرچه سنداً
مرفوع دے لیکن دَ هغې په دلالت کښ په تخصیص باندے تقریباً
شپاړس شبهات دی چه هغه شیخ ابو عمر او شیخ البانی رحمه الله
وغیرهما هم په خپلو کتابونو کښ ذکر کړی دی او هغه شبهات
علمیه دی۔ او په بعضِ دَ هغې باندے هغه اهلِ علمو تصریح
کړیده چه هغوی متبعین دَ سنت دی۔ نو ظنی الثبوت والدلالت
سره دَ قطعی الثبوت والدلالت تخصیص نشی کولے۔

**جواب ۲ :-** شیخ الاسلام ابن تیمیه په مجموعة الفتاوٰی جلد ۲۷
صفحه ۲۵۱ - ۲۵۲ او ابن حزم په المحلّٰی جلد ۸ صفحه ۳۲۳ کښ

دَ دے تاویل کړے دے په تن رسره یعني چاچه په دے درے مساجدو کښې نذر دَ اعتکاف کولو کړے وي نو هغه په تخصیص سره لازمیږي یعني هم هلته به یې پوره کوي نورو مساجدو کښې یې نشي کولے۔

**جواب ۳:-** امام طحاوي په شرح مشکل الآثار جلد ۷ صفحه ۲۰۶ کښې قول کړے دے دَ دے په نسخ سره په دلیل دَ انکار دَ ابن مسعود رضی الله عنه سره په لفظ دَ لَعَلَّكَ نَسِيتَ وَحَفِظُوا وَاخْطأتَ وَاَصَابُوا، دا نسخ په قول دَ صحابي سره ثابت ده ، هغه اګرچه ناسخ نه دے ذکر کړے لیکن صحابه کرام دَ حدیث په معنو یانسے ښه پوهیدل. او لفظ دَ لَعَلَّكَ یې دَ آداب دَ رعایت دَ وجے نه وئیلے دے ورنه مراد تر ینه یقین دے۔

**جواب ۴:-** حدیث صحیح دَ عائشه رضی الله عنها دے چه لَا اِعتِكَافَ اِلَّا فِي مَسْجِدٍ جَامِعٍ (ابوداؤد جلد ۱ صفحه ۲۷۲) نو اصل په نصوص کښې اعمال دے اهمال نهٔ دے. دَ عموم او خصوص وغیره اُصولو سره رد دَ صحیح حدیث پکار نه دے۔ او اِعمال دا دے چه په حدیث دَ حذیفه رضی الله عنه کښې چه لا اعتکاف مقید کړے شي په نذر یا په کمال سره لکه چه شرح الممتع علی زاد المستنقع جلد ۶ صفحه ۵۰۵ کښې ذکر دي او دَ دے دعوے سند هم هغه صحیح حدیث دے چه لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ اِلَّا اِلٰى ثَلٰثَةِ مَسَاجِدَ اهـ، یعني شد الرحال (چه نفس سفر دے) ماسیوا دَ درے مساجدو نه منع دے بلکه شدُ الرحال مقید دے په سفر کولو په قصد دَ تخصیص دَ ثواب په یو مکان پورے۔

**جواب ۵:-** په المساجد کښې الف لام عهدي نشي کیدے ځکه چه په وخت دَ نزول دَ دے آیت په مسجد اقصی کښې اعتکاف کوونکے هیڅ څوک نه وو ځکه چه هغه دَ کافرانو په قبضه کښې وو نو هغه دغه وخت په المساجد کښې داخل نه وو۔ که څوک دا شبه اُوکړي چه سیوا دَ درے مساجدو نه عمل دَ اعتکاف په حدیث سره دَ سلفو نه ثابت نه دے۔ نو جواب دا دے چه دغه په حدیث دَ حذیفه رضی الله عنه کښې ثابت ده چه څه کسانو په هغه مساجدو کښې

چه په دارډ ابن مسعود او دارډ ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنهما کښې وو (په هغې کښې معتکف وو) که حذیفه رضی الله عنه په هغوی رد کړے دے نو ابن مسعود رضی الله عنه ډ هغوی تائید کړے دے۔ که داعمل بالکل خلاف سنت وے نو ابن مسعود رضی الله عنه به خامخا هغوی په کانړو ویشتلی وے او ډ هغه مساجدو ته به ئے شړلی وے لکه ډ هغه عادت داسے په نورو احادیثو کښې ثابت دے۔
تنبیه:- په عامو مساجدو کښې اعتکاف کول جائز دی او په جامع مسجد کښې افضل دی او په دغه درے مسجدو نو (حرم مکی، حرم مدنی، مسجد اقصیٰ) کښې افضل ترین دی۔ دا زما رائے ده، والله اعلم بالصواب۔
تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا ط، په تِلْكَ سره هغه ټولو احکامو ته اشاره ده چه دا آیت په هغې باندے مشتمل دے چه هغه پنځه اوامر او یو نهی ده۔ حدود جمع ډ حد ده او په لغت کښې منع ته وئیلے شی او دارنګ منتهیٰ ډ څیز ته وئیلے شی او په لغت ډ پښتو کښې پولے ته وئیلے شی چه په هغې سره فرق راځی ډ دوو څیزونو یا ډ ځایونو ترمینځ او هغه منتها وی او منع کوونکے وی ډ دخل ډ بل چا ته۔ نو ډ دے وجے نه حدودالله په اصل کښې مناهی او محرماتو ډ الله تعالیٰ ته وئیلے شی لیکن کله ماموراتو ته هم شامل وی لکه په دے مذکور جمله کښې۔ ځکه چه امر په یو څیز باندے مستلزم ډ نهی لره ډ ضد ډ هغې نه او قرآن کریم کښې لفظ ډ حدود شوارلس کرته راغلے دے او په ټولو ځایونو کښې ماموراتو ته هم شامل دے۔ ډ هغې نه په لفظ ډ حدود سره تعبیر کښې حکمت دا دے لکه حد چه جامع او مانع وی نو دارنګ په احکامو ډ الله تعالیٰ کښې نور (بے دلیله) حکمونه نشی داخلیدلے۔ او ډ دے په ټولو اقرار او پابندئ عمل کول ضروری وی۔ ډ سدی په قول کښې حدودالله شرطونه ډ الله تعالیٰ دی۔ او په قول ډ شهر بن حوشب کښې فرائض ډ الله تعالیٰ دی لیکن په دے تخصیص باندے دلیل نیشته یا صرف ډ تعبیر فرق دے۔

وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ

او مه خورئ مالونه د یو بل په کورنئ کښ په ناروا طریقو سره

وَتُدْلُوا بِهَآ إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا

او مه رسوئ دغه مالونه حاکمانو ته (په طور د رشوت) دے دپاره چه او خورئ تاسو یو ټکړه

مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالْإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١٨٨﴾ ع ۲۲

د مالونو د خلقو ته په ګناه سره او تاسو پوهه لرئ.

فَلَا تَقْرَبُوهَا، **سوال**:- د ماموراتو په باره کښ خو نهی د قربان نه صحیح نه ده؟

**جواب ۱**:- د ماموراتو تاویل (د لزوم د وجے نه) په منهیاتو سره کړے شوے دے لیکن آخری صیغه (لَا تُبَاشِرُوهُنَّ) د نهی ده د دے وجے نه یئے لَا تَقْرَبُوهَا ذکر کړو۔

**جواب ۲**:- مراد د دے نه منع ده د نزدیکت د هغے نه په تعبیر او تبدیل کولو سره۔

**فائده**:- په دے سورت آیت ۲۲۹ کښ یئے فَلَا تَعْتَدُوهَا فرمائیلے دے او دلته یئے فَلَا تَقْرَبُوهَا، داځکه چه هلته احکام د طلاق، عدت او ایلاء، وغیره ذکر وو او د هغے نه تعدی کول منع دی تو هلته یئے د تعدی نهی اُوکړه او دلته منهیات مراد دی او منهیاتو ته نزدیکت کول منع دی د دے وجے نه دلته یئے فَلَا تَقْرَبُوهَا ذکر کړو۔

كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ، داکاف د باره د بیان د کمال دے یعنی تیر شوی احکام په دے آیت کښ په اختصار مګر جامع وضاحت سره ذکر دی۔ او دا رنګ نور احکام الٰهیه په دے طرز سره بیانول د الله تعالیٰ د کلام خصوصیت دے او په دے جمله کښ مقصد ترغیب دے علم او عمل کولو ته په دے احکامو باندے او دا په یو قوم پورے خاص نه دی د دے وجے نه یئے للناس اُوئیلو۔ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ، ابو حیان وئیلی دی چه غایه د تقوٰی په هغه ځائے کښ ذکر کیږی چه په هغے کښ مشقت وی دلته هم د روژے

دَوجې دَانسان دَ مشتبهاتو نه بچ کيدلو کښې مشقت دے۔ او دَ هغې نه بچکيدل صرف په شرعي تقوٰی سره کيدے شي۔

۱۸۸ په دے آيت کښې څلورم امر سياسي دے چه هغه متعلق دے دَ مالونو سره چه په حرامو طريقو سره مالونه مه حاصلوئ۔

ربط:۔ اوله وجه دَ ربط دا ده چه هر کله مخکښې حکم دَ روژے ذکر کړے شو چه مؤمن دَ عادتي او حلال خوراک څښکاک نه او شهوت نه ځان په امر دَ الله تعالیٰ سره بند او بچ ساتي بلکه په آخري عشره دَ رمضان کښې دَ شپے هم دَ حلال شهوت رانئ نه ځان بچ کوي (يعني په اعتکاف کولو سره) او دا ټول په نيت دَ بندګئ دَ الله تعالیٰ سره وي۔ نو اُوس په دے آيت کښې ذکر کوي چه مؤمن لره دَ هر قسم حرام خوراک څښکاک او آمدنئ نه ځان بچ کول پکار دي۔ دويمه وجه دَ ربط دا ده چه دَ مخکښې عبادتو دَ قبوليت دَ پاره شرط دا دے چه ځان دَ حرام خوراکونو او معاملاتو نه بچ اُوساتي۔ دريمه وجه دَ ربط دا ده چه په احکامو دَ روژه کښې دَ موافقت دَ يهودو او نصاراؤ نه خلاف حکمونه ذکر شول نو اُوس ذکر کوي چه هغوي حرام خوري کوي او رشوتونه اخلي نو په دے کارونو کښې هم دَ هغوي مخالفت کوئ۔

وَلَا تَأْكُلُوٓا، دا خطاب ټولو مؤمنانو ته دے او په معنیٰ کښې په كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ باندے عطف دے۔ اَمْوَالَكُمْ، يعني دَ يو بل مالونه۔ نو اضافت مالکانو او غير مالکانو ټولو ته عام دے او په دے کښې جواري کول، دهوکے کول، دَ چا مال بغير دَ هغه دَ رضائنه اخستل او خرچ کول يا دَ هغه په خوښه سره وي ليکن دَ شرع نه مخالف ځائے کښې خرچ کول لکه اُجرت ورکول په زنا کښې، رشوت ورکول، هدايه ورکول نجوميانو وغيره ته، قيمتونه دَ شرابو، متشيات څښکل دَ خنزيرانو غوښے خوړل او نور حرام څيزونه خوړل او څښکل وغيره او بعضو مفسرينو وئيلي دي چه اَمْوَالَكُمْ کښې مالکانو ته خطاب دے او مراد دَ باطل نه لهو لعب کښې مال خرچ کول، په رقص او سرود، ډمو او شراب نوشئ وغيره کښې مالونه خرچ کول دي۔ بِالْبَاطِلِ، دا متعلق دے په تَأْكُلُوٓا پورے او با سببيه ده۔ يا

حال دے په تاویل د مبطلین یا ملتبسین بالباطل سره۔ باطل په اصل کښ زائیل کیدونکی او فنا کیدونکی ته وئیلے شی او په اصطلاح د شریعت کښ هر هغه طریقه چه په شریعت کښ د هغے د جواز د پاره دلیل نه وی او مخکښ د هغے مثالونه ذکر شول۔
وَتُدْلُوابِهَا، په دے کښ دوه اقوال دی د مفسرینو اول قول دا دے چه دا مجزوم دے او عطف دے په تَأْكُلُوا او د لا د لاندے داخل دے او دویم قول دا دے چه دا منصوب دے په تقدیر د اَنْ سره لیکن اول قول صحیح دے په څو وجوهو سره. اوله وجه دا چه په قراءت د ابیّ بن کعب کښ لا مذکور دے۔ دویمه وجه دا چه روایت د ابن عباس رضی الله عنهما دے چه په دے آیت کښ ذکر د هغه چا دے چه هغه باندے د بل چا مال قرض وی او د مُدعی گواهان نه وی او دے انکار کوی د قرض نه او حاکما نو ته فیصله اوړی او دے پوهیږی چه دے گناهګار دے او خوړونکے د حرامو دے۔ نو په دغه شخص کښ دا دواړه کارونه جمع دی۔ نو دے د هغے نه منع کړے شو۔ او د هر یو کار نه جدا جدا منع هم مراد ده۔ دریمه وجه دا ده چه لِتَأْكُلُوا علت دے او متعلق دے د تُدْلُوا سره فقط۔
تُدْلُوا، دا د ادلاء نه اخستے شوے دے په اصل کښ بوقه په ذریعه د رسئ (پړی) سره کوهی ته آویزانولو ته وئیلے شی. بیا ئے اطلاق په هر هغه قول او عمل باندے کیږی چه بل مقصد ته د رسیدلو د پاره ذریعه اوګرځی۔ دلته دوه قولونه مراد دی۔ اول قول جلتی او تادی کول په اوړلو د فیصلے د مالونو سره حاکمانو ته کله چه پوهیږی چه حجت ځما د پاره قائمیږی چه د مدعی د پاره ګواهان نه وی یا مال د یتیم وی چه په هغے کښ قول د قابض معتبروی او په دروغه قسم کولو باندے پرواه نه کوی۔ بنا په دے قول د بِهَا ضمیر راجع دے حکومت یا الاموال ته۔ دویم قول دا دے چه پردے حق ځان د پاره حاصلوی۔ او صاحب د اللباب وئیلی دی چه رشوت ته ادلاء د دوه وجونه وئیلے شی

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ ؕ قُلْ

تپوس کوی دوی ستانه په باره دَ میاشتو کښ ، ته اُوایه

هِیَ مَوَاقِیْتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ ؕ وَلَیْسَ

دا میاشتې وختو نه مقرر کول دی دَپاره دَخلقو اودَپاره دَ حج ، او نه ده

اوله وجه داچه دَ رسئ په واسطه لرے اُویه بنده ته رانزدے شی تودارنګ دَ رشوت په ذریعه لرے اونا ممکن کار اوحاجت په واسطه دَ حاکم سره بنده ته رانزدے او ممکن شی۔ دویمه وجه داچه لکه چه بوقه په رسئ سره اُوبوته په آسانتیا سره وررسیږی دارنګ په رشوت اخستلو سره حاکم بغیر دَ تثبت او پروااکولو نه حکم کوی اودَ لالچ دَ وجے نه بئے آسان ګنړی۔

لِتَاْكُلُوْا فَرِیْقًا مِّنْ اَمْوَالِ النَّاسِ بِالْاِثْمِ، داعلت دے دَپاره دَ نهی کولو چه په تُدْلُوْا بِهَا اِلَی الْحُكَّامِ کښ ده۔ یعنی هر کله چه مقصد ګناه او حرام دے نو دَ هغے وسیله او ذریعه هم حرام ده۔ وئیلے شوی دی للوسائل حکم المقاصد۔ فَرِیْقًا، فریق په معنی دَ قطع او ټکړے سره دے۔ بِالْاِثْمِ، باء سببیه ده او مراد دَ اثم نه دَ دروغو شهادت یا رشوت ورکول یا په دروغه قسم خوړل دی۔ یا باء دَپاره دَ ملابست ده۔

فائده:۔ لِتَاْكُلُوْا آه کښ اشاره ده چه حاکم ته دَخپل حق دَ حصول دَپاره مال ورکول یا دَخپل ځان نه دَ ظلم دفع کولو دَپاره مال ورکول جائز دی او داپه رشوت کښ داخل نه دے (اللباب فی علوم الکتاب۔ هدایه کتاب الصلح) هاں خو دَ حاکم (اخستونکی) دَپاره دَ دے اخستل حرام دی اوکه ورکوونکے څه بل څه جائز ذریعه استعمال کړی نو هغه په غوره وی۔

وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ، روح المعانی او بحر المحیط کښ لیکلی دی چه دا دلیل دے چه څوک نهٔ پوهیږی چه دا ګناه ده او حاکم دَ هغه په حق کښ دَ څه مال فیصله اُوکړی نو دهٔ لره دَ هغے اخستل جائز دی۔

الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا

نیکئ چه راتلل کوئ تاسو کورونو ته د شاګانو د هغې نه

وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَىٰ ۗ وَأْتُوا الْبُيُوتَ

او لیکن نیکی د هغه چا ده چه تقویٰ کوی او راځئ کورونو ته

مِنْ أَبْوَابِهَا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿١٨٩﴾

د دروازو د هغې نه او ویره کوئ د الله تعالیٰ نه د دې د پاره چه په تاسو باندې رحم اوکړے شي۔

۱۸۹ ربط:۔ د دې د مخکښ آیت سره دا دے چه روژه او دا رنګ مالی معاملات موقت دی په خاص وختونو پورې او د توقیت د پاره الله تعالیٰ دوه سببونه پیدا کړی دی یو نمر او دویم سپوږمۍ نو الله تعالیٰ په دې آیت کښ خبر ورکوی چه توقیت شرعي په سپوږمۍ پورې خاص دے۔

یَسْئَلُوْنَکَ، په باره د سوال کوونکو کښ درې اقوال دی۔ اول دا چه دا تپوس بعض صحابه کرامو کړے وو۔ دویم دا چه دا تپوس یهودیانو په طور د اعتراض سره کړے وو په نبی صلی الله علیه وسلم باندې۔ دریم دا چه یهودیانو دا تپوس د بعض صحابه کرامو نه کړے وو چه هغه معاذ بن جبل او ثعلبه بن غنم رضی الله عنهما وو۔ نو هغې دواړو دا سوال نبی صلی الله علیه وسلم ته ذکر کړے وو چه یا رسول الله یهودیان مونږ ته راځی او په باره د اهِلَّه کښ تپوس کوی چه څه وجه ده چه دا اول نرئ ښکاره کیږی بیا زیاته شی بیا برابر شی نو بیا کمیږی او نرئ کیږی۔ دا قول قرطبی ذکر کړے دے او دا د مخکښ دواړه قولونو د پاره جامع دے۔

سوال:۔ امام رازی او ابو حیان د ابن عباس رضی الله عنهما قول ذکر کړے دے چه صحابه کرامو د نبی صلی الله علیه وسلم نه صرف څوارلس تپوسونه کړی دی او د هغې جوابونه ورکړے شویدی۔ اول په دې سورت ۱۸۶ کښ دے دویم دا آیت۔ نور شپږ هم په دې سورت کښ دی۔ نهم په سورة مائده ۴ کښ، لسم په سورة انفال ۱ کښ

يوولسم سورة اسراء ۸۵، دولسم سورة كهف ۸۳، دیارلسم سورة طه ۱۰۵، اوڅوارلسم په سورة نازعات ۴۲ کښ دے؟۔
جواب:- د دے خبرے سند ثابت نه دے او بالخصوص د يوولسم نه تر څوارلسم پورے نسبت کول صحابه کراموته د صحیح اقوالو نه خلاف دے ځکه چه هغه تپوسونه د مشرکانو د طرف نه وو۔
عَنِ الۡاَهِلَّةِ، جمع د هلال ده۔ اصمعی وئیلی دی چه هلال ورته تر هغې پورے وئیلے شی چه تر څو دائره جوړه نه شی او بعضو وئیلی دی چه تر دریو شپو پورے ورته هلال وئیلے شی۔ او هلال په اصل کښ آواز اوچتولوته وئیلے شی نو وجه تسمیه هم دا ده چه ړومبو شپو کښ په وخت د لیدلو کښ هر يو آواز اوچتوی يعنی په اوچت آواز وائی چه هغه دے هلال (میاشت)۔ د دے تپوس کولو په باره کښ دوه اقوال دی اول دا چه دوی د دے اختلاف د حالاتو حکمت او فائده تپوسلے وه او جواب هم د هغې موافق ورکړے شویدے او دا قول صحیح دے او مناسب دے د شان د صحابه کرامو سره چه هغوی بے فائدے تپوسونه نه کول۔ او جواب هم دا دلالت کوی چه دوی دا تپوس په باره د حکمت د هلال کښ کړے وو۔ دویم قول دا دے چه دوی د تری والی او غټوالی د سبب تپوس کړے وو، لیکن هر کله چه دا تپوس بے فائدے ؤو نو جواب ورکړے شو په حکمت سره۔ او دا قول مناسب دے د هغه قول سره چه تپوس کوونکی يهوديان ؤو هغوی به بے فائدے تپوسونه کول د نبی صلی الله علیه وسلم د تنګولو د پاره۔ او تفتازانی په مطول کښ دا قول کړے دے چه دا تپوس صحابه کرامو کړے وو لیکن هر کله چه هغوی د ریاضۍ په باریکانو باندے پوهه نه لرله نو د دے وجے نه الله تعالیٰ ورته په ذکر د حکمت سره جواب اوکړو، نو دا قول د هغه غلط دے او مستلزم دے تحقیر د صحابه کرامو لره۔
قُلۡ هِیَ مَوَاقِیۡتُ لِلنَّاسِ، په روایت د ابو العالیه کښ دی چه دا مواقیت دی د پاره د روژے او افطار د مسلمانانو او د عدت د زنانو او د قرضونو د خلقو د پاره (ابن کثیر)۔ او ایجارے، کرایه کانے

او تور مصالحو د بیت الله تو د پاره، او دا سے ذکر دی په سورة یونس ۵، او سورة اسراء ۱۲ کښ (قرطبي). او مواقیت جمع د میقات ده منتها د وخت ته وئیلے شي یعنی مقرر وخت لکه فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً (سورة اعراف ۱۴۲) کښ۔

سوال :۔ څه حکمت دے چه په مواقیتو شرعیو کښ د سپوږمئ تخصیص اُوکړے شو نه د نمر ؟۔

جواب :۔ په لیدلو د هلال او په اختلاف د حالاتو د هغې سره ټول عوام او خواص پوهیږی لکه چه د یو امی بے تعلیمه شخص نه تپوس اُوکړے شي چه نن د میاشتې څویمه شپه ده نو هغه سپوږمئ ته اُوګوري او جواب اُوکړی او هر چه نمر دے نو د هغې د حالاتو په اختلاف باندے عام خلق نه پوهیږی بلکه د هغې په اختلاف سره په ټول کال کښ صرف څلور موسمونه معلومیږی (اوړے، جمے، سپرلے، او منے) بغیر د جنترئ وغیره کتلو نه څوک د هغې د تاریخ نه نه خبریږی او دین د الله تعالیٰ آسان دے او عام دے (اللباب للدمشقي)۔

لِلنَّاسِ، یعنی د خلقو د مقاصدو د پاره د دے نه ذوات د هغوی مراد نه دی (بحر المحیط)۔ وَالْحَجِّ، تخصیص د حج ئے د دے د وجے نه اُوکړو چه جاهلیت والو په حج کښ نسئ کوله یعنی حج کول به ئے د یو میاشت نه بلے میاشت ته نقل کړو او بدلو۔ نو په تخصیص کښ اشاره وه چه الله تعالیٰ د حج کولو د پاره کومه میاشت (ذوالحجه) مقرر کړے ده نو د هغې تبدیل منع دے۔ او دا رنګ په دیکښ اشاره وه ذکر کولو د بلے قریضے د اسلام ته روستو د ذکر د روژے نه۔

وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا، د دے جملے په سبب د نزول کښ دوه روایات دی۔ اول قول د حسن بصري او د اصم رحمهما الله دے چه د جاهلیت په وخت کښ به یو شخص د یو کار اراده اُوکړه او هغه کار به پوره باندے سخت اُوګرزان شو نو کور ته به د دروازے د طرف نه نه داخلیدو بلکه د شا طرف نه به راتلو (هغه به په دیوال را اوړیدو یا په بله طریقه) او دا کار د دروازے

ته داخلیدل) به یې تطیر (سپیرهٔ والے) ګڼړلو او تر یو کال پورے به یې دغسے کول. نو معنیٰ دَ آیت دا ده چه دَ سپیره والی نه بچ کیدل دا نه دی چه کورونو ته دَ روستو نه راځئ بلکه نیکی (تطیر نه بچ کیدل) خو په تقویٰ سره او په توکل علی الله سره وی.
وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى، په دے لفظ کښ اختصار دے دَ آیت ۱۷۷ چه په هغې کښ یې لس اُمور دَ بِرّ (نیکئ) ذکر کړل او په آخر کښ اُولٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ وئیلی وو. وَاتَّقُوا اللّٰهَ، دلته تقویٰ په معنیٰ دَ اطاعت دَ احکام الٰهیه ده. لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ، هر کله چه څوک په دَ مقصد ته نا اُمیده شو نو دوی به وئیل چه مَا اَفْلَحَ (کامیاب نه شو) نو الله تعالیٰ دَ هغې په رد کښ اُوفرمائیل چه په تقویٰ (تطیر نه بچکیدلو) سره فلاح حاصلیږی. دویم قول دَ براء رضی الله عنه او امام زهری نه روایت دے چه په انصارو کښ عادت وو چه کله به یې احرام دَ حج اُوتړلو نو دوی به چه کله واپس کورونو ته راتلل نو په دروازه به نه داخلیدل نو دغه وخت یو انصاری دَ دے خلاف اُوکړو او دَ دروازے نه داخل شو نو هغه بانډے تورو اعتراض اُوکړو نو دا آیت نازل شو. دا روایت بخاری او مسلم ذکر کړیدے. دا رنګ په بل روایت کښ دی چه دَ دوی او دَ آسمان په مینځ کښ به یې حائل (پرده) نه کرځوله نو چه دَ کور نه به راوتل په نیت دَ احرام سره نو واپس به کور ته دَ دروازے نه نه داخلیدل بلکه دَ شا دَ طرف نه به یې دیوال لرے کړو او حاجت به یې دَ کور والو نه طلب کوو یا به دَ کور په چَتْ بانډے دَ شا دَ طرف نه ورختلو او دا کار به یې ثواب او عبادت ګڼړلو نو الله تعالیٰ اُوفرمائیل چه دا کار دَ نیکئ او ثواب نه دے.
دریم قول دَ عامو مفسرینو دے چه په ابتداء دَ اسلام کښ به چا احرام دَ حج یا دَ عمرے اُوتړلو نو چه کوم خلق به ښار او آبادو والا وو نو دَ کور دَ شا طرف نه به چَتْ ته ختلو، او چه بانډو او خیمو والا به وُو نو دَ شا دَ طرف نه به خیمے ته داخلیدلو او دا به یې نیکی ګڼړله دا کار به سیوا دَ حمس والو نه ټولو عربو کولو. حمس والا چه قریش وُو دوی به بالکل خپل کورونو ته نه داخلیدل او نه به یې دغه

# وَقَاتِلُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ

او جنګ کوئ د پاره د اوچت والی د دین د الله تعالیٰ

وخت غوړی او پنیر خوړل او دا یه یې نیکي ګڼله نو الله تعالیٰ د دے تردید اُوکړو. او دا روایات صاحب د لباب او ابن جریر وغیره ذکر کړی دی. د دے روایاتو په بنیاد باندے د البیوت، ابواب او ظهورته حقیقي معاني مراد دی او دا قول د اکثرو مفسرینو دے.

سوال:- په معنیٰ د دے جملے کښ د مسئلے د اهِلّه سره څه رنګ ربط دے؟

جواب ۱:- هرکله چه په حج کښ د نسئ رد ته اشاره اُوشوه نو په حج کښ یې د یل رسم باطل رد هم ذکر کړو دے د پاره چه حج د اسلام د جاهلیت د رسمونو نه پاک شی.

جواب ۲:- دا دواړه سوالونه یې په یو ځل ذکر کړی وُو نو الله تعالیٰ د هغے دواړو جوابونه هم په یو کرت ذکر کړل.

جواب ۳:- هرکله چه سوال د اهِلّه یهودیانو بے فائدے (اَلْتَه) کړے وُو. سوال د حکمت د هغے ضروری وُو او دوی د سبب تپوس کړے وو نو د هغوی د دے عمل مثال یې ذکر کړو. یعنی چه د دوی عمل داسے دے لکه چه یو شخص د کور دروازه پریږدی او د شا د طرف نه کور ته داخلیږی یعنی جاهلان اَلْتَه کارکوی نو داسے یهودیان هم دی.

تنبیه:- د دے جملے په ذکر کولو کښ مفسرینو نور اشارات هم ذکر کړیدی. اوله اشاره صاحب اللباب ذکر کړیده چه اے یهودیانو هرکله چه تاسو حکمت په اختلاف د اهِلّه کښ نه پیژنئ نو تاسو شک کوئ په حکمت د خالق جل جلاله کښ. نو کورونو ته د شا د طرف نه راتللو کښ اشاره ده او ړینلو ته د صحیح طریقے د استدلال نه او راتلل د دروازو نه اشاره ده صحیح طریقے د استدلال ته.

دویمه اشاره قرطبی ذکر کړے ده، د ابو عبیده نه نقل دے چه مثال د دے دا دے چه د مسائیلو تپوسونه د جاهلانو نه مه کوئ بلکه د علماؤ نه کوئ. دریمه اشاره، د ماوردی او ابن الانباری روایت دے د ابن زید نه چه دا مثال دے د جماع کولو د ښځیانو

الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا ؕ

دَ هغه کسانو سره چه تاسو سره جنګ کوی او دَ حد نه مه ور تیریږی ،

اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۱۹۰﴾

یقینًا الله تعالیٰ مینه نه کوی دَ حد نه دَ تیریدونکو سره۔

خپلو سره چه په مخکښ طرف (فرج) کښ جماع کوئی په روستو طرف (دبر) کښ مه کوئی۔ څلورمه اشاره دا ده چه په دے آیت کښ تنبیه ده دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه چه هر کار دَ نیکئ په هغه طریقه کوئی چه الله تعالیٰ دَ هغے امر کړے دے یعنی په دلیل شرعی سره یئے کوئی بے دلیله عمل مه کوئی۔ پنځمه اشاره، قرطبی وئیلی دی چه په دے آیت کښ بیان دے چه کوم څیز (یعنی قول او عمل) چه الله تعالیٰ هغه قربت نه وی ګرځولے او نه یئے هغے طرف ته ترغیب ورکړے وی نو هغه قربت (ثواب) نه ګرځی اګر چه یو انسان په هغے سره تقرب لټوی۔ په دیکښ دَ عقیدے او دَ اعمالو په ټولو بدعاتو باندے رد دے۔

۱۹۰ ربط :- دَ دے آیت دَ مخکښ سره په څو وجوهو سره دے۔ اول دا چه دا معطوف دے په وَاتَّقُوا اللّٰهَ باندے دَ قبیلے دَ عطف دَ خاص نه په عام باندے یعنی اشد ضروری او اهم دَ اقسامو دَ تقوی نه قتال فی سبیل الله دے۔ دویمه وجه ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه دا آیاتونه په کال دَ حدیبیه کښ نازل شوی وو چه مشرکانو مؤمنانو لره دَ بیت الله نه منع کړل او بیا صلحه اُوشوه چه راتلونکی کال کښ به مکے معظمے ته دَ عمرے دَ پاره صرف درے ورځو دَ پاره داخلیږی نو مسلمانانو سره یره پیدا شوه که راتلونکی کال کښ دوی بے لوظی اُوکړی او په حرم مکی او په میاشت دَ حرمت کښ زمونږ سره قتال اُوکړی او دا خو زمونږ دَ پاره ګناه دے۔ نو دا آیتونه الله تعالیٰ نازل کړل۔ یعنی حکم دَ قتال متعلق شو دَ عمل دَ عمرے سره او حج هم دا سے حکم لری نو دَ مسئلے دَ حج سره مناسبت او ربط پیدا شو۔ دریمه وجه دا چه مخکښ لس اُمور

دَتهذيبِ نفوسي ذکر شول او څلور اُمور دَ امن دَپاره ذکر شول. او داتيارى ده دَ قتال دَپاره نو روستو دَ تيارۍ نه پس امر دَ قتال اُوکړو. په دے آيت کښې دَ قتال متعلق څلور اُمور ذکر کوى اول فرضيت دَقتال په صيغه دَ امر سره. دويم مقصد دَ قتال چه فى سبيل الله دے. دريم اهل دَ قتال چه الذين يقاتلونکم دى. څلورم آداب دَقتال په لا تعتدوا سره.

فِى سَبِيلِ اللّٰهِ، دا متعلق دے دَ قَاتِلُوْا سره. سبيل په لغت کښې لارے ته وئيلے شى چه انسان په هغے سره مقصد ته رسيږى. دلته مراد دَ هغے نه دين او کلمه دَ الله تعالىٰ ده چه دَ هغے په ذريعه الله تعالىٰ ته او دَ هغه رضا او جنت ته رسيدل کيږے شى چه هغه دَ مسلمان بنيادى مقصد دے. فى په معنىٰ دَ لام دے او مضاف پټ دے. اعلاء او سبيل په معنىٰ دَ کلمے سره دے يعنى لاعلاء کلمة اللّٰهِ (دَپاره دَ غالب کولو دَ کلمے دَ الله تعالىٰ) او کلمه دَ الله تعالىٰ دين توحيد دے. او دا تفسير په صحيح حديث کښې ذکر دے نو دا مقصد دَقتال دے اشاره ده چه قتال به په نيت دَ شهرت او ريا کولو او غنيمت حاصلولو وغيره سره نه وى. اَلَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ، مراد دَ دے نه عام دے يعنى څوک چه تاسو سره فى الحال قتال کوى او څوک چه اهليت دَ قتال لرى يعنى ځوانان اشخاص. تو په دے سره واړه بچى، زنانه او بوډاګان (کمزورى) خارج شول. هاں کومه زنانه چه دَ کافرانو رئاست کوى يا کوم بوډا چه دوى ته مشورے ورکوى هغه هم په اهليت دَ قتال کښې داخل دى يعنى هغوى سره به هم جنګ کيږے شى. وَلَا تَعْتَدُوْا، اعتداء په ټولو اُمورو کښې دَ حدود شرعيو نه تجاوز کول دى او اعتداء کول حرام دى. او دلته دَ ابن عباس رضى الله عنهما او مجاهد په روايت سره معنىٰ دا ده چه زنانه، واړه بچى او بوډاګان او راهبان او هغه څوک چه تاسو ته سلام او انقياد پيش کوى هغه مه قتلوئ او مُثله (دَ مړى اندامونه پريکول) او غلول (خيانت) هم مه کوئ. او په دے معنىٰ سره آيت منسوخ نه دے. اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ،

وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ

او وژنئ دوی لره کوم ځائے چه وس برشي ستاسو په دوی باندے

وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ

او اوباسئ دوی لره د هغه ځائے نه چه ویستلی یئ دوی تاسو لره

وَالْفِتْنَةُ اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ج

او شرک ډیر سخت دے د قتل نه

وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

او جنګ مه کوئ د دوی سره د مسجد حرام په خوا کښ

حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ ج فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ

تر دے پورے چه جنګ شروع کړی دوی تاسو سره په هغے کښ، نو که دوی تاسو سره جنګ شروع کړی

دا د لا تعتدوا علت دے۔ د مؤمنانو سره محبت کول او د غیر مؤمنانو سره محبت نه کول دا د الله تعالیٰ صفت دے او د نورو صفاتو په شان دلته هم حقیقی معنیٰ مراد ده بغیر د تمثیل، تشبیه او تاویل نه او دا مسلک د سلفو صالحینو دے۔ نو محبت د الله تعالیٰ او د محبت د مخلوق په مینځ کښ فرق دے۔ یو دا چه د مخلوق د محبت او نفرت په مینځ کښ واسطه کیږے شی چه د یو شخص سره نه محبت کوی او نه ور سره بُغض ساتی۔ لیکن د الله تعالیٰ د محبت او بُغض په مینځ کښ واسطه نیشته نو عدم محبت د الله تعالیٰ مستلزم دے بُغض او عذاب لره۔

فائده:- محبت په طریقه د صفت ثبوتیه د الله تعالیٰ د پاره په قرآن کریم کښ تورلس [۱۹] کرته ذکر دے او د سلب په طریقه سره درویشت [۲۳] کرته ذکر دے۔

فَاقْتُلُوْهُمْ ۖ كَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۹۱﴾

نو وژنئ دوی، دغسې بدله د کافرانو ده۔

سا۱۹۱ په دې آیت کښ د قتال د دوه طریقو ذکر دې اول دا چه په قتل باندې موږ اوطاقت بر شي نو قتل کوئ یئ، دویم دا چه په قتل کولو موطاقت بر نشي بلکه په ویستلو باندې موطاقت بر شي نو ویستل کوئ د هغوی او دا دواړه امر و نه (اقتلوهم۔ اخرجوهم) په جدا جدا حالتونو کښ مراد دی ځکه چه یوحال کښ قتل او اخراج دواړه نشي جمع کیدې۔ او د اقتلوهم ضمیر الذین یقاتلونکم ته راجع دې۔ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ، حیث د عموم د مکان او زمان دواړو د پاره راځي یعنې که زمکه د حِل وي او که د حرم وي، میاشت د حرمت وي او که بله (ازاده) میاشت وي، لیکن روستو یئ مسجد حرام او شهر حرام مستثنیٰ کړي دي۔ ثقف او ثقافت په اصل کښ په مضبوطوالي او په هوښیارتیا سره لاس ته کول او موندل دي که عمل وي او که علم وي او په معنیٰ د مطلق وجدان او ادراک سره استعمالیږي لیکن کوم ځائې چه ثَقِفْتُمُوْهُمْ ذکر دې هلته شدت او پوخوالې مراد دې او کوم ځائې چه وجدتم ذکر دې هلته ورسره شدت ماخوذ نه دې او په مناسب ځایونو کښ دواړه الفاظ هم استعمالیږي۔ په سورۃ نساء سا۹۱، سورۃ انفال سا۵۷، سورۃ آل عمران سا۱۱۲، او سورۃ احزاب سا۶۱ کښ ثقف استعمال دې او دا رنګ د دُشمن د طرف نه په سورۃ ممتحنه سا۲ کښ هم مستعمل دې۔ نو دا ټول دلالت کوي په شدت باندې۔ او سورۃ نساء ۹۸ او سورۃ توبه سا۵ کښ وجدان ذکر دې چه هغه د هغې ځائې سره مناسب دې۔ او قرطبي لفظ د ثَقِفْتُمُوْهُمْ قید کولو ته شامل کړې دې یعنې د قیدي کافر قتل هم جائز دې۔ وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ، دلته حیث د مکان د پاره دې او دا عام دې اګر چه د دې مصداق په هغه وخت کښ مکه مکرمه وه۔

سوال:۔ د دې آیت د نزول په وخت کښ چه د مؤمنانو قدرت نه ؤ و په اخراج د مشرکانو د مکې نه نو دا څه رنګ صحیح کیږي؟۔

جواب:۔ ابوحیان وئیلی دی چه په دیکښ اشاره ده وعدے ته د الله تعالیٰ د طرف نه په فتح مکه سره او هغه وعده الله تعالیٰ پوره کړیده. او مِنْ حَيْثُ د علت د پاره هم احتمال لری یعنی اُویا سئ دوئ لره د کورونو او وطنونو د دوی نه ځکه چه تاسو ئے ویستلی یئ او بیا هم چه دوی وس اُوموی نو تاسو اُوباسی۔

وَالْفِتْنَةُ اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ، ابوحیان دلته اووه معانے ذکر کړیدی (۱) واپس ګرځول د مؤمن د ایمان د هغه نه په زور سره ډیر سخت دی په مؤمن باندے د قتل د هغه نه. اشاره ده پوځوالی د صحابه کرامو ته په ایمان بانده۔ (۲) شرک د مشرکانو ډیر سخت جرم دے د قتل کولو د مشرک نه اګرچه په میاشت د حرمت کښ وی. نو دا علت دے د وَاقْتُلُوْهُمْ د پاره. (۳) هتک او سپکوالے د حرماتو د الله تعالیٰ چه دا مشرکان ئے کوی ډیر سخت جرم دے د قتل کولو د مشرک نه. په دے معنیٰ سره هم علت دے د وَاقْتُلُوْهُمْ د پاره یعنی دوئ قتل کوئ. (۴) عذاب د آخرت د مشرکانو ډیر سخت دے د قتل کولو د دوی مؤمنانو لره په حرم کښ. دا احتمال ضعیف دے (لیکن که دا سے اووئیلے شی چه عذاب د آخرت د مشرکانو سخت دے د عذاب د قتل د دوی نه په دنیا کښ. نو دا ترقی ده د وَاقْتُلُوْهُمْ ته نو بیا دا احتمال صحیح دے او دا صاحب اللباب ذکر کړے دے. (۵) ویستل د مشرکانو د کورونو او د وطن نه ډیر سخت دی په دوی بانده د قتل کولو د دوی نه ځکه چه په اخراج سره به په هغوی بانده همیشه ذلت او رسوائی لازمه شی. په دے معنیٰ دا علت دے د اخرجوهم د پاره. (۶) اړول او منع کول د مشرکانو مؤمنانو لره د مسجد حرام نه ډیر سخت جرم دے په نسبت د قتل کولو ستاسو مشرکانو لره یا د قتل کولو د هغوی نه تاسو لره. په دے معنیٰ هم دا علت دے د وَاقْتُلُوْهُمْ د پاره. (۷) تنګول د مشرکانو مؤمنانو لره د دے د پاره چه مرتد شی ډیر سخت دی په مؤمنانو بانده د هغوی د قتل نه. او دا احتمال پشان د اول احتمال دے. او د فِتْنَةُ لفظ تحقیق روستو راتلونکے دے. (انشاء الله تعالیٰ)

فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۹۲﴾

نو که چرے دوی منع شو د کفر نه نو یقیناً الله تعالیٰ بخنه کونکے رحم کونکے دے.

وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ، دا ذکر دے دا استثناء د عموم د حیث ثَقِفْتُمُوْهُمْ نه او نهی د قتال مستلزم ده نهی لره د اسبابو د قتل نه نو مراد د دے نه نهی ده د شروع کولو د قتال نه د مسجد حرام په خوا کښ. او غایه د دے نهی شروع کول دی د قتال د مشرکانو د طرف نه. عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ، د دیته مراد ټول حرم دے. په دے نهی کښ د علماؤ دوه اقوال دی.

اول قول دا چه دا نهی منسوخ نه ده او دا قول د طاؤس او ابو حنیفه رحمهما الله دے. او قرطبی وئیلی دی چه دا موافق دے د دے نص د مقتضا سره او دا صحیح قول دے. دویم قول دا چه دا منسوخ دے په فاقتلوا المشرکین سورة توبه ۵ او وقاتلوا المشرکین سورة توبه ۳۶ سره. او قرطبی په تفسیر کښ مناظره ذکر کړیده د پاره د تائید د اول قول چه منسوخ نه دے. فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ، په دے جمله کښ دفع د کراهت د مؤمنانو ده د قتال نه په حرم کښ او تصریح ده په مفهوم د غایه سره د پاره د تاکید د دفاعی قتال کولو په حرم کښ. فَاقْتُلُوْهُمْ، قاتلوهم ئے اُونه وئیلو. اشاره ده چه الله تعالیٰ به تاسو ته غلبه او نصرت درکوی په قتل د مشرکانو سره په سبب د بے حرمتئ کولو د هغوی حرم لره. كَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ، كَذٰلِكَ کښ اشاره ده قتل ته یعنی جزاء د ټولو کافرانو قتل دے یعنی کفر علت د قتل د هغوی دے. په دیکښ تنبیه ده چه دا قتل کول تذلیل د انسانیت نه دے لکه چه بے دینه خلق وائی بلکه حقیقت کښ دا تذلیل د کفر دے.

۱۹۲ په دے آیت کښ ترغیب دے کافرانو ته د پاره د توبے د کفر او شرک نه. فَاِنِ انْتَهَوْا، مراد د دے نه منع کیدل دی د کفر نه په توبے کولو سره او منع کیدل د قتال نه په کښ داخل دی او دلته سورة انفال ۳۸ کښ هم دی. ابو حیان او صاحب د اللباب وئیلی دی

وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ

او قتال کوئ د دوی سره د دے د پاره چه نوی اړول د مؤمن د دین اسلام نه

وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ ۭ فَاِنِ انْتَهَوْا

او شي (غلبه) د دین خاص الله تعالی لره، نو که چرے منع شو د قتال نه

فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٩٣﴾

نو نیشته زیاتے کول . مگر په هغه چا دے چه ظلم پاندے کلک پاتے شی.

چه دا آیت دلالت کوی چه د قاتل العمد (قصدًا قتل کوونکی) توبه هم قبوله ده ځکه چه کفر او شرک د قتل عمد نه غټ گناه دے چه د کافر توبه قبوله ده نو د قاتل عمد توبه هم قبوله ده.

۱۹۳ دا عطف دے په مخکښ قاتلوا فی سبیل الله باندے (د اکثرو مفسرینو په نیز باندے) او هلته بو مقصد ذکر شو چه فی سبیل الله دے او دلته بل مقصد ذکر کوی چه حتّٰی لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ دے. او په ضمیر د وَقَاتِلُوْهُمْ کښ دوه اقوال دی. اول دا چه دا راجع دے د مشرکین مکه ته چه ذکر د مسجد حرام په دے باندے دلالت کوی او مراد د فتنے نه شرک او اذی (تکلیف) ورکول دی مؤمنانو ته. او مقصد د آیت دا دے چه د مشرکین مکه او عرب سره قتال کوئ تر دے چه د دوی نه شرک ختم شی د دوی نه به جزیه (ټیکس) او ذمه نه قبلیږی د اهل کتابو پشان او دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما او د قتاده، ربیع او سدی رحمهم الله دے. او دویم قول دا دے چه ضمیر ټولو کافرانو ته راجع دے یعنی امر کړے د قتال کولو د ټولو کافرانو سره په هر مکان کښ لیکن تخصیص د بعضو په جزیه (ټیکس) ورکولو سره د بل نص په وجه سره دے چه هغه په سورة توبه ۲۹ کښ ذکر دے. او دا یو قول قرطبی اول ذکر کړے دے او وئیلی یئے دی چه دا اظهر قول دے او د فتنے نه مراد شرک او اذی ورکول دی مؤمنانو ته. او په نیز د ابو مسلم وقاتلوهم عطف دے په فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ باندے او مراد د فتنے نه

قتال دے په حرم کښ۔ یعنی چه تاسو سره په حرم کښ قتال شروع کړی نو تاسو ورسره قتال دَ دے دَ پاره کوئ چه په حرم کښ قتال بند کړی ځکه چه قتال په حرم کښ فتنه (امتحان) دے په مؤمنانو باندے (بحر المحیط) او حتّیٰ دلته دَ غایے دَ پاره دے بنا په یو قول باندے ۔ یا دَ تعلیل دَ پاره دے۔ او ابن عاشور په التحریر والتنویر کښ وئیلی دی چه انتفاء دَ فتنے حاصلیږی په یو دَ دوؤ کارونو سره یا دخول دَ ټولو مشرکانو په اسلام کښ یا قتل دَ ټولو۔ لیکن کله حاصلیږی په غلبے دَ مسلمانانو سره په مشرکانو باندے او کمزوری کیدل دَ مشرکانو په مقابله دَ قوت دَ مسلمانانو کښ۔ نو بنا په هرحال سره حتّیٰ دَ غایے او تعلیل دواړو دَ پاره کیدے شی۔ ځکه چه په مینځ دَ غایے او تعلیل کښ منافات نیشته۔

تنبیه :۔ علا: ماده دَ فتنے (ف، ت، ن) په قرآن کریم کښ شپیته کرته ذکر ده۔ او فتن په لغت کښ غورځول دی دَ سرو زرو په اُور کښ دَ دے دَ پاره چه دَ خیری نه پاک شی (چه هغے ته تن صبا په عرف کښ تیزاب کول دَ سرو زرو وائی) بیا دا په معنیٰ دَ هر محنت سره راغی۔ او سیوطی په اتقان کښ وئیلی دی چه دا قرآن کریم کښ په پنځلس معنو سره دے۔ (۱) په معنیٰ دَ شرک لکه الفتنة اشدُ مِنَ القتل (۲) خلق گمراه کول (۳) قتل کول لکه ان یفتنکم الذین کفروا سورة نساء ۱۰۱ (۴) په معنیٰ دَ اړولو لکه واحذرهم ان یفتنوك عن بعض ما انزل الیك، سورة مائده ۴۹ (۵) گمراه کیدل ومن یرد الله فتنته، سورة مائده ۴۱ (۶) عذر او بهانه کول ثم لم تکن فتنتهم سورة انعام ۲۳ (۷) فیصله دَ الله تعالیٰ لکه اِنْ هِیَ الا فتنتك، سورة اعراف ۱۵۵ (۸) په معنیٰ دَ گناه لکه الا فی الفتنة سقطوا، سورة توبه ۴۹ (۹) په معنیٰ دَ مرض راتللو لکه سورة توبه ۱۲۶ کښ یفتنون فی کل عام (۱۰) په معنیٰ دَ عبرت لکه لا تجعلنا فتنة للقوم الظّٰلمین، سورة یونس ۸۵ (۱۱) په معنیٰ دَ عقوبت ان تصیبهم فتنة، سورة نور ۶۳ (۱۲) اختبار او امتحان لکه ولقد فتنا الذین من قبلهم، سورة عنکبوت ۳ (۱۳) په معنیٰ دَ عذاب او تکلیف لکه جعل فتنة الناس کعذاب الله، سورة عنکبوت ۱۰ (۱۴) په معنیٰ دَ احراق (سیزلو) یوم هم علی النار

یفتنون، سورة ذاریات ۳۱ک، (۱۵) په معنیٰ دَ جنون (لیونتوب) بایکم المفتون، سورة قلم ۲ک، او صاحب دَ اللباب دَ دینه اووه ذکرکړیدی او محکیش په تفسیر دَ فتنه کښ دَ ابوحیان نه هم اووه معانے نقل شوی دی. چه بعضِ دَ هغے نه دَ دے پنځلسو نه خارج دی. دا رنګ ابن حجر عسقلانی په فتح الباری شرح صحیح البخاری په باب الصلاة کفارة جلد ۲ صفحه ۱۸۹ باندے لس معانے لیکلی دی کفر، غلو (دَ حد نه تیروتل) په تاویل کښ، فضیحت (شرمندګی) بلاګانے (مصیبتونه) عذاب، قتال، او ړیدل دَ یوې حالت نه قبیح او ورتې حالت ته، یو څیز ته میلان کول، اعجاب (تکبر کول په یو څیز باندے. دا تلل دَ خیر او شر او دَ دے نه هم بعضِ معانے دَ محکیش ذکرکړے شوونه علاوه او زیاتی دی.

تنبیه: ۲:- په دے آیت کښ دَ لفظ فتنه په تفسیر کښ دَ مفسرینو نه درے معانے نقل دی. اول شرک او کفر دویم اذی او تکلیفونه ورکول مؤمنانو ته یعنی زور کول په مؤمنانو دے دَ پاره چه مرتد شی. دریم قتال کول په حرم کښ لکه چه محکیش دَ ابوحیان نه دا نقل شو. دلته هره یو معنیٰ صحیح ده لیکن ما په ترجمه کښ دویمه معنیٰ غوره کړیده. دَ هغے دلیلونه او تائیدات دا دی. اول قول دَ صاحب اللباب چه جنګ کوئ دَ دوی سره تر دے پورے چه زورآور شئ په دوی باندے او په زور سره وانه ړوی تاسو لره دَ دین ستاسو نه او واقع نه شئ په شرک کښ. دویم حدیث دَ ابن عمر رضی الله عنهما چه امام بخاری په کتاب التفسیر کښ دَ دے آیت دَ لاندے لیکلے دے ابن عمر رضی الله عنهما دَ دے په معنیٰ کښ وئیلی دی چه مونږ دا کار (قتال) دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښ کړیدے کله چه اهل اسلام لږ وو او سړے به دَ دین نه په زور سره اړولے کیدے شو په قتل کولو یا په عذابونو، تکلیفونو ورکولو سره تر دے پورے چه اهل اسلام ډیر شول نو فتنه پاتے نه شوه او غلبه دَ دین اُوشوه. دریم قول دَ ابن عاشور دے چه دلته فتنه نکره ده په سیاق دَ نفی کښ ده. هغه

تولو معانو دَ فتنې ته شامل ده. چه په تفسیر دَ (والفتنة اشد من القتل) کښ ذکر شوی دی او په هغې کښ ابن عاشور دا معنیٰ ذکر کړېده چه مؤمنانو ته تکلیفونه ورکول، کنځل کول، وهل ټکول، مسخرې کول او دَ کورونو او مالونونه ویستل، دا ټول کارونه مشرکانو دَ دې دپاره کول چه مؤمنانو لره په زورسره دَ دین نه واړوی. څلورم قول دَ نیشاپوری دے په تفسیر غرائب القرآن کښ چه یو معنیٰ یې دا سې کړیده چه فتنه دَ دوی دا وه چه مؤمنان یې وهل او تکلیفونه یې ورکول تر دے پورې چه بعضو حبشه ته هجرت اوکړو او بعضو مدینې طیبې ته، نو معنی دا ده چه قتال کوئ تر دے پورې چه په دوی باندے زورآور شئ او تاسو په زور سره دَ دین نه وانه ړوی. پنځم قول دَ قرطبی دے چه دلته فتنه شرک دے او هغه چه دَ هغې سره ؤو دَ تکلیفو تو ورکولو نه مؤمنانو ته. دا قول دَ ابو حیان نه هم محکښ ذکر شوے دے. شپږم قول، ما دَ شیخ القرآن مولانا غلام الله خان رحمه الله دَ مخطوط تفسیر نه لیکلے دے (او هغه اُوس چهاپ دے) حتی لا یفتن مؤمن (مدارک) تاکہ کفار مؤمنین کو مؤمن ہونے سے نہ روکھیں اور زور سے کافر نہ بنائیں، او دا سې په هغه درس کښ څما ملګری دَ افضل التراجم (پښتو تفسیر) مؤلف مولانا محمد افضل خان هم لیکلی وو. اووم قول، بقاعی په نظم الدرر کښ لیکلی دی (معنی دا ده چه موجود نشی فتنه چه قدرت اونه مومی مشرکان چه تکلیف ورکړی مسلمان لره چه واړوی هغه لره دَ دین دَ هغه نه) جلد ۳ صفحه ۱۱۳ - اتم قول ابن عربي (المتوفی ۳۴۳ ه) په احکام القرآن کښ لیکلی دی چه کفر کول په مسجد حرام کښ او عبادت دَ بتانو او مسلمانان په هغې کښ تنګول دَ دے دپاره چه دَ دین نه یې واوړی دا ټوله فتنه ده. جلد ۱ صفحه ۱۰۹ - نهم قول جمال الدین قاسمی په خپل تفسیر کښ لیکلی دی (تَقَوٍّ بسببه یفتنون الناس عن دِینِهِم)، (هغه زور چه په سبب دَ هغې سره خلق دَ دین نه اوړی) جلد ۲ صفحه ۱۳۷ - لسم قول امام رازی په تفسیر کبیر جلد ۵ صفحه ۱۳۲ کښ لیکلی دی معنیٰ یې دا ده، قتال کوئ دَ دوی سره

دے دَ پارہ چه زورآور شئ تاسو په هغوی باندے چه وانه روی تاسو لره دَ دین ستاسو نه۔

فائده ۱:- په دے مقام کښ اوږد والے اودَ ډیرو مفسرینو اقوال ما دَ دے وجے نه ذکر کړل چه دَ دے زمانے یو حسن کوونکی اوعلمی لحاظ سره یتیم اومسکین څما په تفسیر باندے خصوصًا په دے مقام کښ بے سروپا اعتراضونه کړی دی چه دَ هغے تفصیلی جواب څما یو ملګری مولانا محمد اسحاق کبرالی په خپل کتاب (الرد القوی الباهر) کښ ذکر کړے دے۔

فائده ۲:- دا سے په سورة انفال ۳۹ کښ هم دی لیکن فرق دا دے چه هلته لفظ دَ کُلُّه ذکر دے اودلته نیشته نو وجه دَ فرق یے یو دا ده چه دلته ذکر دَ خاص مشرکانو دے چه مشرکین عرب دی۔ نو صرف دَ هغوی سره په قتال کولو سره په عربو کښ دین قائم شو اوپه سورة انفال کښ دَ عامو کافرانو حکم دے نو دَ عامو کافرانو سره په قتال کولو سره په ټوله دُنیا کښ قیام دَ دین راځی۔ دویمه وجه دَ فرق دا ده چه په دے آیت کښ فتنه په معنیٰ دَ اړولو دَ دین نه ده په زور سره یعنی کمزوری دَ مؤمنانو مراد ده او حتی دَ پاره دَ علت دے او الدِّینُ نه مراد غلبه دَ دین ده نو لفظ دَ کُلُّه نه دلته ضرورت نیشته او په سورة انفال کښ مراد دَ فِتْنَةٌ نه شرک اوکفر دے او حَتّٰی دَ پاره دَ غایے دے۔ الدِّینُ نه مراد اشاعت اوخورول دَ دین دی یعنی چه شرک اوکفر دَ دُنیا نه وروک اوختم شی او ټول دین اسلام په ټوله دُنیا کښ قائم شی۔

فائده ۳:- هرکله چه په یو لفظ کښ دَ مفسرینو ډیر اقوال ذکر او نقل وی اودَ هغے په مینځ کښ تعارض نه وی نو هر یو معنیٰ باندے عمل کول اوحمل کول دَ لفظ جائز دی۔ اوعامه معنیٰ اخستل چه ټولو ته شامل وی هغه هم جائز اوغوره وی۔ دلته افتتان المؤمن عن دینه دغه ټولو معانو ته شامل دے نو دغه معنیٰ غوره ده۔

فائده ۴:- مونږ چه کومه معنیٰ ذکر کړیده نو په دے سره (تکون) فعل تام دے په معنیٰ دَ موجودیدلو او واقع کیدلو۔ اوفتنه که

اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ

میاشت د حرمت په بدل د میاشت د حرمت کښ ده

وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ ۚ فَمَنِ اعْتَدٰی

او ټول حرمتونه (عزتونه) بدلے والا دی، نو چاچه زیاتے اوکړو

عَلَیْکُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَیْهِ بِمِثْلِ

په تاسو باندے نو تاسو هم زیاتے اوکړئ په هغه باندے پشان

مَا اعْتَدٰی عَلَیْکُمْ ۠ وَاتَّقُوا اللّٰهَ

د هغے چه زیاتے کړے دے په تاسو باندے او ویره کوئ د الله تعالٰی

دلته په هره معنٰی محتمله سره وی نو هغه عمل د کافر دے نو مراد ترینه فتنة الکافر دے۔ د دے وجے نه مونږ په معنٰی کښ زور د کافر ذکر کړیں ے۔

وَیَکُوْنَ الدِّیْنُ لِلّٰهِ، ابن کثیر لیکلی دی چه دین د الله تعالٰی ظاهر او عالی (غالب) شی په ټولو دینونو باندے۔ او دا قول هم تائید کوی زمونږ د معنے اگرچه دلته بل قول هم صحیح دے یعنی ثبوت او قیام د دین خاص د الله تعالٰی د پاره دے۔ فَاِنِ انْتَهَوْا، متعلق ئے پټ دے یعنی که منع شو د قتال کولونه یا د شرک کولونه یا مؤمنانو لره په فتنه کښ د اچولونه۔ او دا ټولے معانے یو بل ته نژدے دی۔ فَلَا عُدْوَانَ، نفی د جنس ده په اعتبار د هر فرد سره یعنی هیڅ فرد (قسم) د عدوان نیشته نه په مال نه په عزت نه په بدن د هغه باندے۔ دلته مراد د عدوان نه جزاء د هغے ده او دا د قبیلے د مشاکلت نه ده یعنی جزاء له نوم د عمل ورکوی۔ او دا عامه نفی په معنٰی د نهی سره ده یعنی لا تعتدوا۔ اِلَّا عَلَی الظّٰلِمِیْنَ، مراد د ظالمین نه شروع کوونکی د قتال دی په حرم کښ یا هغه څوک چه کفر او فتنه باندے باقی پاتے شی یا هغه څوک چه انکار کوی د توحید نه۔ او دا ذکر د علت دے په ځائے د معلول باندے یعنی فلا عدوان الا علی مَنْ لم ینته۔ او چه منع نه شی نو ظالم وی او ظالم مستحق د عدوان دے

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۹۴﴾

او پوهه شئ چه یقینًا الله تعالیٰ خاص ملګرے دے د متقیانو۔

ځکه ظلم هم عدوان دے۔

۱۹۴ دا ادب د قتال دے په اعتبار د زمانے سره۔ او استثناء ده د عموم د زمان نه چه په حَیْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ کښ وو۔

اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ، په دواړو کښ جنس شهر حرام مراد دے چه هغه څلور دی ذوالقعده، ذوالحجه، محرم او رجب. او په سبب د نزول د آیت کښ دوه اقوال دی۔ اول دا چه په صلحه حدیبیه کښ فیصله اوشوه چه د راتلونکی کال د ذوالقعدے په میاشت کښ به مسلمانان عمره کوی تو مسلمانانو سره بیره پیدا شوه که چرے دا مشرکان بے وفائی اوکړی او په دغه میاشت کښ مونږ سره قتال اوکړی نو مونږ به څه کوؤ؟ نو په دے آیت کښ جواب اوشو. دویم قول دا دے چه په شپږم کال د هجرت مشرکین مکه د ذوالقعدے په میاشت کښ مؤمنانو لره د عمرے کولو نه منع کړل نو په اووم کال بیا دے بیا په دغے میاشت کښ مسلمانانو عمره اوکړه د وجے د صلح او معاهدے ته۔ نو دا آیت نازل شو په طور د تسلئ سره نبی صلی الله علیه وسلّم او صحابه کرامو ته چه دا میاشت چه تاسو پکښ عمره اوکړه په بدل د هغه میاشت کښ شوه چه تاسو په هغے کښ منع کړے شوی وئ۔ لیکن په دے کښ اول قول غوره دے۔ او اصل عبارت داسے دے چه (اِنْتِهَاكُ حُرْمَةِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ بِسَبَبِ اَوْ بِعِوَضِ اِنْتِهَاكِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ) (بے عزتی کول د حرمت د میاشتے ستاسو د طرف نه په قتال کولو د مشرکانو سره په سبب او په بدل د بے عزتئ کولو د مشرکانو دی د دغه میاشتے د حرمت) یعنی هرکله چه مشرکانو په میاشت د حرمت کښ قتال شروع کړو نو تاسو هم د هغوی سره دفاعی قتال په دغه میاشت کښ کوئ دا جائز دے۔ نو دا پښتان د مخکښ آیت شو چه په مسجد حرام کښ دفاعی قتال کول جائز دے۔

وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ، په دیکښ دوه اقوال دی اول دا علت دے

دَماقبل دَپارِه اوحرمات نه مراد حرمت دَ شهر حرام دے لیکن جمع یۓ دَ دے وجے نه ذکرکړه چه حرمت دَ میاشت، حرمت دَ بلد الحرام (مکه مکرمه) اوحرمت دَ احرام اوحرمت دَ عِرض (عزت) دَ مؤمنانوته شامل دے. حرمت هغه څیز دے چه دَ هغې بے عزتي اوسپکاوے په شریعت کښ حرام وی. قصاص برابری اومساوات ته وئیلے شی یعنی هغه حرمتونه چه مشرکانو ضائع کړل په شپږم کال دَ هجرت کښ نو دَ هغې پوره بدله اداشوه په اووم کال یا نے په عمره کولو دَ مؤمنانو سره. دویم قول: دا مستقل اوعام حکم تشریعي دے یعنی دَ هر مسلمان هرقسم بے عزتي (دَ بدن، مال اوعِرض) چه چا اُوکړه نو هغه مسلمان لره حق دَ بدلے اخستلو شته دے (که پخپله بدله اخلی یا دَ حاکم په ذریعه سره) په دیکښ تفصیل دَ اهلِ علمو شته دے او په هره توجیه سره قصاص کښ لفظ دَ ذاتُ بیت مراد دے.

فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ، دا نتیجه ده دَ ماقبل یا تفصیل دے دَ قصاص دَ پارِه. فَاعْتَدُوْا په خپله بدله واخلئ که امکان وی یا دَ حاکم په واسطے سره. (قرطبی)

**سوال:** دلته خو مراد بدله اخستل دی او هغه خو ظلم او اعتداء نه ده نو دَ فَاعْتَدُوْا څه مطلب دے؟

**جواب ۱:** دا هم عدوان دے لیکن عدوان مباح دے. دا جواب په تیز دَ هغه چا دے چه وائی چه په قرآن کښ مجاز نیشته.

**جواب ۲:** دا په طریقه دَ مشاکلت اومقابلے دے لکه (جَزَاءُ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا) اودا په طریقه دَ مجاز سره دے.

بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ، دا شامل دے مماثلت ته په مقدار او په احوالو کښ لکه چه په شهر حرام او بلد حرام کښ بدله اخستل دی (ابن عاشور).

**سوال:** په سورة نحل ۱۲۶ کښ معاقبه بالمثل ذکر ده لیکن ورپسے یۓ ترغیب ورکړے دے دَ پاره دَ صبر کولو یعنی معاقبه معاف کول؟

# وَ اَنْفِقُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَلَا تُلْقُوْا

| اؤ | خرچ کوئ | په | لار | دَ الله تعالیٰ کښی | او مه | غورځوئ |
|---|---|---|---|---|---|---|

جواب:- هغه آیت په آدابو دَ دعوت کښی دے او مکی دور دے نو په هغې کښی عزیمت دا دے چه صبر اُوکړئ- او دا آیت مدنی دے په باره دَ قتال کښی او په قتال کښی صبر کول او عفوه کول نیشته مګر په خاص حالاتو کښی- او قرطبی په تفسیر دَ مثلیت کښی وئیلی دی چه چا ستا نه څه مال په زور او ظلم سره اخستلے وی نو خپل حق تری نه واخله او که تا ته یې کنځلے کړے وی نو دَ هغې په مثل جواب ورکوه او که ستا بے عزتی یې کړے وی نو په مثل دَ هغې یې بے عزتی اُوکړه، لیکن په دے بدله اخستلو کښی دَ هغه مور او پلار او اولاد او رشته دار و ته تعدی مه کوئ- هاں که په تا باندے دروغ جوړ کړے شوے وی نو ته به په هغه باندے دروغ نه جوړوے او که تا ته زانی اووائی نو ته ورته زانی مه وایه بلکه دروغژن ورته اووایه یعنی دَ ګناه جواب به په ګناه نه ورکیږی- قرطبی په دے تفصیل کښی عموم دَ آیت ته اشاره کړیده-

وَ اتَّقُوا اللّٰه، مراد دَ دے نه دَ احکام الٰهیو طاعت کول دی (ابن کثیر) یا مراد دا چه ځان بچ کړئ دَ تجاوز کولو دَ مثل نه ځکه چه انسان په وخت دَ غضب او غصه کښی کله دَ حد نه تجاوز کوی دَ دے وجے نه امر دَ تقوٰی یې ورکړو- یا دا چه په حرماتو الٰهیو مثلاً شهر حرام کښی بغیر دَ حالت دَ مجبورئ نه تقوٰی اُوکړئ (ابن عاشور)-

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِیْنَ، دا ترغیب دے تقوٰی ته او مراد دَ دے نه معیت خاصه دے په نصرت او تائید سره په دُنیا او آخرت کښی- لیکن دا مجاز نه دے بلکه حمل دَ لفظ دَ معیت دَے (چه مشترک دے په ډیرو معناتو کښی) په یو معنیٰ خاص باندے- او دا دَ دے دَ پاره چه استوی علی العرش (چه نص صریح دے) ته خلاف رانشی- او دا قول دَ سلفو صالحینو دے-

بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ ۛ وَاَحْسِنُوْا ۛ

(خپل ځانونه) په لاسونو خپلو سره هلاکت ته او ښائسته عمل کوئ

اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۹۵﴾

یقیناً الله تعالیٰ مینه کوی د ښائسته عمل کوونکو سره۔

ف۱۹۵ په دے آیت کښ ترغیب دے انفاق ته د پاره د قتال فی سبیل الله او عطف دے په وَقَاتِلُوْا فِی سَبِیْلِ اللّٰه باندے۔

ربط ۱:۔ هرکله چه قتال د پاره آلات او اسباب ضروری وی او بعض وخت مقاتل فی سبیل الله (مجاهد) مسکین او فقیر وی نو د وجے د عدم د اسبابو د قتال نه د جنګ کولو نه محروم شی۔ نو مالدارانو ته خطاب اوشو په انفاق کولو سره د پاره د جاری کولو د قتال فی سبیل الله۔

(۲) هرکله چه مخکښ ئے اووئیل چه اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِیْنَ، نو د مقاتلینو، مجاهدینو عقیده جوړه شوه چه نصرت الله تعالیٰ کوی۔ نو هسے نه چه د دے وجے نه اسباب د قتال بے ضرورته اوګڼړی او د اسبابو د تیارئ نه غفلت اوکړی نو اووئیلے شو وَاَنْفِقُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ۔ او تفصیل د انفاق مخکښ په مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ یُنْفِقُوْنَ کښ ذکر شوے دے۔

وَلَا تُلْقُوْا بِاَیْدِیْکُمْ اِلَی التَّهْلُکَةِ، قرطبی په دے جمله کښ پنځه اقوال ذکر کړی دی۔ اول قول د ابو ایوب انصاری رضی الله عنه دے چه تَهْلُکَه (هلاکت) دا ده چه د خپلو مالونو د ترقئ او د اصلاح د پاره کوشش شروع کړی او جهاد (قتال) پریږدی۔ دا ابو داؤد او ترمذی روایت کړیدے۔ دویم قول انفاق فی سبیل الله نه کول او د فقیرئ نه یریدل۔ او دا په روایت د بخاری شریف کښ دی۔ دریم قول د ابن عباس رضی الله عنهما دے۔ لاس بندول په فقراؤ باندے د صدقے ورکولو نه هغوی ته۔ ځکه چه فقراء قتال له لاړنه شی نو دُشمن به غالب شی په دے قول کښ مراد عام صدقات فقراؤ ته ورکول دی چه د هغوی د حاجاتو کفایت او کفالت اوشی تو جهاد ته به هر وخت تیار وی۔ څلورم قول د براء بن عازب رضی الله عنه دے چه مراد د دینه هغه شخص دے

وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ؕ فَاِنْ

او پوره کوئ حج او عمره خاص دپاره د الله تعالیٰ، تو که چرے

اُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ

بند کړے شوئ تاسو (د پوره کولو د هغے نه) نو لازم دے په تاسو باندے هغه چه آسان وی د هدے نه

وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ

او مه خریئ سرونه خپل تر دے پورے چه اورسیږی

الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ ؕ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ

هدی (خاروی) ځائے د حلالے د هغے ته، نو هغه څوک چه دی ستاسو نه

مَّرِيْضًا اَوْ بِهٖۤ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ

ناجوړه یا په هغه باندے تکلیف وی د هغه د سر د وجے نه

چه ډیر ګناهونه یئے کړی وی نو بیا توبه نه او یاسی په دے خیال سره چه څما توبه به نه قبلیږی نو ترمرګه پورے په ګناهونو کښ به پوخ شی۔ پنځم قول د زید بن اسلم دے چه سفر د جهاد د توخے نه بغیر کول نو یا خو به د جهاد نه په تیمه لار کښ پاتے شی او یا به د خلقو ته د جهاد په توم سوالونه شروع کړی او د دینه روستو قرطبی څلور معانے نورے هم لیکلی دی۔ او ابو حیان نهه اقوال ذکر کړی دی۔ نو آیت دے ټولو معانو ته شامل دے۔ بِاَيْدِيْكُمْ، عامو نحویانو وئیلی دی چه بآء زیاتی ده (یعنی اَيْدِيْكُمْ) مبرد وئیلی دی چه اَيْدِيْكُمْ نه مراد انفسکم دے۔ او بعضو وئیلی دی چه بآء زیاتی نه ده خو مفعول (انفسکم) پټ دے۔ وَاَحْسِنُوْا، ابوحیان وئیلی دی چه د دے متعلق یئے نه دے ذکر کړے نو دا عام دے، یعنی احسان کول په انفاق فی سبیل الله او په عامو صدقاتو ورکولو کښ او احسان کول په ټولو طاعاتو او اعمالو کښ، او په الله تعالیٰ باندے په جهاد او انفاق کښ حسن ظن کول چه الله تعالیٰ به څما امداد کوی۔ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ

فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ اَوْ صَدَقَةٍ

نو واجب ده په هغه بانديں بدله د (درې) روژو يا صدقه (د شپږ مسكينانو)

اَوْ نُسُكٍۚ فَاِذَآ اَمِنْتُمْ ۫ فَمَنْ تَمَتَّعَ

يا قربانى (د يوګډ) نو كوم وخت چه تاسو په امن شئ، نو چا چه فائده واخستله

بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ

په عمرے كولو سره د حج كولو (ته راوځائے) نو واجب دي په هغه بانديں چه آسان وى

مِنَ الْهَدْيِۚ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ

د هديے نه نو څوك چه نه مومى هديه نو په ده بانديں روژے نيول دى

ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِى الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ

درې ورځے د حج په ورځو كښ او اووه ورځے

اِذَا رَجَعْتُمْ ؕ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ؕ

كله چه واپس شئ د منى نه، دا لس دى پوره (ثواب والا)

ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ

دا حكم هغه چا لره دے چه نه وى كورنئ د هغه

حَاضِرِى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ

ديره په مسجد حرام كښ، او ويره كوئ د الله تعالى نه

ع ۲۴ ۸ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿١٩٦﴾

او پوهه شئ چه يقيناً الله تعالى سخت عذاب وركوونكے دے۔

په ديكښ ترغيب دے دوام د صفت د احسان ته چه الله تعالى د صفت د احسان سره محبت كوى نو د بقاء د محبت د الله تعالى د پاره دوام د صفت د احسان پكار دے۔

١٩٦ خلاصه د دويم باب د دے حصے:- چه هغه تر آيت ٢١٣ پورے دے۔ په دے باب كښ ذكر د حج د مسئلے دے د پاره د

ارتباط او اتحاد د مسلمانانو. او دا مقصد د قتال فی سبیل الله دے چه مکان د حج د ظالمانو د قبضے نه خلاصول په جهاد سره کیږی او په دیکښ پنځه احکام دی په پنځه آیتونو کښ چه هغه د حج سره متعلق دی. په دے اول آیت ۱۹۶ کښ ذکر د حکم د احصار او امن او تمتع او امر په اتمام د حج سره دے چه په هغے کښ د مشرکانو سره تشبیه نه وی. او په دویم آیت ۱۹۷ کښ ذکر د احرام د وخت د حج دے او ممنوعات په حج کښ سره د رد نه په رسم د جاهلیت باندے چه هغه پریخودل د زاد (توښے) دی. او په دریم آیت ۱۹۸ کښ رد دے په رسم د تحریم د تجارت په حج کښ او حکم د موقف د مزدلفے دے. او په څلورم آیت ۱۹۹ کښ رد دے په رسم د ترک د وقوف په عرفات باندے. او په پنځم آیت ۲۰۰ کښ رد دے په رسم د ذکر د آباؤ په منیٰ کښ. بیا ذکر د دوه اقسامو د حج کوونکو دے یو بد بخت دُنیا پرست په آیت ۲۰۰ کښ او بل نیک بخت چه دُنیا او آخرت دواړه طلب کوی په ۲۰۱ کښ. بیا رد دے په رسم د اختلاف په ایامو د منیٰ کښ چه په هغے کښ تحریم د مستحب یا وجوب د مستحب لازمیږی په ۲۰۳ کښ. بیا تقسیم د خلقو دوه قسمونو ته اول قسم ډیر بد بخت او د هغوی بد شپږ قبیح (ناکاره) صفات ذکر کړی دی په ۲۰۴، ۲۰۵، ۲۰۶ کښ. دویم قسم ډیر نیک بخت ۲۰۷ کښ بیا تخویف دُنیوی او د هغے مثال په بنی اسرائیلو سره او جواب د یو سوال په ۲۱۰، ۲۱۱، ۲۱۲ کښ. دویم ترغیب د دعوت ورکول دی په کتاب الله د پاره د رد په اختلاف د باغیانو په طریقه د انبیاء علیهم السلام سره په ۲۱۳ کښ. بیا دریم ترغیب چه تیرول د درے قسمه تکالیفو دی په دعوت کښ پشان د سابقینو په ۲۱۴ کښ.

ربط:- د دے آیت ۱۹۶ د مخکښ سره په څلورو وجوهو سره دے.

۱:- مخکښ تور فرائض (مونځ، زکوٰة، روژه او جهاد) ذکر شول نو اوس بله فریضه ذکر کوی چه حج دے. ۲:- مخکښ آیتونو ته د

حدیبیه د واقعې سره متعلق دۍ او دغه واقعه د دې وجې نه رانیخه شوه چه مرکز د حج کولو د مشرکانو په قبضه کښ وۍ نو اشاره شوه چه قتال فی سبیل الله یو اهم مقصد دې چه په هغې سره قبضه د مشرکانو د حرم نه زائله شي او تاسو قادر شئ په اتمام د حج او عمرې کولو باندې. او د دې وجې نه یې داعطف کړیدې په ما قبل او امرو باندې چه قاتلوا او انفقوا دی - ۳- محکښ ذکر د محسنینو اوشو اوس اهم عمل په اعمالو د محسنینو کښ چه حج کول دی ذکر کوی په داسې طریقې سره چه د مشرکانو د رسومو او بدعاتو نه پاک وی - د دې وجې نه په هر آیت کښ د رسم رد هم مقصد دې -

وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ، اتمام په دوه معنو سره استعمالیږي. اوله داچه فعل (کار) شروع وی لیکن مطلوب د هغې صفت وی د پوره کولو تر آخره پورې - نو دلته معنیٰ دا شوه چه تاسو حج او عمره شروع کړې وی که فرض وی یا نفل نو د هغې پوره کول په تاسو باندې واجب شول - په مینځ کښ به یې نیمګړې نه پریږدئ سیوا د عذر د احصار نه لکه چه په حدیبیه کښ وو. د دې وجې نه یې وروسته حکم د احصار ذکر کړو لکه فَاَتِمُّوا اِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ. او وجوب د پوره کولو د حج او عمرې روستو د شروع کولو نه اتفاقی مسئله ده هاں د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د نفلی مونځ او روژې هم دا حکم دې -

دویمه معنیٰ، ادا د یو فعل سره د صفت د اتمام نه لکه په اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى اللَّيْلِ، او لِاُتِمَّ نِعْمَتِيْ کښ - په دې معنیٰ سره پوره کولو د حج او عمرې کښ مختلف اقوال دی - قول د علی رضی الله عنه دا دې چه د خپل ځائې نه دِ احرام اُوکړی - او دا مسئله اختلافیه ده - د سفیان ثوری قول دا دې چه نیت او قصد د تجارت دِ نه کوی - د عمر رضی الله عنه قول دا دې چه حج او عمره هر یو دِ جدا جدا ادا کړی بغیر د حج تمتع او قِران نه - قول د مقاتل دا دې چه د مشرکانو پشان به په تلبیه کښ کلمه د شرک

إِلَّا شَرِيكًا تَمْلِكُهُ وَمَا مَلَكَ نه وائي لفظ دَ لِلّٰهِ دَ دے تائيد کوي
نو غوره قول روستو دے ځکه چه اولے معنے ته هم شامل دے۔
سوال:- صلوٰت وصيام سره لِلّٰهِ ذکر نه دے اگرچه هلته هم
دغه مراد دے او دَ حج او عمرے سره يئے لِلّٰهِ ذکر کړو؟۔
جواب:- قاسمي وئيلي دي چه دَ دے وجه داده چه مشرکانو دَ حج
او عمرے بعضِ اعمال (تقبيل وطواف) دَ خپلو بتانو دَ پاره کول
لکه اوس هم قبر پرست خلق داسے کوي نو لفظ دَ لِلّٰهِ تصريح ده
چه اعمال شرکيۀ ته پوره ځان اوساتئ۔ نو په دے جمله کښې
اشاره ده رد دَ رسومو شرکيۀ ته په اعمالو دَ حج او عمره کښې۔
او دغه بنياد دَ قبوليت دَ اعمالو دے۔
فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ، دا دَ أَتِمُّوا سره متعلق دے يعني اتمام خو فرض
دے ليکن هر کله چه داسے عذر راشي چه په پوره کولو بانے
قدرت نه ملاويږي نو بيا څه حکم دے، نو اوس دَ هغے حکم
ذکر کوي۔ احصار راگير يدل او بنديدل دي دَ يو کار نه او دَ
شريعت په اصطلاح کښې احصار دا دے چه کله احرام دَ حج
يا عمرے اوکړي ليکن دَ هغے دَ نورو اعمالو پوره کولو نه په څه
عذر سره بند شي چه هغه عذر، مرض، دشمن او ظلم دَ بادشاه
وغيره دے۔ او دا قول غوره دے۔ او دَ دے مثال موجود شو په
واقعه دَ حديبيه کښې چه نبي کريم صلى الله عليه وسلم او صحابه
کرامو احرام دَ عمرے دَ ذوالحليفه نه تړلے وو او چه حديبيه ته
اورسيدل نو کافرانو منع کړل۔ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ، مبتداء
حذف ده يعني فالواجب يا خبر پټ دے۔ يعني فعليکم۔ يا فعل
امر پټ دے يعني فاذبحوا، فاهدوا۔ اَلْهَدْيِ، دا جمع دَ هديه
ده او دَ بعضِ علماؤ په تيز بانے مصدر دے په معنیٰ دَ
مفعول سره يعني اَلْمُهْدِيُّ، نو بيا مفرد جنس دے۔ او دَ ډيرو
صحابه کرامو نه نقل دي چه دَ هدي اعلىٰ قسم اوښ دے او
ادنیٰ گډا پيس وغيره دے او درميانه يئے غوا ده۔ نو چه په دے
اجناسو کښې ورته کوم يو په آسانه سره ملاويږي نو هغه دِ

ذبح کړي. او دا حکم عام دے که دا څاروے دَ قربانئ يې دَ ځان سره روان کړے وي یا ئے هلته اخلي.

**مسئله:** هرکله که هدی ورته نه ملاویږی یا دَ هغے طاقت نه لري آیا دَ هغے بدل شته دے او که نه؟ - تو په دیکښ اختلاف دے. دَ امام ابوحنیفه رحمة الله قول دا دے چه دَ دے بدل نيشته ځکه چه الله تعالیٰ بدل نه دے ذکر کړے. نو هدی به په ذمه دَ دهٔ پاتے ترمرګه پورے واجبه وي او نورا هلِ علم وائی چه دهٔ پاتے بدل شته لکه چه هدی دَ تمتع او قِران کښ شته دے او په حالت دَ عذر کښ هم شته نو دلته هم په طريقه دَ قیاس سره ده.

وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ، په دے خطاب کښ اختلاف دے. اول قول دا دے چه دا خطاب دے احصار والو ته هغوی به تحلیل دَ احرام نه کوی تر ذبحے دَ څاروی دَ قربانئ پورے او اشاره ده چه هرکله هدی (دغه څاروے) محل ته اُورسیږی نو محصر (حصار شوے) به دَ تحلیل دَ پاره حلق یا قصر (دَ سر ويښته خرئیل یا واړهٔ کول) کوی. او دا قول دَ امام شافعی او امام مالک رحمهما الله دے. دوی وائی چه محصر پاتے تور عبادات دَ حج او عمرے خو بند کړے شوی وو دَ وجے دَ عدم قدرت دَ دهٔ نه او په حلق یا قصر خو قادر دے. دویم قول دا دے چه محصر ذبح یا نحر دَ هدی (څاروی) اُوکړی نو دهٔ پاتے حلق یا تقصیر واجب نه دے. دلیل یې دا دے چه په احصار سره دَ دهٔ نه ټول مناسک دَ حج ساقط شول. او دا قول دَ امام ابوحنیفه او امام محمد رحمهما الله دے. تو دَ هغوی دَ قول مطابق دا خطاب په حال دَ امن کښ دے او عطف دے په اَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ پاتے. یعنی په حال دَ امن کښ حاجی یا عمرے والا چه ځان سره یې سوق دَ هدی کړے وی ذبح به په حلق پاتے مخکښ کوی او دا ترتیب په نیز دَ امام ابوحنیفه رحمه الله پاتے واجب دے او دَ نورو ائمو په

تیز واجب نه دے په دلیل دَ صحیح حدیث سره چه چا به دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس کوو په باره دَ تقدیم او تاخیر کښ نو هغه به ورته وئیل چه اِفۡعَلۡ وَلَا حَرَجَ، او دا لفظ عام دے نفی دَ گناه او دَ دم دواړو ته. او په دے مسئله کښ دَ احنافو دَ پاره دا سے دلیل نیشته چه دَ دغه حدیث مقابله اُوکړے شی۔ مَحِلَّهٗ، دا صیغه دَ ظرف مکان او دَ ظرف زمان دواړو ده او په زیر دَ حا سره دے۔ هاں په ظرفِ مکان کښ زور دَ حا جائز دے۔ نو دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مَحِلّه ظرفِ مکان دے او حرم ته وئیلے شی لکه په سورة حج ۳۳ کښ۔ دویم دلیل، چه هدی هغه ډالئ ده چه غلام (مریئے) دَ مالک کور ته اوړی او دا هغه وخت کیدے شی چه حرم مراد شی۔ دریم دلیل دا چه ټول دِمَاء (دموته) او هدایا په حرم پورے خاص دی نو دا رنګ دا به هم خاص وی په حرم پورے۔ او دَ نورو اهلِ علمو مسلک دا دے چه دَ احصار دم ذبح کول په حرم پورے خاص نه ده۔ او مَحِلَّه دلته ظرفِ زمان دے یعنی هر هغه وخت چه احرام کوونکے په هغے کښ بند شو نو دَ هغه دَ پاره دغه ځائے مَحِلَّه شو۔ او دَ دوی اول دلیل واقعه دَ حدیبیه ده چه نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو دَ احصار په وخت کښ په حدیبیه کښ خپلے هدایا (څاروی) ذبح او نحر کړل او حدیبیه دَ حرم نه بهر ده په دلیل دَ سورة فتح ۲۵ سره۔ دویم دلیل ئے دا دے چه فَمَا اسۡتَيۡسَرَ مِنَ الۡهَدۡيِ کښ تقیید په حرم پورے نیشته نه په آیت کښ نه په حدیث کښ۔ دریم دلیل چه وجوب دَ دے دم خو دَ وجے دَ ازالے دَ دُشمن نه دے نو که حرم ته تلل واجب شی نو خوف خو هغسے موجود دے نو مقصود نه حاصلیږی۔ او په نورو دموتو او هدایاؤ کښ دا علت نیشته۔ فَمَنۡ كَانَ مِنۡكُمۡ مَّرِيۡضًا اَوۡ بِهٖۤ اَذًى مِّنۡ رَّاۡسِهٖ، دا ذکر دَ رخصت (اجازت) دَ حلق (سر خرئیلو) دے په حال دَ احرام کښ په سبب دَ عذر او ور سره وجوب دَ فدیئے سره۔ او چا چه حلق اوکړو په حال دَ احرام کښ بغیر دَ عذر نه نو په هغه باندے وجوب دَ فدیئے دَ

په اجماع د اهلِ علمو سره. لیکن اختلاف د علماؤ دے چه دا په نسیان سره اوکړی په هغه باندے هم فدیه شته ځکه چه د اکثر علماؤ په نیز په حال د نسیان کښې هم فدیه واجب ده. او د دے تفصیل قرطبی ذکر کړیدے. مَرِيْضًا، دا سے مرض مراد دے چه علاج د هغے په خرئیلو د سر سره خاص وی. اَذًى، د سر درد، زخمونه او سپګے چه راډوریږی په مخ باندے وغیره لکه چه په حدیث د کعب بن عجره رضی الله عنه کښې راغلی دی. فَفِدْيَةٌ یعنی علیه فدیة یا فالواجب علیه فدیة. مِّنْ صِيَامٍ، د دیته مراد دریے روژے دی په سبب د حدیث د کعب بن عجره رضی الله عنه سره چه ابو داؤد ذکر کړیدے. او حکمت د دریوالی دا دے چه دغه جنایت کړیدے په دریے امورو باندے یعنی احرام، طواف او سعی. اَوْ صَدَقَةٍ، دریے صاعه د کجورو چه شپږ مسکینانو ته به ورکیدے شی یعنی نیم نیم صاع. اَوْ نُسُكٍ، په دے کښې دوه اقوال دی اول دا چه دا مصدر دے یعنی ذبح کول. دویم دا چه دا جمع د نسیکه ده او ذبح لفظ پټ دے. نسیکه هغه څاروے دے چه ذبح کیږی خاص د الله تعالیٰ د پاره.

فرق:- د هدی او نسک دا دے چه هدی خاص ده په هغه څاروی پورے چه حرم ته بوتللے کیږی او د جنایت (غلطئ) د وجے نه نه وی. او نسک عام ذبیحے ته وئیلے شی که د جنایت د وجے نه وی او که نه. او د دے هم ادنیٰ یوه بیزه ده.

فائده:- د اهلِ علمو اتفاق دے چه دلته اَوْ د تخییر (اختیار) د پاره دے. او د دے وجے نه په حدیث د کعب رضی الله عنه کښې د دینه په خلاف ترتیب سره ذکر کړی دی.

فَإِذَا أَمِنْتُمْ، دا په ماقبل معنیٰ باندے معطوف دے او ذکر د حال د امن دے او دا عام دے هغه امن ته چه روستو د احصار نه حاصل شی په دُشمن یا په مرض سره. یا امن وی د اول حال نه یعنی بغیر د احصار سابق نه ځکه چه صحیح قول دا دے چه تمتع په دواړه حالاتو کښې صحیح ده.

فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ، تمتع په لغت کښ مزے اخستلوته وئیلے شی. په حال دَ تمتع اصطلاحی کښ هم عمره کوونکی روستو دَ تحلیل دَ احرام دَ عمرے نه فائده اومزے اخلی په ممنوعاتو دَ احرام تر احرام دَ حج پورے۔ قرطبی وئیلی دی چه دَ تمتع څلور طریقے دی چه یو په هغے کښ اتفاقی ده باقی درے اختلافی دی۔ اوله طریقه دا ده چه دَ حج په میاشتو کښ دَ میقات نه احرام اُوتړی (هغه څوک چه آفاقی وی یعنی دَ میقات نه بهر اُوسیدونکی والاوی) او مکے ته داخل شی او طواف دَ بیت الله اوسعی دَ صفا او مروه اُوکړی بیا ځان حلال کړی (په حلق کولو یا قصر سره) بیا دَ میقات نه بهر نه وی وتلے او وطن ته واپس نه وی تلے تر دے پورے چه احرام دَ حج اُوتړی او اعمال دَ حج ادا کړی نو دا شخص متمتع دے او دا طریقه اتفاقی ده۔ دویمه طریقه قِران دے (په دے بانډے په اعتبار دَ معنیٰ لغوی سره اطلاق دَ تمتع کیږے شی) دَ قِران طریقه دا ده چه دَ میقات نه احرام دَ عمرے او دَ حج دواړو اُوکړی او بیا کاروته (افعال) دَ عمرے ادا کړی او ځان لا نه حلالوی تر دے پورے چه مناسک دَ حج هم ادا کړی او بیا ځان حلال کړی۔ دا صورت اګرچه اتفاقاً جائز دے پشان دَ اول لیکن په کیفیت کښ ئے اختلاف دے۔ لیکن اوله او دویمه طریقه په وجوب دَ هدی (قربانی کولو) کښ مشترک دی۔ دریمه طریقه دا ده چه دَ میقات نه احرام دَ حج اُوکړی لیکن کله چه مکے مکرمے ته داخل شی نو حج پریږدی او عمره اُوکړی او ځان حلال کړی تر دے پورے چه بیا احرام دَ حج اُوکړی۔ او په داسے طریقه کښ امر کړے وو نبی صلی الله علیه وسلم هغه صحابه کرامو ته چه دَ ځان سره ئے هدی نه وے راوړے چه دا احرام په عمرے سره فسخ (مات) کړئ او په دیکښ اختلاف دے صحیح دا ده چه دا طریقه خاص وه په واقعه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم پورے۔ څلورمه طریقه تمتع دَ محصر ده چه دَ حج احرام ئے

کړے وی لیکن دُشمن یۓ په دغه ورځوکښ دَحج کولو نه منع کړی تو بیا دے روستو دَحج دَ ورځو نه مکے ته لاړشی او عمره اُوکړی بیا دَکال پورے حصارشی په مکه مکرمه کښ تر دے چه حج اداکړی. دَ دے په صورت کښ اختلاف دے چه دا په تمتع کښ داخل دے او که نه. فَمَنْ تَمَتَّعَ، آه دلته معنیٰ دا ده چه فائده یۓ واخستنه په اعمالو دَعمرے سره او په یو سفر کښ یۓ دا عمره دَحج دَ اعمالو سره یوځائے کړه ( په طریقه دَ تمتع یا دَقِران سره فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ، په دے دم کښ اختلاف دے دَعلماؤ دَجمهورو په نیز دا دم جبر دے او دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا دم دَ نسک او دَ شکر دے. فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ، دا ذکر دَحکم دَ رخصت دے په وخت دَ نه موندلو دَهدی کښ په سبب دَ نیشتوالی دَ مال یا دَ ښاروی. او غوره دا ده چه درے روژے دَ ذالحجے دَمیاشت شپږم، اووم او اتم په نیسی او که نهم ورځے (دَعرفے ورځے) ته یۓ روستو کوی نو هم جائز دی او په دیکښ دَعلماؤ نور اقوال هم شته. وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ، په رجوع کښ دوه اقوال مشهور دی، اول دا چه خپل وطن ته واپس اُورسیږی. دویم دا چه فارغ شی دَ ورځ دَ منیٰ نه. دواړه جائز دی لیکن غوره اول قول دے په سبب دَ حدیث دَ مسلم چه په هغے کښ لفظ دے دَ (رَجَعَ إِلٰى أَهْلِهِ).

تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ، سوال:- دَ ذکر دَ درے او اووُه معلومیږی چه لس دی نو روستو عشره ذکر کولو کښ څه حکمت دے؟

جواب:- په دیکښ ډیر اقوال دی. اول قول دَ مبرد دے چه دا تاکید دے دَ پاره دَ دفع کولو دَ وهم چه دَ اووُه نه روستو نور عدد نیشته. دویم قول دَ ابن عرفه دے چه دَ عربو عادت دا دے چه تفصیلی حساب نه روستو اجمالی حساب ذکر کوی ځکه چه عرب په حساب یاندے ډیر نه پوهیدل. دریم قول دَ زجاج دے چه په دیکښ دفع دَ وهم ده چه واؤ په معنیٰ دَ اَوْ نه دے بلکه جمع مراد ده ځکه چه کله کله واؤ په معنیٰ دَ اَوْ سره راځی لکه مثنیٰ

وثلاث ورباع کښې واو په معنی د اَوْ سره دے۔ او لفظ د کاملة کښې فائده دا ده که څوک وهم اُوکړی چه عادت خو دا دے چه د بدل مرتبه (ثواب) د مبدل عنه نه کم وی نو کیدے شی چه د لسو روژو نیولو ثواب به د هدی نه کم وی نو په لفظ د کامله سره یې وهم دفع کړو یعنی د لسو روژو ثواب پوره او برابر دے د ثواب د هدی سره په وخت د عدم وجود د هدی کښې۔

ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ، د ذٰلِكَ په مرجع کښې دوه اقوال دی اول قول د جمهورو دے چه دا اشاره ده نیزدے ته چه مِنْ وجهِ لرے دے یعنی فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ. نو حاصل دا دے چه دم د تمتع او قِران واجب دے په آفاقی (بهرنه راتلونکو حاجیانو) باندے۔ نو معلومه شوه چه د مکے مکرمے او داخل د میقات خلق تمتع او قِران کولے شی لیکن په هغوی باندے دم واجب نه دے او آفاقی باندے په وخت د تمتع او قران کښې دم واجب دے۔ او دا دمِ جبر دے۔ دویم قول د امام ابوحنیفه رحمه الله دے چه ذالِكَ اشاره ده فمن تمتع آه ته یعنی تمتع او قِران په آفاقی خلقو پورے خاص دی او داخلی کسان تمتع او قِران نشی کولے۔ بنا په اول قول سره لِمَنْ کښې لام په معنیٰ د علیٰ سره دے لکه په دے قول د الله تعالیٰ کښې وَاِنْ اَسَاْتُمْ فَلَهَا۔

حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ، په دیکښې د علمائ مختلف اقوال دی۔ د امام مالک رحمه الله په نیز د دینه مراد صرف مکے والا دی او د امام شافعی رحمه الله په نیز مراد هغه څوک دی چه د مکے نه په مسافت د سفر سره لرے نه وی۔ او یو قول د هغه او امام احمد رحمه الله دا دے چه مراد د دینه حرم والا دی۔ او په نیز د امام ابوحنیفه رحمه الله مراد د دینه هغه څوک دی چه په میقات کښې داخل دی یا میقات کښې اُوسیږی۔ او لفظ د اَهْلُهٗ دلالت کوی چه مراد د دینه عارضی اقامت نه دے بلکه هغه څوک چه اصلی وطن او کلے یې مکه مکرمه وی۔ وَاتَّقُوا اللّٰهَ، مراد د دینه اطاعت کول دی په ټولو اوامرو

اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ فَمَنْ فَرَضَ

وخت دَ احرام دَحج دَ میاشتے معلومے دی ، نو هغه څوک چه فرض ئے کړو

فِيْهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ

په هغے کښ (په ځان باندے) حج تو نیشته دَ ښځو متعلق خبرےکول او نیشته نا فرمانی

وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا

او نیشته جګړه کول په حج کښ ، او هغه چه کوئ تاسو

مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ ؕ وَتَزَوَّدُوْا

څه دَ نیکئ عمل عالم دے په هغے باندے الله تعالیٰ ، او توخه واخلئ دَ ځان دَ پاره

فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى ز

ځکه چه یقینًا غوره توخه تقویٰ ده

وَاتَّقُوْنِ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿۱۹۷﴾

او ویرهٔ کوئ زما نه اے صفا عقل والو۔



او نواهیو کښ۔ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ، دا خاص تنبیه او تخویف دے مخالفت کوونکو دَ دے احکاموته۔ او ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه مراد دَ دیته هغه څوک دی چه دَ حدودو دَ الله تعالیٰ سپکوالے کوی. ځکه ئے لفظ شدید ذکر کړیدے۔
۱۹۷ هر کله چه مخکښ آیت کښ ذکر شو امر دَ اتمام دَ حج نو اُوس ئے دَ اتمام طریقے ذکر کوی۔ او هغه په دے آیت کښ درے اُمور دی۔ (۱) وخت دَ احرام دَ حج۔ (۲) ممنوعات دَ حج۔ (۳) امر په توښے اُوړلو سره۔ او په دیکښ رد دے په رسموتو دَ جاهلیت په باره دَ حج کښ۔ اول رسم دَ جاهلیت دا وو چه ټولے میاشتے به ئے دَ حج دَ احرام دَ پاره جائز ګنړلے (اللباب)۔ دویم رسم په حج کښ دا وو چه تقویٰ به ئے دَ محرماتو نه نه کوله۔ دریم دا چه توښه اُوړل به ئے ګناه ګنړله۔

اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ، په اتفاق دَ علماؤ سره په دیکښ تقدیر دَ کلام دے یعنی اَشْهُرُ الْحَجِّ اَشْهُرٌ، وقت الحج اشهر، وقت العمل الحج اشهر۔ غوره داسے ده چه اُوئیلے شی وقت احرام الحج اشهر ځکه چه افعال دَ حج خو په خاصو ایامو دَ ج کښ وی لیکن وخت دَ احرام دَ حج دَ میاشتو دَ حج نه شروع کیږی۔ هغه میاشتے شوال، ذوالقعده او لس شپے دَ ذوالحجے دی۔ یعنی چاچه دَ شوال نه مخکښ احرام دَحج کړے وی نو هغه باطل دے۔

سوال:۔ اَشْهُرٌ خو جمع ده او داخو دوه میاشتے نه پوره کیږی؟

جواب ۱:۔ په نیز دَ بعضِ علماؤ نو له میاشت دَ ذوالحجے شمارده یعنی دَ ذوالحجے دَ لسو ورځو نه چه چاروستو احرام دَ حج اُوتړلو نو صحیح دے لیکن تړیل کال پورے به په احرام کښ اُوسیږی۔

جواب ۲:۔ لس شپے دَ ذوالحجے مراد دی لیکن کله کل ذکر شی او مراد تری نه بعضِ وی۔

مَّعْلُوْمٰتٌ، یعنی مخکښ دَ ورود دَ شرع نه هم دغه میاشتے جاهلیت والو ته معلوم وے او شریعت په دیکښ دَ هغوی دَ معلوم موافق راغلے دے۔ یا داچه معلوم دی په بیان دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره۔ فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ، یعنی چاچه لازم کړو په ځان باندے حج کول په نیت کولو سره په زړه کښ او په احرام تړلو سره په عمل کښ او په تلبیه وئیلو سره په ژبه باندے (قرطبی)۔

او په دیکښ اشاره ده چه حج په شروع کولو سره فرض کیږی اگر چه نفلی وی۔ فِيْهِنَّ، فیها یئے نه دے وئیلے۔ مازنی وئیلی دی چه جمع کثرت دَ غیر عاقل پشان دَ واحد مؤنث کیدلے شی لیکن جمع قلت دَ غیر عاقل به جمع استعمالیږی په ضمیر کښ او اشهر جمع قلت ده او شهور جمع کثرت ده په ان عدة الشهور (الایة) کښ یئے ورپسے منها وئیلی دی۔ فَلَا رَفَثَ، اکثرو اهلِ علمو وئیلی دی چه دا په ظاهر کښ جمله خبریه ده لیکن په معنیٰ دَ نهی سره ده لیکن نهی یئے په صورت دَ خبر کښ دَ تاکید دَ پاره راوړے ده۔ یعنی دَ حاجی دَ حال نه لرے ده چه هغه دِ په حج کښ

دغه کاروته اُوکړي۔ او بعضو علماؤ وئيلي دي چه نفي پخپله معنیٰ سره ده نو مراد د آيت نه نفي د حج ده په وخت د دے دريو کارونو کښ يعني نفي شرعي د حج مراد ده اګرچه نفي وجودي يئے نيشته۔ او دا توجيه قرطبي ذکر کړے ده۔ او ابوحيان پکښ تفصيل کړے دے۔
رَفَثَ، په ديکښ ډير اقوال دي۔ اول قول دا چه رفث جماع ده۔ دويم دا چه ښځو ته فحش خبرے کول۔ دريم دا چه دا جامعه او شامله کلمه ده هر هغه فعل او قول ته چه سړے يئے د خپلے ښځے ته اراده کوي۔ وَلَا فُسُوْقَ، په ديکښ هم ډير اقوال دي۔ اول قول، ټول ګناهونه کبيره مراد دي۔ (۲) ګناهونه په وخت د احرام کښ لکه ښکار کول وغيره۔ (۳) ذبح په نوم د غير الله۔ (۴) په ناکاره نومونو او لقبونو سره بوبل يادول۔ (۵) کنځل کول۔ نو دا لفظ دے ټولو ته شامل دے۔ وَلَا جِدَالَ، په ديکښ هم ډير اقوال دي۔ (۱) جګړه کول د يو مسلمان سره تر دے چه هغه غُصه شي او کنځل اُوکړي (۲) کنځل کول (۳) اختلاف کول په مواضعو د وقوف (ځايونو) د اُودريدلو کښ۔ (۴) اختلاف کول په ورځو د عرفے او د حج کښ۔ (۵) فخر کول په خپلو خپلو مشرانو سره۔
فائده:- په دے دريو واړو کښ اشاره ده چه حج کوونکي لره اخلاق جميله پکار دي۔ او د دے د پاره علاج د قوتِ شهوانيه کمزوري کول دي په لفظ د لَا رَفَثَ کښ او قوت نفسانيه (نفس اماره) کمزورے کول په لفظ د وَلَا فُسُوْقَ سره۔ او قوتِ وهميه شيطانيه کمزورے کول په لفظ د وَلَا جِدَالَ سره۔ نو اشاره ده چه دا دره واړه قوتونه منشا او اسباب دي د پاره د اخلاق رزائيلو او درے واړه هر وخت کښ منع دي ليکن په حالت د حج کښ د دے د منعے زيات تاکيد دے۔ ځکه چه حج کوونکے د الله تعالیٰ د کور سره حاضر دے نو هغه له بل طرف ته هيڅ توجه جائز نه ده سيوا د عبادت او خشوع الی الله نه۔
وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ، روستو د ذکر د منهيا تو نه اوس ترغيب ورکوي په ټولو اعمالو د خير باندے۔ خير هر هغه

قول او عمل دے چه د ښځې حسن په دلیل شرعی سره ثابت وی او خصوصاً دلته مراد د خیر نه په مقابله د رفث کښ خائسته کلام دے او د فُسُوْق په مقابله کښ طاعت د الله تعالیٰ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د جِدَالَ په مقابله کښ موافقت او رضا ده۔ يَعْلَمْهُ اللّٰهُ، په دیکښ اشاره ده لوئے جزاء او ثواب ته د الله تعالیٰ د طرف نه۔ وَتَزَوَّدُوْا، د ابن عباس رضی الله عنهما نه بخاری او ابوداؤد وغیره روایت نقل کړیں ے چه دا رد دے په یمن والو باندے چه هغوی به حج له راتلل نو د ځان سره به یئے توښه نه راوړله (او دا توښه نه راوړل یئے ثواب ګڼړلو او وئیل به یئے چه مونږ توکل کوونکی یو۔ او بل روایت کښ دی چه هر کله به دوی اُوبړی شول نو د خلقو نه به یئے سوال کوؤ د حج په نوم باندے۔ نو د هغوی په ردکښ نازل شو چه تَزَوَّدُوْا۔ نو دا حکم عام دے هر سفر ته او بالخصوص سفر د حج، علم او نور اعمالِ صالحه ته۔ او مقدار د زاد (توښے) دومره پکار دے چه انسان په هغې سره د سوال کولو نه بچ شی او دغه مقدار د هرچا د خپل حال سره مناسب پکار دے۔ دا دلیل دے چه توښه د ځان سره اُوړل د توکل منافی نه دی۔ د ابن جوزی نه نقل دی چه ابلیس په یو قوم باندے تلبیس اچولے وو چه هغوی دعوٰی د توکل کوله او د حج د پاره به بغیر د توښے نه تلل او وئیل به یئے چه دا توکل دے لیکن دا کار یئے خطا وو۔ فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى، په دیکښ د مفسرینو ګڼړ اقوال دی اول دا چه مراد د تقوٰی نه د ټولو حراموڼه بچ کیدل دی نو مراد دا شو چه د زادِ ظاهری سره تقوٰی (چه زادِ حقیقی دے) یوځائے کړئ۔ دویم قول، د دینه مراد عامه شرعی تقوٰی ده یعنی د توښے د دُنیا سره توښے د آخرت ته ترغیب دے۔ د دے د پاره چه ټوله توجه صرف دُنیا ته قائمه نه شی۔ دریم قول د تقوٰی نه مراد دومره توښه د ځان سره اُوړل دی چه انسان پرے د سوال کولو نه بچ کیږی۔ وَاتَّقُوْنِ يٰۤاُولِي الْاَلْبَابِ، اَلْبَابِ جمع د لُبّ ده خالص د هر څیز ته

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا

نیشته په تاسو باندے ګناه چه لټوئ تاسو

فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ ۚ فَإِذَا أَفَضْتُمْ

ګټه دَ تجارت دَ طرف دَ رب ستاسو نه، نو هر کله چه راکوزشئ تاسو

مِّنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُوا اللَّهَ

دَ عرفات نه نو یادوئ الله تعالیٰ لره

عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ۖ

دَ مشعر حرام په خوا کښ (چه مزدلفه ده)

وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَاكُمْ ۚ وَإِنْ كُنْتُمْ

او یادوئ الله تعالیٰ لکه چه خود ته ئے کړیدۀ تاسو ته او یقینًا وئ تاسو

مِّنْ قَبْلِهِ لَمِنَ الضَّالِّينَ ﴿۱۹۸﴾

مخکښ دَ دے نه خامخواه دَ ګمراهانو نه۔

وئیلے شی۔ او دلته مراد هغه عقل دے چه صفا وی دَ خیرو دَ وهم نه۔ امر دَ تقوٰی اګرچه ټولو عقل والو دَ پارۀ عام دے لیکن تخصیص دَ اولی الالباب دَ تاکید دَ پاره دے۔ اشارۀ ده چه په چا کښ تقوٰی نه وی نو دَ هغه دَ عقل سره غلط وهمونه ګډ شوی وی۔

۱۹۸ په دے آیت کښ دَ اتمام دَ حج دَ پاره درے اُمور ذکر کوی۔ (۱) رد دَ رسم چه په حج کښ دَ تجارت حرام ګنړل دی۔ (۲) وقوف دَ مزدلفے۔ (۳) په هغے کښ دَ الله تعالیٰ ذکر کول۔

ربط:۔ دَ دے آیت دَ مخکښ سره په یو څو وجوهو سره دے۔

۱:۔ جاهلیت والو تجارت کول په سفر دَ حج کښ حرام ګنړل۔ او صاحب اللباب دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړے دے چه دَ عرب وخه خلقو به دَ حج په موسم کښ تجارت کول حرام ګنړل او تاجر فی الحج ته به ئے الداج وئیلو یعنی

(دَ چرګ پشان را تولولو کسب کړ) او سوال کول به دوی جائز ګڼړلو دَ دے وجے نه چه توخه یه ورسره نه وه او تجارت به یې نه کوو نو سوال به یې کوو- نو دے آیت کښ یې دَ دے رسم رد اُوکړو.
۲:- هرکله چه جدال حرام شو او تجارت کله کله رسیږی جدال ته نو دَ لاجدال نه وهم پیدا شو چه تجارت کول هم په حج کښ ګناه دے نو دَ دغه وهم تردید اُوشو.
لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ، ابوحیان وائی چه دلته جناح په عامه معنیٰ سره دے که مقتضا دَ زورتے وی او که دَ ګناه وی- یعنی ګناه او زورنه دواړه نیشته- اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ، ابتغاء طلب دَیو څیز دے په کوشش سره- فَضْلًا تجارت کول او کرایه حاصلول وغیره- او فضل په دے معنیٰ سره په قرآن کښ سورة مزمل ۲۰ سورة قصص ۷۳ کښ هم دے- او دَ ابوجعفرنه روایت دے چه په دیکښ نورکارونه دَ خیر هم داخل دی لکه امداد کول دَ کمزوری سره خوراک ورکول اُوبړی ته وغیره-
فائده:- په دیکښ په سفر دَ حج کښ تجارت کولو ته ترغیب نیشته بلکه ذکریې دَ دے دَ پاره دے چه جائز یې اُوګڼړئ- او دَ ضرورت په وخت کښ تجارت کوئ چه دَ سوال کولو نه بچ شئ-
فَإِذَآ أَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ، أَفَضْتُمْ دَ فَاضَ الانَاءُ نه اخستلے شویدے چه لوخے دَ اُوبو نه ډک شی او په غاړه تربته بهیږی- دلته په معنیٰ دَ راکوزیدلو دے- یعنی هرکله چه په عرفات کښ په اذکارو او ادعیو باندے سره ماړه شئ او بیا راکوز شئ دَ هغے نه- او افاضه استعمالیږی په راتللو کښ په ډیر والی سره- اشاره ده چه دَ عرفات نه دَ نورو خلقو سره یوځائے شریک راکوزیږئ-
عرفات:- دا نوم دَ یو خاص زمکے دے دَ کعبے نه مشرقی جانب ته او دا نوم دَ مفرد دے اګرچه په وزن دَ جمع مؤنث دے- او په دے لفظ کښ ډیر اقوال دی- اول قول دا چه لفظ مرتجل دے یعنی دَ چا نه مشتق نه دے- دویم دا چه دا لفظ دَ عرف نه اخستلے شویدے او عرف خوشبوته وائی- دریم دا چه دا دَ عَرْفٌ نه دے په معنیٰ

ډاوچتوالی دے۔ تحلورم قول دا د معرفت نه دے په معنیٰ د پېژندلو سره۔ او په دے وجه تسمیه کښې هم مختلف اقوال دی چه هغه صاحب اللباب او بعض نورو مفسرینو په تفصیل سره لیکلی دی. او حدیث صحیح سره ثابت ده چه دارا کوزیږل د عرفات نه د تمر پریوتلو نه روستو دی د عرفے په ورځ یا نسے (چه هغه نهمه ورځ د ذوالحجے ده) او د ماښام مونځ به هلته یا په لار کښې نه ادا کوی بلکه په مزدلفه کښې به یئے د ماسخوتن د مونځ سره یو ځائے کوی۔

فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ، دا دلیل دے چه وقوف په مزدلفه کښې واجب دے. او په فرضیت کښې یئے د اهل علمو اختلاف دے اَلْمَشْعَر، ځائے د علامت نه وئیلے شی او دا هم د معالمو د حج نه دے۔ او مراد د دینه مزدلفه ده۔ او مزدلفه ټوله موقف دے اګرچه د مسجد په خوا کښې اودریدل غوره دی۔

وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰكُمْ، سوال :- امر کول په ذکر سره دوه کرته ولے ذکر شو جواب :- په دواړو کښې فرق دے په ډیرو وجوهو سره -۱:- اول ذکر په معنیٰ د جمع کولو د مونځ د ماښام او ماسخوتن دے په وخت د ماسخوتن کښې دویم مونځ د صبا په مزدلفه کښې په تیاره کښې -۲:- اول ذکر په ژبه سره دویم ذکر په زړه سره -۳:- اول ذکر د الله تعالیٰ په تسبیح او حمد سره او په اسمائ صفاتو د الله تعالیٰ سره او دویم شکر کول د نعمتونو د الله تعالیٰ -۴:- اول ذکر مطلق ذکر شو دویم ذکر د هغے تقیید یئے اوکړو په هدایت سره۔ ۵:- اول مطلق ذکر کول دی دویم دوام د ذکر دے۔

كَمَا هَدٰكُمْ، کاف په معنیٰ د تشبیه دے یا په معنیٰ د علت سره دے په دے قید کښې اوله فائده دا ده چه نوموته او صفات د الله تعالیٰ توقیفی دی نو معنیٰ دا ده چه ذکر د الله تعالیٰ په هغه اسمائ او صفاتو سره کوئ چه هغه په وحی سره ثابت وی (اللباب)۔ دویمه فائده چه لام د پاره د علت شی یعنی د وجے د هدایت د الله تعالیٰ نه تاسو ته نو د هغه ذکر او شکر کوئ۔ دریمه فائده: هر ذکر الٰهی

ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ

بیا (وادرئ) راکوزیگئ دَ هغه ځائے نه چه راکوزیگی دَ هغے نه عام خلق

وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٩٩﴾

او بخنه غواړئ دَ الله تعالیٰ نه . یقیناً الله تعالیٰ بخنه کوونکے دے رحم کوونکے دے۔

په شرعی طریقے سره ضروری دے که په جهر (اُوچت آواز) سره ثابت وی نو په جهر سره پکار دے او که په جمع سره ثابت وی نو په جمع پکار دے او که په بیته او انفرادی وی نو هغسے پکار دے۔ وَإِنْ كُنْتُمْ مِنْ قَبْلِهِ لَمِنَ الضَّالِّينَ، دا تاکید دے دَ هَدٰكُمْ یعنی بغیر دَ هدایت دَ الله تعالیٰ نه ضلال دے۔ وَإِنْ، په دیکښ دَ نحویانو اختلاف دے دَ بصریانو په نیز إِنْ مخفف دے دَ مثقل نه یعنی إِنَّهُ كُنْتُمْ او لام دَ پاره دَ ابتدا یا دَ فرق دے۔ او په نیز دَ فراء بغوی إِنْ په معنیٰ دَ ما نافیه دے او لام په معنیٰ دَ إِلَّا سره دے۔ او په نیز دَ کسائی یا دے په إِنْ کښ تفصیل دے که په جمله فعلیه باندے داخل وی نو په معنیٰ دَ قد سره دے او که په جمله اسمیه باندے داخل وی نو پشان دَ قول دَ فراء بغوی دے۔ او په نیز دَ اخفش إِنْ وصیله دے او لام دَ پاره دَ تاکید دے (ټولے معانے جائز دی)۔ مِنْ قَبْلِهِ، ضمیر هدی ته راجع دے په ضمن دَ هَدٰكُمْ، یا قرآن ته راجع دے۔ یا رسول ته راجع دے یعنی مخکښ دَ نازلولو دَ قرآن نه۔ یا مخکښ دَ رالیږلو دَ آخری رسول نه۔

سـ۱۹۹ دَ دے آیت په تفسیر کښ دوه اقوال دی۔ اول قول دَ عامو مفسرینو دے۔ او وارد دی په حدیث دَ بخاری او ترمذی کښ چه مراد دَ دے افاضے نه افاضه ده دَ عرفات نه مزدلفے ته۔

سوال:۔ افاضه دَ عرفات نه مخکښ آیت کښ ذکر شوه نو دوباره ذکر ته څه ضرورت وو؟۔

جواب ا:۔ اول صرف په طریقه دَ اخبار سره ذکر وو چه دَ هغے نه فرضیت نه ثابتیدلو نو اوس ئے په طریقه دَ امر سره ذکر کوی

دَ پاره دَا اقا دے دَ فرضیت دَ وقوفِ عرفه - **جواب ۲:**- دا رد دے په رسم دَ جاهلیت باندے چه دا رسم په قریشو او دَ هغوی په تابعدارو کښې وو- هغوی ځان له حُمُس او قُطَّانُ بیت الله نوم کیخودلے وو او وئیل به یې چه خاص په موږ باندے دا احرام دی چه په ایامُ دَ حج کښې دَ زمکے دَ حرم نه بهر اُوځو- او زمکه دَ عرفات دَ حرم دَ حدودو نه بهر ده نو نور خلق به په ورځ دَ عرفے عرفات ته تلل او دوی به په دغه ورځ په مزدلفه کښې په نیزدے پوله دَ حرم باندے وقوف کوو او دا په هغوی کښې یو رائج رسم وو نو په دے آیت کښې په دے رسم باندے صراحتاً رد کول مقصد دی.

**سوال:**- لفظ ثُمَّ خو دلالت کوی په روستو والی باندے په اعتبار دَ زمانے سره نو افاضه دَ عرفات خو دَ مزدلفے نه روستو نه ده؟

**جواب:**- دلته ثُمَّ دَ تعقیب ذکری (دَ ترتیب) دَ پاره دے- دَ تراخی دَ زمان دَ پاره نه دے او دا دَ ډیرو مفسرینو قول دے- یا ثُمَّ په معنیٰ دَ واو سره دے په نیز دَ بعضِ نحویانو صرف عطف دَ یو کلام دے په بل باندے بغیر دَ تراخی او ترتیب نه- یا ثُمَّ دَ پاره دَ تفاوت دَ ماقبل او مابعد دے- دا قول دَ زمخشری دے- دویم قول دَ ضحاک نه نقل دے او هغه ابن جریر غوره کړیدے چه مراد دَ دینه افاضه ده دَ مزدلفے نه منیٰ ته په یوم النحر کښې او ثُمَّ په خپله معنیٰ سره دے لیکن هرکله چه دَ اول قول دَ پاره حجت مرفوع صحیح حدیث شته او دَ دویم دَ پاره نیشته نو اول قول صحیح دے نو بنا په قول اول باندے ثُمَّ اَفِیضُوا خطاب دے قریشو او دَ هغوی تابعدارو ته-

مِنْ حَیْثُ اَفَاضَ النَّاسُ، دَ الناس نه مراد عرب دی یا ابراهیم علیه السلام او دَ هغه تابعداران دی او په دے لفظ کښې اشاره ده قباحت دَ عمل دَ قریشو ته- یعنی ستاسو دا رسم دَ ملتِ ابراهیمیه نه خلاف دے- وَاسْتَغْفِرُوا اللهَ، په دیکښې مراد استغفار دے دَ هغه ګناه (رسم) نه چه قریشو کړے وو په خلاف دَ ملت ابراهیمیه کښې- یا مراد دَ دینه عام خطاب دے که دَ چا نه صریح ګناهونه

فَاِذَا قَضَيْتُمْ مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ

نو کله چه پوره کړئ تاسو عبادات د حج ستاسو نو یاد وئ الله تعالیٰ لره

كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا ط

پشان د یادولو ستاسو پلاران ستاسو یا زیات د هغې نه په ذکر سره،

فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا

نو بعض د خلقو نه هغه څوک دی وائي اے ربه زمونږ راکړے مونږ ته

فِى الدُّنْيَا وَمَا لَهٗ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ﴿۲۰۰﴾

په دنیا کښ او نه وی ده لره په آخرت کښ هیڅ حصه د ثواب۔

سرزد شوی وی نو په هغه باندے استغفار واجب دے او که چانه گناه نه وی شکاره شوے لیکن د بنده د عجز د وجے نه احتمال د تقصیر په واجباتو کښ شی د دے وجے نه استغفار ضروری دے۔ او داپشان د هغه استغفار دے چه په حدیث د مسلم کښ دی چه نبی صلی الله علیه وسلم به د فرض مونځ د سلام گرځولو نه روستو درے ځله استغفار غوښتلو۔

فائده:۔ مِنْ حَيْثُ دلته د مکان د پاره دے او احتمال د زمان هم لری یعنی مکان چه عرفات دے او زمان رچه په سنت سره ثابت دے) چه روستو د پرېوتلو د نمر نه دے او مخکښ د مغرب د مونځ نه دے۔ او لفظ حَيْثُ چه په فعل ماضی باندے داخل شی نو ماضی حقیقتًا مراد کیږے شی او په معنیٰ د مستقبل باندے هم کیږے شی دلته دواړه معنے صحیح دی (ابوحیان)۔

ﷺ۲ په دے آیت کښ وقوف د منیٰ ته اشاره ده او د حج کوونکو یو قسم چه بد بخت دی ذکر کوی او په دیکښ رد دے په یو رسم د جاهلیت باندے چه هغه فخر کول وو په مشرانو باندے او ورسره د هغوی مفاخر ذکر کول ئ چه ځان د پاره یه ئے د الله تعالیٰ نه غوښتل۔

فَإِذَا قَضَيْتُم مَّنَاسِكَكُمْ، معنى دَ قضٰی دَ دے سورت ۱۱۷ کښ ذکر شوی دی دلته مراد دَ قضا نه پوره کول او ادا کول دی - ابو حیان او صاحب اللباب ذکر کړی دی چه لفظ دَ قضی دَ خپل ځان دَ کار سره ذکر شی نو ادا او پوره کول مراد وی لکه په سورة حم سجده ۱۲، سورة جمعه ۱۰ کښ دی. او چه دَ کار دَ غیر سره ذکر شی نو مراد تری نه الزام یا اعلام وی. مَنَاسِكَ، کښ دلته درے اقوال دی - (۱) عبادات خاصه دَ حج - (۲) ځایونه دَ عبادت - او مضاف پټ دے یعنی اعمال مناسککم - او په دواړه احتمالونو سره مراد دلته اکثر هغه اعمال دی چه دَ منٰی دَ وقوف پورے دی - (۳) ذبح او نحر کول په منی کښ روستو دَ ویشتلو دَ جمرهٔ عقبه نه - او په دے قضاءِ مناسک کښ دوه اقوال دی اول قول دَ قرطبی دے چه مراد دا دے چه هر یو متسك ادا کوئ نو وروسته دَ هغے ذکر خاص کوئ یعنی ذکر و دعا دَ عرفات، او ذکر و دعا دَ مزدلفے او دَ طواف او دَ سعی - نو مناسك نه مراد هر یو متسك دے جدا جدا - دویم قول دَ عامو مفسرینو دے چه دَ طواف او سعی او وقوف عرفه او مزدلفه نه فارغ شئ او منٰی ته راشئ نو دَ الله تعالیٰ شکر او دَ هغه عظمت ذکر کوئ - او هغه تکبیر دَ رمی دَ جمرهٔ عقبه (ویشتل دَ لوئے شیطان) او تکبیر دَ ذبحے ته شامل دے - فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ، په تشبیه دَ ذکر دَ الله تعالیٰ دَ ذکر دَ آباؤ سره ډیر اقوال دی - اول قول دَ جمهورو مفسرینو دے چه دَ حج په مواقفو کښ او په منٰی کښ جاهلیت والو به دَ خپلو مشرانو ذکر په کثرت او په فخر سره کوو په طریقه دَ شعرونو او دَ نثر سره نو حاصل دا شو چه په دا سے مواقفو کښ ذکر دَ الله تعالیٰ په کثرت او په عظمت سره کوئ - دویم قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما او عطاء او ضحاك او ربیع رحمهم الله نه قرطبی نقل کړیدے چه دَ وړوکوالی په وخت او په تکلیف رسیدلو سره او دَ محبت دَ وجے نه اکثر آواز کیږی چه اے ځما پلاره (اے دادا) یا اے ځما مورے - نو مقصد دا دے چه تاسو په وخت دَ تکلیف کښ

او دَ محبت په وجه یا الله وایئ او امداد صرف دَ الله تعالیٰ نه غواړئ۔
سوال:۔ دَ دے تشبیه نه په دواړو قولو نو سره معلومیږی چه دغه عمل دَ جاهلیت او دَ حال دَ وړوکوالی اُوس هم جائز دے؟۔
جواب:۔ تشبیه دَ جواز دَ پاره مستلزم نه ده په دلیل دَ روستو لفظ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا چه په هغے سره فرق ذکر کوی، هاں دَ وړوکوالی په حال کښں انسان مکلف نه دے لیکن مور او پلار نه پکار دی چه په وړوکوالی کښں دَ خپل بچی عادت په لفظ دَ یا الله سره جوړ کړی (او دغسے نور شرعی او اسلامی الفاظ دِ ورته زده کوی په ځائے دَ دے چه کنځل او بے خبرے ورته ښائی) دے دَ پاره چه دَ شرک او دَ ګناه کولو ذریعه او عادات جوړ نشی۔ دریم قول هم دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه سیوطی وغیره نقل کړیدے چه هرکله دَ یو انسان مور او پلار په بدۍ سره ذکر کیږی او هغوی ته کنځلے کیږی نو انسان دَ غیرت او دَ غُصے په وجه دَ مور او پلار طرفداری کوی او دَ هغوی دَ بے حُرمتیٔ جوابونه کوی نو مقصد دا دے چه څوک دَ الله تعالیٰ بے حرمتی کوی یعنی هغه ته دَ ولد یا شریک نسبت کوی یا دَ هغه دَ رسول او دَ کتاب او دَ دین بے عزتی او سپکاوے کوی نو تاسو دَ هغے جوابونه کوئ او دَ هغے نه دفاع کوئ۔ څلورم قول دا دے چه دا تشبیه په یو والی کښں ده لکه چه هر انسان دَ ځان دَ پاره دَ یو پلار ذکر کوی (که څوک ورته دَ پلار په شراکت کښں دَ دویم پلار ذکر یا کنځل کوی نو سخت بد یئے ګنړی) نو دارنګ دَ الله تعالیٰ ذکر په یو والی او توحید سره ضروری دے شریک ورسره مه ګنړئ۔ پنځم قول دَ ابن الانباری نه نقل دے چه جاهلیت کښں به خلقو په خپل پلار باندے قسم کوو او هغه قسم به یئے لویے قسم ګنړلو نو او وئیلے شو چه قسم په الله تعالیٰ باندے کوئ دا تعظیم په الله تعالیٰ پورے خاص دے۔
اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا، اَوْ دَ پاره دَ تخییر او دَ اباحت دے سرهٔ دَ ترقیٔ نه نو په معنیٰ دَ بل سره دے۔ نو په اول قول او دویم کښں دَ اشدیت مقصد دا دے چه ذکر دَ پلار نو تاسو په مواقفو کښں په کثرت سره

کوئ یا په وړوکوالی کښ کوئ لیکن ذکر د الله تعالیٰ به په دوام سره کوئ په یوحالت پورے به یئ نه خاص کوئ تو اَشَدَّ په معنیٰ دَ ادوم (همیشه) دے - په دریم قول کښ اشدیت دا دے چه کله کله دَ انسان مور او پلار لائق دَ بے عزتئ اودَ ملامتیاوی اوګیږیشی لیکن الله تعالیٰ هر وخت پاک دے دَ بے عزتئ، بے احترامئ، اعتراض او ګنځلو نه- او څلورم قول کښ اشدیت دا دے چه کله دَ مجاز په طور سره دَ اَبٌ (پلار) اطلاق په تره او په نیکه باندے کیږی شی لیکن دَ الله تعالیٰ په باره کښ دَ تعدد (ډیروالی) او شریک او مشابه هیڅ احتمال نیشته- او پنځم قول کښ اشدیت دا دے چه کله به دوی قسم په پلار ګوو او کله په الله تعالیٰ باندے لیکن قسم کول خاص دی په الله تعالیٰ پورے په غیر الله باندے قسم کول حرام دی. او هر کله چه دَ لفظ دَ اشدیت دغه معانی دی دَ دے وجے نه یئ لفظ اَکْثَرُ نه دے استعمال کړے.

اعراب:- په لفظ دَ اَشَدَّ کښ دوه احتماله دی- اول دا چه دا مجرور دے او عطف دے په ذِکْرِکُمْ باندے- او عطف په مجرور باندے بغیر دَ اعادے دَ حرف جر نه دَ بعضے نحویانو په نیز جائز دے. او تقدیر دا دے، اَوْکَذِکْرِکُمْ اَشَدَّ ذِکْرًا، یا عطف دے په کُمْ باندے چه مضاف الیه دے په کَذِکْرِکُمْ کښ او تقدیر دَ عبارت دا دے کَذِکْرِ قُرَیْشٍ اٰبَاءَهُمْ اَوْ قَوْمٍ اَشَدَّ ذِکْرًا، دویم احتمال دا دے چه دا منصوب دے او دَ هغے پنځه وجوه دی-۱:- دا معطوف دَے په آباءکم باندے- دا قول دَ زمخشری دے-۲:- دا معطوف دے په محل دَ کاف باندے په کذکرکم کښ او تقدیر دَ عبارت دا دے، ذِکْرًا کذکرکم آباءکُمْ اَوْ اشدًا، دا قول دَ ابوعلی او ابن جنی دے-۳:- دا منصوب دے په تقدیر دَ فعل سره یعنی فاذکروه ذکرًا اشد مِن ذکرکم آباءکم، دا قول دَ مکی دے-۴:- دیکښ فعل دَ کون پټ دے یعنی، کونوا اشد ذکرالله من ذکرکم آباءکم، دا قول دَ ابوالبقاء دے-۵:- دا منصوب دے بنا په دے چه حال دے دَ ذکرًا نه- او په دے وجوهو کښ اعتراضات او جوابات ابوحیان

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَا اٰتِنَا فِي

او بعض د دوی نه هغه څوک دی چه وائی اے ربه زمونږ راکړے مونږ ته په

الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ

دنیا کښ ښائسته ژوند او په اخرت کښ

حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿٢٠١﴾

ښائسته ژوند او بچ اوساتے مونږ د عذاب د اور نه ۔

او صاحب اللباب ذکر کړی دی۔

فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا، په دیکښ د حج والو تقسیم ذکر کوی دوه قسموتو ته۔ اول قسم دنیا پرست بے بخت دے لکه چه مشرکانو د عربو به د خپلو پلارانو مفاخر دُنیویه او او چتوالے ذکر کړو نو بیا به یئے دُعا غوښتله چه یا الله تعالیٰ دغه اسباب د دُنیا او مالونه مونږ له هم راکړے۔ او دا وجه د ربط ده د مخکښ سره۔ او دا مَنْ يَّقُوْلُ اګرچه کافران وُو لیکن په دیکښ هغه مسلمانان چه د دُنیا طلبګاروی هم داخل دی۔ (قرطبی)

او مفعول د اٰتِنَا پټ دے یعنی ما نُرِيْدُ او مَطْلُوْبَنَا۔

وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ، دا جمله خبریه په مقصد د نهی سره ده یعنی دا سے دُعا مه غواړئ چه د آخرت ذکر پکښ نه وی۔ او که مراد په دیکښ کافران وی نو د هغوی خو په آخرت کښ هیڅ برخه د ثواب نیشته۔ او که مراد په دیکښ مسلمانان وی نو د نفی د خلاق (برخے) درے توجیه دی اول دا چه په دیکښ روستو عبارت پټ دے یعنی اِلَّا اَنْ يَّتُوْبَ۔ دویمه توجیه دا چه اِلَّا اَنْ يَّعْفُوَ اللّٰهُ عَنْهُ۔ دریم دا چه هغه خلاق چه د کاملو مؤمنانو د پاره وی په آخرت کښ (نو هغه د دوی د پاره نیشته)۔ او دا سے مضمون په سورة شوریٰ ۲۰ کښ هم راغلے دے۔

خلاق په اصل کښ د خَلُقَ نه اخستلے شوے دے په معنیٰ د لیاقت۔ او معنیٰ د لیاقت د یو څیز مستلزم ده نفاست (عمده والی) د برخے

دَ هغې لره۔ تو خلاق په برخه دَ خیر او نفیس کښې استعمالیږی۔ او داسې په دې سورت ۲۰۰ کښې هم تیر شوی دی۔
۲۰۱ په دې آیت کښې دَ حج کوؤنکو دویم قسم ذکر کوی یعنی نیک بخت۔
فِی الدُّنْیَا حَسَنَةً وَّ فِی الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً، ابن کثیر وئیلی دی چه په دې دُعا کښې هر خیر دَ دُنیا طلب کول او دَ هر شر نه بچکیدل داخل دی۔ ځکه چه حَسَنَه په دُنیا کښې هر دُنیوی مطلوب ته شامل دے لکه عافیت، روغ صحت، فراخه کور، نیکه او خوش اخلاقه ښځه، دَ رزق فراخی، نفع ورکوونکے علم، نیک او مقبول عمل، آسانه او نرمه سورلی او خائسته تعریف او نیک اولاد وغیره۔ (دا دَ مفسرینو په مختلف عبارا تو کښې موجود دی)۔ او حسنه دَ آخرت هغه دخول دَ جنت، دَ فزع اکبر نه په امن کیدل او آسان حساب وغیره ته شامل دے۔ تو په دیکښې ټول انعامات دَ آخرت او خیر داخل دی۔
وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ، په دیکښې دَ اُور دَ جهنم نه دَ بچ کیدلو ټولو اسبابو آسانیدلو ته اشاره ده یعنی دَ حرامو عام ګناهونو او شبهاتو نه بچکیدل۔ دَ قاسم نه روایت دے چه چا لره الله تعالیٰ شکر ګزار زړه او ژبه ذکر کوونکے او صبرناک بدن ورکړو نو ده له دَ دُنیا او آخرت حَسَنَه ورکړے شوه (ابن کثیر) دَ عوف نه نقل دے چه چا له الله تعالیٰ اسلام، قرآن، اهل و مال ورکړو نو ده له دَ دُنیا او آخرت حسنه ورکړے شوه (معالم)۔
**سوال:-** دلته حسنة نکره ده په سیاق دَ اثبات کښې او داخو عموم نه غواړی؟۔
**جواب:-** حسنه په اصل کښې صفت دے دَ موصوف پټ او دا صفت غالبه دے موصوف ئې همیشه محذوف وی۔ او موصوف ئې مَعِیْشَة او حیٰوة او عطیة حسنة دے۔ او په دے معنی سره حسنه ماقبل ټولو معنو ته شامل ده اګرچه نکره ده۔
**سوال:-** دائې ولے معرفه نه ذکر کوله؟۔
**جواب ا:-** په معرفه کښې کله احتمال دَ تخصیص وی چه الف لام

أُولَٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّمَّا كَسَبُوا ۚ

دغه کسان دوی لره حصه ده د هغه عمل د وجې نه چه دوی کړې دی

وَاللَّهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ (۲۰۲)

او الله تعالیٰ زر حساب کوونکے دے۔

النصف

عهدی وی۔ **جواب ۲**:۔ په دیکښ ادب د داعی دے یعنی اے الله تعالیٰ ماله هغه حسنه راکړے چه ستا د قضا او قدر سره موافق وی۔
**سوال**:۔ هر کله چه لفظ حسنه ټول خیر ته شامل وو نو رقِنَا عَذَابَ النَّارِ) بیے ورپسے ولے ذکر کړو؟۔
**جواب**:۔ جنت بعض مسلمانانو ته ګناهګارو) ته هله حاصلیږی چه څه وخت د پاره اُور د جهنم کښ داخل شی او د خپلو ګناهونو عذاب تیر کړی لیکن داخو مطلوب نه دے نو د دے وجې نه دغه الفاظو کښ اشاره اُوشوه چه اول دخول د جنت مراد دے۔ او په دیکښ حسنه کامله او خیر کامل دے۔
۲۰۲۔ اُولَٰٓئِكَ، په دیکښ دوه احتماله دی اول دا چه دا خاص دویم قسم ته راجع دے او دا په مقابل د مَالَهُ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ کښ دے۔ یعنی اول فریق د پاره آخرت کښ حصه د ثواب نیشته او دویم فریق له پوره حصه ده۔ دویم احتمال دا دے چه دا راجع دے دواړو فریقو ته او نصیب عام دے ثواب او عقاب دواړو ته شامل دے او مِمَّا كَسَبُوا هم عام دے دواړه قسمه عملو ته شامل دے۔
په مِمَّا کښ مِنْ اجلیه دے او ما مصدریه یا موصوله دے۔
وَاللَّهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ، حساب په اصل کښ پوره شمارلو ته وئیلے شی او پوره شمار کول خو مخلوق زر نشی کولے ځکه چه هغه خود لیکلو او د شمارلو اسبابو ته محتاج وی او الله تعالیٰ دغه اسبابو ته هیڅ احتیاج نه لری۔ او د دے په مقدار کښ مختلف روایات راغلی دی۔ مقدار د لوشلو د بیزے، مینځنئ وقفه د دوه لوشلو د اُوښے، رپ د سترګے، او په یو روایت کښ دی چه مقدار د یو مؤمن د فرض مونځ ادا کولو د وخت۔ او یل روایت کښ دی چه

وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ ؕ

او یادوی الله تعالیٰ په ورځو شمارلے شوؤ کښې

فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ

نو هغه څوک چه تادی کوی په پوره کولو دَ دوه ورځو کښې نو ګناه نیشته

عَلَيْهِ ۚ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۙ

په هغه باندے او هغه څوک چه روستو شو (دریمے ورځ ته) نو ګناه نیشته په هغه باندے

لِمَنِ اتَّقٰى ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ

دَ هغه چا دَپاره چه ویره کوی دَ الله تعالیٰ نه او ویره کوئ دَ الله تعالیٰ نه

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲۰۳﴾

او پوهه شئ چه یقینًا تاسو به خاص الله تعالیٰ ته جمع کیدلے شئ۔

دَ ټول مخلوق حساب به دَ دُنیا دَ ورځے ترغرمے پورے ختم کړے شی۔ قرطبی وئیلی دی چه په دیکښې اشاره ده چه بنده دِ په دُنیا کښې دَ اعمال صالحه کوشش اُوکړی او دَ ځان سره دِ په دُنیا کښې هر وخت حساب کوی نو دَ آخرت حساب به ورته آسان شی۔

۲۰۳ داعطف دے په مخکښې فاذکروالله باندے او په مینځ کښې جملے معترضے وے او عطف مغائرت غواړی دلته مغائرت په ډیرو وجوهو سره دے۔ اوله وجه: هلته دَ ذکر پنځه معانی ذکر شوے وے او دلته ذکر صرف په تکبیر سره مراد دے۔ دویمه وجه: هلته ذکر دَ تکبیر ؤو په ویشتلو دَ جمره عقبه سره صرف په ورځ دَ نحر کښې او دلته ذکر دَ تکبیر دے په ویشتلو دَ دریواړو جمراتو سره په دریو ورځو (ایام تشریق) کښې۔ دریمه وجه: هلته ئے دَ ذکر دَ پاره صفت ذکر کړے ؤو په طریقه دَ تشبیه سره او دلته دَ ذکر دَ پاره زمانه ذکر کوی۔ دلته مراد دَ ذکر نه الله اکبر وئیل دی په وخت دَ ویشتلو دَ هر کا نړی کښې په جمره باندے او بعضِ علماؤ په دیکښې تکبیرات روستو دَ فرض مونځونو نه هم

داخل کړی دی۔ فِیْٓ اَیَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ، دَ دیته مراد په نیز دَ اکثر اهلِ علمو دَ ذوالحجې یوولسمه دولسمه او دیارلسمه ورځ ده او دیته ایام منیٰ او ایام تشریق وئیلے شی۔ یوولسمے ورځے ته یوم القرا دولسمے ته یوم النّفرِ الاول او دیارلسمے ته یومُ النّفرِ الثانی وئیلے شی۔

سوال:۔ په صفت دَ ایام کښ معدوده مفرد هم جائز دے تو دلته ئې جمع ولے غوره کړو؟۔

جواب:۔ ایام مشتمل وی په ساعات باندے او ساعت مؤنث دے نو جمع دَ معدودات ئې په اعتبار دَ ساعات سره ذکر کړیده او په دیکښ فائده دا ده چه دا ذکر دَ دغه ورځ په هره لمحه او ساعت کښ پکار دے لکه چه په عمل دَ ابن عمر رضی الله عنهما کښ نقل دی چه هغه به په دغه ورځ کښ په هر حالت کښ تکبیر لوستلو۔

سوال:۔ په سورة حج ۲۸ کښ ایام معلومات وئیلے دے نو دَ دے فرق او وجه دَ فرق څه ده؟۔

جواب:۔ فرق دا دے چه هلته په صحیح قول سره مراد دَ معلومات نه ورځ دَ نحر او ورپسے دوه ورځے دی او هغه ورځے دَ پاره دَ ذبحے دَ هدی او قربانئ دی۔ تو معلومه شوه چه یوم النحر دَ ایام معلومات نه ده او دَ ایام معدودات نه نه ده۔ او یوولسمه دولسمه دَ ایام معلومات او معدودات دواړو نه دی۔ او دیارلسمه دَ ایام معدودات نه ده او ایام معلومات نه نه ده۔ او وجه دَ فرق دا ده چه په سورة حج کښ ایام دَ ذبحے ذکر کول مقصد وُو او هغه جاهلیت والو ته دَ مخکښ نه معلوم وے او ایام دَ ویشتلو دَ شیطانانو چه دی نو دَ جاهلیت والو په هغے کښ اختلاف وو چه دوه دی او که درے دی او دوی به هغه شمارلے چه نن دویمه ده او که دریمه ده نو دَ دے وجے نه دیته ئې معدودات او وئیلو۔

فَمَنْ تَعَجَّلَ فِیْ یَوْمَیْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَیْهِ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَیْهِ،

مقصد په دے کښې رد دے په رسم د جاهلیت باندے ـ هغه رسم دا سے وو چه بعض کسانو به په دریمه ورځ ویشتلو ته واجب وئیل او د هغے پریښودل یې ګناه ګنړله او بعض کسانو دریمے ورځے ته تاخیر کول حرام ګنړل نو په دے آیت کښې د هغوی په دے اختلاف او بدعت باندے رد اُوکړو۔

فائده:- د دینه معلومه شوه چه امر مستحب واجب ګنړل قولاً وعملاً بدعت دے او دا رنګ امر مستحب حرام ګنړل هم بدعت دے۔ افسوس دے چه په دے وخت کښې په فعل اولیٰ کښې اختلاف دے مقام ته رسولے شی چه بعض یې قولاً او عملاً وجوب ته رسوی او بعض یې حرمت ته رسوی او سپک نظر ورته کوی او دا دواړه باطل کار کوی۔

تعجل او تأخّر کښې دوه احتمالات دی. اول دا چه دا دواړه افعال لازمی دی او مفعول یې نفس ماده د فعل ده یعنی مَنۡ فَعَلَ الۡعَجۡلَةَ او فَعَلَ التَّاَخُّرَ۔ دویم دا متعدی دی او مفعول یې پټ دے یعنی مَنۡ تعجل النفر ومن تاخر النَّفَرَ۔

فِیۡ یَوۡمَیۡنِ، په دیکښې توسع ده یا مجاز دے ځکه چه مراد د یومین نه دویمه ورځ ده روستو د ویشتلو کولو نه یعنی په یوولسمه او دولسمه باندے روستو د زوال نه ویشتل د دریے جمراتو اُوکړی په یویشت کانړو سره او بیا مکے مکرمے ته راشی او دریمه ورځ ویشتل پریږدی نو دا تعجیل دے۔

سوال:- په مَنۡ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثۡمَ باندے سوال دا دے چه په روستو والی سره خو دریمه ورځ پوره شوے او په پوره والی د عبادت کښې خو وهم د ګناه نه وی نو د څه وجے نه یې اِثۡمَ نفی کړو؟

جواب:- مخکښې ذکر شول چه دا رد دے په بدعت د جاهلیت باندے چه په هغوی کښې د بعضو په نیز باندے تاخیر د دریمے ورځے ته ګناه وو نو د هغے نفی یې ځکه اُوکړه۔

فائده:- دا دریمے ورځے د دریواړه جمرات په کانړو ویشتلے کیږی او هر کانړی سره ذکر د الله اکبر دے۔ لیکن دلته امر صرف

په ذکر سره ذکر کړيږي او امر د ويشتلو يې خو نه دے ذکر کړے نو وجه دا ده چه ويشتل د دوی په تيز په دغه ورځو کښ معلوم وُو او اختلاف يې صرف په عدد کښ کوو او په وخت د ويشتلو کښ به يې ذکر د الله تعالىٰ نه کوو بلکه په دغه ورځو کښ به مشغول وُو په تفاخر سره او په دا سے شعرونو ويئيلو سره چه په هغې کښ به يې د شځو ذکر کوو نو د دے وجے نه امر د ذکر الٰهی اوشو۔ (ابن عاشور)۔

فائده ۲۵: اعمال د حج يعنی احرام تړل او د هغې منهيات: وخت د احرام، منهيات، توخه، وقوف د عرفې، وقوف د مزدلفې، او له ورځ د منٰی کښ ويشتل کول او د هغې په تتمه کښ درے ورځے د ويشتلو يې ذکر کړے او دا د حج اکثر اعمال وُو۔ او د دينه علاوه ذبح کول او په هغې کښ د حلال وحرام فرق کول او د هغې تقسيم او په هغې باندے بسم الله او الله اکبر ويئيل او ورپسے سرونه خرئيل او طواف زيارت وطواف وداع کول دا احکام يې په سورة حج کښ ذکر کړی دی۔ نو د دے دواړو سورتونو په لوستلو سره د حج پوره طريقه د قرآن نه معلوميږی ليکن شرح د هغې د احاديث مبارکو نه اخستل ضروری دی۔

لِمَنِ اتَّقٰى، د دے په متعلق کښ ډير اقوال دی۔ اول، دا متعلق دے د اذکروا سره، اشاره ده چه د قبوليت د ذکر د پاره تقوىٰ ضروری ده۔ دويم قول: دا متعلق دے د لَا اِثْمَ عَلَيْهِ، سره يعنی د عدم د ګناه د پاره مطلق تقوىٰ شرط ده۔ دريم قول: مبتدا يې پټه ده يعنی التخيير لمن اتقى، او مراد د دينه تقوىٰ ده د شبهاتو نه يا المغفرة لمن اتقى، دارنګ دلته په مصداق د تقوىٰ کښ اقوال دی۔ اول قول، تقوىٰ په مشهوره معنىٰ سره ده۔ دويم قول، تقوىٰ د شبهاتو نه مراد ده۔ دريم قول، تقوىٰ د ممنوعاتو د احرام او د حج نه۔ څلورم قول دا چه دلته ماضی په معنی د مستقبل ده يعنی مغفرت او جنت په حج سره د هغه چا د پاره دی چه په آئنده ژوند کښ هم تقوىٰ کوی۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ
او بعض دَ خلقو نه هغه څوک دی چه تعجب کښ اچوی تا لره وینا دَ هغه
فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى
په باره دَ ژوند دنیوی کښ او ګواه کوی الله تعالیٰ لره په
مَا فِيْ قَلْبِهٖ ۙ وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ﴿۲۰۴﴾
هغه څیز چه دَ هغه په زړه کښ دی او دے ډیر سخت جګړ مار دے۔

وَاتَّقُوا اللّٰهَ، دا عطف دے په واذکروالله باندے۔ او هر کله چه فائده دَ حج خاص کړے شوه په مَنِ اتَّقٰى پورے نو دَ تقوی دَ حصول دَ پاره یئے صیغه دَ امر ذکر کړه۔ ابن عاشور وئیلی دی چه دا دَ حاجیانو دَ پاره وصیت دے چه دَ حج نه واپس راشی نو هر وخت او په هر حال کښ دِ تقوی کوی صرف په حج پورے دِ تقوی نه خاص کوی لکه چه جاهلیت والو دا سے کول او اوس هم ډیر جاهلان دا سے کوی چه دَ حج نه واپس شی نو بیا هم په خپلو ګناهو نو کښ مشغول شی بلکه دَ هغے نه هم زیات۔
وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ، دا علم خو مسلمانانو ته دَ مخکښ نه حاصل دے نو وَاعْلَمُوْٓا دلته دَ تذکیر او تنبیه دَ پاره دے۔ او دا ترغیب دے په تقوی کولو سره په ذکر دَ عقیدے دَ حشر سره۔ لفظ دَ تصیرون او تجمعون یئے نه دے وئیلے دَ دوه وجو نه۔ اوله وجه دا چه لفظ دَ حشر صیرورت الی الله او جمع دَ پاره مستلزم دے۔ دویمه وجه دا ده چه په حج کښ جمع دَ خلقو وه دَ مختلفو وطنونو نه نو په دے سره اشاره ده چه حشر دَ حج سره هغه لو یه ورځ دَ حشر (قیامت) را یاده کړے دے دَ پاره چه دوام دَ تقوی پیدا شی۔
۲۰۴ ربط ۱: هر کله چه مخکښ امر او صفت دَ تقوی ذکر شو نو اوس هغه څوک ذکر کوی چه په امر دَ تقوی باندے غصه کیږی۔ (۲) مخکښ یئے دوه اقسام دَ حج والو ذکر کړل یو یں بخت

اویل نیک بخت۔ تو اوس دَ پورہ والی دَ اقسامو دَ پارہ دوہ قسمونہ نور ذکر کوی اول ډیر یں بخت چہ دَ رغبت دُنیوی سرہ ئے نور قبائح هم یوځائے کړی دی۔ دویم ډیر نیک بخت چہ هغه صرف پہ آخرت کښ راغب دے۔ (۳) مخکښ اول قسم ښکارہ کافر او مشرک وُو او دویم قسم عام مؤمن، تو اوس دریم قسم ذکر کوی چہ منافق دے او څلورم قسم کامل مؤمن۔

سوال :- دا اقسام ئے دَ مخکښ قسمونو سرہ پہ یو ترتیب ولے نہ ذکر کول ؟۔

جواب :- مخکنی دوارہ قسمونہ پہ وخت دَ حج کښ پہ حاجیانو کښ وُو او دا دوہ قسمونہ پہ هغے حاجیانو کښ دی چہ کلہ وطن تہ واپس راشی۔ او واپسئ تہ اشارہ دہ پہ اِلَیْهِ تُحْشَرُوْنَ سرہ۔ اوس پہ دے آیت کښ درے اوصافِ قبیحہ ذکر کوی۔ اول صفت یُعْجِبُكَ قَوْلُهٗ دے، او دا خطاب دے نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم تہ او بیا عام دے هر مخلص مؤمن تہ او آیت اگرچہ دَ یو خاص شخص پہ بارہ کښ نازل شوے دے چہ اخنس بن شریق وو لیکن هر هغہ چا تہ شامل دے چہ دا صفات پہ کښ موجود وی ځکہ چہ الفاظ عام دی۔

یُعْجِبُكَ، دَ اعجاب نہ دے او هغہ دَ عَجَبْ نہ اخستلے شوے دے راغب اصفهانی وئیلی دی چہ عجب هغہ حیرانتیا دہ چہ انسان تہ عارض کیږی پہ وخت دَ جهل دَ هغہ پہ سبب دَ هغہ سرہ پہ یو څیز باندے او دا مستلزم وی استحسان (ښہ گڼلو او خوشحالہ کیدلو) لرہ۔ الکواشی وئیلی دی چہ اعجاب پہ استحسان کښ استعمالیږی او عجب پہ انکار کښ استعمالیږی۔ قَوْلُهٗ نہ مراد مطلق خبرے کول دَ دهٔ دی دَ فصاحت، بلاغت او چالاکئ دَ وجے نہ لکہ پہ سورۃ منافقون کښ۔ یا دَ قول نہ مراد دعوی دَ ایمان دہ او براءت دَ کافرانو نہ او دعوی دَ خیر خواهئ دَ مؤمنانو او دَ اخلاص او محبت دَ هغوی او خوشحالی دَ نبی صلی اللہ علیہ وسلم او دَ مؤمنانو پہ حقیقت کښ پہ دا سے خبرو سرہ وی۔

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا، په دیکښ دوه احتمالونه دی - اول داچه دا متعلق دے په يُعْجِبُكَ پورے یعنی دا اعجاب صرف په دُنیا کښ واقع کیږی او په آخرت کښ به حیران او چُپ وی - دویم احتمال دا دے چه دا متعلق دے په قَوْلُهٗ پورے او فِي په معنیٰ دَ شان سره دے یعنی دَ دُنیا دَ کارونو په باره کښ چالاک او تجربه کار دے ځکه چه منافق دَ دین او آخرت په باره کښ علم نه لری - او دَ دوی دویم صفت قبیحه ذکر کوی په وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِي قَلْبِهٖ سره او دَ دے دوه معنے دی - اوله داچه اشهاد خبر ورکولو ته وئیلے کیږی یعنی خبر ورکوی الله تعالیٰ - دویمه معنیٰ اشهاد په معنیٰ دَ قسم کولو دے یعنی ګواه کوی الله تعالیٰ لره یعنی په الله تعالیٰ باندے قسم کوی - او شهادت په معنیٰ دَ قسم باندے په آیت دَ لعان کښ راغلے دے -

**سوال**:- مَا فِي قلبه خو کفر دے نو په کفر باندے خبر ورکول یا قسم کول څه معنی لری؟ -

**جواب**:- په عبارت کښ تقدیر دے یعنی اَنَّ مَا فِي قَلْبِهٖ مُطَابِق لِمَا فِي لَفْظِهٖ - یا خِلَافَ مَا فِي قَلْبِهٖ - یعنی قسم کوی په دروغه چه ځما ژبه او زړه بالکل موافق دی - او په دے صفت کښ اشاره ده چه دوی په دروغه باندے قسم کوی لکه دا صفت دَ دوی په سورة توبه ۴۲، ۵۶ او سورة مجادله ۱۴ کښ ذکر دے -

دریم صفت دَ دوی - وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ، دے اَلَدُّ دَ لدد نه اخستلے شویدے په معنیٰ دَ سخته جګړے کولو - او خصام کښ دوه اقوال دی، اول قول دا جمع دَ خصم ده نو اضافت دَ اَلَدُّ دَ قبیلے دَ اضافت دَ بعض نه دے کل ته - دویم دا مصدر دے په معنی دَ خصومت کولو - او په عبارت کښ تقدیر دے یعنی خصامه الد الخصام یا اَلَدُّ ذَوِي الْخِصَامِ - او اضافت په معنیٰ دَ فی سره دے - او دَ دے په معنیٰ کښ ډیر اقوال دی - حسن بصری وئیلی دی چه دے دروغژن باطل پرست دے - قتاده وئیلی دی چه زړه ئے سخت دے په ګناهونو کښ - مجاهد وئیلی دی چه

وَإِذَا تَوَلَّىٰ سَعَىٰ فِي الْأَرْضِ لِيُفْسِدَ

اوھر کله چه مخ واړوي کوشش کوي په زمکه کښې دے دپاره چه فساد اوکړي

فِيهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ۗ وَاللَّهُ

پدیکښې او تباه کوي فصل او نسل لره او الله تعالی

لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴿٢٠٥﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُ

مینه نه کوي دَ فساد سره . او هر کله چه او ئیلے شي ده ته

دَ ده جګړه په حق باندے نه اُودریږي- حاصل دا دے چه په هر څیز باندے دعوی کوي- دَ حق او باطل تمیز نه کوي او دَ دعوے دپاره جګړه کوي- او دا دواړه صفات قبیحه دَ ژبے دي دا رنګ لازمي صفات دي-

۲۰۵ په دیکښې نور دریے صفات قبیحه ذکر کوي او دا متعدي قبائح دي- تَوَلّٰى سَعٰى، په تَوَلّٰى کښې دوه احتماله دي- اول دا چه په معنیٰ دَ مخ ګرځولو دے نو معنیٰ دا چه مخ اُوګرځوي او په قدمو باندے سعي اُوکړي- او دا عطف دے په مضمون دَ مخکښې آیت باندے یعني اول خو دے تاسو ته مخامخ وي نو هغه تیر شوي اقوال کوي- او کله چه ستاسو نه مخ اوګرځوي نو بیا دَ هغه مخکښې نه مخالف اعمال کوي- یا تَوَلّٰى دَ زړه مراد ده یعني غصه شي او نفرت اُوکړي ستاسو نه او سَعٰى په معنیٰ دَ کوشش کولو دے (قرطبي)- دویم احتمال دا چه تَوَلّٰى دَ ولایت نه ماخوذ دے یعني ولایت او اختیار ورته حاصل شي او دا قول دَ ضحاك دے- فِي الْاَرْضِ، سعي اګرچه په زمکه کښې وي لیکن ذکر ئے دَ پاره دَ تاکید دَ عموم دَ مکان دے یعني زمکه کښې چه هر طرف ته ئے وس رسي نو ګرځي او کوشش کوي دَ فساد کولو- لِيُفْسِدَ فِيهَا، دا په ځائے دَ مفعول دَ فعل دَ سعي کښې دے او دیته لام تبلیغ وئیلے شي او دا په هغه ځائے کښې راځي چه مفعول دَ فعل علت وي دَ فعل دَ پاره سره دَ دے نه چه مفعول به هم وي- او

اتَّقِ اللّٰهَ اَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ

ویره او کړه د الله تعالیٰ نه نو اونیسی ده لره غیرت کول په ګناه سره

فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ؕ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۲۰۶﴾

نو پوره دے ده ته دپاره جهنم او خامخواه ناکاره ځائے دے تیار کړے شوے

تفسیر د فساد د سورت په اول کښې تیر شوے دے۔ او دا ټولو انواعو د فساد ته شامل دے۔ وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ، دا تخصیص دے روستو د تعمیم نه یعنی دا خاص قسم د افساد دے۔ ابن کثیر وئیلی دی چه حرث محل د ترقئ د فصلونو او د میوو دے او نسل طریقه د ترقئ د حیواناتو ده او په دے دواړو څیزونو سره قوام د ژوند د انسانانو دے او اکثر عرب اهل (مالکان) وو د حرث او د حیواناتو نو مراد دا دے چه د دغے څیزونو په تخریب سره ژوند د انسانانو خرابوی۔ او بل قول دا دے چه مراد د حرث نه ناریښه او زنانه دی او نسل نه مراد اولاد دی۔ او قول د مجاهد دا دے چه هرکله دا سے انسانان فساد وته، ظلمونه او ګناهونه کوی نو الله تعالیٰ باران نو ته بند کړی قحط او سوکړه راپیدا کړی نو په هغے سره څاروی او فصلونه هلاک شی۔

فائده:- دا دلیل دے چه نسل کشی د انسانانو او حیواناتو فساد او ظلم دے۔ او د منصوبه بندئ او ضبط تولید وغیره نظام سره نسل کشی د انسانانو کیږی نو دا ظلم او فساد دے۔

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ، دا عمل د فساد او اهل د فساد دواړو ته شامل دے او ابوحیان د عطاء نه روایت راوړے دے چه منصوفه د جن بے په وخت کښې د ځان نه جامے شلوی نو دا هم په فساد کښې داخل دی۔ محبت د الله تعالیٰ صفت حقیقیه دے بغیر د تمثیل او تشبیه او بغیر د تاویل نه او هغه غیر د ے دارا دے نه۔

۲۰۶ په دے آیت کښې بل یو صفت قبیحه ذکر کوی چه هغه د زړه سره تعلق لری یعنی په زړه کښې ئے تکبر او غرور وی

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِيْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ

او بعض د خلقو نه هغه څوک دي چه خرڅوي ځان خپل د پاره د طلب کولو

مَرْضَاتِ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۲۰۷﴾

د رضا د الله تعالیٰ او الله تعالیٰ ډیر شفقت کوونکے دے په بندګانو خپلو باندے.

د بل چا وصیت او نصیحت نه قبلوی.
وَاِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ، داپشان د یوؤلسم آیت دے. اِتَّقِ اللّٰهَ نه مراد مطلق وعظ او نصیحت کول دي او نهی د فساد نه هم په دیکښ داخل ده. اَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ، عزت په معنیٰ د قوت او غلبے دے. غیرت په غصے سره راځی. د اَخَذَ نه مراد الزام او استیلاء ده بِالْاِثْمِ، با د پاره د تعدیت د اخذ ده نو مفعول ثانی دے د پاره د اَخَذَ. یا با د پاره د مصاحبت ده یعنی هغه عزت چه د ګناه سره ملګرے دے. نو دا قید احترازی دے د پاره د اَلْعِزَّةُ چه صفت مادحه د دے نه مراد نه دے. یا با سببیه ده یعنی زاړه ګناهونه د دهٔ سبب دے. یا ګناه د شرک او کفر چه د دهٔ په زړه کښ دے سبب دے د پاره د دے غصه کیدلو. د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دے چه کله یو انسان ته اتَّقِ اللّٰهَ او وئیلے شی نو غصه دِ نه کوی. بل روایت دے چه عمر رضی الله عنه نه یو ځل چا اووئیل اتَّقِ اللّٰهَ نو هغه په سجده پریوتلو. او دغسے واقعه د هارون الرشید هم نقل ده (ابوحیان).
فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ، حسب په اصل کښ کافی ته وئیلے شی او جزاء اکثر برابر وی د ګناه سره نو حسب په معنیٰ د جزاء (سزا) سره راځی. جهنم په اصل کښ هغه کنده ته وئیلے شی چه بیخ ئے ډیر لرے وی. او مراد د دینه هغه اور دے چه په آخرت کښ ئے تیار کړے دے د پاره د مجرمانو. وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ، په لفظ مهاد کښ دوه اقوال دی. اول دا چه دا جمع د مهد ده د آرام ځائے ته وئیلے شی. دویم قول دا چه دا اسم مفرد دے د فراش د پاره. نو جهنم ته مهاد وئیل په طریقه د تهکم او مسخرے سره دی.

یا مراد دَ مهاد نه هغه اعمال دی چه دے مجرمانو دَ ځان دپاره تیار کړی دی- نو هغه اعمال تاکاره دَ آرام فائده نه ورکوی- (فتح البیان
فائده)- دَ دے صفاتو په تخصیص کښ اشاره ده چه په حج کښ دَ ژبے او اندامونو او دَ زړه صفائی مقصد دے لکه لا رفث ولا فسوق ولا جدال، او تقوٰی کښ دیته اشاره ده- نو دا منافق حاجی روستو دَ حج نه په ژبه دروغ وائی او جګړے کوی او په اندامونو سره فساد وته کوی او په زړه کښ غرور او تکبر کوی نو ده دَ حج نه فائده نه ده حاصله کړے-

۲۰۷ په دیکښ څلورم قسم دَ خلقو ذکر کوی چه هغه ډیر نیک بخت دی- او دا دَ مخکښ مقابل دے- او ابن کثیر وئیلی دی چه غوره دا ده چه دا دَ هر مجاهد فی سبیل الله په باره کښ دے که جهاد ئے په طریقه دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر سره وی او که په طریقه دَ قتال سره وی-

مَنْ يَّشْرِىْ، په دیکښ دوه اقوال دی- اول دا چه دا شراء په معنٰی دَ بیع سره ده او مراد دَ بیع نه خرڅول دَ ځان دی او مشتری (اخستونکے دَ ده دَ نفس) الله تعالٰی دے په دلیل دَ اِنَّ اللّٰهَ اشْتَرٰى مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنْفُسَهُمْ وَاَمْوَالَهُمْ بِاَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ، (سورة توبه ۱۱۱) او دلته ئے مال نه دے ذکر کړے ځکه چه بذل (خرڅول) دَ نفس مستلزم دے بذل دَ مال لره-
دویم قول دا چه شراء په معنٰی دَ اخستلو دے او مراد دَ هغے نه ځان بچ کول او خلاصول دی دَ غضب او عذاب دَ الله تعالٰی نه-
ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ، ابتغاء دلته مفعول له دے او ابتغاء هغه طلب ته وئیلے شی چه ورسره پوره کوشش وی- پښتو کښ هغے ته لټول وئیلے شی- ابوحیان وئیلی دی چه په دے کښ حصول دَ هغه ثواب او درجے دے چه ډیره افضله او غوره ده په نیز دَ الله تعالٰی چه هغه په صحیح حدیث کښ راغلے ده چه الله تعالٰی به جنت والو ته او وائی آیا دَ جنت دَ نعمتونو نه زیات غوره څیز تاسو له درکړم- دوی به تپوس اوکړی چه اے ربه

يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِى السِّلْمِ

اے ایمان والو داخل شئ په اسلام کښ

كَآفَّةً ۖ وَّلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ

پوره او مه ځئ په قدمونو دَ شیطان باندے

اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۲۰۸﴾

یقیناً هغه ستاسو دَپاره دشمن ښکاره دے۔

هغه څه دی۔ الله تعالیٰ به اووائی چه څه به ستاسو ته همیشه رضایم او هیچرے به نه خفه کیږم۔ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ، ابن عطیه وئیلی دی چه په دے جمله کښ الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته اُمید او زیرے ورکوی دَ حصول دَ هغه مرضات چه هغوی یئے طلب کوی لکه چه مخکښ آیت کښ ویره وه په لفظ دَ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ سره۔ رَءُوْفٌ دَ رافت نه دے او رافت دَ رحمت نه اُوچته درجه ده چه دَ نعمتونو ورکولو سره دَ مصیبتونو او ضرروتو نه بچ کولو ته هم شامل دے۔ او صاحب اللباب دَ رافت اقسام ذکر کړی دی (۱) نعمت همیشه ورکوی په لږ عمل باندے (۲) کلمه دَ کفر په ژبه سره جائز ده په وخت دَ سخته اکراه کښ (۳) تکلیف نه ورکوی مګر په قدر دَ وسع سره (۴) اصرار کوونکے په کفر باندے اګرچه سل کاله وی خو چه صحیح توبه اُوباسی نو قبلوی یئے (۵) نفس او مال خو دَ الله تعالیٰ ملکیت دے لیکن دَ هغے په خرچ کولو سره بنده ته اجر و ثواب ورکوی۔ اَلْعِبَادِ کښ دوه اقوال دی۔ اول دا چه الف لام دَعهد دَپاره دے یعنی خاص بندګان چه یشری نفسه کښ ذکر شول او دا قول غوره دے۔ او دویم قول دا دے چه العباد عام دے کافرانو ته هم شامل دے او رافت دَ الله تعالیٰ په کافرانو باندے دا دے چه هغوی ته په دُنیا کښ مهلت ورکوی او رزق، مالونه او عافیت هم ورکوی۔

۲۰۸ ربط ۱: هر کله چه مخکښ یئے څلور اقسام دَ خلقو ذکر کړل

چه مؤمن، کامل مؤمن، کافر او منافق دی نو اوس دعوت ورکوی چه ټول دے په یو ملت (اسلام) پاتے شی او په هغے پانے دے کلک پاتے شی۔ (۲) هرکله چه رد اُوکړے شو په رسمونو او بدعاتو د جاهلیت په عبادت د حج کښ نو اُوس دعوت ورکوی چه په ټولو اعمالو کښ هر قسم بدعت پریږدئ او پوره مسلمانان جوړ شئ۔ او په دے آیت کښ روستو د حج د مسئلے ته اول خطاب دے د دریو خطاباتو نه۔

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا، دا خطاب دے ټولو مؤمنانو ته که هغه منافقان وی او که مخلصان وی او ابن کثیر هم داسے وئیلی دی چه په دے آیت کښ امر دے مؤمنانو مصدقینو د رسول ته چه په ټولو کړو د اسلام او شرائعو پانے دے قبول اُوکړی او په ټولو اوامرو د الله تعالیٰ پانے دے عمل اُوکړی۔ او د خپل استطاعت مناسب دے ټول منهیات د الله تعالیٰ پریږدی۔

**سوال:۔** مؤمن خو مسلم هم دے نو بیا د اُدْخُلُوْا (داخل شئ) معنیٰ خو نه صحیح کیږی؟

**جواب:۔** د دخول نه مراد همیشه پاتے کیدل دی په هغے پانے۔ او صاحب اللباب وئیلی دی چه هرکله یو انسان په یو کور کښ داخل (دننه) وی لیکن احتمال لری چه دے به روستو وخت کښ د دے کور نه اُوځی نو هغه ته وئیلے شی چه داخل شه (پاتے شه) په دے کور کښ په راتلونکے زمانه کښ یعنی د دے نه بهر مه اوځه۔

فِی السِّلْمِ، د س په زیر او زَوَر کښ بعضِ اهلِ لغت فرق کړے دے چه په زیر سره په معنیٰ د اسلام دے او په زَوَر سره صلح کول دی۔ او اکثرو وئیلی دی چه دواړه یو شان دی اسلام ته وئیلے شی۔ لیکن په زَوَر سره په معنیٰ د صلح ډیر استعمالیږی۔ دلته یئے معنیٰ اسلام دے۔ ابن کثیر د ابن عباس رضی الله عنهما او د ډیرو تابعینو نه دغسے نقل کړیدی او دا قول غوره دے۔

دویم قول دا دے چه سِلم نه مراد صلح او دَ جنګونو او جګړو دَ کو رنئ نه ځان بچ کول دی او معنیٰ دَ آیت دا ده چه اے مؤمنانو ټول په تصرت دَ دین کښ متفق شئ او جنګونه او اختلافات یو بل ترمینځ پریږدئ لکه وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا، او دا قول ابن کثیر دَ قتاده نه نقل کړیدے - کَآفَّةً، دا په اصل کښ اسم فاعل دے دَ کَفَّ نه په معنیٰ دَ منع کولو سره او په معنیٰ دَ جمیع (ټول) سره راځی - او بعضو وئیلی دی چه دا مصدر دے په معنیٰ دَ جمیعًا سره دے - او (تا) پکښ دَ تانیث دَ پاره نه ده بلکه په مبالغه باندے دلالت کوی په سبب دَ نقل دَ وصفیت دَ اسمیت نه - او کَآفَّةً حال دے او په دیکښ درے اقوال دی - اول قول دا دے چه دا حال دے دَ السِّلْمِ نه او مراد دَ دینه پوره اسلام دے لکه چه مخکښ دَ ابن کثیر په قول کښ ذکر شول - او اشاره ده چه په اسلام کښ دَ جاهلیت هیڅ کار او هیڅ بدعت او رسم له دخل مه ورکوئ - دا قول زمخشری او نورو مفسرینو غوره کړیدے - او ابن کثیر هم وئیلی دی چه دا صحیح قول دے او دویم قول دَ ابن عطیه دے هغه وئیلی دی چه دا حال دے دَ اُدْخُلُوا دَ فاعل نه سره دَ السِّلْمِ نه او حال دَ دوه څیزونو نه جائز دے - نو معنیٰ دا شوه چه تاسو ټول مؤمنان په ټولو اجزاؤ دَ شرع کښ داخل شئ - دا قول هم وجه دَ صحت لری او مخکنی قول نه شامل دے - دریم قول دَ بعضِ مفسرینو دے چه دا حال دے دَ اُدْخُلُوا دَ فاعل نه او په دیکښ مقصد تاکید دے دَ عموم دَ خطاب -

فائده :- دَ اول قول دَ صحت دَ پاره دلیل دَ بعضِ مفسرینو قول دے چه هغوی وئیلی دی چه دا دَ اهلِ کتابو دَ څه کسانو په باره کښ نازل شویدے چه هغوی ایمان راوړے وو او اراده ئے داوه چه سره دَ ایمان نه موسیٰ دَ شریعت دَ خالی دَ ورځے تعظیم اُوکړو او تورات په مونځ کښ اُولولو او غوښے دَ اُوښانو حرام اُوګڼړو - نو هغوی ته اُووئیلے شو چه داخو نیمګړے اسلام شو تاسو داخل شئ په پوره او مکمل اسلام کښ - نو دا ښکاره دلیل دے چه دَ عقیدو او دَ اعمالو

فَإِن زَلَلْتُم مِّن بَعْدِ مَا جَاءَتْكُمُ الْبَيِّنَاتُ

نو که چرې اوخوېږئ تاسو (د پوره اسلام نه) روستو د هغې نه چه راغلي دي تاسو ته ښکاره احکام

فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿۲۰۹﴾

نو پوهه شئ چه یقیناً الله تعالیٰ زورور دے حکمت والا دے۔

بدعتیان په پوره اسلام کښې داخل نه دي۔
وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ، د خُطُوات تفسیر مخکښې تیر شوے دے.
دلته مراد دا دے چه سرهٔ د اسلام نه منافقت کول یا د جاهلیت
(غیراسلام) کارونه کول یا بدعات او رسمونه کول د شیطان
تابعداری کول دي نو د دینه ځان بچ کړئ۔ په دیکښې اشاره ده
چه کومه عقیده او عمل د قرآن او سنت نه ثابت نه وي اګرچه
په ظاهرکښې دین ښکاري لیکن هغه د شیطان تابعداري ده۔
دلته قرطبي د مقاتل په روایت سره نقل کړي دي چه تابعداري
کول د سنت ضروري دي روستو د راتلو د آخري پیغمبر
صلی الله علیه وسلم نه۔ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ، داعداوت د شیطان
عام دے۔ اراده او کوشش کوي چه مؤمنانو ته تکلیفونه اورسوي
او د دین او د عمل د ثواب حاصلولو نه ئې منع کړي۔ او تا کاره اعمال
ورته ښائسته کړي نو په دے وسوسو ئې هلاکت ته اوغورځوي۔
مُبِينٌ، لازمي دے په معنیٰ د بین العداوه (دشمني ئې ښکاره ده)
یا د متعدي دے یعنې خپله دشمني ښه ښکاره کوي په قسما قسم
وسوسو اچولو سره اګرچه موتر ئې نه وینو او نه د هغه خبرے اورو۔
۲۰۹ په دے آیت کښې زورنه ده مخالفت کوونکو ته د پوره اسلام نه
زَلَلْتُمْ، زلت په اصل کښې خپے خوئیدلو ته وئیلے شي دلته تربنه
مراد ګمراه کیدل او مائیل کیدل دي باطل طرف ته۔ نو معنیٰ دا ده
که چرے تاسو اوخوئیدلئ (ګمراه شوئ) د دخول نه په ټول
اسلام کښې، یعنې که پوره اسلام تاسو قبول نه کړو۔ او د ابن
عباس رضی الله عنهما نه روایت دے که تاسو سرهٔ د نزول د قرآن
نه تعظیم د خالي د ورځے کوئ او د اوښانو غوښے حرامے ګنړئ۔

هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّآ أَن يَأْتِيَهُمُ ٱللَّهُ

انتظار نه کوی دوی (په ایمان راوړلو کښ) مګر دَ دے خبرے چه راشی دوی ته الله تعالی

فِى ظُلَلٍ مِّنَ ٱلْغَمَامِ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ

په سورو کښ دَ وریځو نه او ملائک راشی

مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ ٱلْبَيِّنَٰتُ، یعنی واضح دلیلونه چه په قرآن او سنت کښ بیان شوی دی۔ اودا بعثت دَ محمد صلی الله علیه وسلم، قرآن او نورو معجزاتو دَ هغه ته هم شامل دے۔ قرطبی وائی چه دا دلیل دے چه عذاب دَ هغه چا چه عالم وی په ګناه باندے لوئے دے دَ عذاب دَ جاهل نه۔ او چا ته چه دعوت دَ اسلام نه وی رسیدلے نو هغه په پریښودلو دَ اعمالو شرعیو سره کافر نه ګرځی۔

فَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ، عزیز په صفت دَ الله تعالی کښ دا سے غالب ته وئیلے شی چه هیڅ څیز ترینه خلاصیدے نشی (سمعانی) او هیڅ څیز هغه لره دَ خپل مراد نه منع کولے نه شی (اللباب) او دا نه حاصلیږی مګر په کمال قدرت سره۔ نو مقصد دا دے چه الله تعالی قادر دے ستا په عذاب باندے (نو دا سخت وعید دے)۔

حَكِيمٌ، سمعانی وائی چه حکیم صحیح کار کوونکی ته وائی۔ او ابو حیان وائی چه ګلک کار کوونکے نو مخالفینو ته عذاب ورکول مقتضا دَ حکمت دَ هغه ده په هغه باندے هیڅ اعتراض نه شی کیدلے۔ دمشقی په اللباب کښ وائی چه وصف دَ حکمت مستلزم دے کامل علم لره۔

فائده:- یو قاری دا آیت لوستلو نو غلط شو نو وے وئیل چه ان الله غفور رحیم، نو یو باڼچی دَ دیته انکار اوکړو چه دَ ذکل سره غفور رحیم مناسب نه دے داخو په ګناهونو باندے تیزی پیدا کوی۔ اشاره ده چه دَ قرآن کریم دَ آیتونو فواصل دَ آیت سره پوره مناسبت لری۔

وَقُضِيَ الْاَمْرُؕ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ (۲۱۰)

او فیصله اوشی د کار او خاص الله تعالیٰ طرف ته ورګرځیدلے شی ټول کارونه

۲۱۰ په دے آیت کښ د زور نه روستو د دخول د پوره اسلام نه مخالفت کوونکو ته دُنیوی یره ورکوی۔ هَلْ، دلته په معنیٰ د نفی کښ دے په قرینه د اِلَّا سره۔ اوکله په معنیٰ د قَدْ سره هم راځی لکه سورة دهر ۱ کښ۔ اوکله په معنی د اَلَا سره راځی لکه سورة طه ۹ او سورة شعراء ۲۲ کښ۔ اوکله په معنیٰ د استفهام (سوالیه) سره راځی لکه سورة روم ۲۸ کښ۔ یَنْظُرُوْنَ، دلته په معنیٰ د انتظار سره دے او مفعول د دے اَنْ یَّاْتِیَهُمُ اللّٰهُ دے او استثناء مفرغ ده او ضمیر د دے راجع دے هغه چاته چه دخول فی الاسلام ئے پریښودلے دے۔ اَنْ یَّاْتِیَهُمُ اللّٰهُ فِیْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ، سمعانی وئیلی دی چه دا آیت د متشابهاتو نه دے او اصحاب الحدیث د اُبی بن کعب رضی الله عنه او مجاهد نه نقل کړی دی چه الله تعالیٰ به راځی په ورځ د قیامت په سورو د نرئ وریځو کښ۔ بیا ئے وئیلی دی چه اولیٰ په دے آیت او د دے په مشابه نورو آیتونو کښ دا ده چه ایمان اولرو د دے په ظاهر باندے او علم د دے (د کیفیت) الله تعالیٰ ته اُوسپارو۔ او ابن کثیر دوه احادیث نقل کړی دی چه په هغے کښ تصریح ده په راکوځیدلو سره۔ اول حدیث یَنْزِلُ الْجَبَّارُ عَزَّوَجَلَّ فِیْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ (راکوزبه شی جبار ذات په سورو د وریځو کښ او ملائیک هم)۔ دویم حدیث یَهْبِطُ حِیْنَ یَهْبِطُ وَبَیْنَهٗ وَبَیْنَ خَلْقِهٖ سَبْعُوْنَ اَلْفَ حِجَابٍ (راکوزیږی به الله تعالیٰ چه کله راکوزیږی او د هغه او د مخلوق په مینځ کښ به اویا زره پردے وی۔ او ابوحیان وئیلی دی چه په داسے آیاتونو کښ د سلف صالحینو مذهب دا دے چه د دے په ظاهری معنیٰ به ایمان لرو او علم د دے به الله تعالیٰ ته سپارو او متأخرینو په دیکښ مختلف تاویلونه کړی دی (۱) دا مجاز دے د انتقام اخستلو نه (۲) بِمَا وَعَدَهُمْ مِّنَ الثَّوَابِ وَالْعِقَابِ پته دے (۳) امر او قدرت مراد دے (۴) فی په معنی د باسره ده۔

تنبیه: تاویلونه کول د صفت د الله تعالیٰ نه د انکار سبب دے چه په نص صریح کښ موجود دے۔ هاں دا صفتونه په د تشبیه نه پاک ساتو لکه قرطبی وئیلی دی چه د صفاتو د اجسامو سره به مشابهت نه ورکوو۔

مِنَ الْغَمَامِ، دا صفت دے د ظلل په تقدیر سره ظُلَلٍ كَائِنَةٍ مِّنَ الْغَمَامِ (سورے چه جوړ شوے به وی د وریځو نه) یا دا متعلق دے په یَاْتِیَهُمُ پورے یعنی د طرف د وریځو نه۔ وَالْمَلٰٓئِكَةُ، عطف دے په الله باندے او دا یشان د دے قول د الله تعالیٰ دے چه وَجَآءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا (سورة فجر ۲۲) او سورة انعام ۱۵۸۔ وَقُضِيَ الْاَمْرُ، مراد د قضاء نه فیصله کیدل او فارغ کیدل دی او الامر نه مراد هلاکول د کافرانو دی۔ یا د هغوی حساب او عذاب دے۔

وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ، لفظ د اِلَى اللّٰهِ ئے مخکښ راوړے دے د حصر د پاره ځکه چه په آخرت کښ امور صرف الله تعالیٰ ته ورکرځی نه بل چاته د حساب او جزاء د پاره۔ اګرچه په دُنیا کښ بعض کارونه امیرانو، قاضیانو او افسرانو وغیره ته ورکرځی۔ تُرْجَعُ، په صیغه د مجهول سره دے او فاعل ئے په حقیقت کښ الله تعالیٰ دے چه کارونه به ځان ته راګرځوی۔ یا ئے فاعل بندګان دی چه دوی شهادت کوی چه مونږ مخلوق یو او حساب به راسره کیږی تو ګویا چه دوی کارونه الله تعالیٰ ته اوګرځول۔ لفظ د رجع لازمی او متعدی دواړه استعمالیږی نو د هغه نه مجهول صیغه صحیح ده۔ او دا د ارجاع نه اخستل ضعیف قول دے۔ او دا جمله احتمال لری چه مراد شی په دے سره هغه کارونه چه مشرکانو به غیر الله ته د هغے نسبت کوو لیکن په آخرت کښ به دوی اقرار اوکړی چه د ټولو کارونو او حاجتونو پوره کوونکے یو الله تعالیٰ دے۔

سَلْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ كَمْ اٰتَيْنٰهُمْ

پوښتنه وکړه د بني اسرائیلو نه چه څومره ورکړي دي موږ دوی ته

مِّنْ اٰيَةٍۢ بَيِّنَةٍ ۭ وَمَنْ يُّبَدِّلْ

نخښې ښکاره او چا چه بدل کړو

نِعْمَةَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ

نعمت د الله (په ناشکرئ سره) روستو د هغې نه چه راغلې دے دوی ته

فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۲۱۱﴾

نو یقیناً الله تعالی سخت عذاب ورکوونکے دے۔

۲۱۱ ربط: د دے د مخکښې آیت سره په څو وجو سره دے (۱) دا آیت نمونه او دلیل دے په مخکښې آیت یعنی د مخکښې آیت نه معلومه شوه چه دا سے خلق شته چه هغوی په ضد او په عناد کښې اخته دي ډیر آیات او معجزات هغوی ته فائده نه ورکوی نو اوس په طور د مثال بني اسرائیل ذکر کوی چه هغوی ته ډیر معجزات راغلي وو لیکن د ضد او عناد د وجې نه یئے د هغې تبدیل او انکار اُوکړو (ابن عاشور)۔ (۲) موجوده منکرین د دخول د اسلام د پاره لوئے دلیل او معجزه غواړي لیکن دا سے عنادیانو ته آیات او معجزات هیڅ نفع نه ورکوی۔ د دے د پاره حال د بني اسرائیلو اُوښوئ چه هغوی ته آیات بینات هیڅ فائده ورنکړه (ابوحیان)۔ (۳) هر کله چه اُووئیلے شو چه الله تعالی به په سورو د وریځو کښې راځي نو د دے نه تعجب کیدے شو چه دا به څنګه کیږي نو اُوس د هغې جواب ذکر کوی چه بني اسرائیل په دے صفت د الله تعالی پاتے ښه خبر دي کله چه د دوی مشران د مصر نه راوتلي وو او جبل طور ته ورغلي وو۔ او اُوس هم د دوی په کتاب کښې دي چه جَآءَ اللّٰهُ مِنْ سِيْنَآءَ وَشَرَقَ مِنْ جَبَلِ سَاعِيْرَ وَظَهَرَ لَنَا مِنْ جَبَلِ فَارَانَ (راغے الله تعالی د سینا نه او اُوپرقیدو د ساعیر غر نه او ښکاره شو موږ ته د غرونو د فاران نه)

چه په اول کښ اشاره ده نبوت دَ موسیٰ علیه السلام ته او په دویم کښ نبوت دَ عیسیٰ علیه السلام ته او په دریم کښ نبوت دَ محمد صلی الله علیه وسلم ته۔ نو بنی اسرائیلو ته آیات او بینات راغلی دی لیکن هغوی تبدیل او ابدال کړے دے۔

سَلْ بَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ، خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلّم ته او مراد تری نه هر مخاطب دے۔ په قرآن کښ په ابتداء دَ کلام کښ سَلْ او په مینځ دَ کلام کښ اسئال ذکر دے۔ دَ بنی اسرائیل نه مراد هغه بنواسرائیل دی چه موجود وو په زمانه دَ نزول دَ قرآن کښ۔ كَمْ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ اٰيَةٍ، کښ دوه احتمالونه دی اول دا چه دا استفهامیه دے۔ دویم دا چه داخبریه دے زمخشری دلته دواړو ته جائز وئیلی دی لیکن ابوحیان دلته خبریه متع کړیدے او وئیلی دی چه هغه محتاج دے تکلف او تقدیر دَ کلام ته۔ دارنګ لفظ دَ سَلْ دلالت کوی په کَمْ استفهامیه باندے۔ او مقصود په دے سوال کښ زجر او توبیخ دے، مقصد استعلام نه دے۔

اٰيَةٍۢ بَيِّنَةٍ، مراد دَ دے نه هغه معجزات دی چه موسیٰ علیه السلام ته ورکړے شوی وو چه بعض دَ هغے دَ دے سورت په اول کښ ذکر دی او بعض په سورة اعراف کښ ذکر دی. هغه معجزاتو دلالت کړو په صدق دَ توحید باندے او په صدق دَ نبوت دَ موسیٰ علیه السلام۔ یا دَ دینه مراد نقلیه دلیلونه دی په تورات او انجیل کښ په صدق دَ نبوت دَ نبی آخر زمان صلی الله علیه وسلم باندے او روستو جمله دلیل دے چه دلته کلام کښ یو جمله پټه ده یعنی فَبَدَّلُوْهَا وَلَمْ يَعْمَلُوْا بِهَا په دلیل دَ سورة ابراهیم ۲۸ سره۔ وَمَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ اللّٰهِ، دا دلیل دے چه هغه آیات نعمتونه دَ الله تعالیٰ دی کوم چه په دے سورت کښ اول ذکر دی لکه نجات دَ فرعون نه او دَ غرقیدلو نه وغیره۔ هغه ظاهره نعمتونه دی او کوم دلیلونه چه دَ صدق دَ آخری نبی صلی الله علیه وسلم دی نو هغه هغه چا ته نعمتونه دی چه هدایت ورکوی قبولیت دَ دعوت دَ آخری رسول ته او هغه دَ دُنیا او دَ

زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا

ډولۍ کړے شوے دے کافرانو ته ژوندون دنیوی

وَيَسْخَرُونَ مِنَ الَّذِينَ اٰمَنُوا ۘ وَالَّذِينَ

او مسخرے کوی دوی په هغه کسانو پورے چه ایمان ئے راوړے دے او هغه کسان

اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ وَاللّٰهُ

چه وېرېږی د الله تعالیٰ نه دَ دوی دپاسه به وی په ورځ دَ قیامت کښ او الله تعالیٰ

يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢١٢﴾

روزی ورکوی چاله چه اوغواړی الله تعالیٰ بے دَ حساب نه -

وقف لازم

آخرت دَ فلاح دَ پاره ذریعه ده - او په دے جمله کښ دویم مفعول پټ دے یعنی وَمَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ اللّٰهِ كفراً - لیکن حذف ئے دَ دے وجے نه کړیں ے چه کتمان او اعراض او ناشکرئ کولو ته شامل شي - او دا تبدیل په دوه قسمه سره دے اول بدلول دَ عهودو دَ الله تعالیٰ او دویم انکار دَ دلالت دَ هغے په نبوت دَ آخری نبی صلی الله علیه وسلم باندے (سمعانی) - او دا جمله عامه ده بنی اسرائیلو او نورو خلقو ته او لفظ دَ نعمت هم عام دے - ابن جریر وئیلی دی چه دا نعمت اسلام دے او په دیکښ نعمت دَ صحت او امن او کفایت وغیره داخل دی - مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ، دا لفظ دَ مزید تاکید دَ پاره دے چه سرهٔ دَ معرفت او علم نه دوی تبدیل کړیں ے - دا رنګ چه څوک سرهٔ دَ علم نه تبدیل دَ نعمت کوی نو هغه ډیر بد تر حالت والا دے - فَإِنَّ اللّٰهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ، اظهار دَ لفظ دَ الله دَ ډیر تخویف دَ پاره دے.

۲۱۲ ربط: مخکښ آیت کښ ئے مرض دَ خلقو ذکر کړو چه تبدیل دَ نعمتونو دے نو اوس دَ هغے سبب ذکر کوی چه په دُنیا باندے غرور او تکبر دے او سبب کتل دی ایمان والو ته.

زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا، امام رازی وئیلی دی چه

غوره داده چه آیت عام دے۔ فاعل دَ تزیین ئې حذف کړے دَ پاره دَ تعمیم ځکه چه الله تعالیٰ تزیین کؤونکے دے لکه په سورة کهف ۷ کښ دی۔ نورهم په ډیرو آیتونو کښ نسبت دَ زینت الله تعالیٰ ته ذکر دے۔ او دا تزیین دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه داسے دے چه الله تعالیٰ دَ دے خلقو په طبیعتونو دَ دُنیا دَ څیزونو محبت پیدا کړے دے او بل طرف ته دَ دُنیا په څیزونو کښ ئې تازګی، خوشحالی او جذب پیدا کړے دے۔ او دا رنګ شیطان ته هم نسبت دَ تزیین کیږی لکه سورة انعام ۴۳، سورة انفال ۴۸ سورة نحل ۶۳، سورة نمل ۲۴، او سورة عنکبوت ۳۸ کښ او معبودانو باطلؤ ته هم کله نسبت کیږی لکه سورة انعام ۱۳۸ کښ۔ او دا تزیین په طریقه دَ وسوسو او دهوکو سره وی۔

الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا، نه مراد مزے او څیزونه دی چه بعض دَ هغے نه مال او ځامن دی لکه سورة کهف ۷ کښ او ۴۶ کښ او دا رنګ دَ دے تفسیر په آل عمران ۱۴ کښ دے۔ وَيَسْخَرُوْنَ مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا، دا عطف دَ سبب دے په مسبب باندے یعنی دغه تزیین دَ دُنیا سبب دے دَ مسخره کولو په مؤمنانو پورے۔ او دا مسخرے په سبب دَ فقیرئ دَ هغوئ او په سبب دَ تابعدارئ کولو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم او په سبب دَ کموالی دَ شمار دَ هغوی دی۔ يَسْخَرُوْنَ، دَ سخر نه اخستلے شوے دے او سخر هغه تعجب کول دی چه یو ځائے وی دَ سپکوالی سره دَ حال دَ متعجب منه نه، (ابن عاشور)۔ دا رنګ چا ته نظر کول په طریقه دَ سپک والی دَ هغه سره۔ وَالَّذِيْنَ اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ، په دیکښ اشاره ده چه ایمان سره دَ تقویٰ نه سبب دَ عزت دے په نیز دَ الله تعالیٰ لکه فرمائی اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰىكُمْ (سورة حجرات ۱۳)۔ فَوْقَهُمْ، فوقیت (اُوچتوالے) دوه قسمه دے اول په اعتبار دَ مکان سره ځکه چه جنت اُوچت دے دَ جهنم نه او جنت ته علیین وئیلے شی او مقام دَ کافرانو ته سجین۔ دویم اُوچتوالے مجازی دے په معنیٰ دَ عزت او اکرام او کثرت دَ نعمتونو او هغه هم په جنت کښ دی۔

كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً قف فَبَعَثَ اللّٰهُ

وؤ خلق (انسانان) یوه ډله (په توحید بانذې) نو مختلف شول نو راولیږل الله تعالیٰ

النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ص وَاَنْزَلَ

پیغمبران زیرې ورکوونکي او ویره ورکوونکي او نازل ئې کړل

مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ

د دوی سره کتابونه په حقه سره دپاره د دې چه فیصله اوکړي

بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ط

په مینځ د خلقو کښ په هغه خیزونو کښ چه دوی پکښ اختلاف کړے وؤ

وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ اِلَّا الَّذِيْنَ اُوْتُوْهُ

او اختلاف نه وؤ کړے په هغې کښ مگر هغه کسانو چه ورکړے شوی وؤ هغوی ته کتاب

مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ

روستو د هغې نه چه راغلې وؤ دوی ته ښکاره حکمونه

فائده :۔ په دیکښ اشاره ده چه مؤمنانو لره په سخریه د کافرانو باندې هیڅ پرواه نه ده پکار۔ په دغه مسخرو سره د مسلمانانو په عزت او کرامت کښ هیڅ نقصان نه بلکه زیاتوالے رائحی۔ وَاللّٰهُ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ، په دے جمله کښ درے احتمالات دی۔ اول دا متعلق دے د کافرانو سره او جواب د سوال دے چه مالداری ورکول کافرانو ته دا د هغوی د حق پرستۍ دلیل دے نو حاصل جواب دا دے چه دا د الله تعالیٰ په مشیت او حکمت باندے بنا ده دا دلیل د حق یا باطل نه دے۔ دویم احتمال دا چه دا متعلق دے د مؤمنانو سره نو د هغوی د پاره دنیوی او اخروی بشارت دے۔ دریم دا عام دے کافرانو او مؤمنانو دواړو ته او دفع د وهم ده چه روزی او مالداری د دنیا د الله تعالیٰ په مشیت باندے بنا ده او دا دلیل د حق او باطل نه دے۔ دا رنګ په مَنْ يَّشَآءُ کښ دا ده

بَغۡيًاۢ بَيۡنَهُمۡ‌ۚ فَهَدَى اللّٰهُ الَّذِيۡنَ

د وجې د ضد نه چه پیدا وؤ په مینځ د دوی کښ نو هدایت ورکړو الله تعالیٰ هغه کسانو ته

اٰمَنُوۡا لِمَا اخۡتَلَفُوۡا فِيۡهِ مِنَ الۡحَـقِّ

چه ایمان یې راوړے وؤ هغه خبرے ته چه دوی پکښ اختلاف کړے وؤ چه حق طرف وؤ

بِاِذۡنِهٖ‌ؕ وَاللّٰهُ يَهۡدِىۡ مَنۡ

په حکم خپل سره او الله تعالیٰ هدایت کوی (رسوی) هغه چا لره

يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ﴿۲۱۳﴾

چه او غواړی نیغې لارے طرف ته -

احتمالات دی - او په یَشَآءُ کښ دوه احتمالات دی (۱) مشیت په معنیٰ د اراده کو تیه سره (۲) په معنیٰ د رضا سره - او په یَرۡزُقُ کښ هم دوه احتمالات دی (۱) رزق دُنیوی (۲) او رزق اُخروی (د جنت)- او بغیر حساب کښ اته احتمالات دی - (۱) دومره ورکوی چه انسان یې شمار نشی کولے - (۲) ورکوی یې په موافق د مصلحت خپل سره نه په گمان د انسانانو سره - (۳) ورکوی زیات د استحقاق د هغه نه - (۴) ورکوی او واپس یې ترینه نه اخلی - (۵) ورکوی یې بغیر د تنکسیا نه - دا پنځه واړه توجیهات کافرانو او مؤمنانو دواړو ته شامل دی او مراد د دینه رزق د دُنیا دے - (۶) ورکوی یې چه حساب ورسره نه کوی - (۷) ورکوی په جنت کښ زیات د استحقاق د هغه نه په خپل فضل سره - (۸) ورکوی یې د داسے ځائے نه (په دُنیا کښ) چه گمان کښ هم د انسان نه وی لکه وَيَرۡزُقۡهُ مِنۡ حَيۡثُ لَا يَحۡتَسِبُ - دا دریواړه توجیهات خاص دی په مؤمنانو پورے (مفردات د امام راغب)-

۲۱۳ په دے آیت کښ اشاره ده بیل خطاب د دے اُمت ته چه هغه امر ورکول دی په دعوت ورکولو کتاب د الله تعالیٰ ته د اختلاف دفع کولو د پاره نو دا متعلق دے د مخکښ خطاب سره چه اُدۡخُلُوۡا فِى السِّلۡمِ كَآفَّةً دے -

ربط ۱:۔ مخکښ د موجوده کافرانو په کفر باندے پوخوالے ذکرشونو اوس ذکرکوی چه دا په تیره شوے زمانه کښ هم موجود وو۔ ۲:۔ مخکښ آیت کښ د دوه قسمه انسانانو ذکر اُوشو نو اُوس ذکرکوی علاج د دے اختلاف چه دعوت دے پشان د تیر شوی انبیاء علیهم السلام۔

د آیت خلاصه:۔ په دے آیت کښ شلورلوئے جملے دی اوله جمله کښ ذکر د اختلاف دے روستو د وحدت نه او د هغے علاج دے په دعوت د انبیاؤ سره په ذریعه د کتاب الله سره۔ دویمه جمله کښ ذکر دی چه اختلاف چا جوړکړے دے او کله یئے جوړکړے دے او ولے یئے جوړکړے دے۔ دریمه جمله کښ ذکر دی چه په وخت د اختلاف کښ خاوندان د هدایت اهلِ ایمان وی۔ شلورمه جمله کښ دی چه هدایت په اختیار د الله تعالیٰ کښ دے۔ اولار د الله تعالیٰ ته صراط مستقیم وئیلے شی۔

کَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً ، اُمت هغه خلق وی چه جمع وی په یو څیز باندے او بعض د بعضو اقتداءکوی او معانی د اُمت مخکښ تیرے شوی دی۔ وَاحِدَةً ، صریح دے په وحدت کښ لیکن اختلاف دے په طریقه کښ او په دیکښ پنځه اقوال دی۔ ع۱۔ وحدت په ایمان کښ۔ ع۲۔ په کفر کښ۔ ع۳۔ په پیدائش کښ په فطرت باندے۔ ع۴۔ په نیشتوالی د احکامو شرعیو کښ۔ ع۵۔ په کیدلو کښ د یو جوهر نه چه پلار دے۔ لیکن په دیکښ صحیح قول اول دے۔ او دغه روایت د ابن عباس رضی الله عنهما نه ابن کثیر ذکرکړے دے او وئیلی ئې دی چه دا اصح دے په سند او په معنیٰ کښ۔ او دا سے په قراءت د ابن مسعود رضی الله عنه او اُبَیّ ابن کعب رضی الله عنه کښ هم راغلی دی چه فاختلفوا او په سورة یونس ۱۹ کښ هم فاختلفوا دے او وروسته لفظ فیما اختلفوا په دے باندے دلالت کوی۔ نو معلومه شوه چه مراد د النَّاسُ نه هغه لس پیړئ دی د آدم علیه السلام نه د نوح علیه السلام پورے چه په هغوی کښ اګرچه نور

معاصی پیدا شوی وو لیکن په توحید باندے متحد وو۔ روستو
پکښې شرک پیدا شو۔ او قرطبی وئیلی دی چه دا احتمال هم شته
چه کان صرف د ثبوت د پاره وی او مراد د دینه هغه زمانے وی
چه انبیاؤ به دعوت اوکړو او مخالفین به الله تعالیٰ هلاک کړل
نو باقی خلق به تر یو وخت پورے متحد وو په توحید باندے۔
نو څه وخت روستو به پکښې اختلاف پیدا شو تو الله تعالیٰ به
بل نبی را اولیږلو۔ فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ، دا تصریح ده چه الله تعالیٰ
هیڅ زمانه مهمله نه ده پریخودلے بلکه مسلسل یئے انبیاء علیهم
السلام رالیږلی دی۔ بعض مفسرینو وئیلی دی چه ټول انبیاء
کرام یو لاکھ څلیرویشت زره وو او رسولان په دوی کښې درے
سوه دیارلس وو او په قرآن کښې په توموتو سره اتلس ذکر شوی دی (قرطبی)
النَّبِيّٖنَ، د دینه مراد رسولان دی په قرینه د اَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ
او په صفت د مبشرین و منذرین چه دا اوصاف د رسولانو دی۔
وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ، د مَعَهُم نه مراد معیت زمانی دے
او په دے لفظ کښې دوه فائدے دی۔ اول دا چه هر یو له یئے مستقل
کتاب نه دے ورکړے لیکن ورسره یئے کتاب ساتلے دے۔ دویم
په دیکښې تائید او نصرت ته اشاره ده۔ په الْكِتَابَ کښې الف
لام د استغراق د پاره دی۔ او مقابله د جمع د جمع سره تقاضا کوی
په انقسام د افرادو په افرادو باندے یعنی هر یو رسول سره د هغه
کتاب وو۔ یا الف لام عهدی دی۔ بِالْحَقِّ، متعلق دے په انزل پورے
سوال:۔ زیرے او یره خو پیغمبرانو په کتاب سره تو دا یئے ولے
د کتاب نه مخکښې ذکر کړل؟۔
جواب ۱:۔ کله زیرے او یره ورکول په وحی سره وی اگر چه د
کتاب په شکل کښې نه وی۔
جواب ۲:۔ مبشرین و منذرین احوال وو د النَّبِيّٖنَ نه نو د هغے
سره اتصال ضروری وو۔
لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ، دا د انزال الکتاب لوئے
مقصد دے۔ یعنی رالیږل د کتابونو صرف د حفظ او تلاوت او ختمونو

کولو دَ پارہ نه وُو۔ او ضمیر دَ یَحۡکُمَ کتاب ته راجع دے او نسبت دَ حکم کتاب ته مجاز دے۔ یا ضمیر راجع دے الله تعالیٰ ته۔ او مراد په حکم دَ کتاب دَ الله تعالیٰ سره دَ حق او باطل فرق کیږی او اختلاف ختمیږی نه چه په دے سره دَ مسلمانانو په مینځ کښ تور او انتشار پیدا کیږی۔ وَمَا اخۡتَلَفَ فِيۡهِ اِلَّا الَّذِيۡنَ اُوۡتُوۡهُ، دلته دوه احتمالات دی۔ اول دا چه مراد دَ اخۡتَلَفُوۡا فِيۡهِ او وَمَا اخۡتَلَفَ آه سره یو ځیز دے په اول کښ نسبت دَ اختلاف الناس ته وو نو اُوس یٔے تخصیص دَ اختلاف اوکړو په علم والو پورے۔ دویم احتمال دا چه اول اختلاف مخکښ دَ انزال دَ کتاب نه وو دَ هغے فیصله اُوشوه په کتاب الله سره لیکن روستو دَ نزول دَ کتاب نه په اُمتونو کښ داسے خلق پیدا شول چه هغوی بیا اختلاف پیدا کړو۔ او دا اختلاف دَ هغوی په تلبیس او تحریف سره وو په اُصولو دَ شرع کښ او په یو بل کافر کولو سره۔ او دا دویم احتمال غوره دے په قرینه دَ اُوۡتُوۡهُ سره۔ او ضمیر دَ اُوۡتُوۡهُ کتاب ته راجع دے۔ او مراد په اُوۡتُوۡهُ سره اهلِ علم دی لیکن عمل یٔے په خپل علم نه دے کړے دَ دے وجے نه اُوۡتُوۡهُ مجهول صیغه ذکر شوه۔ مِنۡ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡهُمُ الۡبَيِّنٰتُ، دَ بینات نه مراد هغه ښکاره آیتونه دی دَ کتاب دَ الله تعالیٰ چه په هغے سره اتفاق په حق باندے معلومیدلو لیکن هغه دوی دَ اختلاف سبب اُوګرځو۔ بَغۡيًا بَيۡنَهُمۡ، اشاره ده چه دا اختلاف اجتهادی نه وو او په جهل باندے هم بنا نه وو بلکه دَ ظلم او حسد او عناد دَ وجے نه قصداً وو۔

بَيۡنَهُمۡ، **سوال**:- حسد او بغض خو دَ دوی په اهل حق باندے وو نو دلته خو دَ هغوی ذکر نیشته؟۔

**جواب ۱**: دَ دے بل جانب پټ دے یعنی بینهم وبین اهل الحق، لیکن هر کله چه حسد دَ یو طرف نه وو دَ دے وجے نه یٔے بل طرف ذکر نه کړو۔

**جواب ۲**: دَ دے متعلق پټ دے یعنی وَبَاضَ بَيۡنَهُمۡ (خور شوے وو او آګئی یٔے اچولے وے دَ دوی په مینځ کښ) او دا ذکر مرض

دَ بغی په دے سورت ۲۰ کښ تیرشویدے او په سورة آلعمران ۱۹، سورة شوریٰ ۱۴ او سورة جاثیه ۱۷ کښ ذکر دے۔ او په دے جمله کښ دَ تاکارة عالمانو په ډیرے مبالغے سره بدی او قباحت ذکر دے۔ اول طریقه دَ حصر په مَا او اِلَّا سره۔ دویم لفظ دَ اُوتُوه دریم اَلْبَیِّنَات څلورم بَغْیًا۔ فَهَدَی اللّٰهُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا، دَ الَّذِیْنَ اٰمنوا نه دا اُمت مراد دے او اخْتَلَفُوْا نه مراد مخکښی اهلِ کتاب دی۔ یا مراد دَ دینه مؤمنان دَ هرے زمانے دی او اخْتَلَفُوْا نه مراد بغی کوُونکی دَ هغے زمانے دی۔ لِمَا اخْتَلَفُوْا فِیْهِ، فا په اول کښ او لام په صله دَ هدایت کښ دلالت کوی چه په زمانه دَ اختلاف کښے الله تعالیٰ مؤمنانو ته ایت کوُونکو ته زر او پوخ هدایت ورکړیدے۔ مِنَ الْحَقِّ، هرکله چه دَ اختلاف نسبت دواړه طرفو ته کیدیشی (حق او باطل) نو په مِنْ بیانیه سره ئے وضاحت اُوکړو چه دلته هدایت دَ حق دَ طرف مراد دے۔ او دا حق عام دے توحید ته او صحیح عقیدے ته چه موافق وی دَ وحی سره دا رنګ تعظیم دَ جمعے ته په دے اُمت کښ او قبلے (کعبے) ته او شان دَ ابراهیم علیه السلام او عیسیٰ علیه السلام او کتابونو الٰهیو او روژے دَ رمضان ته۔ په دے ټولو کښ یهودیانو او نصارائو اختلاف کړے وو لیکن الله تعالیٰ آخری اُمت ته دَ حق هدایت ورکړے دے۔ بِاِذْنِهٖ، دا متعلق دے په فَهَدَی پورے او اِذن نه مراد علم، امر او توفیق دَ الله تعالیٰ دے۔ په دیکښ اشاره ده چه هدایت او اسباب دَ هدایت ټول په اختیار دَ الله کښ دی۔ وَاللّٰهُ یَهْدِیْ مَنْ یَّشَآءُ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ، دا جمله تتمه ده دَ ماقبل۔ هرکله چه مخکښ ذکر شو چه هدایت دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دے او دَ هغه په اِذن سره دے نو اُوس دوه څیزونه ذکر کوی۔ اول دا چه دا تقسیم دَ هدایت په مشیت او ارادے دَ الله تعالیٰ سره دے۔ صدور دَ هدایت دَ الله تعالیٰ نه په طریقه دَ ایجاب یا وجوب سره نه دے لکه چه دَ معتزلو وغیره مذهب دے۔ دویم دا چه دَ الله تعالیٰ په هدایت کښ غلطی او خطائی نه وی بلکه هغه هدایت پوره صراط مستقیم دے۔

أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ

آیا گمان کوئ تاسو چه داخل به شئ جنت ته

وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا

او حال دا چه تر اوسه پورے نه دی راغلی تاسو ته پشان د تکلیفونو د هغه کسانو چه تیر شویدی

مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ

مخکښ ستاسو نه رسیدلی وو هغوی ته سختئ د مال

وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا حَتَّىٰ يَقُولَ

او مرضونه د بدن او جړ قولے شوی وو (په ډیرو مخالفتونو سره) تردے چه اوئیل

الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَىٰ

رسول او هغه کسانو چه ایمان ئے راوړے وو د هغه سره کله به وی

نَصْرُ اللَّهِ ۗ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ ﴿٢١٤﴾

مدد د الله تعالیٰ خبرشی یقیناً مدد د الله تعالیٰ نزدے دے۔

سځ۲۱۴ په دے آیت کښ دریم خطاب دے چه په دعوت الی الله کښ ډیر مصیبتونه راځی هغه تیرول پکار دی۔
ربط ع۱ :- هرکله چه مخکښ آیت کښ دعوت د انبیاء علیهم السلام ذکر شو په کتاب الله سره۔ تو په دے آیت کښ ذکر کوی چه په دغے وخت کښ هغوی ډیر مصیبتونه برداشت کړیدی۔ او هغه مصیبتونه به په تاسو باندے هم راځی۔ ع۲ د مخکښ آیت آخری جمله کښ صراط مستقیم سره د جنت د حصول د پاره بل شرط ذکر کوی چه هغه مصائب برداشت کول دی۔
أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ، دا أَمْ منقطعه دے مخکښ ذکر د کلام نه غواړی۔ خو په دیکښ دره اقوال دی اول دا چه أَمْ په معنیٰ د بَلْ آسره دے۔ دویم دا چه په معنیٰ د بَلْ سره دے (أ) ورسره بیشته۔ دریم قول د فراء دے چه دا په معنیٰ د صرف

همزه استفهامیه دے او په اول د کلام کښ راغلی او دا غوره قول دے او دلته استفهام تقریری دے یا انکاری دے۔ او حسب د حُسْبَان نه دے په معنیٰ د گمان سره راغلی او کله کله د یقین په ځائے کښ استعمالیږی۔ او آیت برابره خبره ده که په باره د غزوه احد یا غزوه احزاب یا هجرت د مدینے کښ نازل شوے وی لیکن حکم ئے عام دے۔ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ، د دخول نه مراد داخلیدل دی بے تکلیفه او دخول اولی مراد دے ځکه چه صرف د دخول د جنت خو وعده کړے شوے ده د ټولو اهلِ ایمان سره۔ او دا سے مضمون په سورة آل عمران ۱۴۲ او سورة توبه ۱۶ کښ ذکر دے او په دغے دواړه آیتونو کښ د مصیبتونو تیرولو په ځائے جهاد ذکر کړیدے او لفظ د جهاد ټولو مصیبتونو ته عام دے۔ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَّثَلُ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ، لَمَّا پشان د لم دے لیکن په لَمَّا کښ نفی د ماضی ده چه متصل ده د زمانه حال سره۔

يَأْتِكُمْ، د اتیان نه مراد حصول دے د هغه څیز چه د عدم نه وجود ته راشی نو دا سے وی لکه چه د یو مکان نه راغلے وی۔ مَثَلُ دا صرف مشابه ته وئیلے شی لیکن استعمالیږی په عجیبه او نا اشنا حال کښ۔ دلته مراد عجیبه او نا اشنا تکلیفونه او مصیبتونه دی۔ اَلَّذِيْنَ خَلَوْا نه مراد تیر شوی پیغمبران او د هغوی تابعداران دی۔ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَآءُ وَالضَّرَّآءُ وَزُلْزِلُوْا، دا جمله تفسیر د لفظ مَثَل دے۔ مَسّ په اصل کښ یو جسم د بل جسم سره پیوست کیدلو ته وئیلے شی او استعمالیږی عموماً په ځائے د صرف و رسیدلو کښ۔ اَلْبَأْسَآءُ، تکالیف دوه قسمه دی اول هغه چه ذاتی وی۔ دویم هغه چه د بل چا د طرف نه اُورسیږی او ذاتی تکالیف بیا دوه قسمه دی اول مالی هغے ته باساء وئیلے شی، دویم بدنی مرضونه هغے ته ضراء وئیلے شی۔ دا دواړه په ۱۷۷ کښ ذکر شوی دی۔ او دویم قسم ئے په زُلْزِلُوا سره ذکر کړیدے۔ زلزله په اصل کښ خوځول د یو جسم دی په خپل ځائے کښ په سختئ سره او دا لفظ دلالت کوی په تکرار او کثرت باندے او دا

قسم ذکر دے په سورة احزاب ۱۱ کښ۔ او مراد د دیته هغه تکلیفونه دی چه د دُشمن د طرف نه راځی یعنی طعتونه، غلط او بے ځایه اعتراضونه، غلطے فتوے، کنځل او دروغ وغیره۔ حَتّٰی یَقُوْلَ الرَّسُوْلُ وَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا، حَتّٰی دلته په معنیٰ د اِلٰی سره دے او غایه ده د مَس۔ او زلزال او الرَّسُوْل کښ الف لام عهدی دی یعنی هغه رسول چه په وخت د دغه مصیبت زدؤ کښ موجود وو۔ مَعَهٗ نه په دیکښ معیت د صحبت او اتباع مراد دے۔ مَتٰی نَصْرُاللّٰهِ، مَتٰی د پاره د سوال د وخت دے۔ کله د استبعاد او استبطاء د پاره راځی لکه په دے قول د منکرینو کښ وَیَقُوْلُوْنَ مَتٰی هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ کُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ (سورة یونس ۴۸، سورة اسراء ۵۱) او نور هم ډیر آیتونه دی۔ او کله د صرف طلب او د دُعا د پاره راځی لکه په دے آیت کښ۔

سوال: متیٰ د استبعاد د پاره راځی یعنی امداد د الله تعالیٰ بعید گتری او صورت او حال د نا اُمیدئ پیدا کوی او داخو د شان د رسولانو نه لرے خبره ده؟

جواب ۱: په کلام کښ تقدیم تاخیر دے یعنی متیٰ نَصْرُاللّٰهِ قول د مؤمنانو دے او اَلَآ اِنَّ نَصْرَاللّٰهِ قَرِیْبٌ قول د رسول ﷺ دے اُمت ته د تسلئ ورکولو د پاره۔ په دے جواب باندے یو اعتراض دا دے چه دا د فصیح کلام نه بعیده ده چه بے ضرورته په هغے کښ تقدیم او تاخیر اُوکړے شی۔ دویم داچه نا اُمیدی کول د مؤمنانو (د ملګرو د انبیاؤ) د شان نه لرے ده لکه په سورة احزاب ۱۱ او ۲۲ کښ دی۔ او دارنګ د مخکنو اُمتیانو صبر په ډیرو آیتونو کښ ذکر دے لکه سورة اعراف ۱۳۷، سورة قصص ۵۴، او سورة سجده ۲۴ او په ډیرو آیتونو کښ په سبب د صبر د مؤمنانو سره وعده د مغفرت او زیرے د جنت ذکر دے۔ لکه سورة رعد ۲۲، سورة نحل ۹۶ او سورة فرقان ۷۵۔ نو حاصل جواب دا دے چه ایمان کامل والو خو صبر کړیدے نو د هغوی قول په نا اُمیدئ او په بے صبرئ باندے څرنګه حمل کیږی۔

يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ ؕ
تپوس کوی دوی ستا نه چه څه څیز خرچ کړی

قُلْ مَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ
ته اُوایه هغه چه خرچ کوئ تاسو څه مال (حلال)

فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ وَالْيَتٰمٰى
نو دَ پاره دَ مور او پلار دے او خپلوانو او یتیمانو

وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا
او مسکینانو او مسافرو دی او هغه چه کوئ څه

مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿۲۱۵﴾
دَ نیکئ کار نو یقیناً الله تعالیٰ په هغے پاندے ښه علم لری۔

جواب ع۲ په کلام کښ تقطیع ده چه يَقُوْلُ الرَّسُوْلُ تسلية لهم وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ۔ په دے جواب پاندے هم دغه دوه اعتراضونه دی۔ نو صحیح توجیه په دے آیت کښ دا ده چه ابن عطیه او آلوسی لیکلے ده چه متٰی دَ پاره دَ دُعا دے یعنی رسول او مؤمنانو به دُعا طلب کوله دَ نصرت دَ الله تعالیٰ او اَلَآ اِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ اجابت دے دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه۔ ابن کثیر هم ویئیلی دی چه دوی به فتح طلب کوله او دَ تکلیف دَ لرے کیدو دَ پاره به یئے دُعا غوختله او الله تعالیٰ اجابت کوؤ دَ هغے۔ او دا سے قول قرطبی هم ذکر کړے دے۔

قائده:۔ دَ الله تعالیٰ کلام بے ضرورته تکلفاتو پاندے حمل کول نه دی پکار کله چه دَ هغے دَ پاره صحیح محمل ممکن وی۔ دلته هم مقصد دَ آیت بشارت ورکول دی جنت ته په دخول اولی سره په شرط دَ صبر کولو سره په تکالیفو دَ دین پاندے یعنی دَ تکلیف او مصیبت په وخت کښ صبر کول اهم او ضروری څیز دے او سبب دے جنت ته دَ دخول۔

۲۱۵ خلاصه دَ باب:۔ دَ دے آیت نه تر ۲۴۲ پورے دَ دے حصے دریم باب دے۔ په دیکښ اتلس احکام ذکر کوی چه دَ اکثرو تعلق دَ مالونو او دَ زنانؤ سره دے او دینه اُمور دَ تس بیرمنزل وئیلے شی یعنی مؤمنانو مجاهدینو دَ پاره دَ کورنئ او دَ معاشرے نظام دَ شرع مطابق جوړول پکار دی۔ او دَ دے اُمورو په ذکر کولو کښ دَ خصوصیت وجه داده چه په دے کښ جاهلیت والو مظالم او رسمونه داخل کړی وو۔ نو دَ هغے نه دَ مؤمنانو بچ کول مقصد دے۔ دَ دے وجے نه دَ هر یو ے خبرے په عنوان کښ اجتناب (ځان بچ کول) مراد دے لکه چه روستو به ذکر کیږی۔ دا رنګ دا امور دوه اړخونو والا (ذوجهتین) دی تو ترغیب ورکوی صحیح اړخ ته۔

ربط ۱: هر کله چه مخکښ آیت کښ په ابتلاء اتو کښ البأساء ذکر شو او بأساء هغه تکالیف کونیه او شرعیه دی چه دَ مال سره تعلق لری نو په دے آیت کښ دَ هغے نه بعض ذکر کوی ۲:۔ مخکښ آیت کښ دَ جنت دَ حاصلولو بعض طریقے ذکر شوے تو اوس په دے آیت کښ دَ حصول دَ جنت بله طریقه ذکر کوی۔ ۳:۔ ادخلوا فی السلم کافة سره مابعد ټول احکام ذکر شوی تعلق لری چه دا دَ اسلام اعمال دی په دے شرط چه دَ جاهلیت دَ طریقو نه محفوظ وی۔

دَ دے آیت عنوان دا دے چه په دیکښ دَ انفاق مصارف شرعیه ذکر کوی او مقصد پکښ اجتناب دے دَ اسراف او تبذیر نه۔ نو په مال خرچ کولو کښ دوه اړخونه دی جاهل خلق یئے دَ اسراف او تبذیر په طریقے سره خرچ کوی۔ او الله تعالیٰ ترغیب ورکوی دَ خیر اړخ ته چه هغه صحیح مصارف دی۔

یَسْئَلُوْنَكَ مَاذَا یُنْفِقُوْنَ، اکثر مفسرینو ذکر کړی دی چه دا سوال عمرو بن الجموح رضی الله عنه کړے وو چه دَ خپلو مالونو نه څومره خرچ کړو او کوموځایونو کښ یئے خرچ کړو۔ نو دا آیت دَ هغه دَ سوال په جواب کښ نازل شو۔ او هر کله چه دا سے سوال او

ضرورت دَ جواب هر مؤمن له پکار دے نو دَ دے وجے نه یې په صیغه دَ جمع سره جواب ذکر کړو- مَاذَا په معنیٰ دَاَیّ شَیْءٍ دَے یعنی څه څیز یا اَیّ شَیْءٍ الَّذِیْ (هغه څیز دے هغه) نو جواب اُوشو چه قُلْ مَا اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَیْرٍ فَلِلْوَالِدَیْنِ-

سوال:- دلته دَ سوال او جواب مطابقت څرنګه دے؟-

جواب یې په ډیرو وجوهو سره دے- اوله وجه دا ده چه په سوال کښ دوه څیزونه وُو لکه چه مخکښ ذکر شول نو جواب کښ دواړه ذکر دی- دَ اول جواب په مِنْ خَیْرٍ لفظ سره او دَ دویم سوال جواب په فَلِلْوَالِدَیْنِ سره دے- دویمه وجه دا چه په سوال کښ اهم مقصد مصارف ایزده کول دی دے دَ پاره چه دَ جاهلیت دَ طریقو نه اجتناب اُوشی- نو جواب کښ صرف مصارف ذکر شول- مِنْ خَیْرٍ کښ دَ خیر نه مراد هر حلال مال دے او دَ هغې دَ مقدار تعین نه حاجت نیشته دَ دے وجے نه یې نکره ذکر کړه-

فَلِلْوَالِدَیْنِ، دے آیت کښ دَ انفاق نه مراد زکوٰة نه دے ځکه چه والدین مصرف دَ زکوٰة نه دی بلکه انفاق واجبه مراد دے دَ وجے دَ حقوقو دَ بندګانو نه سره دَ احتیاج دَ هغوی نه- بیا آیت کښ ښائسته ترتیب دے اول یې حق دَ والدینو ذکر کړیں ے ځکه چه روستو دَ الله تعالیٰ دَ حق نه حق دَ والدینو دے- لکه چه په سورة اسراء ۲۳ کښ ذکر دی- او مراد دَ والدین نه دلته هغه دی چه دَ مال او دَ کسب نه قاصر وی او ولد یې دَ استطاعت خاوند وی نو دا انفاق واجب دے- بیا وروستو وَالْاَقْرَبِیْنَ ذکر دی ځکه چه دا قرابت او خپلولی دَ والدینو په سبب سره پیدا شوی ده- او دا رنګ انسان دَ خپلو خپلوانو په فقر او حاجت باندے ښه خبر وی- بیا وروستو وَالْیَتٰمٰی ذکر دی ځکه چه هغوی په کسب کولو باندے قدرت نه لری او څوک یې نیشته چه کسب ورله اُوکړی نو دَ دوی حاجت ډیر زیات دے دَ روستو ذکر شوو نه- بیا وروستو وَالْمَسٰکِیْنِ، ذکر دی دَ دوی حاجات هم ښکاره دی- مال او کور او ذریعه دَ خوراک څښکاک نه لری- بیا وروستو وَابْنِ السَّبِیْلِ

كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ

فرض کړے شویدے په تاسو باندے جنګ کول او حال دا چه دا ډیر بد کاره کیږی تاسو ته

وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ

او کیدے شی چه بد ګڼړئ تاسو یو څیز او حال دا چه هغه فائده مند وی تاسو له

(مسافر) ذکر دی د دوی حاجت وقتی دے چه دے منقطع (جدا)
دے د خپل کلی نه او وقتی حاجت ئے پیدا شوید ے. نو د دے
اشخاصو د احتیاج د وجے نه په دوی باندے خرچ کول واجب دی.
سوال:- دا سے انفاق واجبه بغیر د زکوٰة نه په آیت کښ
هم مراد دے نو هلته ئے والدین ولے نه دی ذکر کړی؟۔
جواب:- هرکله چه والدین د حاجت په وخت کښ د اولاد په
مال کښ پشان د مالکانو دی په دلیل د حدیث (اَنْتَ وَمَالُكَ
لِاَبِيْكَ) او هلته ئے لفظ د آتی المال ذکر کړیدے او ایتاء د
مالک د پاره ذکر کول مناسب نه دی او انفاق خو مالک او غیر
مالک دواړو د پاره استعمالیږی۔
سوال:- هلته ئے والسائلین وفی الرقاب هم ذکر کړی دی او
دلته نیشته؟۔
جواب:- په هغه آیت کښ د بِرّ (نیکئ کولو) ذکر کول مقصد دے
او لفظ د بِرّ دلالت کوی په فراخئ او وسعت باند ے د دے
وجے نه هلته ئے مصارف ډیر ذکر کړی دی۔
وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ، دا اجمال دے روستو د تفصیل نه او اشاره
ده چه د خیر کارونه او مصارف د دے نه علاوه نور هم شته دے۔
فَإِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ، په دے جمله کښ مقصد تسلّی ورکول دی
چه د خیر عمل الله تعالیٰ نه ضائع کوی بلکه د خپل علم موافق
جزا ورکوی۔

وَعَسٰٓى اَنْ تُحِبُّوْا شَيْـًٔا وَّهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ ؕ

او کیدی شی چه بشه یه گنړئ تاسو یو څیز او هغه په نا کاره دی تاسو لره

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۱۶﴾ ع

او الله تعالیٰ علم لری د هر څیز او تاسو د هر څیز علم نه لرئ .

سـ۲۱۶ په دے آیت کښ دویمه خبره ده د اُمورو د نس بیر متزل نه او مقصد په دیکښ اجتناب کول دی د تابعدارئ کولو د طبیعت او خواهش نه په خلاف د شرع کښ - او تنبیه ورکوی چه دا رهمار د کارونو د حسن او د قبح په شریعت سره دے - او د دے مثال ورکوی په فرضیت د قتال فی سبیل الله سره -

ربط ع۱ په مصیبتونو کښ دویم قسم مصیبت الضراء و یعنی بدنی تکلیف او د دے مثال په شرعی اُمورو کښ قتال دے - ربط ع۲ مخکښ آیت کښ د جنت د حاصلولو د پاره عبادت مالیه ذکر کړو تو په دے آیت کښ د هغے مقصد د پاره عبادت بدنی ذکر کوی - ع۳ مخکښ آیت کښ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ ذکر وو نو په دے آیت کښ د خیر مثال ذکر کوی په مسئله د قتال فی سبیل الله سره -

كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ، دا تعبیر مناسب دے د سـ۱۷۸، سـ۱۸۰ او سـ۱۸۳ سره - کتب فعل ماضی دلته د اخبار د پاره ده یعنی د دے نه مخکښ په تاسو باندے قتال فرض شوے دے په آیت سـ۱۹۰ کښ - او صحیح دا ده چه قتال فرض کفائی دے لیکن کله چه کافران په دار اسلام باندے حمله اوکړی نو بیا قتال فرض عین دے - الْقِتَالُ، الف لام عهدی دی یعنی جنګ کول د دُشمنانو د دین سره وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ، قرطبی د ابن عرفه نه نقل کړی دی چه کُرْهٌ په پیښ د کاف سره مشقت او نفرت ته وائی او په زَوَر د کاف سره اکراه ته وئیلے شی او دواړه د یو بل په ځائے هم استعمالیږی او جهاد او قتال مکروه (سخت) د دے وجے نه دی چه په دیکښ مال خرچ کول د اهل او وطن نه بهر وتل او خپل ځان او بدن مرګ او زخمونو ته حواله کول دی او دا کارونه طبعًا په هر انسان

باندے مکروه یعنې ګران وي۔ او دا جمله حالیه ده یعنې الله تعالیٰ قتال په تاسو باندے فرض کړیدے په دا سے حال کښ چه الله تعالیٰ ستاسو په کراهیت د قتال باندے عالم دے۔ او ابن عاشور وئیلي دي چه دے آیت کښ د تیر شوي حال حکایت دے یعني په اول وخت کښ چه مسلمانانو لږ وو او قتال کښ یو په لس مقابله فرض وه نو دا سبب د کراهیت وو نو هر کله چه هغے حکم کښ تخفیف راغے او یو په دوه مقابله واجب شوه نو کراهیت زائیله شو۔

سوال:۔ دا خطاب دے صحابه کرامو ته نو څرنګ دوي فریضه د الله تعالیٰ چه قتال دے مکروهه ګڼړله دا خو د عام مؤمن د حال نه هم بعیده خبره ده؟۔

جواب ۱:۔ مخکښ ذکر شوه چه دا طبعي کراهت دے او بے اختیاره دے نو په دے باندے انسان ماخوذ نه وي په دلیل د لا یکلف الله نفسًا الا وسعها سره۔ او دا کراهیت هم بیا زائیل شو لکه مخکښ ذکر شو۔

جواب ۲:۔ دا کراهیت د فرضیت د قتال نه مخکښ وو نو الله تعالیٰ په ترغیب د قتال کښ اُوفرمائیل چه تاسو یو کار بد ګڼړئ مخکښ د فرضیت نه لیکن الله تعالیٰ هغه فرض کړي ځکه چه ستاسو د پاره په هغے کښ خیر وي (اللباب)۔

وَعَسٰى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْـًٔا وَّهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ، په دیکښ اشاره ده چه قتال ذوجهتین (دوه اړخوتو والا) دے او دا جواب دے د سوال نه چه هر کله قتال مکروه دے نو د الله تعالیٰ د رحمت تقاضا داده چه د دے حکم ئے نه کولے۔ نو دا جواب اُوشو چه وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ۔ او دا جمله معطوف ده په كُتِبَ عَلَيْكُمُ باندے او وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ جمله حالیه ده۔ او په دے جواب کښ لطف د الله تعالیٰ دے په خپلو بندګانو باندے چه هغوي ته د خپل حکم حکمت ذکر کوي او په علم د حکمت د حکم سره رغبت او تخفیف پیدا کیږي۔ او په دیکښ اشاره ده چه احكامِ الٰهیه د بندګانو په مصالحو

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ

تپوس کوی دوی ستا نه په باره دَ میاشتو دَ عزت کښ

قِتَالٍ فِيْهِ ؕ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ ؕ

په باره دَجنگ کولو په هغے کښ ته اُوایه جنګ کول په هغے کښ غټه ګناه ده

وَصَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌ م

او منع کول دَ خلقو دَ لارے دَ الله تعالیٰ نه او کفر کول

بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ق وَاِخْرَاجُ

په هغے او (منع کول) دَ مسجد حرام نه او ویستل

اَهْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ج وَالْفِتْنَةُ

دَ حقدارو دَ هغے دَ هغے نه ډیره غټه ګناه ده په نیز دَ الله تعالیٰ او شرک کول

بانـے بنا دی په طبائعو بانـے نه دی بنا۔ او په دے جمله کښ
دَ کراهیت نه طبعی کراهیت مراد دے او دَ خیر نه خیریت شرعیه مراد دے۔
عَسٰی فعلِ ماضی ده دَ انشاء دَ ترجی (دَ داسے څیز اُمیں چه دَ هغے
حاصلیدل آسان وی) دَ پاره راځی اسم مرفوع او خبر منصوب غواړی۔
لیکن هر کله چه دَ دے نه روستو متصل اَنْ یا اَنَّ ذکر شی نو عَسٰی
تامه وی۔ او مفسرینو او اهل لغتو وئیلی دی چه عَسٰی دَ الله تعالیٰ دَ
طرف نه دَ ترجی دَ پاره نه وی بلکه دَ وجوب او تحقیق دَ پاره راځی
ما سیوا دَ سورة تحریم ۵ نه۔ او دلته په جهاد کښ خیریت دا دے
چه یا غلبه او غنیمت حاصل شی او یا شهادت او جنت حاصل شی۔
وَعَسٰٓی اَنْ تُحِبُّوْا شَيْـًٔا وَّهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ، دلته دَ هغے مثال دا دے چه پاتے
کیدل دَ جهاد او قتال نه طبعاً محبوب وی لیکن دَ هغے پریخودلو کښ شر
ډیر دے یعنی نقصانات دُنیویه او اُخرویه۔ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ،
دا علت دَ ماقبل دواړه جملو دَ پاره دے او مراد دَ علم نه هر خیر او شر
او علم بکل شیٍٔ دے او دغه علم دَ بندګانو نه سلب دے که مقربین
بندګان وی او که غیر وی۔

أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۗ وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ

ډیره غټه ګناه ده د قتل نه او همیشه دی دوی چه جنګ کوی تاسو سره

حَتّٰى يَرُدُّوكُمْ عَنْ دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا ۚ

تردے پورے چه او ګرځوی تاسو د دین ستاسو نه که چرے وس یې اورسیږی

وَمَنْ يَرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ

او څوک چه او ګرځیدلو ستاسو نه د دین د هغه نه

فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ

نو مړ شو په دے حال کښ چه دے کافر وي نو دغه کسان برباد دی

أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۚ وَأُولٰٓئِكَ

عملونه د دوی په دنیا او آخرت کښ او دغه کسان

أَصْحَابُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٢١٧﴾

اور والا دی دوی به هغے کښ همیشه وی ۔

۲۱۷ دا د تدبیر منزل د أمورونه دریم امر دے ۔ او په شهر حرام کښ د قتال سره متعلق دے او د دے مقصد اجتناب کول دی د اشد البلیتین نه په آسان جانب سره تو هغه آسان به شرعًا حسن لغیره اوګرځی ، او مثال د دے قتال کول دی د مشرکانو د شرک او ظلمونو د دفع کولو د پاره اګرچه په میاشت د حرمت کښ وی ۔ او دا حکم هم دوه جهتونو ( ارخونو ) والا دے ۔ په یو جهت سره ګناه دے او په بل جهت سره عبادت او ثواب دے ۔

ربط ۱۔ مخکښ آیت کښ د عام قتال حکم ذکر شو چه هغه ذو جهتین وو او دس د قتال خاص قسم ذکر کوی ۔ ع۲۔ ابن عاشور وئیلی دی چه ظاهر دا ده چه دا آیت په مخکښ آیت پسے نازل شوے ـ او د هغے د پاره تکمله او تائید دے ۔

يَسْئَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ ، د دے په سبب نزول کښ ځ اقوالو

اختلاف دے مشهور قول دا دے چه دا نازل شوېي دے په باره داولے سریۀ (هغه وړوکے جنګ چه رسول الله صلی الله علیه وسلم پکښ شرکت نه وی کړے) د مسلمانانو کښ چه امیر د هغے عبدالله بن جحش وو او په قافله د قریشو باندے ئے حمله اوکړه کله چه هغوی د طائف د طرف نه راتلل او یوتن ئے د هغوی نه قتل کړو. او دا واقعه د جمادی الآخر په آخری ورځ کښ اوشوه. لیکن اشتباه (شک) راغله چه دا اوله ورځ د رجب المرجب ده چه هغه د حرمت میاشت ده نو مشرکانو په مسلمانانو باندے عیب او طعن اوکړو چه دوی د ملتِ ابراهیمیه نه خلاف اوکړو او د حرمت په میاشت کښ ئے قتال اوکړو. نو د دے اشتباه د لرے کولو د پاره صحابه کرامو دا تپوس اوکړو. دویم قول دا دے چه په واقعه د حدیبیه کښ دا سے سوال شوے وو. کله چه نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام د عمرے کولو نه منع کړے شول نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو نه په قتال کولو باندے بیعت واخستو او هغه میاشت (ذوالقعده) د حرمت وه. نو مؤمنانو یا مشرکانو دا تپوس یا اعتراض اوکړو. او روستو د صد عن سبیل الله سره دا قول زیات مناسب دے. الشَّهْرِ الْحَرَامِ، کښ الف لام جنسی دی یعنی چه هره میاشت د حرمت وی. او د دے وجے نه روستو قتال نکره د دے نه بدل اشتمال کیدل جائز دی. او د بعضِ مفسرینو قول دا دے چه په دیکښ الف لام عهدی دی او د دینه مراد د رجب میاشت ده او قتال په سبب د فِیْهِ سره معرفه ګرځیدلے دے.

قِتَالٍ فِيْهِ، دا د الشَّهْرِ الْحَرَامِ نه بدل اشتمال دے او مقصد په سوال کښ د قتال جواز او عدم جواز دے وقوع نه ده مراد.

سوال:- دا سے ئے ولے نه وئیل چه يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْقِتَالِ فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ؟.

جواب:- په دیکښ اشاره ده اهتمام ته په باره د شهر حرام کښ نه صرف قتال ته. او قتال ئے نکره ذکر کړه اشاره ده چه په دیکښ مراد یو معین قتال نه دے کوم چه په سبب نزول کښ

ذکر بلکه جنس قتال کښ بحث دے۔
قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ، سوال:- پکاره وه چه دلته يئے ضمير ذکر کړے وے؟
جواب:- په دېکښ دَجواب پوره مطابقت دے دَ سوال سره او دَ دے دَ پاره چه وهم رانشي چه ضمير الشهر ته راجع دے۔
سوال:- القتال په الف لام سره وئيل پکار وو؟
جواب ۱ مقصد حکم قتال معينه نه دے بلکه هر قتال مراد دے۔
جواب ۲ په سوال کښ قتال دَ عبدالله بن جحش مراد وو او هغه کبيره (گناه) نه وو او په جواب کښ حکم دَ هغه قتال مراد دے چه په هغے کښ تذليل دَ اسلام او نصرت دَ کفر وي۔ او هغه غير دے دَ محکښ نه ځکه يئے نکره ذکر کړه (اللباب) کبير په صفت دَ مخلوق کښ (په حقيقت کښ) هغه څيز دے چه جوثه يئے غټه او قوي وي ليکن دلته مراد غټه گناه والا دے۔
فائده:- دفاعي قتال په شهر حرام کښ جائز دے په اتفاق دَ اهلِ علمو سره په سبب آيت ۱۹۱ دَ دے سورت سره ليکن ابتداءِ دَ قتال په شهر حرام کښ، په دېکښ اختلاف دے دَ علماؤ۔ يو قول دا دے چه دا منسوخ دے په فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ۔ او وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِيْنَ كَآفَّةً سره ځکه چه دا آيتونه عام دي او دَ دے آيت نه روستو نازل شوي دي۔ دويم قول دَ مجاهد او دَ عطاء دے چه دا منسوخ نه دے۔ او ابوحيان وئيلي دي چه دا قول غوره دے ځکه چه په اتفاق دَ اهلِ علمو سره ثابت ده چه عام خاص لره نه منسوخ کوي۔

وَصَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ، دَ دے نه روستو يئے دَ قتال دَ مشرکانو شپږ علتونه ذکر کړي دي چه هغه اسباب دي دَ قتال دَ جواز دَ پاره په شهر حرام کښ۔ حاصل دا دے چه تاسو اے مشرکانو چه کوم شپږ کارونه کوئي دا خو اکبر (ډير غټ) دي په نسبت دَ هغه عمل چه مسلمانانو کړيدے ستاسو په مخالفت کښ نو دَ دفع دَ پاره قتال جائز کړے شوے دے او دا اول سبب دے۔
صَدٌّ، مصدر دے چه فاعل او مفعول يئے پټ وي يعني صدکم المسلمين

او سبیل الله عام دے اسلام، هجرت، حج، عمرے او قرآن ټولو ته شامل دے۔ وَكُفْرٌ بِهِ، دا دویم علت دے بِهِ ضمیر راجع دے سبیل ته یا الله تعالیٰ ته راجع دے۔ او دا کفر د وجود د الله تعالیٰ او د صفاتو او احکامو د هغه نه انکار کولو ته او شرک کولو ته شامل دے۔ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ، دا دریم علت دے او عطف دے په سبیل الله باندے د صَدٌّ د لاندے داخل دے۔ په دے ترتیب کښ یې ډیر قبیح مقدم کړیدے په ذکر کښ چه هغه عام صد دے او وروستو عام کفر دے۔ یا دا عطف دے په ضمیر د بِهِ باندے او دا په نیز د کوفیانو باندے جائز دے۔ او مراد د کفر د مسجد حرام نه د مسلمانانو منع کول دی په هغے کښ د مونځ کولو او طواف کولو نه۔ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ، دا څلورم علت دے او عطف دے په صَدٌّ یا په کفر باندے او ضمیر ونه د أَهْلِهِ او مِنْهُ مسجد ته راجع دی۔ او اضافت د اخراج أَهْلِهِ ته اضافت دے د مصدر مفعول ته۔ اهل هغه چا ته ویلے شی چه د هغوی په مضاف الیه پورے پوره اختصاص وی لکه اهل البلد، اهل القرآن او اهل الحدیث وغیره۔ نو دلته مراد د اهل نه مؤمنان دی او دوئ ته اولیاء هم ویلے شی لکه سورة انفال ۳۴ کښ۔ او دوی ته اهل او اولیاء د مسجد حرام ځکه ویلے شی چه دوی تابعدار د ملت د هغه چا دی چه مسجد حرام (کعبه) یې جوړ کړیدے او دا رنګ کلک دی په توحید چه حق د مالک د بیت دے (رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ) او اخراج د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو د مکے مکرمے نه مستلزم وو د هغوی توهین او تذلیل لره او دا کفر او ظلم دے۔ أَكْبَرُ عِنْدَ اللهِ، دا لفظ خبر دے د صَدٌّ عَنْ سَبِيلِ اللهِ او د هغے د معطوفاتو نه او دا غوره قول دے او وجه د غټوالی (په اعتبار د ګناه سره) د دے ټولو ښکاره ده په نسبت د قتال کولو په شهر حرام کښ ځکه چه دا څیزونه اسباب د قتال دی۔ دا رنګ قتال د عبد الله بن جحش د رجب په میاشت کښ په دے ګمان سره وو چه دا رجب نه دے۔ او

داکاروته دَ مشرکانو خوا دَ حرمت په میاشت کښې یقیناً دو. وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ، دا پنځم علت دے. دَ لفظ فِتْنَةٌ تفصیل مخکښ تیر شوے دے. دلته دَ مفسرینو دوه اقوال دی. اول داچه دَ دینه مراد کفر او شرک دَ مشرکانو دے. یعنی دَ مشرکانو دا شرک او کفر دَ قتل دَ یو مشرک نه په شهر حرام کښې ډیر غټ جرم دے. دویم قول داچه اړول دَ مسلمانانو دَ دین اسلام نه په شبهاتو اچولو سره دَ هغوی په زړونو کښې یا په تعذیب دَ هغوی او منع کول دَ ایمان نه او په قول او فعل سره دَ هغوی تنګول دا ډیر غټ جرم دے ځکه چه په ډیر کفریاتو او مظالمو باندے مشتمل دے. او امام رازی وئیلی دی چه دا قول دلته غوره دے ځکه چه غټوالے دَ کفر خو مخکښ په کفر به سره ذکر دے، که دلته هم دغه مراد شي نو تکرار راځي. وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا، دا شپږم علت دے. یعنی قتال دَ مشرکانو دَ مسلمانانو سره په هر فرصت کښې دَ پاره دَ مرتد کولو دَ هغوی دَ دین نه دا دَ قتل دَ یو مشرک نه په میاشت دَ حرمت کښې ډیر غټ جرم دے ځکه چه قتال مشتمل دے په ډیر قسما قسم اذیتونو ورکولو باندے او قتل خو دَ قتال یو ټکړه ده. دلته په حَتَّىٰ کښې دوه احتمالات دی. اول داچه دا دَ غایئے دَ پاره دے او دویم داچه دَ علت دَ پاره دے. دویم قول احسن دے ځکه چه دَ مشرکانو په نیز باندے مرتد کول اصل غرض دَ قتال دے. إِنِ اسْتَطَاعُوا کښې شرط په حرف دَ إِنْ سره دلالت کوی چه مؤمنان (صحابه) په دین اسلام باندے پاخه دی. په دوی باندے دَ مشرکانو دَ مرتد کولو څه وس نه رسی. نو معلومه شوه چه دَ مشرکانو دا کوششونه عبث او باطل دی. وَمَن يَرْتَدِدْ مِنكُمْ عَن دِينِهِ، هرکله چه مشرکان دَ ارتداد دَ مسلمانانو کوشش کوی نو په مسلمانانو کښې اُوس دوه قسمونه ذکر کوی. اول هغه چه مرتد شي دَ دین اسلام نه او دلته تخویف ذکر کوی دَ هغه دَ پاره. دَ مَنْ نه مراد مسلمان دے او دَ دِينِهِ نه مراد دین اسلام دے. دویم قسم

په مخکښ آیت کښ دے۔ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ، د دینه مراد دا چه په ژوند کښ د مرتد کیدلو نه توبه اُونکړی او مړ شی. او په دے جمله کښ اشاره ده که چرے مرتد د خپل ارتداد نه توبه کول غواړی نو توبه ئے قبلیدلے شی۔ او موت علی الکفر ته مواقات وئیلے شی فَاُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ، حبط په لغت کښ دینه وئیلے شی چه اُوښان یو ضرر ری او نقصان ده بوټے اُوخوری او خیټه ئے اُوپړسیږی او د هغے نه مړ شی. او د شرع په اصطلاح کښ بے اثره کیدل او باطل کیدل د یو عمل ته وئیلے شی۔ اَعْمَالُهُمْ نه هغه نیک اعمال مراد دی چه د اسلام په حالت کښ ئے کړی وی یعنی مونځ، روژه، حج او زکوٰة وغیره۔

فائده:- په صرف ارتداد سره عمل حبط (برباد) کیږی او که نه موت په ارتداد باندے شرط د حبط دے۔ په دے مسئله کښ اختلاف دے۔ د امام شافعی رحمه الله او د بعض علماؤ په نیز مواقات شرط دے یعنی که څوک مرتد شو لیکن د مرګ نه مخکښ صحیح توبه اُوباسی نو د ده مخکښ اعمال نه بربادیږی او هغوی په دے آیت سره دلیل نیولے دے چه په دیکښ ئے موت علی الکفر شرط لګولے دے۔ او په نیز د امام مالک او امام ابو حنیفه رحمهما الله صرف په مرتد کیدلو سره تیر شوی عملونه برباد شول اګرچه روستو توبه اُوباسی او د دوی دلیل د سورة مائده ۵ سورة انعام ۸۸، سورة اعراف ۳۳ او سورة زمر ۶۵ آیات دے۔ دغه آیاتونه مطلق دی۔ او د دے آیت (فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ) د دوی په نیز توجیه دا ده چه دا شرط د خلود فی النار د پاره دے چه روستو ذکر شویدے۔

سوال:- حمل د مطلق په مقید باندے لازم دے لکه چه د اُصول فقه په کتابونو کښ ذکر دی؟۔

جواب:- دلته مسئله د مطلق او مقید نه ده بلکه قانون دا دے چه یو حکم معلق شی په دوه شرطونو پورے اول ځائے معلق شی په یو شرط پورے نو دغه حکم واقع کیږی په وخت د وجود د

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا

یقیناً هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے او هغه کسان چه هجرت ئې کړے دے

وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ يَرْجُونَ

او جهاد ئې کړے دے په لار د الله تعالیٰ کښ دغه کسان امید لري

رَحْمَتَ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢١٨﴾

د رحمت د الله تعالیٰ او الله تعالیٰ بخنه کوؤنکے رحم کوؤنکے دے۔

هر يو شرط کښ۔ دلته هم دا سے محل دے۔

فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، حبط (برباديدل) په دُنيا کښ دا دے چه دے به قتل کیږی کله چه د دهٔ په قتل باندے قدرت حاصل شی۔ او جنګ به ورسره کیږے شی کله چه مقابله کوی۔ او مؤمنان به ورسره هیچ قسم تعلق او دوستانه نه ساتی او نصرت به ورسره نه کوی۔ او ښځه به ترینه جدا کړے شی۔ او د مسلمانانو د میراث نه به محروم کړے شی او د هغه صفت او ستائنه به نشی کیدے۔ او حبط په آخرت کښ دا دے چه ثوابونه د آخرت دهٔ ته نه ملاویږی او د جنت نه به محروم وی او په جهنم کښ به همیشه وی۔

وَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ، دا جمله په مخکښ أُولَٰئِكَ باندے عطف ده او دا متفرع ده په شرط کښ په لفظ د فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ باندے۔

۲۱۸ په دے آیت کښ د مسلمانانو دویم قسم ذکر دے چه سرهٔ د کوشش کولو او د ظلمونو کولو د کافرانو نه دوی د دین اسلام نه نه واپس کیږی بلکه د خپل دین د حفاظت د پاره هجرت کوی۔ او په دے آیت کښ د دغسے مسلمانانو د پاره بشارت (زیرے) ذکر کوی۔

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا، ایمان اصل دے د هجرت، جهاد او د نورو اعمالو د پاره نو د دے وجے نه دائے په مستقل موصول

(اَلَّذِيْنَ) سره ذکر کړو۔ وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ
دا دواړه ئې په يو موصول کښې راجمع کړل ځکه چه دواړه متفرع
دی په ايمان باندې۔ هَاجَرُوْا، هجرت په اصل لغت کښې
ترك (پرېښودلو) ته وئيلې شی او په عرف کښې نقل کيږل دی
د يو ملك او وطن يا کلی ته بل ملك وطن او کلی ته او د شريعت
په اصطلاح کښې پرېښودل د خپل ملك او مسکن دی د خپل
ايمان د حفاظت د پاره کله چه د کافرانو او ظالمانو د طرف ته
په دهٔ باندې ظلم او زياتې کيږی او دې په آزادئ سره خپلې
اسلامی لارې چارې سرته نشی رسولې۔ تو دا مقابل د ارتداد
دې۔ وَجٰهَدُوْا، نه مراد جهاد شرعی دې يعنی دعوت کول او
قتال کول۔ جهاد ئې د هجرت سره ذکر کړو د دې د پاره چه
معلومه شی چه د دهٔ هجرت د الله تعالیٰ د دين د پاره وو د مال
يا د بل څه ذاتی مقصد د پاره نه وو۔ اُولٰٓئِكَ يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ،
رجاء هغه ګمان دې چه تقاضا کوی د حصول د هغه څيز چه
په هغې کښې خوشحالی وی او ديته طمع هم وئيلې شی۔ ليکن طمع
په هغه ځائے کښې استعماليږی چه تقاضا د يو څيز کوی ليکن
اسباب ورسره نه وی او رجاء په هغه ځائے کښې استعماليږی
چه تقاضا کولو سره اسباب هم موجود وی (دلته دړې اسباب
ذکر دی) او رجاء کله په معنی د خوف سره راځی۔ ابن عطيه وئيلی
دی چه رجاء سره خوف هميشه وی او د خوف سره رجاء هميشه
وی يعنی په طريقه د تلازم سره۔ او اصمعی وئيلی دی چه د رجاء
سره نفی راشی نو په معنیٰ د خوف سره وی۔ رَحْمَتَ اللّٰهِ نه مراد
جنت او ثوابونه د اعمالو دی۔

سوال:- هر کله چه ايمان، هجرت او جهاد موجود وی نو د ثواب
د پاره صيغه د يقين ئې ولې ذکر نه کړه؟

جواب ۱ انسان اګرچه په طاعت د الله تعالیٰ کښې انتها ته
اُورسيږی خو بيا هم د خاتمې نه خبر نه لری۔

جواب ۲ دا د دې د پاره چه په خپلو عملو تو باندې پوره

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِؕ

تپوس کوی دوی ستا نه په باره د شرابو او د جوارئ کښې

قُلْ فِيْهِمَاۤ اِثْمٌ كَبِيْرٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ٘

ته اوایه په دې دواړو کښې ګناه لویه ده او څه نفع د پاره د خلقو

وَاِثْمُهُمَاۤ اَكْبَرُ مِنْ نَّفْعِهِمَاؕ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ

او ګناه د دوی نه پیره اکبري (ډیر غټ) دی د نفع د دې دواړو نه او تپوس کوی دوی ستا نه

مَاذَا يُنْفِقُوْنَ۬ؕ قُلِ الْعَفْوَؕ كَذٰلِكَ

چه د کوم مال نه خرچ اوکړی ته ورته اوایه د زیاتی مال نه د غسې

يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۱۹﴾

بیانوی الله تعالیٰ تاسو ته احکام خپل دے د پاره چه فکر اوکړئ تاسو

اعتماد اُونکړی (قرطبی)۔

**جواب ۳** تفریع د ثوابونو د جنت په ایمان او عمل صالح باندے واجب عقلی نه ده بلکه صرف په سبب د وعدے د الله تعالیٰ سره ده۔ **جواب ۴** دلته ئے صرف درے اعمال ذکر کړی دی او د دینه علاوه اعمال صالحو ته هم ضرورت دے د جنت د حصول د پاره۔ **جواب ۵** دلته رجاء په نفس ثواب کښې نه ده مراد بلکه د هغې په مقدار او تفصیل د کیفیت کښې ده۔ رحمت په اُوږده تله سره په اوو آیتونو کښې ذکر دے لکه دا آیت سورة اعراف ۵۶، سورة هود ۷۳، سورة مریم ۲، سورة زخرف ۳۲ ۳۲ او سورة روم ۵۰ او دا لیکل په لغت د هغه چا کښې دی چه وقف په دے باندے په تاء سره کوی یا په اعتبار د وصل سره۔ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ، دا ئے د رجاء پخولو د پاره ذکر کړیں دے یعنی رجاء د غفور رحیم ذات ته پشان د یقین ده۔

۲۱۹ په دیکښې د تیر د اُمورو د منزل نه شلورم امر ذکر کوی چه هغه مسئله د خمر او میسر (شرابو او جوارئ) ده او دا مسئله هم

ذوجهتین ده مناقع اوضررونه دواړه پکښ شته - اومقصد په دیکښ اجتناب دے د هغه ځیز نه چه ضرریٔ د نفع نه غټ اولویٔ وی -
ربط ۱ه مخکښ ذکرشو چه قتال په شهرحرام کښ غټه ګناه ده نو اوس د هغې په مشاکلت سره ذکر کوی چه شراب خوری اوجواریٔ کولوکښ هم لویه ګناه ده -
ربط ۲ه دارنګ په شهرحرام کښ قتال حسن دے د وجے د مقابلے د مشرکانو نه لیکن خمر او میسر قبیح دی د وجے د مضراتو نه - او دیته تقابل د تضاد وئیلے شی -
یَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْخَمْرِ، سوال کوُونکی صحابه عمراومعاذ رضی الله عنهما وو لیکن فائده د سوال ټولو مؤمنانو ته رسیږی ځکه یٔ نسبت ټولو ته اوکړے شو - اوسوال د ذات او حقیقت په باره کښ نه دے بلکه د دے د حکم شرعی په باره کښ دے - اَلْخَمْرِ، خمر په لغت کښ پټولو ته وئیلے شی اوشراب څښکل هم عقل لره پټوی د نشه کیدلو په سبب سره - او د شریعت په اصطلاح کښ د علماؤ اختلاف دے - په نیز د جمهورو اهلِ علمو شراب (خمر) هر هغه مشروب (د څښکلو ځیز) دے چه عقل فاسد وی په دلیل د حدیث د صحیحین چه په وخت د نزول د تحریم د خمر کښ پنځه قسمونه وو ۱ه شراب د انګورو ۲ه د کجوره و ۳ه د غنمو ۴ه د وریشو ۵ه او د جوارو اوپل روایت کښ د عسل (ګبین) هم دی - او په دغه حدیث کښ دی چه اَلْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ (شراب هغه ځیز دے چه عقل ګډوډ کوی) او په بل حدیث کښ دی چه هر نشه پیدا کوُونکے ځیز خمر دے او هر خمر حرام دے - نو دا احادیث په تشریح د قرآن کریم (په باره د خمر کښ راغلی دی - ځکه چه لفظ د خمر مجمل وو نو احادیث یٔ شرح ده او په مجاز یا تن دے حمل کول غیر مناسب دی - او په نیز د امام ابوحنیفه رحمه الله او سفیان ثوری رحمه الله خمر صرف د انګوره وکچه اوبه دی چه څه زمانه روستو اوخوټکوُشی او د سمرقندی په روایت کښ خمر انګورو، اوسکو (میوه) او

کجورو ته هم شامل دے۔ اکثرو احنافو فتوی په اول قول یاں رے ورکړے ده۔

فائده:- د خمر (شرابو) په باره کښې څلور آیاتونه په ترتیب سره نازل شوی دی اول سورة نحل ۶۷ دویم دا آیت (په سبب د دے آیت سره بعض صحابه کرامو خمر او میسر پریښودل) دریم سورة نساء ۴۳ (حرام شول په وخت د مونځ کولو کښې او په نورو وختونو کښې حلال وو) څلورم سورة مائده ۹۰ چه په هغے سره مطلقاً حرام شول۔

وَالْمَيْسِرِ، دا د یُسر نه اخستلے شوے دے په معنیٰ د آسانتیا سره دے۔ یا د یسار نه په معنیٰ د غنا (مالداری) سره دے۔ او په جوئ کولو سره مال په آسانتیا سره حاصلیږی او انسان مالداریږی۔ او ابن عباس رضی الله عنهما او ډیرو تابعینو نه روایت دے چه میسر هر قمار ته شامل دے لکه نرد (د عربو یو کهیل وو) شطرنج، لوبے کول په غوزانو یا بلورو وغیره سره چه یو بل نه ئے په آسانه سره گټي او دا سے نورے طریقے او تفصیل د میسر د جاهلیت والو په ازلام (غشو) سره صاحب اللباب او قرطبی ذکر کړیدے۔ قُلْ فِيهِمَآ إِثْمٌ كَبِيرٌ، دلته مضاف پټ دے یعنی تعاطیهما یعنی د دے دواړو په استعمال کښې غټ گناهونه دی۔ په کَبِيرٌ لفظ کښې اشاره ده چه گناه ئے یو وی لیکن مشتمل ده په ډیرو گناهونو باندے د دے وجے نه کثیر ئے نه دے وئیلے۔ هغه یو گناه چه د هغے په کولو سره ډیر گناهونه صادریږی هغه خښکل د شرابو دی لکه سورة مائده ۹۱ کښې هغه ذکر دی۔ دا رنگ د شرابو خښکلو سره جگړے کول، کنځل کول دروغ او فحش وئیل او زنا کول وغیره۔ او د ابن ابی الدنیا روایت دے چه هغه په یو نشه کوونکی شخص ورتیر شو چه هغه په خپلو لاسونو کښې واړه بول کول او په هغے باندے ئے او دس کولو او وئیل ئے چه الحمد لله الذی جعل الاسلام نوراً والماء طهوراً (شکر دے د هغه الله تعالیٰ چه اسلام ئے رڼا گرځولے ده

او اوبه یې پاکوونکې کرځولی دی) او قرطبي وئیلي دي چه ډیر کرته بوشرابي شخص د عقل والو د پاره سبب د خندا او کرځي د خپلو بولو او کندګئ سره لوبې کوي- او یو شخص اولیدلے شو چه بول یې په مخ پورے مګل او وئیل یې چه اللهم اجعلني من التوابین واجعلني من المتطهرین (اے الله ما د توبه کوونکو نه اوګرځوے او ما د ځان پاکوونکو نه اوګرځوے)

او قاسمي په خپل تفسیر کښ د اطباؤ د قول په بنا د شراب خوړئ شپاړس نقصانات ذکر کړي دي- او د میسر (جوارئ کولو نقصانونه هم ډیر دي- اول دا چه په دے سره بغض او دُشمني پیدا کیږي چه هغه بیا سبب د ډیرو ګناهونو ګرځي- او انسان په کښ د ذلت او خوارئ سره مخ کیږي- دا رنګ د جوارئ بیللو د وجے نه غلا او ډاکے کول او یو بل ته کنځل او فحش وینا کول او دا رنګ د الله تعالیٰ د ذکر او مونځونو نه منع کیدل-

وَمَنَافِعُ لِلنَّاس، قرطبي او ابوحیان د خمر په منافعو کښ ذکر کړي دي چه د دے په تجارت کښ نفع ډیره وي بلکه او س زمانه کښ د چرسو، افیونو، پوډرو او شرابو په تجارت او سمګلنګ کښ هم ډیره ګټه ده- دا رنګ طبیبانو د دے په منافعو کښ ذکر کړي دي- غم زائیلیدل، وقتي طور خوشحالي حاصلیدل او هضم د خوراک، تقویت د کمزورئ، قوت باه حاصلیدل په بعض نشو سره- بهادر کیدل د بزدل سړي او د رنګ صفائي په بعض نشو سره- او منافع د جوارئ دا دي، مال حاصلیدل بے تکلیفه او بیا په غریبانو او محتاجانو کښ د ریاء او سمعت د پاره تقسیمول وغیره- وَإِثْمُهُمَا أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا، مخکښ ذکر شو چه د دے بوګناه مستلزم دے ډیرو ګناهونو لره او فائدے ئے وقتي او زائلیدونکي دي- او ابن عباس رضی الله عنهما په روایت کښ دي چه سزا ګانے د دے روستو د تحریم نه غتے دي په منافعو د دے مخکښ د تحریم نه- او په دے جمله کښ ترغیب دے د هغے نه منع کیدلو ته ځکه چه د عقل سلیم تقاضا دا ده چه لره

تقع به پریږدی په مقابله ډیر ضرر کښ۔
فائده :- بعض اهلِ علمو وئیلی دی چه په دے آیت سره دخمر او میسر تحریم شوے دے لیکن غوره قول دا دے چه په دے کښ ترغیب دے د هغے نه بچ کیدو ته او تحریم د سورة مائده په آیت سره دے۔

وَيَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ، (ربط د مخکښ سره ۱) دا دوارلم سوال دے صحابه کرامو په یو ځائے کړی وو د دے وجه نه ئے دا په ما قبل باندے عطف کړے دے ۲ د خمر او میسر نه په منع کیدلو سره هسے نه چه په خلقو کښ بخل او شومتیا پیدا شی د دے وجه نه آیت کښ وروستو جمله کښ انفاق بالحق ذکر شو۔ ۳ په خمر او میسر کښ منافع لږ او ضرر ونه ډیر وو نو د هغے نه اجتناب ضروری دے او په انفاق د عفو کښ ضرر لږ دے (مال کمیدل) لیکن منافع دنیویه او اخرویه په کښ ډیر دی نو په دے باندے عمل پکار دے۔ او په دے سوال کښ مراد د مقدار تپوس کول دی او مخکښ دا سے سوال په باره د مصرف کښ ذکر شوے وو او دلته مراد د انفاق نه عام انفاق دے لکه جهاد کښ خرچ کول، صدقات نفلیه او صدقات واجبه په طریقه د اجمال سره۔ او د صدقاتِ واجبه تفصیل په نورو نصوصو کښ دے۔ قُلِ الْعَفْوَ، په دیکښ هم د اسراف او د بخل نه منع ته اشاره ده۔ او دا د قرآن کریم طریقه ده لکه په سورة اسراء ۲۶، ۲۷، ۲۹ او سورة فرقان ۶۷ کښ۔ عفو په لغت کښ زیادت ته وئیلے شی لکه سورة اعراف ۹۵ کښ حَتّٰى عَفَوْا۔ ابن عاشور وئیلی دی چه عفو نه مراد مقدار دے چه زیات وی د حاجات اصلیه د انسان نه (لکه د خرچے د هغه او د اهل او عیال د هغه نه په طریقے د عادت سره او لباس، استوګنه او خادم وغیره نه) او ابو حیان نقل کړیدی د حسن بصری نه چه عفو هغه درمیانه حال دے چه اسراف او تقتیر پکښ نه وی۔ او د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه هغه آسان خرچ ته

وئیلے شی چه دَ مال بیخکښ نه کوی. او حکمت شرعیه په دیکښ دا دے چه انفاق دا سے پکار دے چه همیشه وی او دا هله کیدے شی چه په انسان هغه انفاق کول آسان وی او هغه په انفاق دَ عفو (زیاتی) کښ دے. او په حدیث صحیح کښ دَ دے تائید دے خَیْرُ الصَّدَقَةِ مَا کَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًی وَابْدَءْ بِمَنْ تَعُوْلُ (غوره صدقه هغه ده چه روستو دَ بے حاجته کیدلو نه وی او شروع کوه په انفاق کښ په اهل وعیال باندے.

سوال:- اَلْعَفْوَ نه معلومیږی چه دَ انسان دَ حاجات اصلیه نه څو مره مال زیاتی وی نو هغه به ضرور خرچ کوی دَ ځان سره به هیڅ نه جمع کوی؟

جواب ۱ دَ ابوذر رضی الله عنه دَ رائے نه علاوه دَ ټولو صحابه کرامو او اُمت اجماع ده چه په انسان باندے دَ انفاق واجبه او زکٰوة نه علاوه نور خرچ کول واجب نه دی او په دے باندے ډیر نصوص دلالت کوی. نو معلومه شوه چه دَ اَلْعَفْوَ نه مراد مِنَ الْعَفْوِ دے یعنی عفو منفق نه دے بلکه محل دَ انفاق دے.

جواب ۲ په دیکښ الف لام عهد خارجی دی یعنی هغه زیادت دَ مال چه دَ نصاب شرعی نه زیات وی او بیا داخاص دے په زکٰوة او واجباتو نصابیو پورے.

کَذٰلِكَ یُبَیِّنُ اللّٰهُ لَکُمُ الْاٰیٰتِ، دا دَ الله تعالیٰ دَ احسان ذکر دے په دے اُمت باندے دَ پاره دَ ترغیب امتثال (عمل کولو) دَ احکامِ الٰهیو ته. یُبَیِّنُ فعل مضارع حال او استقبال دواړو ته شامل دے. او دَ آیت نه مراد هغه احکام دی چه مخکښ ذکر شول.

لَعَلَّکُمْ تَتَفَکَّرُوْنَ، دا ذکر دَ فائدے دَ تبیین دے. او تفکر کښ اشاره ده استنباط دَ حکمتونو او علتونو دَ تیر شوی احکاموته په عقل سلیم خپل سره. دارنګ ضرر ونه او مناقع دَ خمر او میسر او تقابل دَ هغوی په مابین کښ په صحیح فکر کولو سره معلومیږی. آلوسی وئیلی دی چه دَ دے متعلق پټ دے یعنی فکر او کړئ په آیاتو نو کښ دَ پاره دَ استنباط دَ احکامو او دَ فهم دَ مصالحو او مناقعو دَ پاره.

فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ط وَيَسْئَلُونَكَ

په باره د دنیا او آخرت کښې او دوی تپوس کوی ستا نه

عَنِ الْيَتٰمٰى ط قُلْ إِصْلَاحٌ لَّهُمْ

په باره د یتیمانو کښې ته اوایه اصلاح د دوی د پاره

خَيْرٌ ط وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ ط

غوره ده او که چرې گډون کوئ تاسو د دوی سره نو رونړه ستاسو دي

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ ط وَلَوْ شَاءَ

او الله تعالیٰ پیژنی فساد کوؤنکے جدا د اصلاح کوؤنکی نه او که چرې غوختے

اللّٰهُ لَأَعْنَتَكُمْ ط إِنَّ اللّٰهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (۲۲۰)

الله تعالیٰ ضرور په تکلیف کښې په ئے اچولے وے تاسو یقیناً الله تعالیٰ زور آور حکمتونو والا دے

ت۲۲ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، په دیکښې څلور وجوه دی. اوله وجه داچه دا متعلق دے د تَتَفَكَّرُونَ سره او مضاف پټ دے یعنی فکر کوئ په امر (حال) د دُنیا او آخرت کښې تو اصلح او ابقٰی غوره کړئ په دُنیا باندې چه آخرت دے. دویمه وجه داده چه دا متعلق دے په يُبَيِّنُ پورې یعنی بیانوی تاسو له حال د دُنیا او آخرت چه فکر اُوکړئ په زوال او فنا د دُنیا کښې او په راتللو د آخرت کښې تو زهد اوکړئ په دُنیا کښې او رغبت اُوکړئ په آخرت کښې. دریمه وجه دا متعلق دے په الآیات پورې او هغه په معنیٰ د علامات ظاهره سره دے. څلورمه وجه داده چه د دے متعلق پټ دے یعنی فتفکروا فی الدنیا والآخرة یعنی فکر اوکړئ د دُنیا د پاره تو د ژوند د دُنیا د پاره ځان سره ضروری سامان او مال اُوساتئ. او فکر اُوکړئ د آخرت د پاره یعنی څه مال د آخرت د نفعے د پاره خرچ کړئ. نو اول تفکر فی الآیات مراد دے او دویم تفکر د دُنیا او د آخرت په باره کښې مراد دے.

وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى، دادامور وړتىر پير متزل ته يُخمى امر دے يعني اجتناب اُوکړئ د اختلاط د مال د يتيم نه په قصد او نيت د افساد او وراني سره - او بغير د وراني نه شريكول د مال جائز دى نو دا هم دوه اړخونو والا حكم دے۔

ربط :- په پرېښودلو د خمر او ميسر کښ اصلاح د خپلو نفسونو او مالونو ده او په باره د يتيمانو کښ دا حکم د پاره د اصلاح د مالونو د هغه چا دے چه پخپله د اصلاح کولو نه عاجزوي۔ نو اشاره شوه چه مسلمانان د خپلے فائدے او د غير (مسلمان ورور) د فائدے د دواړو لحاظ ساتي۔ او د آيت د نازليدو سبب دا دے چه هر کله لاتقربوا مال اليتيم په سورة انعام ۱۵۲ او سورة اسراء ۳۴ کښ نازل شو نو مؤمنانو د يتيمانو د مالونو نه دومره پرهيز شروع کړو چه د هغوى مالونه يئے د خپلو مالونو نه بالکل جدا کړل او په ديکښ تکليف ووتو دوى په دے باره کښ تپوس اوکړو۔

عَنِ الْيَتٰمٰى، مراد د دے تپوس نه يوځائے کول او شريکول د مال د يتيمانو دى د خپلو مالونو سره په وخت د خرچ کولو کښ۔

قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ، خير دواړه جانبونو ته عام دے يعني د متولي د پاره غوره دے په اعتبار د آسانتيا سره او د يتيم د پاره په دے اعتبار غوره دے چه مال د هغه به د فساد او خرابئ نه بچ شي۔ او اصلاح لفظ کښ تعليم او تاديب د يتيم او تحفظ د مال د هغه او زياتي کول په طريقه د تجارت وغيره سره داخل دى ليکن سره د قصد او نيت د اصلاح نه۔ او په ديکښ اختيار ورکول دى متولي ته چه هغه دِ نظر او فکر اوکړي چه شريکول د مال ورته فائده مند ښکاري نو شريک دِ کړي او که بغير د شريکوالئ نه ورته خير ښکاري نو هغسے دِ اوکړي - وَاِنْ تُخَالِطُوْهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ، مخالطت هغه جمع او يوځائے کولو د څيزونو ته وئيلے شي چه د جدائئ تميز ګران شي۔ او د دے تخصيص يئے په ذکر کولو سره د دے وجے نه اُوکړو چه د تپوس کوونکو د دے د جواز په باره کښ شبهه وه۔ او

داشامل دے مشارکت ته په نفقه او تجارت وغیره کښې او بعضو علماؤ دا مصاهرت (سخر گنۍ جوړولو) ته هم شامل کړیږي.
فَإِخْوَانُكُمْ، کښې علت دَ جواز دَ مخالطت او کیفیت دَ هغې ته اشاره ده یعنی شریکوالی ورسره ځکه جائز ده چه دوی ستاسو رونړه دي په سبب دَ ایمان یا په سبب دَ نسبي رورولئ سره. او یو رور دَ بل رورسره شریکوالی کوي او دارنګ یو رور دَ بل رور ته دَ حساب کتاب کولو بیره کوي تو تاسو هم دَ یتیمانو سره حساب کولے شئ.
وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ، په دے جمله کښې بیره ورکول مقصد دي دَ خیانت کولو نه دَ یتیم په مال کښې په حالت دَ شریکوالی کښې. یعنی دَ یتیم دَ طرف نه دَ الله تعالیٰ نه سیوا څوک حساب کؤونکے نیشته. مُفْسِدِ دلته هغه څوک دے چه دَ یتیم دَ مال دَ خوړلو اراده کوي په حیلے او چل دَ شریکوالیٔ سره. تو دا رنګ چه څوک دَ یتیم مال په حیلے دَ اسقاط سره خوري هغه هم په دیکښې داخل دے. مِنَ الْمُصْلِحِ، په یعلم کښې علم دَ تمیز کولو مراد دے دَ دے وجے نه یئ په صِله کښې مِنْ ذکر کړیږے.
وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَعْنَتَكُمْ، په دے جمله کښې دَ الله تعالیٰ دَ احسان ذکر دے چه هغه په دے حکم کښې په تاسو آسانتیا کړے ده مشقت یئ دریاسے نه دے کیښود لے. مشقت او سختي دا وه چه مخالطت او شریکوالی یئ په تاسو حرام کړے وے یا یئ واجب کړے وے. لَأَعْنَتَكُمْ، عنت په لغت کښې هغه مشقت دے چه دَ طاقت نه بهر وي او شدت او سختیٔ دَ تکلیف ته وئیلے شي لکه تعنت کول په سوال (تپوس) کولو کښې یعنی په تپوس کښې سختي او عناد کول دارنګ یو هډوکے چه روستو دَ جوړیدلو نه دوباره مات شي هغې ته عنت وئیلے شي ځکه چه انسان ته پکښې ډیر تکلیف رسیږي. دلته دَ مفسرینو ډیر اقوال دي ۱ سختي به یئ راوستلے وے په تاسو باندے په دے حکم کښې ۲ تاسو به یئ هلاک کړي وئ. ۳ په ګناه کښې به یئ اخته کړي وئ. ۴ تنګسیا به یئ دریاسے راوستلے وے. او دا اقوال ټول یو بل ته

وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ ط

او نکاح مه کوئ دَ مشرکو زنانو سره (غیر کتابیه) تردے پورے چه ایمان راوړی

وَلَاَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ

او خامخوا وینزه مؤمنه غوره ده دَ مشرکے آزادے نه

وَّلَوْ اَعْجَبَتْكُمْ ج وَلَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ

اګرچه تاسو په تعجب کښ اچوی او په نکاح سره مه ورکوئ (لوڼړه خوائندے) مشرکانو سړو ته

حَتّٰى يُؤْمِنُوْا ط وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ

تردے پورے چه ایمان راوړی او ضرور مریے مؤمن غوره دے

مِّن مُّشْرِكٍ وَّلَوْ اَعْجَبَكُمْ ط اُولٰٓئِكَ

دَ مشرک آزاد نه اګرچه تاسو په تعجب کښ اچوی دغه کسان

يَدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ ج صلے وَاللّٰهُ يَدْعُوْٓا

بلنه کوی اور ته او الله تعالیٰ بلنه کوی

اِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِاِذْنِهٖ ج وَيُبَيِّنُ

جنت او بخشش ته په حکم خپل سره او بیانوی

اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ (۲۲۱) ع ۲۷ ۵

آیاتونه خپل خلقو ته دَ دے دَ پاره ا چه نصیحت قبول کړی۔

نیز دے دی۔ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ، یقیناً چه الله تعالیٰ هر قسم حکم نافذ کولے شی او څوک یئے منع کولے نشی۔ حَكِيْمٌ، په هر حکم کښ یئے دَ بندګانو دَ پاره خاص فائدے وی۔

۲۲۱ په دے آیت کښ دَ تدبیر منزل دَ امورو نه شپږم امر دے چه دَ اهلِ شرک سره دَ نکاح کولو نه ځان بچ ساتل دی۔ هسے نه چه دَ ښځے خاوند دَ عقیدے په مخالفت سره دَ کورنئ نظام خراب شی۔ او دا حکم هم دوه جهتونه لری۔ دَ مال او جمال په اعتبار

اونسب سره تقاضا کیږی دَ نکاح دَ اهل شرک سره لیکن دَ بے دینئ دَ وجے (چه شرک دے) دَ هغوی سره دَ نکاح کولو نه ځان بچ کول ضروری دی۔ او دا مضمون په حدیث کښ هم موجود دے تُنْکَحُ الْمَرْءَةُ لِاَرْبَعٍ لِمَالِهَا وَجَمَالِهَا وَحَسَبِهَا وَدِيْنِهَا فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّيْنِ تَرِبَتْ يَدَاكَ (دَ ښځے سره نکاح کیږی دَ څلورو وجو نه دَ مال، دَ ښائست، دَ نسب او دَ دین دَ وجے نه توکامیابی حاصله کړه په دینداره ښځے سره۔ کنه تولاس به دے په خاوره وکښ لګړشی).

ربط:۔ دَ مخکښ آیت سره سره هر کله چه مخالطت دَ یتیمانو سره مصاهرت (دَ نکاح رشته) ته شامل وو لیکن کله چه هغوی کښ اولاد دَ مشرکانو هم وی تو اُوس منع کوی دَ نکاح کولو دَ اهلِ شرک نه ځکه دَ انسان شکل او صورت په دریو څیزونو بنا دے خوراک څښاک او نکاح کول سرهٔ دَ پرهیز کولو دَ حراموته۔ تو په ذکر دَ خمر او میسر او مال دَ یتیمانو سره دَ خوراک څښاک پرهیز ذکر شو اوس دَ نکاح په باره کښ پرهیز ذکر کوی۔

وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ، نکاح په اصل لغت کښ لازمیدل او جوختیدل دی په یو څیز پورے او سولیدل دَ یو څیز دی او تداخل په یو بل کښ (اللباب) او په عرف کښ په معنیٰ دَ عقد تړلو دَ نکاح او په معنیٰ دَ وطی سره رائحی دا په طریقه دَ اشتراک یا په طریقه دَ حقیقت او مجاز سره دے۔ او امام راغب په مفردات کښ وئیلی دی چه دا په باره دَ عقد کښ حقیقت دے او په باره دَ وطی کښ مجاز دے او دا قول حق دے۔ او دلته مراد نکاح شرعی دے۔ الْمُشْرِكٰتِ، اشراك، شرک کول په اصطلاح دَ شرع کښ حصه ورکول دی مخلوق لره په ربوبیت دَ خالق کښ یا په الوهیت یا تحکیم دَ هغه کښ۔ برابره خبره ده که دا مخلوق خواهش دَ نفس وی (په دلیل دَ أَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰهُ) (دَ الله اطلاق یئے په خواهش باندے کړیدے) او که شیطان وی یا طاغوت یا نبی، ولی، جن، فرښته، پیر فقیر وی یا صنم او وثن وغیره وی۔ تو دا تعریف کفر ته هم شامل دے لیکن په عرف

دَ عربو کښې اکثر دَ شرک ذکر وو او هغه یې ذریعه دَ تقرب الٰهی گنړله دَ دې وجې نه تعبیر دَ شرک یې راوړې دے تو نکاح دَ مشرکو او کافرو ښځو سره باطل او حرام دے۔
فائدہ :- اهلِ کتاب په دے عنوان کښې داخل دی او که نه؟ په دے مسئله کښې امام رازی په تفسیر کبیر کښې ډیر تفصیل کړیدے۔ حاصل دا دے چه په دے کښې دوه اقوال دی۔ اول دا چه لفظ دَ مشرکات کتابیانو ته هم شامل دے (یعنی کتابی ته مشرک وئیلے شی) ابوحیان وئیلی دی صحیح دا ده چه کتابیانے په المشرکات کښې داخلے دی ځکه چه دوی بندګی دَ غیرالله (دَ عزیر او عیسیٰ علیهما السلام) کوی او الله تعالیٰ دوی ته نسبت دَ شرک کړیدے۔ او دا قول دَ ډیرو مفسرینو دے۔ قرطبی هم دا قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما او امام مالک، سفیان ثوری او امام اوزاعی رحمهم الله ته نقل کړیدے۔ آلوسی وئیلی دی چه دَ بعضِ علماؤ قول دے چه دا لفظ کتابیانو ته شامل دے او په دے باندے یې درے دلیلونه ذکر کړی دی۔ ابن عادل دمشقی (صاحب اللباب) وئیلی دی چه لفظ دَ مشرک کتابی ته شامل دے او په هغے باندے یې پنځه دلائیل ذکر کړی دی۔ اول دلیل سورۃ توبه ۳۰، ۳۱ دویم سورۃ نساء ۴۸ په باره دَ کتابیانو کښې دے او دَ هغوی کفر ته یې شرک وئیلے دے۔ دریم سورۃ مائده ۷۳ چه دوی درے ذواتِ مستقله په یو ذات کښې ثابتوی او دا حقیقتاً شرک دے۔ څلورم دلیل حدیث دَ مسلم دے په کتاب الجهاد کښې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو شخص امیر مقرر کړو (او کتابیانو ته یې لښکر اولیږلو) هغهٔ امیر ته یې اوفرمائیل چه هرکله تهٔ دَ مشرکانو دُشمنانو سره مخامخ شې نو دعوت دَ اسلام ورته ورکړه۔ پنځم دلیل ابوبکر الاصم وئیلی دی چه څوک دَ رسول دَ رسالت او دَ معجزاتو ته انکار کوی او دغه شخص دَ دغه خوارقو (خلافِ عادت کارونو) نسبت شیطانانو او جنانو ته کوی نو دا شرک دے۔
او ځه وایم چه الله تعالیٰ کتابیانو ته مشرکان په اشارة النص سره

وئیلي دي لکه په سورة بقره ۱۳۵ او سورة آل عمران ۶۷ کښ. او د عمر رضی الله عنه نه په حدیث صحیح کښ د بخاري نقل دي چه کله یې د خیبر نه کتابیان شړل نو وئیلي یې وو چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِيْنَ مِنْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ. بل حدیث د مشکوٰة المصابیح دے چه د خالي او اتوار په ورځ روژه مه نیسئ ځکه چه دا أَيَّامُ عِيْدٍ لِلْمُشْرِكِيْنَ دي او مراد ترېنه یهود او نصارا دي. او بل دلیل دا دے چه په دے آیت کښ په دویمه جمله کښ وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَتّٰى يُؤْمِنُوْا دے او په هغې کښ بالاتفاق کتابي داخل دے ځکه چه د کتابي مشرک د حرمت د نکاح د پاره بل دلیل نیشته.

**دویم قول** د دے خلاف مفسرینو ذکر کړیدے او د هغوی غټ دلیل دا دے چه الله تعالیٰ مشرکان معطوف کړي دي په اهل کتابو باندے په ډیرو آیاتونو کښ لکه سورة بقره ۶۲، ۱۰۵، سورة حج ۱۷، سورة البینه ۱ او عطف مغایرت غواړي. د دے جواب دا دے چه عطف هر ځائے کښ مغایرت من کل وجه نه غواړي بلکه کله عطف د خاص اوشي په عام باندے لکه سورة بقره ۹۸ او سورة احزاب ۷ نو دلته هم په مینځ د اهل کتابو او مشرکانو کښ مغایرت د نوم دے په اعتبار د عرف عام سره چه په عام عرف کښ غیر کتابیانو ته (چه شرک کوي) مشرکان وئیلے شي او کتابیانو ته اهل الکتاب وئیلے شي.

**فائده ۲**: ابن جریر وئیلي دي چه اجماع د اُمت ده چه کتابیه مشرکے ښځے سره نکاح جائز دے او کوم روایت مرفوعه چه د نهي ذکر دے یا د غصه کیدلو د عمر رضی الله عنه نو ابن کثیر وئیلي دي چه هغه ثابت نه دي. نور تفسیر د دے مسئلے په سورة مائده کښ ذکر دے. نو هر کله چه نکاح د مشرکے سره جائز دے نو د دے سره طریقه د موافقت عامو مفسرینو ذکر کړیده چه دا تخصیص دے د عموم د دے آیت نه یعني مشرکات لفظ عام دے کتابیانو ته لیکن په آیت د سورة مائده سره تخصیص

د نکاح د کتابیاتو د جواز شوی دے او دیته د متقدمینو په اصطلاح کښ نسخ وئیلے شی او په نیز د متأخرینو دا تخصیص او تقیید دے د یو آیت په بل آیت سره۔ هاں په جواز د نکاح د کتابیاتو سره شرط دا دے چه اهل حرب به نه وی او دا رنګ پخپله عقیده د کتابیت باندے به قائمه وی یعنی که شرک کوی خو دے شرک ته دین نه وائی او د وجود د الله تعالیٰ نه او د بعث بعد الموت نه انکار نه کوی۔ د دے زمانے په یهودو او نصاراؤ کښ دا سے صفت والا ډیر کم دی۔

فائده ۳ د دے اُمت نه چه څوک شرک کوی نو هغه په حکم د کتابی کښ دے او که نه دے؟ په دے مسئله کښ د دے وخت د اهلِ علمو اختلاف دے د بعضو په نیز دوی اهلِ کتاب نه دی په دے دلیل سره چه دغه لفظ په عرف کښ خاص دے په یهودو او نصاراؤ پورے نو دوی په حکم د عام مشرکانو کافرانو کښ دی یا په حکم د مرتدینو کښ دی۔ او د اکثر اهلِ علمو قول دا دے چه دوی په حکم د اهلِ کتابو کښ دی د څو وجو نه۔ اوله وجه دا ده چه صابئین په نیز د ډیر اهل علمو او په نیز د امام ابوحنیفه رحمه الله په حکم د کتابیاتو کښ دی او حال دا چه غیر دی د یهودو او نصاراؤ نه۔ دویمه وجه ډیرو مفسرینو د سورة آلعمران ۱۸۷ او سورة توبه ۳۴ د لاندے دا اُمت داخل کړیدے۔ دریمه وجه د سورة توبه آیت په تفسیر کښ امام بخاری رحمه الله قول د ابوذر رضی الله عنه ذکر کړیدے چه اِنَّهَا نَزَلَتْ فِيْنَا وَ فِيْهِمْ (دا آیت زمونږ او د اهلِ کتابو په باره کښ نازل شویدے) څلورمه وجه دا ده چه تعریف د اهلِ کتابو په دے اُمت باندے صادق دے او په ډیرو مسائیلو کښ معانی ته اعتبار ورکیدے شی۔ پنځمه وجه دا ده چه په ننن زمانه د جهل کښ د اکثرو اُمتیانو عقیدے او اعمال د شرک دی او حال دا دے چه د هغوی ذبیحے په هرځائے کښ وی نو د هغے په پاینئ کولو سره حرج پیښ (واضح تکلیف) پیښ اکیږی (والله اعلم بحقیقت الحال)

حَتّٰى يُؤْمِنَّ، دَ دينه مراد اقرار دے په شهادتين سره او التزام دَ احکامو شرعيو دے په دے شرط چه علامات دَ کفر او شرک په کښ نه ښکاره کيږي او دا ايمان په احکام شرعيه کښ معتبر دے۔ وَلَاَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ اَعْجَبَتْكُمْ، دَ اَمَةٌ نه رقيقه (وينزه) مراد ده او دَ مُشْرِكَةٍ نه حره (آزاده)۔ او بل احتمال دا دے چه اَمَةٌ په معنیٰ دَ ښځے وي اګرچه آزاده وي ځکه چه په حديث کښ عامو زنانو ته اِمَاءُ الله ويلے شوي دي او دا دليل دے چه دَ وينزے دَ غير سري سره نکاح جائز دے۔ ليکن وصف دَ مؤمنه دلالت کوي چه دَ وينزے کافرے مشرکے سره نکاح نه دے جائز۔
سوال:۔ لفظ دَ خير اسم تفضيل دے او دا په هغه ځائے کښ استعماليږي چه په نفس وصف کښ اشتراک وي نو دلالت کوي چه نکاح دَ مشرکے سره فی نفسه جائز دے؟۔
جواب ۱:۔ دا قول دَ سيبويه او دَ بصريانو دے ليکن دلته افضليت په اعتبار دَ اعتقاد سره دے نه په اعتبار دَ وجود سره لکه په سورة فرقان ۲۴ کښ دي۔ يا دَ دے وجے نه چه نکاح دَ مؤمنے وينزے سره مشتمل دے په منافعو اخرويو باندے او نکاح دَ مشرکے مشتمل دے په منافع دُنيويه باندے۔ او اُخروي منافع غوره دي دَ دُنيوي منافعو نه۔
جواب ۲:۔ په نيز دَ فراء بغوي او بعضو اهل کوفه اسمِ تفضيل صحيح دے په مقام دَ اشتراک او عدم اشتراک دواړو کښ۔ دلته مستعمل دے په مقام دَ عدم اشتراک دَ جواز کښ۔
وَلَوْ اَعْجَبَتْكُمْ، دَ دينه مراد اعجاب دے په حسن، مال، حريت او نسب سره او دا صفات متعلق دي دَ دُنيا سره او ايمان صفت متعلق دے دَ آخرت سره او آخرت غوره دے دَ دُنيا نه نو په ديني موافقت سره دَ سړي او ښځے په مينځ کښ کمال محبت طاعت، ښه صحبت او امانتداري حاصليږي او په ديني اختلاف سره دغه خيزونه په کامل طريقے سره نه حاصليږي۔
وَلَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَتّٰى يُؤْمِنُوْا، دلته دويم مفعول پټ دے

یعني المؤمنات - او مخکښې ذکر شول چه المشرکین دلته کتابیانو او غیر کتابیانو دواړو ته شامل دے - او مخصص د کتابي د پاره موجود نه دے - وَلَعَبۡدٌ مُّؤۡمِنٌ خَيۡرٌ مِّن مُّشۡرِكٍ وَلَوۡ أَعۡجَبَكُمۡ، په دے جمله کښې هغه بحث دے چه مخکښې تیر شو او لفظ د عَبۡدٌ مرئي او عام بنده دواړو ته شامل دے او مشرک نه مراد آزاد دے - أُوْلَٰٓئِكَ يَدۡعُونَ إِلَى ٱلنَّارِ، دا ذکر د علت دے د پاره د حرمت د نکاح د اهل شرک سره - أُوْلَٰٓئِكَ کښې مشرکات او مشرکین دواړو ته اشاره ده - او دعوت عام دے که په ژبے سره وي لکه په دے سورت ۱۳۵ کښې تیر شوي دي او که په سبب د محبت او د مخالطت سره وي -

سوال :- هر کافران خو د جهنم اور نه مني نو دا د هغوي په باره کښې څه رنګه صادق کیږے شي ؟ -

جواب :- مراد د النّار نه اسباب د جهنم د اور دي چه کفر او شرک او شراب څښکل، جواري کول او غوښه د خنزیر خوړل وغیره دي -

سوال :- محبت خو د دواړه طرفو نه وي نو احتمال شته چه کافر مسلمان شي په سبب د نکاح کولو سره ؟ -

جواب :- هر هغه عمل چه دائر وي په مینځ د نفع او ضرر کښې نو احتراز د هغے نه لازم وي په احتمال د ضرر سره -

سوال :- دا علت خو مشرکات کتابیات ته هم شامل دے نو د هغے سره نکاح ولے جائز کړے شویده ؟

جواب :- کتابیان خو په خپل کتاب باندے ایمان لري او شرک ته دین نه وائي نو غالب ګمان او خیال دا دے چه یو مؤمن خاوند به د غے ښځے ته د هغے د کتاب په سبب سره د توحید دعوت ورکړي - او په ښځو کښې د قبولیت ماده ډیره وي خصوصًا د خاوند په خبره منلو سره - او که خاوند کتابي مشرک وي او ښځه یے موحده مؤمنه شي نو ښځه په خاوند باندے خپله خبره نشي منا وولے نو ځکه د غه نکاح جائز نه ده ګرځولے شوے -

وَٱللَّهُ يَدۡعُوٓاْ إِلَى ٱلۡجَنَّةِ وَٱلۡمَغۡفِرَةِ بِإِذۡنِهِۦ، په دیکښې دوه احتمالونه دي -

اول دا چه مصداق پټ دے یعنی اولیاء الله - او دَ جنت او مغفرت نه مراد اسباب دَ هغې دی چه توحید او ایمان کامل دے - دویم احتمال دا دے چه الله تعالیٰ کوم احکام نازل کړی دی نو په هغې باندې عمل کول سبب دے دَ حصول دَ جنت او دَ مغفرت -

سوال :- مغفرت په اصل کښ دَ دخول دَ جنت دَ پاره سبب دے دَ دے وجې نه په سورة آل عمران ۱۳۳ او سورة الحدید ۲۱ کښ ئې مغفرت په جنت باندے مقدم کړے دے - په دے آیت کښ ئې مغفرت وروستو راوړے؟

جواب :- دلته رعایت دَ تقابل دے په کلام کښ چه په مخکښ جمله کښ ئې النّار ذکر کړو نو دَ هغې په وجه ئې دلته جنت اول ذکر کړو - بِاِذۡنِهٖ په دواړو سره متعلق دے او دَ اذن نه مراد کلام دَ الله تعالیٰ دے - یا آسانی او توفیق ورکول دی -

وَيُبَيِّنُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَتَذَكَّرُوۡنَ، تبیین نه مراد وضاحت دے په داسے طریقې سره چه په هغې کښ هیڅ التباس پاتې نه شی - لِلنَّاسِ سره دلیل دے په دے خبره چه هدایت دَ قرآن کریم ټولو خلقو ته عام دے - يَتَذَكَّرُوۡنَ، امام راغب وئیلی دی چه حقیقت دَ تذکر حاصلول دَ هغه څیز دی چه نسیان یا غفلت ترینه راغلے وی - او دلته دَ تذکر مقصد دا دے چه الله تعالیٰ دَ انسان په فطرت کښ خپل معرفت او دَ نعمتونو معرفت اچولے دے لیکن په بیان او علم حاصلولو سره هغه ورته دوباره وریاد شی -

فائده :- دَ ۲۱۹ آیت په آخر کښ يَتَفَكَّرُوۡنَ ذکر وو او دلته يَتَذَكَّرُوۡنَ دے وجه دَ فرق دا ده چه هلته بیان دَ مصالحو او منافعو او نقصاناتو وو او هغه په فکر او عقل سره معلومیږی او په دے آیت کښ ذکر دَ دعوت دَ جنت او دَ اور دَ جهنم دے او دَ هغې معرفت په نقل او وضاحت باندے موقوف دے دَ پاره دَ یاد ساتلو نو دے وجې نه دلته ئې يَتَذَكَّرُوۡنَ ذکر کړو -

وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِيْضِ ۭ قُلْ هُوَ اَذًى ۙ

او تپوس کوی دوی ستا نه په باره د ځائے د حیض کښ ته اُوایه هغه ځائے د گندگئ دے

فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيْضِ ۙ وَلَا

نو ډده کوئ د زنانه خپلو نه په ځائے د حیض کښ او مه

تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ ۚ فَاِذَا تَطَهَّرْنَ

نزدے کیږئ دوی ته تر دے چه پاکے شی نو هغه وخت چه دوی ښه پاکے شی

فَاْتُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ

نو راتلل کوئ دوی ته د هغه ځائے نه چه حکم در کړے دے تاسو ته الله تعالیٰ یقیناً الله تعالیٰ

يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ ﴿٢٢٢﴾

مینه کوی د ډیرو توبه کوؤنکو سره او مینه کوی د ځان پاک ساتونکو سره -

س٢٢٢ په دے آیت کښ اووم امر دے د تس بیر متزل د اُمورو ته (حکم د خپلے ښځے په حالت د حیض کښ) په دے کښ مقصد اجتناب دے د هرے پلیتئ نه حتّٰی چه د خپلے بی بی نه هم په حالت د حیض کښ اجتناب اُوکړئ - او په دیکښ هم دوه اړخونه دی یعنی خپله ښځه په اصل کښ حلاله او روا ده لیکن حرمت د وجے د حیض نه دے -

ربط:- د دے د مخکښ آیت سره په څو وجوهو سره دے ۱ له مخکښ آیت کښ د غټے پلیتئ (شرک) نه اجتناب ذکر وو او نکاح کول د مشرکے سره حرام وو - او س د وړے پلیتئ نه اجتناب ذکر کوی چه حیض دے او نکاح ورسره جائز دے لیکن نزدیکت په دغه حال کښ حرام دے - ۲ له مخکښ د مشرکانو د نکاح نه اجتناب ذکر شو او س د مشرکانو نه په بعض عادتونو کښ مخالفت کول ذکر کوی چه هغه افراط یا تفریط کول دی په باره د حیض کښ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ، د سوال او تپوس کولو سبب دا وو چه یهودیا تو او مشرکین عرب به د ښځے نه د حیض په حالت کښ دا سے نفرت

وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِيْضِ ؕ قُلْ هُوَ اَذًى ۙ

او تپوس کوی د وی ستا نه په باره د ځائے د حیض کښ ته اُوایه هغه ځائے د گندګئ دے

فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِى الْمَحِيْضِ ۙ وَلَا

نو ډډه کوئ د زنانه خپلو نه په ځائے د حیض کښ او مه

تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ ۚ فَاِذَا تَطَهَّرْنَ

نزدے کیږئ دوی ته تردے چه پاک شی نو هغه وخت چه دوی ښه پاک شی

فَاْتُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

نو راتلل کوئ دوی ته د هغه ځائے نه چه حکم درکړیدے تاسو ته الله تعالیٰ یقینًا الله تعالیٰ

يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ (۲۲۲)

مینه کوی د ډیرو توبه کوؤنکو سره او مینه کوی د ځان پاک ساتونکو سره -

سـ۲۲۲ په دے آیت کښ اووم امر دے د تس بیر منزل د اُمورو نه (حکم د خپلے ښځے په حالت د حیض کښ)، په دے کښ مقصد اجتناب دے د هرے پلیتئ نه حتّٰی چه د خپلے بی بی نه هم په حالت د حیض کښ اجتناب اُوکړئ - او په دیکښ هم دوه اړخونه دی یعنی خپله ښځه په اصل کښ حلاله او روا ده لیکن حرمت د وجے د حیض نه دے -

ربط :- د دے د مخکښ آیت سره په څو وجوهو سره دے ۱ـه مخکښ آیت کښ د غټے پلیتئ (شرک) نه اجتناب ذکر وو او نکاح کول د مشرکے سره حرام وو - اوس د وړے پلیتئ نه اجتناب ذکر کوی چه حیض دے او نکاح ورسره جائز دے لیکن نزدیکت په دغه حال کښ حرام دے - ۲ـه مخکښ د مشرکانو د نکاح نه اجتناب ذکر شو اوس د مشرکانو نه په بعضِ عادتونو کښ مخالفت کول ذکر کوی چه هغه افراط یا تفریط کول دی په باره د حیض کښ وَيَسْئَلُوْنَكَ، د سوال او تپوس کولو سبب دا وو چه یهود یا تو او مشرکین عرب به د ښځے نه د حیض په حالت کښ دا سے نفرت

اوړه کوله چه په تورات ۱۵ سفر اللاویین کښ لیکلی وو چه
چا حائضه ښځه په لاس سره مسه کړه ترماښام پورې به
پلیت وی او چا چه د هغې د جامو سره ځان اولګولو غسل به
کوی او خپلې جامې به هم وینځي او چا چه هغې ته نزدیکت اوکړو
نو اووه ورځې به پلیت وی - صحیح مسلم کښ دی چه د حائضې
سره به یې یوځائې خوراک څښکاک نه کوو او یوکور کښ به
نه اوسیدل - او مجاهد نه نقل دی چه په دغه زمانه کښ به
دوی د هغې په شا طرف کښ جماع کوله - او قرطبی وئیلی دی
چه نصاراؤ به په حالت د حیض کښ د حائضې سره جماع جائز
گنړله - نو مسلمانان په دې مسئله کښ حیران شول نو دا
تپوس یې اوکړو - دا ذکر شوی دریواړه سوالات - (یسئلونك
ماذا ینفقون، ویسئلونك عن الیتامی، ویسئلونك عن المحیض
یې په واو سره ذکر کړی دی ځکه چه دا دوی په یو وخت کښ
تپوس نه کړی وو او کوم چه بغیر د واو نه دی نو هغه په جدا
جدا اوقاتو کښ وو - عَنِ الْمَحِيضِ، دلته عبارت پټ دے یعنی
د جماع د هغوی نه په حالت د حیض کښ - محیض لفظ مصدر
ظرف مکان او ظرف زمان ټول کیدے شی - د ابن مسیب نه
نقل دی چه دلته محیض مصدر دے او د ابن عباس رضی الله
عنهما نه نقل دی چه دلته مراد ظرف مکان دے یعنی ځائے
د حیض چه فرج دے په حالت د حیض کښ - او ابوحیان دویم
قول ته ترجیح ورکړیده - او عربو ته تعریف د حیض معلوم
وو د دے وجې نه قرآن د هغې تعریف نه دے ذکر کړے - دا رنګ
مدت د حیض لږ او ډیر ته هم قرآن اشاره نه ده کړې -
او په دیکښ د علماؤ مجتهدینو ډیر اختلاف دے غوره
دا ده چه دا سپارلے شویدے عادت د زنانوته - او دا روایت
د امام شافعی او امام مالک رحمهما الله نه نقل دے او امام
بخاری رحمه الله هم دا غوره کړیدے - قُلْ هُوَ اَذًی، که محیض
مصدر وی نو حمل د اذی په هغې باندے واضح دے او که

محیض ظرف وی نو دلته لفظ دَ مکان پټ دے یعنی مکان آذي.
او آذی په لغت کښ هر هغه څیز ته وئیلے شي چه مکروه اوبد
ګڼړلے کیږي که هغه قول وی لکه په دے سورت ۲۶۳ کښ.
او که بل څه وي. لکه ازغے یا ګټه وغیره چه په لاړ کښ پرته
وی لکه په حدیث صحیح کښ دی اِمَاطَةُ الْاَذٰی عَنِ الطَّرِیْقِ.
او هغه ویښته چه دَ پیدائش په وخت کښ دَ بچي په سر بانديے
وی لکه په حدیث دَ عقیقه کښ دی چه اَمِیْطُوْا عَنْهُ الْاَذٰی. تو
معلومه شوه چه اذی په هغه خبیث او مکروه کښ استعمالیږی
چه خبث ئے ډیر نه وي. تو په دے لفظ کښ رد دے په افراط
کولو دَ یهودو باندے او ورسره رد دے په تفریط کولو دَ نصاراؤ
باندے. تو معلومه شوه چه وینه دَ حیض اذی ده. او بل احتمال
دا دے چه مراد دَ وینه سبب دَ اذی دے او اذی ئے نکره ذکر کړیده
او جهت دَ اذی ئے نه دے ذکر کړے ځکه چه دا اذی دَ سړي دَ پاره
ده ځکه چه په حالت دَ حیض کښ جماع کول سبب دَ امراضو دے.
او دا رنګ دا اذی دَ ښځے دَ پاره هم ده ځکه چه بدن کښ کمزوری
پیدا کوي. او دا رنګ دا اذی دَ بچي دَ پاره ده ځکه چه نطفه دَ حیض
دَ وینے سره ګډه وډه شي نو طبیبانو لیکلی دی چه دا سے بچے بیا
مجذوم پیدا شي یا دَ پیدائش نه روستو ورباندے دَ جذام
مرض راځی. فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِی الْمَحِیْضِ، دا تفریع دَ حکم ده په
علت (اذی) باندے. اعتزال کنایه ده دَ ترک دَ جماع کولو نه او
محیض نه مراد مکان دَ حیض (فرج) دے. نو دا دلالت کوی په
حرمت دَ جماع باندے فقط او نوره فائده اخستل جائز دی په
دلیل دَ حدیث سره چه اِصْنَعُوْا کُلَّ شَیْءٍ اِلَّا النِّکَاحَ (جماع) او که
محیض مصدر شی او مراد تری نه زمانه دَ حیض شی نو معنی
دا ده چه اعتزال دَ حیض په حالت کښ مطلقًا منع دے لیکن
تخصیص ئے کړے شویدے په جواز دَ استمتاع (فائدے
اخستلو ما فوق الازار (دَ کیږے دَ پاسه) باندے.
وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰی یَطْهُرْنَ، ابن عربي وئیلی دی چه قرب

(په زَوَرْدَراءسره) عمل کولو ته وئیلے شی چه هغه دلته جماع کول دی او په پیش دَراء سره نزدیکت دَ فعل ته وئیلے شی۔ او دا جمله تاکید دے دَ مخکښ جملے دَ پاره سرهٔ دَ بیان دَ غائیے ته په حَتّٰى يَطْهُرْنَ سره۔ حتّٰى په معنیٰ دَ اِلیٰ دے دَ غائیے دَ پاره۔ په دے لفظ کښ دوه قراءتونه دی اول په تخفیف سره او هغه په معنیٰ دَ بندیدلو دَ وینے دَ حیض دے۔ دویم په تشدید سره او هغه په معنیٰ دَ غسل کولو دے روستو دَ بندیدلو دَ وینے نه۔ او دَ فَاِذَا تَطَهَّرْنَ نه مراد غسل کول دی۔ فَأْتُوْهُنَّ نه مراد جماع کول دی۔ دَ امام ابوحنیفه مذهب دا دے چه هر کله وینه دَ حیض په اکثر مدت کښ بنده شی نو جماع ورسره فی الحال جائز ده اګر چه غسل ته انتظار کول افضل دی او هغه استدلال کوی په اول قراءت سره۔ لیکن دَ نورو اهلِ علمو په نیز دَ جماع دَ جواز دَ پاره هر حال کښ غسل کول شرط دی۔ او بغوی دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دَ استدلال نه جواب کوی چه هر کله یو فعل دَ پاره غایه او شرط دواړه ذکر شی نو دَ دواړو وجود شرط دے بله وجه دا ده چه بناء په دویم قراءت سره غسل مراد دے۔ نو که صرف وینه بندیدل مراد شی نو دویم قراءت مهمل پاتے کیږی۔

فائده :- صاحب اللباب دَ ابوالعباس المقری نه نقل کړیدی چه طهارت په قرآن کښ په نهه معناتو سره ذکر دے۔ اول انقطاع دَ وینے لکه دا آیت په اول قراءت سره۔ دویم غسل کول لکه دے آیت کښ دویم قراءت۔ دریم په معنیٰ دَ استنجاء کولو په اوبو سره لکه په سورة توبه ۱۰۸ کښ۔ څلورم صفائی دَ خیری نه لکه دا سورت ۲۵۔ پنځم دَ کنا هونو نه پاکیدل لکه په سورة واقعه ۷۹ کښ بنا په یو تفسیر سره یا سورة توبه ۱۰۳ کښ۔ شپږم دَ شرک نه پاکوالے لکه سورة حج ۲۶۔ اووم دَ زړه پاکوالے لکه په سورة احزاب ۵۳ کښ۔ اتم په معنیٰ دَ حلال والی لکه سورة هود ۷۸۔ نهم په معنیٰ دَ پاکوالی دَ رجس (ناکاره

نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوْا حَرْثَكُمْ

زنانه ستاسو ځائے د کروندے ستاسو دے نو راتلل کوئ ځائے د کروندے ته

اَنّٰى شِئْتُمْ وَقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ وَاتَّقُوا اللّٰهَ

په کومه طریقه چه ستاسو خوښه شی او مخکښ او کړئ نیت د پاره د فائدے ستاسو او ویرکوئ د الله تعالیٰ نه

صفات او اخلاق) ته لکه په سورة احزاب ۳۳ کښ۔

مِنْ حَيْثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ، په لفظ د مِنْ کښ دوه احتمالات دی۔ اول دا چه مِنْ د غایئے د ابتداء د پاره دے او حیث په معنیٰ د جهت سره دے۔ دویم احتمال دا چه مِنْ په معنیٰ د فی سره دے او حیث د مکان د پاره دے۔ امر نه مراد حکم کول دی او مامور به پټ دے یعنی هغه چه امر شوے یے په اعتزال سره د هغه ځائے نه په حالت د حیض کښ چه هغه فرج دے۔ یا د دیته مراد نکاح کول دی۔ یعنی الله تعالیٰ د زنا نو ښځو ته د فائدے اخستلو د پاره د نکاح امر کړے یے۔ یا امر په معنیٰ د اذن سره دے او هغه اذن د حَتّٰى يَطْهُرْنَ د غایئے نه معلوم شو چه اذن کړے یے الله تعالیٰ د جماع کولو روستو د طهارت د ښځے نه۔

اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ، په دے سره اشاره ده چه په دے مخکښ حکم کښ ستاسو فائده ده په دوه طریقو سره۔ اول دا چه څوک جماع په حالت د حیض کښ او کړی او بیا ئے دا آیت یاد شی نو توبه او باسی نو محبت د الله تعالیٰ حاصل شی۔ دویم دا چه څوک د دے آیت د تنزل کړ د وجے نه ځان د حائضے سره د جماع کولو نه پاک او بچ ساتی نو په دے سره محبت د الله تعالیٰ حاصلیږی۔ او په دواړو کښ ذکر د محبت الٰهی دلالت کوی چه اَلتَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ كَمَنْ لَّا ذَنْبَ لَهٗ (د ګناه نه توبه کوونکے پښتان د هغه چا دے چه ګناه ئے نه وی کړے)۔

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ مُّلٰقُوْهُ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ (٢٢٣)

او پوهه شئ چه یقیناً تاسو دَ هغه سره مخامخ کیږئ او زیرے ورکړه مؤمنانو لره

٢٢٣ په دیکښ دَ اُمورو دَ ترتیب دَ منزل ته اتم امر دے په دیکښ دَ جماع کولو شرعی طریقه او دَ هغې مقصد ولد (بچے) پیدا کیدل مرغول مراد دی۔ او لازم دا ده چه اجتناب لازم دے دَ جماع کولو نه په موضع دَ قرث کښ چه هغه دُبر دے دَ ښځے۔ او دا امر هم ذوجهتین وو یو جهت یے مامور بِهٖ دے او بل جهت یے منهی عنه دے۔

ربط ١ مخکښ په قول دَ مجاهد کښ تیر شول چه یهودیانو به دَ ښځے نه دَ حیض په حالت کښ نفرت کولو لیکن په دُبر کښ راتلل یے جائز گنړل نو هلته یے دَ هغوی دَ یو افراط رد اُوکړو او دلته دَ هغوی دَ بل افراط رد کوی۔ ع٢ ابوحیان وئیلی دی چه مخکښ آیت کښ فَاْتُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ، کښ مِنْ وجه اطلاق وو نو وهم پیدا شو چه ښځے ته په دُبر کښ راتلل جائز دی نو په دے آیت کښ دَ هغې رد کوی۔ ع٣ مخکښ یے دَ یهودیانو دَ یو خبیث رسم رد اوکړو نو اُوس دَ هغوی دَ بل رسم رد کوی هغه دا دے (په صحیحین کښ حدیث دے) چه یهودیانو به وئیل چه څوک دَ ښځے سره جماع په فرج کښ دَ روستو طرف نه کوی نو بچے به یے کوږ ستر گے پیدا کیږی۔ او دَ دے وجے نه دَ انصارو دَ بعضِ زنانؤ سره چه مهاجرینو نکاح اُوکړو نو هغه ښځو به دَ شا دَ طرف نه فرج ته راتلل په خاوندانو حرام گنړل نو په دے آیت کښ دَ هغې رد کوی۔

نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ، دَ نِسَآءُ نه مراد زوجات (ښځے) دی لیکن وینزو ته یے دَ شمول دَ پاره په نساء سره تعبیر اُوکړو۔ حَرْثٌ په اصل کښ سیرے کول دَ زمکے دی دَ تخم اچولو دَ پاره۔ او دا صرف تخم اچولو ته وئیلے شی او زرع بوټی راوتلو ته وئیلے شی دَ دے وجے دَ حرث نسبت انسان ته کیدے شی او دَ زرع نسبت الله تعالیٰ ته حقیقتاً دے او انسان ته مجازاً نسبت کیدے شی

لکه په سورة واقعه ۶۳، ۶۴ کښ،

سوال:- حَرۡثٌ مصدر دے تو په نِسَآءُکُمۡ باندے حمل څه رنګ صحیح کیږی؟-

جواب:- په عبارت کښ تقدیر دے یعنی جِمَاعُ نِسَاءِکُمۡ کالحَرۡثِ ځکه چه نطفه پشان د تخم اچولو ده او رحم (بچه دانی) پشان د زمکے دے او بچے پشان د بوټي دے۔ یا نِساءکم مَوضِعُ حَرۡثٍ لَّکُمۡ۔ او په لفظ د حرث کښ تصریح ده چه د بیبیانو سره جماع صرف په فرج کښ حلاله ده او په دُبر کښ حرامه ده۔ تو په دے کښ ترغیب دے پیدائش او زیاتول د نسل ته چه هغه اصل مقصد د نکاح دے۔

فَأۡتُوا حَرۡثَكُمۡ أَنَّىٰ شِئۡتُمۡ، په دے جمله کښ د جماع د محل تعین اُوشو په حَرۡثَکُمۡ سره او تعمیم د کیفیت د جماع اُوشو په أَنَّىٰ شِئۡتُمۡ سره۔ دلته أَنَّىٰ په معنیٰ د کیف سره دے او عموم د کیفیاتو دا دے چه که مخامخ وی یا د روستو طرف ته وی په ملاستے وی او که په ناستے سره وی یا په اړخ سره وی څنګه چه موخوښه وی۔ اوکوم چه بعضِ صحابه کرامو، تابعینو یا ائمو کرامو ته نسبت د جواز شوے دے د جماع کولو په دُبر کښ تو هغه مؤول دے یا لغزش دے او د هغے د تفصیل د پاره دے مکان کښ تفسیر قرطبی، ابن کثیر او زاد المعاد د ابن قیم اُوګورئ او ابوحیان وئیلی دی چه په دُبر کښ د جماع کولو حرمت د دولسو[۱۲] صحابه کرامو نه په مختلف الفاظو سره روایت کړے شوے دے او ابن عطیه وئیلی دی چه جائز نه دی هغه چالره چه ایمان په الله تعالیٰ او په ورځ د آخرت لری چه په دے مسئله کښ په لغزش د یو عالم پسے لاړ شی۔ وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمۡ، دا لفظ شامل دے بسم الله ته او ذکر د بسم الله ته په وخت د شروع کولو د جماع کښ او نیت خالص کول د پاره د پیدا کیدو د بچی دا رنګ هرکله چه الله تعالیٰ د شهوت پوره کولو تحلیل ذکر کړو نو اُوس ترغیب ورکوی نورو اعمال صالحو ته یعنی ټول وخت په شهوت رانئ

وَلَا تَجْعَلُوا اللّٰهَ عُرْضَةً لِّاَيْمَانِكُمْ

او مه گرځوئ تاسو نوم د الله تعالیٰ منع کوونکی (د ال) د پاره د قسمونو ستاسو

اَنْ تَبَرُّوْا وَتَتَّقُوْا وَتُصْلِحُوْا

د نیکئ کولو او تقوی کولو او اصلاح کولو نه

بَيْنَ النَّاسِ ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۲۴﴾

په مینځ د خلقو کښ او الله تعالیٰ هر څه آوری او په هر څه باندے علم لری.

کښ تیروئ۔ او مراد د دینه تقدیم د نیکو اعمالو دے په قرینه د دے سورت آیت ۱۷۷ سره۔ وَاتَّقُوا اللّٰهَ، تاکید دے چه شهوت رانی په حرام طریقو سره مه کوئ او ترغیب دے امتثال د اوامرو او اجتناب د نواهیو ته۔ وَاعْلَمُوْا اَنَّكُمْ مُّلٰقُوْهُ، دا هم د ما قبل تاکید دے او تحذیر دے۔ او ضمیر کښ احتمالات دی اول دا چه الله تعالیٰ ته راجع دے دویم دا چه خیر ته راجع دے چه مخکښ جمله کښ پټ مراد وو۔ دریم دا چه تقوی ته راجع دے او مراد تری نه جزاء د تقوی ده۔ او چه ضمیر الله تعالیٰ ته راجع شی نو مراد د لِقاء نه پیش کیدل دی الله تعالیٰ ته په بعث بعد الموت او حشر سره نو دا تحذیر دے۔ یا مراد د دینه دیدار دے د الله تعالیٰ سره په میدان حشر او جنت کښ نو دا ترغیب دے۔ او عطف د تفریع دے په مخکښ دوه جملو باندے۔

وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ، که مخکښ د لِقاء نه مراد دیدار الهی شی نو د دے بشارت نه مراد بشارت د دیدار الهی دے۔ او که مخکښ تحذیر مراد شی په سبب د عدم تقوی سره نو دا بشارت دے په سبب د ایمان او د تقوی۔ اهل علم وائی چه په دے بشارت کښ ئے مطلق ایمان ذکر کړیدے نو دا دلیل زیرے دے د عامو مؤمنانو د پاره۔

۲۲۴ په دے آیت کښ ذکر د تهم امر دے د امورو د تدبیر د منزل نه په دیکښ اجتناب ذکر کوی د ډیر قسمونو (سوګندونو)

کولو نه او خصوصًا هغه قسمونه چه ځان پرے د نیکو کارونو نه منع کوی او دا امر هم دوه اړخو تو والا دے یعنی د تاکید د پاره په الله تعالیٰ پاندے قسم کول جائز دی لیکن د خیر د کارونو نه ځان منع کولو د پاره قسم کول نا جائز دی۔

ربط ۱ مخکښ آیت کښ د تقوٰی ذکر وو او په دے آیت کښ لازم د تقوٰی الٰهی ذکر کوی چه هغه ځان پڅ کول دی د استعمال د نوم د الله تعالیٰ نه په بے پرواهئی سره یا بے ځایه ۲ د خمر او میسر د مسئلے نه تر دے ځائے پورے تقوٰی د افعالو ذکر شوه اوس تقوٰی د اقوالو ذکر کوی۔ ع۳ مخکښ قَدِّمُوا لِاَنْفُسِكُمْ کښ اشاره وه چه د خیر اعمال کوئ نو اوس ذکر کوی چه د خیر د اعمالو نه ځان مه منع کوئ اګرچه تاسو قسم کړے وی۔

وَلَا تَجْعَلُوا اللّٰهَ، دا معطوف دے په قَدِّمُوا، وَاتَّقُوا او وَاعْلَمُوا باندے۔ عُرْضَةً، وزن د فُعْلَة کله په معنیٰ د مفعول سره راځی په معنیٰ د معرض سره دے یعنی ځائے د پیش کیدلو او هدف ته وئیلے شی او کله هغه څیز ته وئیلے شی چه کیښودے شی په یو څیز باندے نو حاجز او مانع (منع کوونکے) شی۔ دلته هم د دواړو معانیو احتمال شته دے (روستو ذکر کیږی)۔ لِاَيْمَانِكُمْ، ایمان جمع د یمین ده ښی طرف او ښی لاس ته وئیلے شی۔ لِاَيْمَانِكُمْ کښ لام متعلق دے په عرضةً پورے او ایمان نه مراد ډیر قسمونه کول دی بغیر د ضرورت نه په نیک او بد کارونو کښ۔ نو په دیکښ مقصد منع ده د ډیرو قسمونو کولو نه د الله تعالیٰ په نوم باندے ځکه چه په دیکښ د الله تعالیٰ د نوم بے ادبی لازمیږی۔ د دے وجے نه ډیر قسمونه کوونکی خلق الله په بد ئی سره ذکر کړی دی لکه په سورة قلم ۱۰، سورة مائده ۸۹ کښ بنا په یو تفسیر باندے۔ په دے توجیه سره عرضةً نه مراد اوله معنیٰ ده یعنی نشانه (هدف) او الله نه مراد نوم د الله تعالیٰ دے۔ دویمه توجیه دا ده چه عرضةً نه مراد منع کوونکے دے او په لِاَيْمَانِكُمْ کښ لام اجلیه دے یعنی مه ګرځوئ نوم د الله تعالیٰ منع کوونکے د وجے د قسمونو کولو ستاسو نه

په نوم د هغه باندے - اَنْ تَبَرُّوْا وَ تَتَّقُوْا وَ تُصْلِحُوْا بَيْنَ النَّاسِ، په
دیکښې دوه توجیهات دی اول دا چه په دیکښې مضاف پټ دے
یعنی کراهیة یا لِئَلَّا تَبَرُّوْا - او دا دَ عرضةً دَ اولے معنے سره تعلق
لری معنیٰ دا چه مه گرځوئ نوم دَ الله تعالیٰ تښته دَ پاره دَ ډیرو قسمونو
ستاسو دَ دے وجے نه چه بیا کنړئ نیکی او تقوی او اصلاح کول
یا دے دَ پاره چه او نه کړئ دا دریواړه - تو په دے معنیٰ سره اول ئے
منع اُوکړه دَ ډیر والی دَ قسمونو نه عمومًا او بیا ئے اُوئیل چه په
دے قسمونو سره تاسو دَ نیک کارونو نه هم ځان محروموئ. دویمه
توجیه دا ده چه دا مفعول دے دَ عرضةً دَ پاره په تقدیر دَ مِنْ
سره او عرضةً په دویمه معنیٰ سره دے نو معنیٰ دا چه مه گرځوئ
نوم دَ الله تعالیٰ منع کوونکے دَ دے درے کارونو نه دَ وجے دَ قسم
کولو ستاسو نه - دریمه توجیه ابو حیان ذکر کړیده چه دا متعلق دے
دَ اَيْمَانِكُمْ سره او علیٰ لفظ پټ دے او دَ عرضةً اوله معنیٰ ده نو
نو معنیٰ دا چه په نوم دَ الله تعالیٰ ډیر قسمونه مه کوئ په کولو دَ دے
دریو کارونو سره اگرچه دا کارونه دَ خیر دی لیکن ډیر قسمونه
په دے هم مه کوئ - نو معلومه شوه چه کوم کارونه دَ خیر نه دی
او په هغے باندے څوک ډیر قسمونه کوی دا خو ډیر بد او قبیح
کار دے - په دویمه توجیه سره دا مناسب دے دَ سورة نور آیت
۲۲ سره او دَ حدیث دَ مسلم سره چه هر کله نه قسم اُوکړے په
یو خیز (کار) باندے او دَ هغے نه مخالف بل کار دَ خیر او وینے نو
دَ خیر هغه کار او کړه او دَ قسم کفاره ورکړه -
فائده :- نیکی (بر)، تقوٰی او اصلاح دَ خیر ټولو کارونو ته شامل دی
که هغه لازمی وی او که متعدی وی ځکه کار خیر یه دَ فائدے نه
خالی نه وی یا به بل چا ته فائده ورکوے یا به ځان ته فائده
رسوے یا به ضرر دفع کوے - بل چا ته فائده ورکول دیته بِر
(نیکی) وئیلے شی او ځان ته فائده ورکولو ته تقوٰی وئیلے شی او دَ
بل چا ته ضرر دفع کولو ته اصلاح وئیلے شی - او په سورة نساء
۱۱۴ کښې ئے نور درے ذکر کړی دی ځکه چه په هغے کښې صرف

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ

نه نیسی الله تعالیٰ تاسو په لغو (بے ارادے) سره په قسمونو ستاسو کښې

وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ ؕ

او لیکن نیسی تاسو لره په هغه عملونو سره چه کسب کړے وی زړونو ستاسو

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۲۲۵﴾ لِلَّذِيْنَ

او الله تعالیٰ بخنه کوونکے دے صبر ناک دے. د پاره د هغه کسانو

امور متعدی یه ذکر کوی چه هغه موقوف دی په مشوره کولو باندے.

وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ، مخکښې قسم ذکر شو هغه د آوریدلو سره تعلق لری او اعمال (نیکی، تقوٰی او اصلاح) ذکر شول هغه د علم سره تعلق لری. د دے وجے نه په فاصله د آیت کښې یے دا دوه صفات خاص ذکر کړل.

۲۲۵ - ربط :- هر کله چه مخکښې آیت کښې د ډیرو قسمونو کولو او ځان د نیک کار نه منع کولو د پاره د قسم کولو نه منع اُوکړے شوه لیکن حکم یے نه وو ذکر کړے نو اوس د هغے احکام او اقسام ذکر کوی.

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ، مواخذه (نیول) په قسمونو کښې دوه قسمه ده اول مواخذه دُنیوی ده یعنی کفاره لازمیدل دویم مواخذه اُخروی ده یعنی ګناهګاریدل نو دلته د دواړو قسمونو نه نفی مراد ده.

بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ، لغو په قرآن کریم کښې په دړے قسمه ده. اول قسم لغو په قسم کولو کښې په دے آیت کښې ذکر ده. دویم لغو په معنیٰ د قول باطل (کنځل) یا باطل عمل لکه په سورة قصص ۵۵ او سورة فرقان ۷۲ کښې. دریم په معنیٰ د بے فائدے خبرے کولو لکه په سورة طور ۲۳ کښې. نو لفظ د اَيْمَانِكُمْ یے د دے د پاره ذکر کړو چه دلته اول ړول مراد دے یعنی لغو په قسم کولو کښې. په تفسیر د یمین لغو کښې ډیر اقوال دی. اول قول دا چه د ابوهریره، ابن عباس رضی الله عنهم او نورو تابعینو نه نقل دی چه په غالب ګمان سره قسم کول په تیر شوی کار باندے چه څه

رشتیا دا یم او حال دا دے چه هغه دَ حقیقت نه خلاف وی۔ دیته
لغو په دے وجه وئیلے شی چه قصد دَ قسم خو کوی لیکن قصد
دَ دروغو نیشته او دا قول دَ امام ابوحنیفه رحمه الله هم دے۔ دویم
قول دَ عائشه رضی الله عنها او ابن عباس رضی الله عنهما (دویم
روایت) او دَ نورو تابعینو نه نقل دے چه لغو قسم دا دے چه
خُلے ته بغیر ارادے په تادئ سره الفاظ دَ قسم را اُوځی لکه لا والله
بلیٰ والله، قسم دے په الله تعالیٰ یا تِرے وغیره الفاظ۔ دا روایت
امام بخاری رحمه الله هم ذکر کړیں ے دیته لغو ځکه وئیلے شی
چه قصد دَ قسم کولو نه وی هسے بے اختیاره یا عادتاً دَ خُلے نه
را اُوځی۔ دا قول دَ امام شافعی رحمه الله او یو قول دَ امام مالک
رحمه الله هم دے۔ دریم دَ ابن عباس رضی الله عنهما (بل
روایت) او دَ علی رضی الله عنه او طاؤس (تابعی رحمه الله) دا دے
چه دا قسم په حالت دَ غُصه او غضب کښ دے۔ او دَ دیته علاوه
نور اقوال هم شته دے۔ هر کله چه دلته لغو مقابل کښ کسبِ قلب
دے نو دویم قول غوره معلومیږی او حدیث دَ انما الاعمال
بالنیات هم په دے باندے دلالت کوی او امام شاه ولی الله
دهلوی وئیلی دی چه غوره دا ده چه دا لفظ دے دریواړو ته شامل دے
وَلٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ، کسب (کول) په افعال
اختیاریه کښ استعمالیږی اګر چه عمل دَ زړه وی او کسب دَ زړه
عقد او نیت کول دی۔ نو دا وصف یمین منعقد (راتلونکی وخت
سره تړلے شوے قسم) او یمین غموس (قصداً په دروغه قسم)
دواړو ته شامل دے او مواخذه اُخرویه بالاتفاق مراد ده
لیکن په یمین منعقد کښ روستو دَ قسم ماتولو نه او په یمین
غموس (په دروغه قسم کولو) کښ دَ اول وخت نه هم۔ او هر
چه دُنیوی مواخذه ده یعنی کفاره ورکول هغه په یمین منعقد
کښ بالاتفاق واجب ده په دے شرط چه قسم مات کړی او
په یمین غموس کښ دَ علماؤ اختلاف دے۔ وَاللّٰهُ غَفُورٌ حَلِيمٌ،
غفور مبالغه ده په ګناه پټولو او ساقطولو دَ سزا دَ هغے کښ۔

يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ

په قسمونو سره ځان جدا کوي د ښځو نو خپلو نه انتظار د څلورو

اَشْهُرٍ ج فَاِنْ فَآءُوْ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ

میاشتو دے نو که چرے دوی او ګرځي د قسم نه نو یقیناً الله تعالی بخنه کوونکے دے

رَّحِيْمٌ ﴿۲۲۶﴾ وَاِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ

رحم کوونکے دے۔ او که چرے دوی قصد اوکړی د طلاق

فَاِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۲۷﴾

نو یقیناً الله تعالی هر څه آوری او په هر څه باندے علم لری۔

او حَلِیم په لغت کښ سکون او په دمه کار کول دی سرهٔ د قوت او قدرت نه۔ نو غفور دلته تعلق لری د یمین منعقد سره او حلیم د کسب د زړه سره تعلق لری چه مستحق د سزا وی لیکن سزا ورته زر نه ورکوی۔

فائده: معلومه شوه چه قسم (سوګند) په درے ډوله دے اول لغو قسم چه د هغے تعریف وته مخکښ تیر شول او په هغے کښ کفاره او سزا دواړه نیشته نه۔ دویم یمین منعقد دے هغه قسم کول دی د راتلونکے زمانے سره تړلی شوی کار یا ندے چه فلانے کار به کووم یا به فلانے کار نه کووم۔ نو په دے قسم چه پوره والے اُوکړی خو صحیح ده هیڅ مواخذه نیشته او چه قسم مات کړی نو کفاره اُو ګناه دواړه لازم دی۔ او کیدے شی چه په کفارے سره ئے هغه ګناه هم معاف شی او د هغے ذکر په سورة مائده ۸۹ کښ شته دے۔ او دریم ډول قسم یمین غموس دے او یمین صبر او مصبوره ورته هم وئیلے شی۔ هغه قسم کول دی په یاره د تیر شوے زمانه کښ د کار کیدلو یا نه کیدلو په قصد د دروغو سره۔ او دا ګناه کبیره دے په سبب د صحیح حدیث سره او په دیکښ سزا شته او په کفاره کښ اختلاف دے د هغے د پاره د فقهے کتابونه اُوګورئ۔

لسم امر دے هغه دَ طلاق شرعی دَ مسئلے تفصیل دے۔ اول ذکر دَ ایلاء دے بیا دَ طلاق دَ عدت ذکر دے چه په ایلاء پسے په شرط دَ عدم رجوع لازمیږی۔ بیا ذکر دَ تعداد دَ طلاق دے او دَ هغے شرعی طریقه۔ بیا ذکر دے دَ حق دَ رجوع کولو په شرط دَ معروف (ښه طریقے) سره۔ او په دے ټولو کښ مقصد اجتناب دے دَ جاهلیت دَ طریقو نه په تعداد دَ طلاق او رجوع وغیره کښ۔ او دا امور هم دوه اړخونه لری یعنی دَ جاهلیت طریقے چه هغه باطلے دی او طریقے دَ شریعت چه هغه لازمے دی۔

په دے آیت کښ حکم دَ ایلاء شرعی ذکر کوی دَ پاره دَ رد دَ ایلاء دَ اهل جاهلیت هغه ایلاء به کال دوه کاله وه او مقصد به ئے تنګول دَ ښځے وُو نو قسم به ئے اُوکړو چه دے ښځے ته به نه نیژدے کیږم او طلاق به ئے هم نه ورکوو او دَ نکاح حق به ئے ورله هم نه اداکولو او دَ قسم نه به ئے رجوع هم نه کوله وئیل به ئے چه دا ګناه دے۔ نو اسلام دَ هغے ظلم تردید اُوکړو په ایلاء شرعی سره په دیکښ فائده داده چه خاوند په طلاق ورکولو کښ تادی اُونکړی بلکه په مدت دَ ایلاء کښ سوچ اوکړی او په ښځه باندے به هم ظلم اُونه شی۔

ربط ۱: هرکله چه مخکښ عام قسمونه ذکر شول نو اُوس دَ هغے نه خاص ډول قسم ذکر کوی چه هغے ته ایلاء وئیلے شی۔ ۲: مخکښ دَ زنانه نه فائده اخستل ذکر شو اوس هغه څیز ذکر کوی چه دَ هغے په وجه دغه فائده اخستل منع شی چه هغه ایلاء او طلاق دے۔

لِلَّذِیْنَ یُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآءِهِمْ، ایلاء په لغت کښ مطلق قسم ته وئیلے شی هغے ته اَلِیَّ او اُلُوَّ هم وئیلے شی او دَ دیته یاتل اخستلے شوین ے چه په سورة نور ۲۲ کښ دے۔ او ایلاء په شرع کښ څه ده؟ نو په دیکښ اختلاف دے په نیژدَ جمهور علماءِ کرامو چه ایلاء دا ده چه خاوند قسم اُوکړی چه خپلے ښځے ته به دَ څلورو میاشتو نه زیات نه نیژدے کیږم۔ نو که قسم ئے اُوکړو په څلورو میاشتو یا دَ هغے نه په کم باندے نو دا ایلاء

شرعي نه ده خو صرف قسم دے۔ او د امام ابو حنیفه رحمه الله په نیز قسم کول دي چه څلور میاشتے به نه ور نیز دے کیږم نو چه نیز دے نه شي او څلور میاشتے تیرے شي نو ایلاء ساقط شوه او یو طلاق رجعي واقع شو۔ او که جماع ئے اوکړه په څلور میاشتو کښ دننه نو کفاره وریاندے واجب شوه او ایلاء ختم شوه۔ او د ابن مسعود رضی الله عنه او بعض تابعینو نه روایت دے چه ایلاء دا ده چه خاوند قسم اوکړي چه ښځے ته به نه نیز دے کیږم یو ورځ یا کم و زیات او بیا نیز دے نه شي څلور میاشتو پورے نو په سبب د ایلاء سره ښځه جدا شوه۔ او د امام شعبي رحمه الله او قاسم رحمه الله وغیره په نیز ایلاء قسم کول دي چه ښځے ته به نه نیز دے کیږم او خبرے به ورسره نه کووم یا به ضرر او تکلیف ورکوم نو دا ټوله ایلاء ده۔ او په نیز د ابن عباس رضی الله عنهما قسم کول دي چه څه به دے ښځے ته هیڅرے نه نیز دے کیږم لیکن مدت د انتظار په ایلاء کښ د ټولو د پاره څلور میاشتے دي۔ د ایلاء دوه قسمونه دي یو ایلاء مؤبد (ابدي) ده چه د مدت ذکر پکښ اُونکړي او دویمه ایلاء مؤقت ده چه وخت مقرر کړي د څلورو میاشتو یا کم و زیات۔ (بنا په اختلاف د اقوالو یاند ے)۔ او کومه ایلاء چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم کړیده[۲۹] هغه ایلاء لغوي وه صرف یو میاشت وه او هغه میاشت یو کم دیرش ورځے وه۔ او نبي کریم صلی الله علیه وسلم په هغے میاشت کښ بیبیانو ته نزدیکت نه دے کړے۔ مِنْ نِّسَاۗىِٕهِمْ، که معنیٰ لغوي مراد وي نو لفظ د وطي او جماع پټ مراد دے او که معنیٰ شرعي وي نو تقدیر ته حاجت نیشته۔

سوال:۔ ایلاء خو متعدي کیږي په علیٰ سره نو دلته ئے مِنْ ولے ذکر کړیدے؟۔

جواب علامه زمخشري وئیلي دي چه دا متضمن کیږي معنیٰ د بُعد (لرې والی) لره یعني يَبْعُدُوْنَ عَنْ نِّسَاۗىِٕهِمْ بِالْاِيْلَاۗءِ (لرے کیږي د خپلو بیبیانو نه په سبب د قسم سره)۔

جواب ۶۲- ابوالبقا وئیلی دی چه دَ ایلاء په صله کښې علی او مِن دواړه استعمالیږي- او په دے لفظ کښې آزاده ښځه او وینزه مدخول بها او غیر مدخول بها ټولے داخلے دی اګرچه په وینزه کښې دَ بعض علماؤ اختلاف شته دے-

تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ، مقصد په دے توقیت (وخت مقرر ولو) کښې اول رد دے دَ ظُلم دَ جاهلیت لکه مخکښې ذکر شو- دویم مقصد تادیب ورکول دی ښځے ته په هجران (جدا ایئ کولو) سره- دَ دے وجے ته وئیلے شوی دی په روایت دَ عمر رضی الله عنه کښې چه زنانه دَ خپل خاوند ته دَ ځلوړو میاشتو ته زیات صبر نشی کولے او دا واقعه قرطبی ذکر کړیده- دریم مقصد په دے کښې تعلیم دَ فکر کولو دے خاوند ته په طلاق ورکولو ښځے ته دے دَ پاره چه تادی اُونکړی په تطلیق کښې-

فَاِنْ فَآءُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ، دَ فیئ نه مراد رجوع کول دی دَ خاوند خپلے ښځے ته په جماع کولو سره او که دَ خاوند څه عذر وی لکه مریض وی یا په جیل کښې بندی وی وغیره نو رجوع به نیت او په قول سره صحیح ده- په دے رجوع کښې اختلاف دے دَ ابن مسعود، ابن عباس رضی الله عنهم، نورو تابعینو او امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا رجوع په ځلور میاشتو کښې دننه ده او کفاره دَ قسم پرے واجبیږي- او که په ځلورو میاشتو کښې دننه یئے رجوع اُونکړه نو په دهٔ باندے طلاقه ده- او په نیز دَ عمر، عثمان، علی رضی الله عنهم او نورو تابعینو او امام شافعی، مالک، احمد رحمهم الله علیهم یئے رجوع په ځلورو میاشتو کښې اُونکړه نو توقف به کیدے شی که اوس رجوع کوی نو ښه ده او که رجوع نه کوی نو بیا به طلاق لازمیږي- غَفُوْرٌ کښې اشاره ده چه په کفارے سره دَ دهٔ ګناه اُوبخښلے شی او رَّحِیْمٌ کښې اشاره ده چه رخصت ورکول دَ کفارے رحمت دَ الله تعالیٰ دے- یا غفور په نسبت دَ خاوند دے او رحیم په نسبت دَ ښځے سره دے- وَاِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ، عزم په اصل کښې هغه څیز دے

وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ

اوطلاق کړے شوے زنانه به انتظار کوی په خپلو ځانونو سره درے

قُرُوْٓءٍ ؕ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ اَنْ يَّكْتُمْنَ

حیضونه (طهرونه) او حلال نه دی دوی لره چه پټ او ساتی دوی

مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِيْٓ اَرْحَامِهِنَّ اِنْ كُنَّ

هغه څیز چه پیدا کړے وی الله تعالیٰ په بچه دانو د دوی کښ که چرے دوی

يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ وَبُعُوْلَتُهُنَّ

ایمان لری په الله تعالیٰ او په ورځ روستنئ باندے او خاوندان د دوی

اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِيْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْٓا

ډیر حقدار دی په واپسئ د دوی په دغه مدت کښ که چرے دوی غواړی

اِصْلَاحًا ؕ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ

اصلاح لره او د پاره د زنانو پشان د هغه حقونه دی چه په دوی باندے لازم دی

بِالْمَعْرُوْفِ ۠ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ

په ښه طریقے سره او د پاره د نارینو په دوی باندے

دَرَجَةٌ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ع (۲۲۸) ۲۸ ع ۱۲

اوچته درجه ده او الله تعالیٰ زور آور حکمتونو والا دے.

چه د هغے په کولو باندے د زړه عقد کړے وی او کله په معنیٰ د قسم سره راځی نو عزم ئې ارادے ته وئیلے شی. طلاق په اصل کښ پرانستل دی د قید نه. او په شریعت کښ پرانستل د عقد د نکاح دی په هغه الفاظو سره چه وضع دی په شرع کښ د پاره د پرانستلو د عقد (غوټې) د نکاح. دا مقابل د فاؤوا دے نو عزم د طلاق په ترک د رجوع سره دے په دیکښ دوه اقوال دی لکه چه مخکښ ذکر شول. اول قول صرف عدم رجوع ده په

څلورو میاشتو کښې دا بیته عزم دَ طلاق دے او دا قول دَ ابن مسعود رضی الله عنه او امام ابوحنیفه رحمه الله او نورو علماؤ دے او دے قول ته قرطبی هم (دَ خپل مذهب خلاف) ترجیح ورکړې ده دویم قول دا دے چه عزم دلته په قول سره دے روستو دَ تیریدو دَ څلورو میاشتو نه - یعنی عزم په معنیٰ دَ واقع کیدو دے او دا قول دَ عمر او نورو صحابه کرامو رضوان الله اجمعین او تابعینو دے لکه چه مخکښې تیر شوی دی - او په دے طلاق کښې هم دَ اهلِ علمو اختلاف دے - دَ عثمان، علی او ابن مسعود رضی الله عنهم او امام ابوحنیفه رحمه الله اوزاعی رحمه الله په نیز بائن دے دا یو طلاق بائن دے او په نیز دَ ابن مسیب او مکحول، زهری او امام مالک رحمهم الله تعالیٰ دا یو طلاق رجعی دے.

فَإِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ، عزم په زړه کښې خبرے کولو سره مستلزم دے که په ژبے سره وی او که نه وی نو سمیع علیم دَ هغے سره تعلق لری او دا جمله په ځائے دَ جزا بائن دے قائم ده یعنی فَلْيُوقِعُوهُ - او دا بنا ده په دویم قول باندے.

۲۲۸ ربط: هرکله چه په عزم دَ طلاق سره طلاق واقع شو نو بنځه طلاقه شوه نو اوس دَ هغے دَ پاره وخت دَ عدت ذکر کوی. او په دے آیت کښې شپږ جملے دی او دَ هر یو دے جدا جدا مقصد دے - وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ، دا اوله جمله ده او په دیکښې ذکر دَ طلاق دَ عدت دے دَ خاص قسم مطلقو (طلاقو کړے شوو) - الْمُطَلَّقَاتُ، اګرچه عام دے لیکن په نورو نصوصو سره ئے تخصیص کړے شوے دے - اول دا چه دا به مدخول بها وی (چه نزدیکت ورسره شوے وی) ځکه چه حکم دَ غیر مدخول بها په سورة احزاب ۴۹ کښې ذکر دے - دویم دا به غیر حامله وی چه هغے ته حائیله وئیلے شی ځکه چه حکم دَ حاملے دَ عدت په سورة طلاق ۴ کښې ذکر دے - دریم دا به حائضه وی یعنی حیض به ئے رائحی نابالغه او آئیسه (بوډئ) به نه وی ځکه چه دَ هغوی عدت هم په سورة طلاق ۴ کښې ذکر دے - څلورم دا چه دا به آزاده وی

ځکه چه د وینزے عدت دوه حیضه دے په دلیل د حدیث سره داقول د ائمو اربعو دے۔ او د داؤد ظاهری، ابن کیسان او ابن سیرین رحمهم الله مذهب دا دے چه د وینزے عدت د آزادے ښځے پشان دے او حدیث د اول قول ضعیف دے لکه چه ابن کثیر ذکر کړی دی۔ لیکن دغه حدیث موقوف صحیح دے او په وخت د عدم د صحیح مرفوع حدیث کښ په موقوف باندے عمل کیدے شی او ابن کثیر وئیلی دی چه په صحابه کرامو کښ په دے مسئله کښ خلاف نیشته۔ او کله چه د سلفو صالحینو عمل د ضعیف حدیث تائید کوی نو په هغے باندے عمل کول جائز دی۔

سوال:- اَلْمُطَلَّقٰتُ عام دے او تخصیص تربته د پنځو اقسامو کړے شوے دے نو یو قسم پاتے شو او په تخصیص بعد التعمیم کښ ضروری ده چه عام افراد به ډیر وی د خاصو نه؟

جواب:- دا اګر چه یو قسم دے لیکن طلاق کړے شوے ښځو کښ مدخول بها حیض والا آزادے ښځے په اعتبار د افرادو سره ډیرے وی او دا بدیهتاً معلومه ده۔

یَتَرَبَّصْنَ، کښ تعبیر د امر نه په خبر سره تاکید د حکم پیدا کوی لکه په دُعا کښ وئیلے کیږی رَحِمَكَ اللّٰهُ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ۔

بِاَنْفُسِهِنَّ، کښ با سببیه ده او متعلق ده په یتربصن پورے۔ یا بازیاتی ده او انفسهن تاکید دے د ضمیر متصل په یتربصن کښ۔ او مراد د تَرَبُّص نه د یل سړی سره نکاح نه کول دی۔

ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ، مفعول فیه دے په حذف د مدت سره یا مفعول به دے په حذف د مَضِیُ سره۔

سوال: قروء جمع کثرت ده او ثلاثه لفظ جمع د قلت ده نو تمیز ئے جمع قلت (اقراء) سره پکار وو؟

جواب ع۱ هر کله چه اَلْمُطَلَّقٰتُ جمع کثرت وه نو د هغے په مناسبت سره ئے دا جمع کثرت ذکر کړه۔

جواب ع۲ دیته اِتِّساع وئیلے شی چه یو صیغه د بلے صیغے په ځائے

استعمالول جائز دي. جواب ع۳ په نیز د میرد دا په اصل کښ
ثلاثة مِّنْ قُرُوءٍ دے.
قُرُوءٍ جمع د قَرْءٍ ده په اصل کښ جمع کېدلو ته وئیلے شي نو په
حال د حیض کښ اجتماع د وینے ده په رحم کښ او په حال د طهر
کښ اجتماع د وینے ده په باقي بدن کښ. یا په اصل کښ راتلل
د وقتِ معتاد (عادتي وخت) دي او په حیض او طهر کښ عادتي
وختونه وي. او د قرء اطلاق په حیض او په طهر دواړو باندے
کیږي په طریقه د اشتراك لفظي یا په طریقه د اشتراك معنوي
سره. او دلته په مراد د قروءٍ کښ د اهلِ علمو اختلاف دے. په
نیز د عمر، علي او ابن مسعود رضی الله عنهم او تابعینو او امام
ابو حنیفه رحمه الله د دینه مراد حیضونه دي. یعني چه په اختتام
د دریے حیضونو سره عدت ختم شو. او په نیز د عائشه او ابن
عمر او زید بن ثابت رضی الله عنهم او بعضِ تابعینو او امام شافعي
رحمه الله د دینه مراد طهرونه دي او بل قول د امام شافعي دا دے
چه قروء نه مراد انتقالات دي د طهر نه حیض ته او طلاق به
په حالت د طهر کښ وي نو په دریے انتقالاتو سره به عدت
ختم شي. وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ إِنْ
كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، دا دویمه جمله ده مقصد په دیکښ
تاکید دے د عمل کولو په ثلاثة قُرُوءٍ باندے او ترغیب ورکول
دي زنانو ته په امانت داریٔ سره په هغه حالاتو کښ چه د دوی
د نفسونو سره خاص دي. مَا خَلَقَ اللَّهُ نه مراد حیض او حمل دے
او د زنانو په دے پټ ساتلو کښ بعضِ غلط غرضونه او مطلبونه
دي د دے وجے نه ئے د دے کتمان نه نهي اوکړه په تاکید سره.
یو تاکید په لَا يَحِلُّ سره دویم په إِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ سره. او کتمان
نه مراد د حمل او د حیض حال پټول دي. او د زمخشري په نیز
کتمان اسقاط حمل ته هم شامل دے. أَرْحَامِهِنَّ، جمع د رحم
ده ځائے د جوړیدلو د بچي ته وئیلے شي په خیټه د مور کښ. او
د دے پیدائش د وجے نه رشته او خپلولي جوړیږي د دے وجے نه

قرابت (نسبت) ته هم رحم وئیلے شی۔ اِنۡ کُنَّ یُؤۡمِنَّ آه دا شرط دے
د پاره د تهدید، د تقیید د پاره نه دے ځکه چه د غیر مؤمناتو د پاره
د کتمان اجازت نیشته۔ تو په دے کښ اشاره ده چه تقاضا
د صحیح ایمان دا ده چه کتمان به نه کوی او ادا د امانت به کوی۔
او دا اِنۡ د شک د پاره نه دے بلکه کله چه شرط په طور د فرض
او تقدیر وی او مقصد پکښ تحقیق د حصول د شرط او د عدم
د هغه نه وی نو هلته اِنۡ استعمالیږی۔ او ذکر د جانبیتو د ایمان
د افادے د کمال ایمان د پاره دے۔
وَبُعُوۡلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِیۡ ذٰلِكَ اِنۡ اَرَادُوۡا اِصۡلَاحًا، دا دریمه
جمله ده او په دیکښ مقصد ذکر د مصلحت د عدت دے۔ چه
هغه رجوع کول د خاوند دی ښځے ته۔ او ترغیب دے رجوع کولو ته
دے د پاره چه د طلاق د اثر ازاله اوشی۔ بعول دلته جمع د بَعَل
ده خاوند ته وئیلے شی د وجے د اوچتوالی د هغه په ښځه باندے
دا رنګ بعال جماع ته وئیلے شی۔ او بعل مالک، سید او
مذکر ته هم وئیلے شی او دا صفات په خاوند کښ موجود وی
او هر کله چه رجعت د خاوند حق دے بغیر د رضا د ښځے نه
نو د دے سره لفظ د بعل پوره مناسب دے۔ او هِنَّ ضمیر مطلقات
ته راجع دے لیکن سوق د کلام دلالت کوی چه د دیته مراد
مطلقات دی په طلاق رجعی سره۔ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ کښ رد نه
مراد واپسی ده۔
سوال:۔ صیغه د اَحَقُّ د تفضیل د پاره ده تقاضا د حق د غیر
کوی او حال دا دے چه په عدت کښ حق د رجوع د زوج نه د
غیر د پاره نیشته؟
جواب ۱: دلته احق په معنیٰ د حقیق دے معنیٰ تفضیلی پکښ
نیشته۔ جواب ۲: لفظ د اِنۡ اَرَادُوۡا اصلاحًا په طریقه د مفهوم
شرط تقاضا کوی چه زوج (خاوند) اراده د اصلاح نه لری نو
هم هغه لره حق د رجوع شته۔ او هر کله چه اراده د اصلاح لری
نو بیا خو دیر حقدار دے۔ او رجوع ته یئے رد په دے وجه وئیلے د

چه دَ تربُّص نه یٔ ښځه واپس کړله یا دَ حرمت (په وخت دَ تیرېدلو دَ عدت کښ) نه حل ته یٔ واپس اُوګرځوله۔ فِیْ ذٰلِكَ کښ اشاره ده زمانے دَ تربص (عدت) ته۔ اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًا، داقیدِ دَ پاره دَ استحقاق دَ رجوع نه دے بلکه دَ ترغیب دَ پاره دے۔ دا دَ دے دَ پاره چه رد اُونه شی په طریقه دَ جاهلیت چه هغوی به دَ ضرر ورکولو دَ پاره رجوع کوله۔ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِیْ عَلَیْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ داځلورمه جمله ده په دیکښ مقصد دَ ښځے خاوند حقوق ذکر کول دی په یو بل باندے۔ اورعایت کول دَ هغه حقوقو دَ طلاق نه مانع دے اوضمیر دَ هُنَّ مطلقات ته نه دے راجع بلکه په قرینه دَ ردهن سره هغه دوباره زوجه اُوګرځیدله۔ یا ضمیر نِسَاء ته راجع دے چه په لِلَّذِیْنَ یُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآءِ هم کښ ذکر دے۔ او په دے جمله کښ ډیر فصاحت او بلاغت دے چه مستلزم ده ذکر دَ حقوقو دَ جانبینو لره تو په لَهُنَّ کښ حقوق دَ ښځے ذکر دی په خاوند باندے او په عَلَیْهِنَّ کښ حقوق دَ خاوند ذکر دی په ښځه باندے۔ او هر کله چه حقوق دَ خاوند اتو مشهور او مسلم دی په ټولو ادیانو کښ خو حقوق دَ ښځو جاهلیت والا نه منی او بعض عوام مؤمنان هم په هغے کښ سُستی کوی دَ دے وجے نه لَهُنَّ یٔ مخکښ راوړوا و تشبیه دَ ښځو دَ حقوقو یٔ نارینتو سره ورکړه۔ قرطبی دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل ماته ځان خائسته کوم لکه ښځه چه طریقه په خاوند باندے حق دے او په ښځه باندے طاعت کول دی دَ خاوند دَ شریعت مطابق۔ دلته تور حقوق قرطبی په تفصیل سره ذکر کړی دی۔ او لفظ دَ مِثْل دَ عین مشابهت دَ پاره او دَ عدد دَ پاره نه دے بلکه صرف دَ مشابهت دَ وجوب دَ پاره حقوق دَ زوجینو په احادیثو کښ ذکر دے۔ سنن ابن ماجه او سنن ابی داؤد کښ دَ دے دَ پاره ابواب کیښودلے شوی دی۔

اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ص فَاِمْسَاكٌۢ م بِمَعْرُوْفٍ

طلاق (رجعي) دوه کرته دي نو را ټینګول د ښځې دي په ښه طریقې سره

اَوْ تَسْرِيْحٌۢ م بِاِحْسَانٍ ط وَلَا يَحِلُّ

یا پریخودل دي په ښائسته طریقې سره او حلال نه دي

لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ

تاسو لره چه واخلئ تاسو د هغې مال نه چه تاسو ورکړې وي هغوی ته

او دا رنګ په مشکوٰة المصابیح کښ هم دی. وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ، دا پنځمه جمله ده او په دیکښ مقصد د یو وهم دفع کول دی هغه دا چه د مخکنئ جملې نه وهم پیدا کیږی چه ناریته او ښځې په برابر وی؟ نو د هغې جواب اُوشو په دے جملې سره. او زیاتوالے د درجې د ناریته په زنانه باندے په دوه وجوسره دے اول دا چه ناریته زیات دے د زنانه نه په ډیرو اُمورو کښ لکه په کمال د عقل کښ او په دیت کښ، په میراث کښ او په صلاحیت د امامت او قضا او شهادت کښ. او اختیار د طلاق او رجوع کښ بغیر د رضا د ښځې نه. او دویمه وجه دا ده چه بعض حقوق د ناریته په ذمه دی لکه التزام د مهر او نفقې او حفاظت د هغې او د هغې د مصلحتونو حفاظت او دا په سورة نساء ۳۴ کښ دی. قرطبی وئیلی دی چه په دے جمله کښ اشاره ده تیزئ ورکولو د ناریتو ته په ښه ژوند کولو او په خرچ کولو کښ وسعت کول په زنانو باندے ځکه چه افضل شخص په ځان باندے زیات بوج اُوړی. وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ، دا شپږمه جمله ده او په دیکښ تسلی ده ناریتو او زنانو ته په تشریع د تیر شوی حکمونو سره. نو عزیز کښ اشاره ده چه په وجوب د حقوقو د زنانو کښ د ناریتو بے عزتی او سپکوالے نیشته. او حکیم کښ اشاره ده چه په زنانه باندے د ناریته غوره والے د الله تعالٰی د حکمتونو د وجے نه دے په دیکښ په هغه باندے څه اعتراض نیشته.

شَيْـًٔا إِلَّآ أَن يَخَافَآ أَلَّا يُقِيمَا

هیڅ څیز مګر په هغه وخت چه ویریږئ تاسو چه پابندی به اونکړی دوی

حُدُودَ اللّٰهِ ۖ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا

دَ پولو دَ الله تعالیٰ نو که چرے تاسو ویره کوئ چه دوی به پابندی اونکړی

حُدُودَ اللّٰهِ ۙ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا

دَ پولو دَ الله تعالیٰ نو نیشته ګناه په دوی باندے په هغه مال کښ

افْتَدَتْ بِهِۦ ۗ تِلْكَ حُدُودُ اللّٰهِ

چه فدیه کښ ورکوی زنانه په هغے سره دا پولے دَ الله تعالیٰ دی

فَلَا تَعْتَدُوهَا ۚ وَمَن يَتَعَدَّ

نو تیرېدل مه کوئ دَ دغه پولو نه او چا چه تیرېدل اوکړل

حُدُودَ اللّٰهِ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُونَ ﴿۲۲۹﴾

دَ پولو دَ الله تعالیٰ نه نو دغه کسان دوی ظالمان دی۔

۲۲۹ په دے آیت کښ هم شپږ جملے دی ۔ او په دیکښ شمار دَ طلاق رجعی او دَ هغے نه رجوع یا عدم رجوع او دَ ښځے دَ مهر واپس کولو نه منع او دَ خلع مسئله ذکر کوی۔

ربط :- مخکښ آیت کښ یئے دَ خاوند حق دَ رجوع کولو ذکر کړو او دَ هغه دَ دریے اوچتولے نو اوس ذکر کوی حق دَ طلاق ورکولو دَ هغه او اختیار دَ رجوع کولو سره دَ رد کولو نه په طریقه دَ جاهلیت باندے چه په جاهلیت کښ دَ طلاق ورکولو دَ پاره دَ شمار څه حد نه وو دارنګ دَ رجوع دَ پاره هم شمار نه وۀ۔

الطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ، په الطلاق کښ الف لام عهدی دی یعنی هغه طلاق چه په هغے پسے خاوند دَ رجوع حق لری یا هغه طلاق چه سنت او احسن دے۔ او دا مصدر په معنیٰ دَ تطلیق سره دے او مضاف پټ دے یعنی عدد دَ تطلیق۔ مَرَّتٰنِ نه مراد تثنیه

دَ تکرار دَ پاره نه ده لکه لفظ دَ گرَّتَیْنِ بلکه دَ تثنیې دَ پاره په طریقه دَ تفریق سره ده یعنی دوه طلاقه په یو پل پسې او دا احسن طریقه ده او دوه په یو ځائے ورکول هم جائز او واقع دی لیکن اختلاف پکښ شته خو دَ سنت دَ طریقې نه خلاف دی۔
فَإِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوفٍ، دا مبتدا ده او خبر ئې پټ دے یعنی اَحْسَنُ وَ اَفْضَلُ، یا مبتدا پټه ده یعنی فَالْوَاجِبُ عَلَيْكُمْ إِمْسَاكٌ، او دَ امساک نه مراد رجوع کول دی بالاتفاق۔ او معروف نه مراد اراده دَ اصلاح او شرعی طریقې ده۔ أَوْ تَسْرِيحٌۢ بِإِحْسَانٍ، او دَ اختیار دَ پاره دے او تسریح په اصل کښ پریښودلو ته وئیلې شی۔ او په دیکښ دوه اقوال دی اول قول دا چه رجوع نه کوی تر دے پورے چه عدت ئې تیر شی او احسان دا دے چه دَ هغې نه هیڅ حق نه منع کوی او ضرر هم نه ورکوی دَ جاهلیت والو په شان او دا قول ابن کثیر دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدے۔
دویم قول دا دے چه دَ دینه مراد دریم طلاق ورکول دی لکه په حدیث کښ وارد دی چه الطلاق مرتان نازل شو نو چا تپوس اوکړو چه دریم طلاق کوم ځائے دے نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل چه تَسْرِيحٌۢ بِإِحْسَانٍ۔ روایت ابن جریر، بیهقی، ابوداؤد سیوطی او ابن کثیر ذکر کړے دے۔ او امام رازی اول قول ته ترجیح ورکړیده په یو څو وجو سره اول دا چه دریم طلاق روستو په فَإِن طَلَّقَهَا سره ذکر دے۔ دویم دا چه روستو ئې خلع ذکر کړیده او خلع دَ دریم طلاق نه روستو نه کیږی۔ او ابن عطیه او ابوحیان دویم قول غوره کړیدے۔ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَأْخُذُوا۟ مِمَّآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ شَيْـًٔا، دا خاوندانو ته خطاب دے په وخت دَ طلاق ورکولو کښ یعنی کوم مهر چه خاوند ښځې له ورکړے وی نو دَ هغې نه هیڅ حصه واپس نشی اخستلے او دا رنګ په سورة نساء ۲۰ کښ هم دی۔
او دا تقاضا دَ هغه احسان ده چه مخکښ ذکر شو او په دے وجے سره دا دَ مخکښ جملے سره ربط لری۔ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ عام دے مهر ته او نورو شیزونه چه په طریقه دَ هبے او صدقے ئې ښځے له ورکړے وی۔

إِلَّآ أَن يَخَافَآ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللّٰهِ، دا استثناء مفرغ ده تو په ماقبل
کښې عبارت پټ دے يعنی فِي وَقْتٍ مِّنَ الْأَوْقَاتِ إِلَّا وَقْتَ الْخَوْفِ
أَوْ بِسَبَبٍ مِّنَ الْأَسْبَابِ إِلَّا بِسَبَبِ الْخَوْفِ- أَن يَخَافَآ، په تاويل
دَ مصدر سره دے او ضمير په يخافا او يُقِيمَا کښې ښځے او خاوند ته
راجع دے- او دَ خوف نه مراد يقين کول دی يا علم دے يا ظن دے
يا يره کول دی- ليکن هرکله چه دا دَ مستقبل زمانے سره تعلق
لري او خطرناک حالت دے دَ دے وجے نه ئے تعبير په خوف
سره اُوکړے شو- او مخکښې جمله (لکم) کښې خطاب وو او په
ديکښې صيغے دَ غائب ذکر دی- ديته التفات وئيلے شی- حُدُودَ اللّٰهِ
دَ حدود معنیٰ مخکښې تيره شويده او دلته مراد حقوق دَ زوجيت
دی دَ جانبينو نه- او دَ دے جملے نه روستو تقدير دَ عبارت دے
يعنی فَيَجُوزُ لَكُمْ أَخْذُ شَيْءٍ مِنَ الزَّوْجَةِ، (جائز دی تاسو له
اخستل دَ يو څيز دَ ښځو نه په بدل دَ طلاق ورکولو کښې) او ديته
خلع وئيلے شی- فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللّٰهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا،
دا خطاب دے اولياؤ دَ ښځے خاوند ته يا امراؤ يا صالحينو دَ مسلمانانو
ته او په دے جمله کښې هم التفات دے دَ غائب نه خطاب ته
او په دے خطاب کښې وجه دا ده چه هرکله ښځه خاوند اقامت
او پابندی دَ حدود الله نه کوی بلکه دَ دوی په مينځ کښې ورانے
او جګړے پيدا شی نو دَ دوی اولياؤ يا امراؤ يا صلحه کوونکو
مسلمانانو ته خطاب دے دَ صلح کولو په سورة نساء ت۳۵
کښې او هرکله چه هغوی دَ صلحه کولو نه عاجز شی نو بيا دا خطاب
دے چه فَإِنْ خِفْتُمْ- په دے ترتيب کښې اشاره ده چه په خلع
کولو کښې تادی کول نه دی پکار ځکه چه دا سبب دَ دُشمنئ کرځی
دَ مسلمانانو په مينځ کښې- فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا کښې ضمير دَ تثنيه
ښځے خاوند ته راجع دے- فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ، صاحب اللباب
وئيلی دی چه په خوف دَ خاوند او ښځے کښې څلور اقسام دی
اول دا چه خوف دَ طرف دَ ښځے نه وی چه هغه خپل خاوند
بدګتری او نافرمانی کوی- نو خاوند له جائز دی چه په خلع

سره دَ هغې نه مال واخلي لکه چه دا په حديث دَ جميله بنت عبدالله ابن ابي اوفیٰ رضی الله عنها کښ ذکر دی چه هغه بخاری روايت کړے دے۔ دويم قسم دا چه خوف دَ خاوند دَ طرف نه وی چه خپله ښځه وهي ټکوی او تکليف او اذيت ورله ورکوی دے دَ پاره چه دَ يه ترينه واخلي او خلع اُوکړي نو دا سے صورت کښ خاوند له دَ يه اخستل دَ ښځې نه حرام دی دَ وجے دَ مخکښ جملے نه (لا يحل لکم ان تاخذوا شيئاً)۔ دريم قسم دا دے چه خوف دَ دواړو طرفو نه وی خو دواړه په خلع باندے رضا شی نو په دے کښ اختلاف دے ليکن په نيز دَ اکثر اهل علمو دا خلع جائز ده او دَ يه اخستل حلال دی۔ څلورم قسم دا دے چه خوف دَ دواړو دَ طرف نه وی نو په دے صورت کښ خلع جائز ده ليکن خاوند لره دَ يه اخستل دَ ښځې نه حرام دی۔ نو فَلَا جناح عليهما مصداق دَ اول قسم دے۔ او دريم قسم هم په دے کښ داخل دے۔

**سوال:** په آيت کښ ئے شرط دَ دواړو خوف ذکر کړيدے او په اول صورت کښ خوف دَ يو جانب نه دے او په دريم صورت کښ خوف بالکل نيشته؟

**جواب:** هرکله چه خوف دَ ښځې دَ طرف نه شروع شی نو هغه مستلزم دے خوف دَ خاوند لره تبعاً۔ او دريم صورت دَ جواز دے په دليل دَ آيت سورة نساء سره۔

**سوال:** هرکله چه دَ يه ښځه ورکوی نو فلا جناح عليهما تثنيه ئے ولے ذکر کړه؟

**جواب:** ښځه دَ يه ورکوی او خاوند دَ يه وصولوی نو دواړو باندے ګناه نيشته۔

**فائده:** په خلع کښ دَ اهلِ علمو اختلاف دے چه دا طلاق دے او که صرف فسخ دَ نکاح ده نو په نيز دَ عثمان، علی او ابن مسعود رضی الله عنهم او بعضِ تابعينو دا طلاق دے۔ او دا مذهب دَ امام مالک او امام ابوحنيفه رحمهما الله هم دے او په ديکښ

فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ

نو که چرې دریم طلاق ورکړي خاوند نو حلال نه ده دا ښځه هغه لره روستو د دې نه

حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ ۗ فَإِنْ

تر دې پورې چه نکاح اوکړي د خاوند بل سره نو که چرې

طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ

طلاق ورکړي دویم خاوند هغې لره نو نیشته ګناه په دې دواړو باندې چه

د دوي په نیز تیت د دوه او د دریو طلاقو هم صحیح دے لیکن د امام ابوحنیفه په نیز په دے صورت کښ به طلاق بائن لازمیږي. او په نیز د ابن عباس رضی الله عنهما طاؤس او عکرمه خلع فسخ د نکاح دے خو طلاق نه دے. او دا یو قول د امام شافعي او د ابوثور او اسحاق بن راهویه رحمهم الله هم دے. او د دواړه جانبینو دلائیل مفسرینو او محدثینو ذکر کړي دي.

تِلْكَ حُدُودُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوهَا، تِلْكَ اشاره ده هغه آیاتونو او حکمونو ته چه د ښځې سره متعلق وو د لا تنکحوا المشرکات نه تر دے ځائے پورې. حدود هغه اوامر او نواهي دي چه شرع د هغې د تجاوز کولو نه منع کړې وي او په هغې کښ زیاتے او کمے کول دواړه حرام وي نو فلا تعتدوها ئے اوویلو. حُدُودُ اللّٰهِ، دوه قسمه دي یو قسم اوامر دي چه د هغې نه اعتداء (زیاتے او خلاف) کول حرام دي دویم قسم نواهي دي چه هغې ته د مخالفت په طور سره نزدیکت حرام دے نو اعتداء دواړو ته شامل دے. او په دے اعتداء کښ د عدد د طلاق شرعي نه تجاوز کول او په کیفیت د عدد یا په کیفیت ئے تجاوز اوکړے شي) یعني یا حرام وئیلے شي.

وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللّٰهِ فَأُولٰئِكَ هُمُ الظّٰلِمُونَ، په دے جمله کښ تاکیدات دي. اول دا چه په دے کښ عموم دے روستو د خاص خطاب نه. دویم دا چه په دیکښ ئے حکم کړیدے چه

يَّتَرَاجَعَآ اِنۡ ظَنَّاۤ اَنۡ يُّقِيۡمَا

(و د کړځي یو بل ته (په نکاح سره) که چرې ګمان کوي چه پابندي به کوي

حُدُوۡدَ اللّٰهِ‌ؕ وَتِلۡكَ حُدُوۡدُ اللّٰهِ

دَ پولو دَ الله تعالی او دا پولې دَ الله تعالی دي

يُبَيِّنُهَا لِقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۳۰﴾

الله بیانوي دا دَ پاره دَ داسې قوم چه پوهه لري۔

داظلم دے۔ دریم حصر دَ ظلم ئې کړیں ے په لفظ اولٰٓئِكَ هُمُ اومعرفه راوړلو دَ الظالمون سره۔ او دا تعدی مستلزم ده ظلم لره په ځان باندے په سبب دَ ګناهونو کولو۔ او ظلم دَ خاوند لره په ښځه باندے او ظلم دَ ښځې لره په خاوند باندے۔

۲۳۰ په دے آیت کښ درے جملے دی او په دیکښ ذکر دَ دریم طلاق او دَ هغې نه پس دَ حِلُ (حلال کیدلو) طریقه بیان کړیده۔ فَإِنۡ طَلَّقَهَا، قرطبي وئیلي دي چه اجماع ده په دے باندے چه په دے لفظ کښ دریم طلاق مراد دے۔ نو که تسریح کښ دریم طلاق ته اشاره وي نو هغه اجمال وؤ او دا دَ هغې تفصیل دے۔ او که تسریح پریښودل دَ رجوع وي نو دا مستقل دریم طلاق ته اشاره ده او دلیل دا دے چه دلته ئې فا راوړے ده چه دلالت کوي په روستوالي دَ دے طلاق دَ مخکښ الطلاق مرتان نه۔ دویم دلیل دا دے چه ضمیر فاعل دَ طلقها راجع دے هغه خاوند ته چه مخکښ ئې دوه طلاقونه ورکړے دي او ضمیر دَ ها هغه ښځې ته راجع دے چه هغې ته ئې دوه طلاقونه ورکړے دي۔ او په حرف دَ فاء سره ذکر کول اشاره ده چه شرعي طریقه دا ده چه دریم طلاق دے دَ مخکښ دوه طلاقو سره نه جمع کوي بلکه روستو دِ ورکوي۔ نو معلومه شوه چه درے طلاق په یو ځائے یا په یو کلمه کښ جمع کول دَ طریقه شرعي نه خلاف کول دي دَ دے وجې نه علماء احناف هم هغې ته بدعي طلاق وائي۔

فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ - مِنْ بَعْدُ ته مراد روستو
د دریم طلاق نه او لَهٗ ضمیر اول خاوند ته راجع دے۔ او حَتّٰی
دَ غائیے دَ پاره دے۔ تَنْكِحَ کښې نسبت دلته ښځے ته کړے شوے
دے ځکه چه دَ نکاح نه مراد دلته جماع ده صرف عقد دَ نکاح
نه دے۔ یا دَ دے وجے نه چه په دے عبارت کښې اختصار
دے۔ او احناف وائی چه دا دلیل دے چه ښځه عقد دَ نکاح
کولے شی۔ زَوْجًا نه مراد دویم خاوند دے۔ هرکله چه دَ تَنْكِحَ
نه مراد جماع شی نو زوجیت حاصل شوید ے په مخکښې
عقد دَ نکاح کولو سره۔ او که دَ تَنْكِحَ نه مراد عقد شی نو زَوْجًا ئے
مجازًا په اعتبار دَ مَا يَؤُوْلُ اِلَيْهِ سره وئیلے دے۔ او په دے
لفظ کښې تصریح ده چه تحلیل په زنا کولو سره او په نکاح
فاسده سره نه حاصلیږی ځکه چه هغے ته شرعًا زوج نشی
وئیلے کیدے۔ غَيْرَهٗ لفظ کښې تاکید دے چه مخکښې زوج نه
دے مراد بلکه دَ هغه نه غیر مراد دے۔

دَ دے نکاح نه وړاندے عدت تیریدل ضروری دی په دلیل
دَ آیتونو دَ عدت سره او روستو دَ دے نکاح نه دَ تحلیل (حلالیدلو)
دَ پاره جماع دَ دویم خاوند شرط ده په دلیل دَ حدیث عسیله
چه بخاری کتاب الشهادات کښې راوړے دے۔ او په نیز دَ بعضِ
مفسرینو جماع ثابت ده په لفظ دَ تَنْكِحَ سره۔ او په دیکښې بعضِ
فقهاؤ نسبت کړید ے سعید بن المسیب ته چه هغه دَ شرط
لګولو د جماع قائل نه دے لیکن ابن کثیر په هغے باندے اعتراض
کړے دے چه دَ سعید بن المسیب ته هم حدیث دَ عسیله نقل دے
فائده :- سوال دا دے چه نکاح دَ دویم خاوند سره په شرط
دَ تحلیل (چه هغوی ته محلل او محلل له وئیلے شی) دا نکاح
صحیح دے او په دے سره تحلیل حاصلیږی او که نه؟ په دیکښې
دَ اهلِ علمو اختلاف دے۔ دَ امام مالک، اوزاعی او سفیان ثوری
په نیز دا نکاح فاسد او واجب الفسخ دے او په دے سره دَ
اول خاوند دَ پاره حِلْ (حلالیدل دَ ښځے) نه حاصلیږی او دلیل

دَ هغې نه يې په ظن سره تعبير اُوکړو- او حُدُوْدَ اللّٰهِ نه مراد حسن معاشره او ادا دَ حقوقِ واجبه دَ زوجيتو ده- وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ

يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ، دَ تبيين دَ حدودو نه مراد دَ هغې ذکرکول دي په ښه وضاحت او تفصيل سره - سره دَ اشارې دَ حکمتونو او علتونو نه - لِقَوْمٍ کښې لام دَ پاره دَ انتفاع دې ځکه چه علم شرط دې دَ انتفاع دَ پاره- او لفظ دَ قوم اشاره ده چه اهل علم په سبب دَ علم سره قِوام او مضبوطوالې دَ معاشرې پيدا کوي.

مسئله دَ درې طلاقو په يو کلمې سره يا په يوځل سره چه په مينځ کښې يې هيڅ فاصله او نه ساتلې شي :- په دې کښې دَ اهل علمو څلور اقوال دي - اول قول دَ اکثر اهلِ علمو دې چه په دې طريقې سره درې طلاق واقع کيږي او حکم دَ هغې تحليل دې. او دا قول دَ څلورو اماماتو دې - دويم قول دَ علي، ابن مسعود، ابن عباس، عبد الرحمٰن بن عوف او زبير بن العوام رضوان الله تعالىٰ اجمعين او محمد بن اسحاق، حجاج بن ارطات او طاؤس رحمهم الله عليهم (تابعينو) او دَ بعضِ اصحاب الظواهر او علماء دَ اندلس لکه محمد بن زنباع، محمد بن بقي بن مخلد، محمد بن عبد السلام الخشني، محمد بن مقاتل الرازي حنفي (دا طحاوي نقل کړيدې) اصلغ بن الحباب، احمد بن مغيث الطليطلي او شيخ الاسلام ابن تيميه او ابن قيم الجوزيه رحمهم الله عليهم دې - دَ دوي په نيز په دې سره يو طلاق رجعي واقع کيږي - دريم قول دَ مقاتل او داؤد ظاهري دې چه په دې سره هيڅ طلاق نه واقع کيږي - او ابن عاشور وئيلي دي چه دَ دې دواړو دا قول شاذ او باطل دې - او اجماع ده دَ مسلمانانو په دغې قول باندې دَ ترک دَ عمل سره - ځکه چه لفظ دَ طلاق موجود دې او نيت دَ طلاق هم شته نو بيا ولې طلاق نه واقع کيږي - څلورم قول دَ ابن جبير، عطاء، ابن دينار او جابر بن زيد رحمهم الله تعالىٰ (تابعينو) دې - دوي وائي چه هر کله ښځه بکره (غير مدخول بها) وي نو په دې لفظ سره يو طلاق واقع

کیږي او توردوه لغو شول- دوی وائي چه هرکله او وئیلې شو چه أَنْتِ طَالِقٌ (ته طلاقه یې) تو یو طلاق واقع شو او په هغې پاتې عدت نیشته نو د ثلاثتا (دریو) د پاره محل باقي پاتې نه شو- په اول قول والو کښې اختلاف دے د اکثر اهلِ علمو او د امام ابو حنیفه رحمه الله په نیز په یو ځل درې طلاق ذکر کول یا په حیض او نفاس کښې طلاق ورکول دا بدعي طلاق دی یعنې د سنت طریقې نه خلاف دی- او د امام شافعي رحمه الله په نیز دا بدعي نه دی- د اول قول والو دلیلونه دا دی: اول هغه روایات دی چه په هغې کښې ذکر د طلاق ثلاثه وارد دے چه یو د هغې نه حدیث د عویمر عجلاني دے په باب د لعان کښې چه هغه بخاري او مسلم راوړیدے په هغې کښې ذکر دی چه هغه خپله ښځه روستو د لعان نه په دریو طلاقو سره طلاقه کړه لیکن دا هغه وخت چه دئ ته نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغې د تحریم خبر په لعان سره نه وو ورکړے- لیکن په دے حدیث کښې معلومه ده چه ښځه په دئ باندے په لعان سره حرامه شوه تو محل د درے طلاقو پاتې نه شو بلکه هغه مهمل شو- شیخ الاسلام وئیلی دی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د دریو طلاقو واقع کیدلو په باره کښې احادیث کذب دی او کوم چه صحیح دی تو هغې کښې درے متفرق طلاق مراد دی (فتاوی شیخ الاسلام جلد ۳۳ صفحه ۷۳)- دویم حدیث د موطاء امام مالک دے په طریقه د بلاغ سره د ابن عباس رضی الله عنهما نه چه یو سړي ورته اُوئیل چه ما خپله ښځه په سل طلاقه سره طلاقه کړیده تو هغه ورته اُوفرمائیل چه درے طلاق واقع شول او درے کم سل تو قے کول دی په آیاتو تو د الله تعالی پورے لیکن مخکښې ذکر شول چه علماؤ د ابن عباس رضی الله عنهما دویم قول ذکر کړیدے چه دا یو طلاق واقع کیږي تو دا تعارض دے د هغه په اقوالو کښې لیکن ابو داؤد وئیلی دی چه ابن عباس رضی الله عنهما د اول قول (د درے واقع کیدلو نه)

رجوع کړیږه - عون المعبود جلد ٦ صفحه ۲۷۳ الصواعق المرسله جلد ۲ صفحه ٦۲۱ - دریم آلوسی وئیلی دی چه دا کار کړیږے یوے ډلے د صحابه کرامو ته او نورو په هغے باندے فتوی ورکړیږه لیکن قاسمی وئیلی دی چه کتاب الله او سنت رسول الله او لغت د عربو او خلیفه اول د رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوبکر صدیق رضی الله عنه او درے کلونه د خلیفه ثانی عمر رضی الله عنه او هیڅ صحابي په خلاف باندے (یعنی په وقوع د درے طلاقونو سره) فتوی نه ده ورکړے - ابن قیم وئیلی دی چه دغه وخت کښ د هیڅ صحابي نه خلاف یا دوه اقوال (متضاد) نه دی نقل نو دا اجماع قدیم ده چه یو طلاق واقع کیږی په لفظ د درے طلاقو سره (اغاثه اللهفان جلد ۱ صفحه ۴۳۵ - څلورم استدلال د دوی دے په حکم د عمر رضی الله عنه او دا اجماع سکوتی ده او دا روایت د طاؤس دے د ابن عباس رضی الله عنهما نه چه په زمانه د رسول الله صلی الله علیه وسلم او په خلافت د ابوبکر صدیق رضی الله عنه او درے کاله خلافت د عمر رضی الله عنه کښ طلاق دا وُ چه درے طلاق به یو طلاق گرځولے کیدلے شو بیا عمر رضی الله عنه اُوفرمائیل چه خلقو تادی اُوکړه په هغه کار کښ چه الله تعالی په هغه کښ تعلیم آنات (دمه کول، تدریجاً کول) ورکړیږے - تو مونږ دا په دوی باندے جاری کوو نو جاری یئے کړو یعنی درے طلاق یئے (په یو لفظ سره) درے اوگرځول - لیکن دا فعل د عمر رضی الله عنه په طریقه د قضا او زجر سره دے یعنی دا د هغه اجتهاد دے - نو دا داسے اجماع نه ده چه د دے مخالفت کول ناجائز وی - او امام شافعی، باقلانی، امام غزالی او امام رازی رحمهم الله علیهم وئیلی دی چه اجماع سکوتی حجت شرعیه نه دے -

او د دویم قول والو دلیلونه دا دی :- اول دلیل ترتیب د کتاب الله دے چه اول یئے دوه طلاقونه ذکر کړیږی او روستو یئے دریم طلاق ذکر کړیږے - او په دے ترتیب کښ حکمت دا وو چه

اِنسان په انقطاع دَ نکاح کښې تا دی اُونکړی بلکه دَ طلاق رجعی نه رجوع اوکړی- تو هر کله چه درې طلاقونه په یو ځائے ورکړی نو دا حکمت برباد شو او دے حکمت پاتې ے تصریح وه په سورة طلاق کښې (لعل الله یحدث بعد ذالك امراً)- دویم ابن مغیث وئیلی دی چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی اَوْ تَسْرِیْحٌ بِاِحْسَانٍ، لیکن واقع کؤونکی دَ دریو طلاقو په یو کرت سره احسان اُونه کړو- دریم حدیث دَ ابن عباس رضی الله عنهما دے په صحیحین کښې چه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په وخت او په خلافت دَ ابوبکر رضی الله عنه او په ابتداء دَ خلافت دَ عمر رضی الله عنه کښې دا یو طلاق وو، دَ دے اول قول والو جواب کړیدے چه دا حدیث دَ طاؤس وهم دے او غلط دے او دَ باقی صحابه کرامو او دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه خلاف دے لیکن ابوالولید الباجی وئیلی دی چه روایت دَ طاؤس بالکل درست او صحیح دے- دَ هغه نه لویو لویو آئمه کرامو روایت کړیدے لکه معمر او ابن جریج وغیرهما او طاؤس هم امام دے په حدیثو کښې- او هر چه مخالفت دَ ابن عباس رضی الله عنهما دے دَ دغه روایت نه (دَ بعضو په نیز پاتے ے) تو په دے سره روایت ته نقصان نه رسی بلکه په مونږ پاتے ے واجب دے عمل په روایت مرفوعه دَ هغه پاتے ے نه په رائے دَ هغه- څلورم دلیل حدیث دَ دارقطنی دے چه رکانه بن عبد یزید خپله ښځه په درې طلاقو سره طلاقه کړے وه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې تو هغه دغه دریواړه یو اوګرځوو او هغه ته ئے حکم دَ رجوع ورکړو اول قول والا وئیلی دی چه دا حدیث مضطرب دے- ابن عاشور وئیلی دی چه دَ دے اول قول والو دا جواب واهی دے اګرچه دا روایت په اعلیٰ مرتبه دَ صحت کښې نه دے- شیخ الاسلام وئیلی دی چه لویو آئمه کرامو چه علل دَ احادیثو پیژنی لکه امام احمد او امام بخاری، ابو عبید او ابن حزم حدیث دَ البتته ضعیف کړیدے او راویان ئے مجهول دی-

یا داچه مدیتے والویه طلاق ثلاثه نه طلاق البتته وئیل مجموعه الفتاوی (جلد ۳۳-ص ۱۵- ۶۷- ۳ ۷)- پنځم دلیل روایت د دارقطنی دے حدیث د ابن عمر رضی الله عنهما چه هغه پخپله ښځه طلاقه کړے وه په درے طلاقو سره (دا زیادت په دے روایت کښ موجود دے) او نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغه ته د رجوع کولو حکم ورکړے وو یعنی یو طلاق یې اوګرځوو- لیکن دا حدیث ډیر ضعیف دے- او دلیل د دریم قول چه په لفظ د طلاق ثلاثه سره هیڅ طلاق نه واقع کیږی آیت وَالْمُطَلَّقٰتُ یَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ، او اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ او روستو تَسْرِیْحٌ بِاِحْسَانٍ یا فَاِنْ طَلَّقَهَا دے- هغوی وائی چه په قرآن کریم کښ ذکر د دریو نیشته په یو کلمے سره- لیکن مخکښ تیر شوی دی چه دا قول شاذ دے او طریقه د استدلال یې کمزورے ده-

فائده ۱:- د دے تفصیل نه معلومه شوه چه درے طلاق واقع کیدل په یو کلمے سره اجماعی مسئله نه ده اګرچه ائمه اربعه په دے باندے متفق دی لیکن د هغوی نه علاوه نور اهل علم شته چه د دے قول خلاف یې کړیدے.

فائده ۲:- که فکر اوکړے شی چه په درے طلاق واقع کیدلو سره اکثر جاهلان دروازه د حیلے د تحلیل پرانزی چه هغه صراحتًا د لعنت سبب دے- د دے وجے نه اهل افتاء لره ضروری دی چه د طلاق ورکوونکی د حال مطابق فتوی ورکړی- د دے مسئلے د تفصیل د پاره فتاوی د شیخ الاسلام ابن تیمیه جلد ۳۲ صفحه ۸۷-۳۱۱ او جلد ۳۳ صفحه ۷-۱۴-۶۷-۷۱-۹۸-۱۳۰ او الصواعق المرسله جلد ۲ صفحه ۶۱۹ او اعلام الموقعین او اغاثه اللهفان د ابن قیم الجوزیه جلد اول صفحه ۳۲۵ ته مراجعه پکار ده هغوی په دے باره کښ مناسب بحث کړیدے.

فائده ۳:- د فعل د عمر رضی الله عنه جواب شیخ الاسلام په فتاوی کښ جلد ۳۳ صفحه ۹۶ باندے په تفصیل سره راوړے دے- اول دا چه دا اجتهاد د هغه دے- دویم دا چه دا عقوبت د

وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ

او كوم وخت چه طلاق ورکړے تاسو ښځو ته نو نزدے شی هغوی

أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ

نیټے د عدت خپل ته نو راټینګے کړے هغوی په ښه طریقے سره

أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ

یا پریږدے هغوی لره په ښه طریقے سره او مه راټینګوئ دوی لره

ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوا ۚ وَمَن يَفْعَلْ

د ضرر دپاره چه زیاتے اوکړے تاسو په هغوی باندے او چاچه اوکړو

ذَٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ ۚ وَلَا تَتَّخِذُوا

دا کار نو یقینًا ظلم اوکړو هغه په خپل ځان باندے او مه نیسی

آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا ۚ وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ

آیاتونه د الله تعالٰی ټوقے کړے شوے او یاد کړئ تاسو نعمت د الله تعالٰی

عَلَيْكُمْ وَمَا أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّنَ الْكِتَابِ

په تاسو باندے او هغه چه نازل کړے دی الله تعالٰی په تاسو باندے د کتاب

وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُم بِهِ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ

او د سنت نه نصیحت درکوی تاسو ته په دے سره او ویره کوی د الله تعالٰی نه

وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٣١﴾ ع ٢٩ ٣

او پوهه شئ چه یقینًا الله تعالٰی په هر څیز باندے ښه علم لری۔

په وخت د حاجت کښ تو دا یو شرع لازم نه ده۔ دریم ابن قیم
په اغاثة اللهفان جلد اول صفحه ٣٩٤ کښ روایت د ابو یعلی
ذکر کړے دے چه عمر رضی الله عنه په دے حکم باندے پښیمانه شوے وو
د دے وجے نه چه روستوئے په هغے کښ مفاسد او د تحلیل دپاره باطلے حیلے
کول اولیدل۔

۲۳۱ - دا عطف دے په فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَن يَتَرَاجَعَا باندے د قبیلے د عطف نه دے د یو حکم شرعی په بل حکم شرعی باندے - او مقصد په آیت کښ رد دے په طریقه د جاهلیت باندے چه د هغوی په نیز په رجوع کولو کښ تعداد نه وو او رجوع یئے زنانه ته د ضرر ورکولو د پاره کوله -

**سوال**:- دا مضمون خو مخکښ فامساك بمعروف کښ تیر شو نو تکرار یئے ولے اوکړو؟

**جواب ۱**: مخکښ آیت کښ مقصد تفریق د طلقاتو وو او په دے آیت کښ کیفیت د امساك ذکر کوی -

**جواب ۲**: هلته صرف اختیار د امر یتو ذکر وو یعنی امساك او تسریح او دلته تردید دے د جاهلیت د طریقے -

فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ، بلوغ الاجل په حقیقت کښ رسیدل دی آخری نیټے ته لکه چه روستو آیت کښ دا معنیٰ مراد ده - او مجازاً دا په معنیٰ د نزدیکت د نیټے دے او دیته مجاز مشارفت وئیلے شی په دے قرینه سره چه دلته حکم د امساك دے او روستو د عدت تیریدلو نه امساك نشی کولے - اجل په کلام د عربو کښ هغه مدت ته وئیلے شی چه مهلت ورکړے شی یو شخص ته په وخت د یو کار معین کښ نو اجل د مدت آخر ته وئیلے شی زنانه ته د بلوغ نسبت د دے وجے نه شوے دے چه هغوی د دے اجل انتظار کوی د پاره د تحلیل د بل نکاح او د دے وجے نه اضافت د اجل هم دوی ته اوکړے شو - فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ دا یئے په تسریح باندے مقدم کړو د پاره د غوره والی او ترغیب د دے - او امساك نه مراد رجوع کول دی - او هغه د بعض علماؤ په نیز خاص ده په قول (وینا) پورے او د بعضو په نیز په قول او په جماع دواړو سره به کیدے شی - معروف نه مراد د ښځے حقوق اداکول دی او دا رنګ ښځے ته ضرر نه ورکول - أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ، دا یئے د نفس جواز او اتمام د اختیار د پاره ذکر کړیدے - او معروف نه مراد هغه احسان دے چه

مخکښې آیت کښې تیر شوې وو۔
فائده:۔ مخکښې آیت کښې د احسان ذکر وو او دلته ذکر د معروف دے د دے حکمت څه دے؟ اول داچه په دے آیت کښې معروف نه مقصد منع ده د ضرر ورکولو نه۔ تو چه د چا د ضرر بره کیږی نو هغه ته مطالبه د احسان نه کیږی۔ او په هغه آیت کښې صرف تخییر (اختیار) ذکر وو نو د هغے سره احسان مناسب وو۔ دویم داچه معروف ادنیٰ دے د احسان نه نو هر کله چه مخکښې آیت کښې د تسریح سره احسان ذکر وو نو وهم راغے چه د تسریح سره احسان واجب دے۔ نو دلته او وئیلے شو چه د تسریح سره صرف معروف واجب دے او احسان امر استحبابی دے۔
وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوا، دا رد دے په طریقه د جاهلیت باندے چه بو سړی به ښځه طلاقه کړه نو بیا به یئے ورته رجوع اُوکړه او حاجت به یئے ورته نه وو او د امساك اراده به یئے هم نه وه مقصد یئے دا وو چه د هغے عدت اُوږد شی او تنګه شی۔
سوال:۔ دا مقصد خو په فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ، سره حاصل شو نو تکرار کښې څه فائده ده؟۔
جواب:۔ دوه فائدے دی۔ اول داچه امر د امساك بالمعروف کښې د دوام افاده نه کوله نو نهی یئے ذکر دے د پاره د دے چه ټولو اوقاتو ته شامل شی او عام شی۔ دویمه فائده دا ده چه ضرار ډیر قبیح وو نو د هغے د نهی د پاره تصریح ضروری وه۔
ضِرَارًا مفعول له دے او په دیکښې اُوږدوالے د عدت او ناکاره معاشرت او تنګوالے د نفقے وغیره داخل دی۔
لِّتَعْتَدُوا متعلق دے په ضِرَارًا پورے او دا علت د علت دے یا لام د عاقبت د پاره دے او متعلق دے په لَا تُمْسِكُوهُنَّ پورے او اعتداء دلته عامه ده یعنی اعتداء کول په ښځه باندے او په احکامو د الله تعالیٰ باندے۔ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ، په دیکښې د یو وهم رد کول مقصد دے۔ لکه چه مخکښې معلومه شوه چه ضرر ورکول او زیاتے کول په ښځه باندے دے او دا

خود دۀ په نفس باندے هیڅ اثر نه کوی نو په دے جملے سره دغه وهم رد کوی چه داعین په خپل ځان باندے ظلم دے او د ظلم کولو په ځان باندے دوه مقصدونه دی یو دا چه ځان د الله تعالیٰ عذاب ته پیش کول دی دویم دا چه د دُنیا او د دین منافع په ځان باندے بندول دی۔ د دُنیا منافع بندیدل دا دی چه په خلقو کښے به دا مشهوره شی چه دا انسان قبیح او بد اخلاقو والا دے نو خوک به ورسره معامله نه کوی او نه به ورله بله ښځه خوک ورکوی۔ او دینی منافع بندیدل دا دی چه په حسن معاشرت او احکامو د الله تعالیٰ سره کوم ثواب حاصلیږی د هغے نه به محرومه شی۔ وَلَا تَتَّخِذُوٓا اٰیٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا، د احکامو او د زنانو د حقوقو ذکر کولو نه روستو دا جمله یې د تاکید د پاره راوړه ځکه چه جاهلیت والا او اکثر عوام د زنانو د حقوقو په ادا کولو کښے بے پروائی او سستی کوی۔ هُزُوًا، په اصل کښ استخفاف ته وئیلے شی او د آیاتونو استخفاف دا دے چه خوک وربانده عمل نه کوی او دا په معنیٰ د مَهْزُوًّا بِهٖ سره دے۔ او د دے د لاندے هغه خوک داخل دے چه د الله تعالیٰ په احکامو پورے مسخرے کوی او هغه خوک چه کفر کوی په دے باندے او هغه خوک چه عمل وربانده نه کوی۔ دارنګ هغه خوک چه طلاق، او اعتاق (آزادول د مریئ)، او نکاح کوی او بیا وائی چه دا خو مالوبے او ټوقے کولے۔ او دا د جاهلیت والو طریقه وه۔ دارنګ هغه خوک چه په ګناه باندے پوخ وی او کلمه استغفار نه وائی۔ دارنګ هغه خوک چه په تعداد د طلاق کښے د دریو نه تجاوز کوی۔ او دا قول قرطبی او ابوحیان لیکلی دی۔ وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ، په دے جمله کښ تاکید د امتثال د احکامو مخکنو دے۔ او مقابل دے د اتخاذ بالهزو سره۔ د نعمت نه مراد اسلام او بیان د احکامو دے او رالیږل د رسول دی په هدایت او بینا تو سره۔ او ذکر نه مراد شکر کول او په هغے باندے عمل کول دی۔

وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ

او کله چه طلاق ورکړئ تاسو ښځو لره نو اورسیږي هغوی ورځې د عدت ته

فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَنْ يَنْكِحْنَ

نو مه منع کوئ هغوی لره چه نکاح کوی

وَمَا أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهٖ، دا په نِعْمَةَ اللهِ باندے معطوف دے۔ او دا عطف د خاص دے په عام باندے۔ دا رنګ دا تفصیل او تفسیر د هغه اجمال دے چه په نِعْمَتَ کښ وو۔ عَلَيْكُمْ کښ اشاره ده شرافت د اُمت ته او مکلف کیدلو ته په اتباع باندے اګرچه انزال صرف په رسول صلی الله علیه وسلم باندے کړے شوے دے۔ الْكِتٰبِ نه مراد قرآن کریم او حکمت نه مراد سنت دے۔ (ابن کثیر۔ قرطبی۔ ابوحیان)۔ ابوحیان وئیلی دی چه دا دلالت کوی چه سنت هم منزل مِنَ الله دے لکه په سورة نجم ۳ کښ دی۔ يَعِظُكُمْ بِهٖ حال دے د ضمیر د انزال نه۔ یا ما مبتداء ده او يَعِظُكُمْ ئے خبر دے۔ وعظ په اصل کښ زجر او منع ته وئیلے شی او دا هغه اوامرو، نواهی او تخویفاتو ته شامل دے چه په قرآن او سنت کښ دی۔ وَاتَّقُوا اللهَ، دا جمله تاکید دے د پاره د عمل کولو په مواعظو د کتاب الله او سنتِ رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے او اشاره ده چه په عمل کولو سره په کتاب او سنت باندے تقوٰی پیدا کیږی۔ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ، هر کله چه په اعمالو کښ څه سکاره وی او څه پټ وی او دا رنګ د ګوتکو په نیتونو کښ هم فرق وی نو د دے تنبیه د پاره دا جمله ذکر شوه۔ وَاعْلَمُوا کښ اشاره ده چه انسان په وخت د مخالفت د کتاب او سنت کښ پشان د جاهل دے۔ په صفت د علم د الله تعالیٰ بِكُلِّ شَيْءٍ ته پوهیږی دا رنګ په دے امر کښ دوام د علم مراد دے۔ او دا سے علم او اعتقاد علاج دے د پاره د عمل کولو په کتاب او سنت باندے او د پاره د تقوٰی پیدا کیدلو۔

أَزْوَاجَهُنَّ إِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُم بِالْمَعْرُوفِ

دَ خاوندانو خپلو سره کله چه رضا شئ په مینځ خپل کښ په ښه طریقې سره

ذَٰلِكَ يُوعَظُ بِهِ مَن كَانَ مِنكُمْ

دا حکم وعظ ورکیدیشی په دے سره هغه چاته چه وی ستاسو نه

يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۗ

ایمان لری په الله تعالیٰ او په ورځ روستنئ باندے

ذَٰلِكُمْ أَزْكَىٰ لَكُمْ وَأَطْهَرُ ۗ

دا کار ډیر کوډنکے دے تاسو له دَ بدنامئ نه او پاکوډنکے دے

وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢٣٢﴾

او الله تعالیٰ پوهیږی په هر څیز او تاسو نه پوهیږئ په هر څیز باندے.

۲۳۲ په دے آیت کښ یؤ ولسم امر دے دَ امورِ و دَ تدبیر منزل نه او مقصد په دیکښ رد دے دَ رسم دَ جاهلیت چه هغوی به ښځه منع کوله روستو دَ طلاق او عدت ختمیدو نه دَ دویم نکاح کولو نه - که دَ مخکښ خاوند سره وی او که دَ بل سره وی - او په دے آیت کښ حکم دے په اجتناب کولو سره دَ دا سے رسم نه او په دیکښ هم دوه جهتونه دی یو جهت غیرت نفسانی او دویم حکم شرعی - دَ اول نه ځان ساتل لازم دی او په دویم عمل کول ضروری دی - ربط ۱ :- مخکښ رد وو په رسم دَ جاهلیت باندے په تعداد او ضرار دَ رجوع کولو کښ اوس رد دے په بل رسم باندے -
ربط ۲ :- مخکښ حکم متعلق وو دَ حالت دَ عدت سره او دا متعلق دے دَ ما بعد دَ عدت سره -
وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ، دَ آیت سبب نزول دَ ښځے دَ هغه ولی په باره کښ دے چه هغه ښځے دَ طلاق او عدت تیریدو نه روستو غوښتل چه نکاح او کړی دَ اول خاوند سره او ولی هغه منع کوله. او دا روایت امام بخاری دَ معقل بن یسار او دَ هغه دَ خور په باره کښ ذکر

کړیږي ـ بنا په دے قول باندے خطاب اولیاؤ د نکاح د ښځے ته دے ـ او نسبت د طلاق هغوی ته په طریقه د مجاز سره دے او نسبت د عضل حقیقتاً دے ـ او د ابن عباس رضی الله عنهما او زهری او ضحاک نه روایت دے چه دا آیت په باره د هر هغه چاکښ نازل شویږي چه منع کوي یوه ښځه روستو د طلاق او عدت نه د بل نکاح کولو ته اګرچه د بل خاوند سره وي ـ بنا په دے قول خطابات خاوندانو ته دي چه هغوی طلاق ورکړي او بیا د غیرت نفسانی د وجے هغه ښځه د بل چا سره د نکاح نه منع کوي ـ غوره دا ده چه آیت دواړو ته عام دے ـ

فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ، دلته بلوغ په معنیٰ حقیقي سره دے یعني چه ختم شي نیټه د عدت ـ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ، بنا په اول قول دا خطاب اولیاؤ ته دے او د اَزْوَاجَهُنَّ نه مخکښ خاوند مراد دے په طریقه د مجاز (مَاكَانَ) سره ـ او بنا په دویم قول دا خطاب اول خاوند ته دے او ازواج نه مراد دویم خاوند دے په اعتبار د مجاز مشارفت سره (مَايكون) ـ عضل په اصل کښ تنګولو ته وئیلے شي او په منع باندے ئے اطلاق کیږے شي یعني تنګول سبب شي د پاره د منع کولو ـ او طریقے د عضل د اولیاؤ د طرف نه منع کول د ښځے دي په زور او قهر سره او د خاوند د عضل طریقے ډیرے دي لکه انکار کول د طلاق نه، دعویٰ د رجوع کولو، په بل خاوند باندے دباؤ کول یا د هغه ښځے سره د نکاح نه تور خلق منع کول او متنفر کول په بیان د بد خویئ وغیره د هغے سره ـ اِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ، ضمیر د تَرَاضَوْا او بَيْنَهُمْ راجع دے زنانه او طلب ګوونکی د نکاح د هغے ته ـ یا راجع دے اولیاؤ ته او خاوندانو ته ـ المعروف نه مراد عقد د نکاح، او جائز مهر او عادل ګواهان او عدم اضرار دے ـ

ذٰلِكَ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ، هر کله چه د رسم او رواج نه مخالفت کول په نفسونو باندے ګران دي نو د دے وجے نه درے تاکیدات ذکر کوي ـ اول تاکید په دے

وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ

او مائندے به پئ ورکوی بچو خپلو ته

حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ

دوه کاله پوره هغه چالره چه غواړی چه

جمله کښ یعنی دَ ایمان تقاضا داده چه په دے حکم بانذے عمل اوکړے شي۔ ذَالِكَ کښ اشاره ده نهی دَ عضل ته۔ یوعظ نه مراد تذکیر او تخویف دے۔ ایمان بالله نه مراد ایمان دے دَ الله تعالیٰ په احکاموشرعیو بانذے۔ او ایمان بالیوم الاخرنه مراد خوف دے دَ عذاب دَ دوزخ دَ آخرت نه په سبب دَ مخالفت کولو دَ احکام الٰهیونه۔ ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ، دا دَ تاکید دویمه جمله ده په طور دَ ترغیب روستو دَ تخویف نه۔ ذٰلِكُمْ کښ اشاره ده اجازت دَ نکاح ورکولو دغه ښځے ته۔ اَزْكٰى دَ زکاة نه اخستلے شوید ے په معنیٰ دَ زیاتوالی یعنی سبب دَ زیات ثواب دے په آخرت کښ یا سبب دَ ترقئ او برکاتو دے په دُنیا کښ۔ وَاَطْهَرُ نه مراد ازاله دَ گناهوتو ده۔ یا ازکٰی نه مراد دَ بے ناموے نه بچ کول دی او اطهر نه مراد پاکوالے دَ ښځے حالوتو دے دَ فحش کارئ نه۔ ځکه چه هر کله سړے او ښځه غواړی چه دَ دوی نکاح شرعی اُوشی او څوک ئے منع کوی نو کیدے شي چه دَ هغوی په مینځ کښ غلط تعلق پیدا شی، نو په هغے سره اولیاء دَ ښځے بدنام شی او هغه ښځه او سړے هم په گناه کښ واقع شی۔ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ، دا دَ تاکید دریمه جمله ده او په دے کښ فرق دَ حکم شرعی او رسم و رواج ته اشاره ده چه دَ الله تعالیٰ په احکامو کښ مصلحتونه او فائدے دَ انسان شته چه دَ هغے په تفسیر بانذے الله تعالیٰ عالم دے۔ او انسان په هغے علم نه لری۔ نو انسان بانذے لازم دی چه رسم او رواج پریږدی او دَ حکم شرعی تابع شی۔ دا سے په آیت ۲۱۶ کښ هم تیر شوی دی۔

يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ۚ وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ

چه پوره کړي موده د ئي ورکولو او په پلار د بچي باندې

رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۚ

(واجب ده) خوراک د هغوی او جامه د هغوی د عرف موافق

لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ إِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَا تُضَارَّ

تکلیف نشي ورکیدلے هیڅ نفس ته مگر په قدر د وس د هغه ضرر دې نه ورکوی

وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُودٌ لَّهُ

مور په سبب د بچي د هغې سره او نه پلار

بِوَلَدِهِ ۚ وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ

په سبب د بچي سره او لازم ده په دغه بچي (وارث) باندې پشان

ذَٰلِكَ ۗ فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَن تَرَاضٍ

د دغه خرچ دے نو که چرے اراده لري دوی د پيو نه پريکول په رضا منتيا

مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ۗ

د دے دواړو سره او په مشوره د دے دواړو سره نو نيشته گناه په دے دواړو باندے

وَإِنْ أَرَدتُّمْ أَن تَسْتَرْضِعُوا

او که چرے اراده کوئ تاسو چه پيو ورکولو د پاره مور او نيسئ

أَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا

د پاره د اولاد ستاسو نو نيشته گناه په تاسو باندے کله چه

سَلَّمْتُم مَّا آتَيْتُم بِالْمَعْرُوفِ

پوره ورکړئ تاسو هغه چه مقرر کړے وي تاسو د عرف په موافق

وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْآ اَنَّ اللّٰهَ

او ویره کوئ د الله تعالیٰ نه او پوهه شئ چه یقیناً الله تعالیٰ

بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (۲۳۳)

په هغه کارونو چه تاسو کوئ لیدونکے دے۔

۲۳۳ په دے آیت کښ دولسم امر دے د اُمورو د تیریدو منزل نه چه په هغے کښ روستو د طلاق او د عدت نه طریقه د تربیت د اولاد ذکر کوی۔ تومقصد په دیکښ اجتناب کول دی د بربادئ د اولاد نه په دغه حالت کښ۔

ربط لـ:۔ په مخکښ آیت کښ یو حکم ذکر شو روستو د طلاق او عدت نه او په هغے کښ تردید وو په زنانه بانـدے د ظلم کولو نه په باره د نکاح کولو کښ نو اُوس په دغه حالت کښ تردید د ظلم دے په زنانه باندے په باره د ارضاع (پئ ورکولو) د ولد کښ لکه چه جاهلیت والو دا سے کول۔ ۲ـه دا رنګ هرکله چه بعض طلاقو کړے شو و باندے روستو د عدت تیریدلو نه بل نکاح مشکل شی د وجے د پئ ورکولو نه۔ بچی نه څکه چه هغه ځان له نفقه نه مومی نو د بچی د وجے نه د پلار او مور په مینځ کښ د سخت اختلاف پیدا کیدلو خطره ده نو د هغے تفصیلی حکم په دے آیت کښ ذکر کوی۔ او په دے آیت کښ نهه جملے دی او هره جمله کښ جدا جدا حکم او مقصد دے اوله جمله دا ده وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ، دا عطف دے په مضمون د مخکښ آیت باندے او وجه د مناسبت مخکښ ذکر شوه۔ وَالْوَالِدٰتُ کښ دوه احتمالات دی۔ اول دا چه دا عام دے هرے یوے مور ته که په نکاح کښ وی او مطلقه وی ځکه چه لفظ عام دے۔ دویم دا چه د دیته مراد صرف هغه دی چه طلاقے شوے وی او عدت ئے تیر شوے وی۔ او دا قول غوره دے د ځلورو وجونه۔ اوله وجه چه دا په مخکښ آیت باندے عطف دے او هلته دا خاص قسم ښځه مراد ده۔ دویمه وجه دا ده چه

اختلاف په مدت د رضاع د بچی کښ په حال د نکاح کښ نه پیدا کیږی بلکه روستو د فراق (جدائی) نه اختلاف راځی۔ دریمه وجه روستو یٔ وَعلی المولود له رزقهن وکسوتهن وئیلی دے او په حال د نکاح او بعض اقسامو د عدت کښ خو نفقه او جامه د ښځی بغیر د ارضاع نه په خاوند واجب وی۔ څلورمه وجه داده چه روستو د طلاق نه د ښځی خاوند په مینځ کښ بغض او نفرت پیدا شی نو کله ښځه بچی ته تکلیف ورکوی د دوو وجو نه۔ یو دا چه نفقه نه مومی او بل دا چه د بل خاوند رغبت لری او بل خاوند دغه بچی لره نه غواړی۔ او د دے وجو په بنا باندے دلته یٔ وَالزَّوجَاتُ نه دی وئیلی بلکه وَالْوَالِدَاتُ یٔ وئیلی دی۔ یُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ خبر دے په معنیٰ د امر لیکن دا امر د استحباب د پاره دے په دلیل د سورۃ طلاق سره۔ هاں ارضاع حق د مور دے نو هر کله چه مور په ارضاع باندے رضا او خوشحاله وی او اُجرت نه غواړی یا غواړی لیکن پلار یٔ مالدار وی نو د هغے د رضا نه بغیر پلار یٔ په ارضاع سره بل چا ته نشی ورکولے۔ حَوْلَیْنِ، حول په اصل کښ گرځیدلو ته وائی۔ او کال ته حول ځکه وئیلے شی چه هغه په اعتبار د مختلف موسمونو سره گرځی۔ او مراد د حول (کال) نه حول قمری دے ځکه چه په شرع کښ دیته اعتبار دے۔ کَامِلَیْنِ کښ دفع د وهم ده چه اکثره حصه د کال نه مراد نه ده بلکه پوره کال (دولس میاشتے) مراد دے۔ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ یُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ، د دے مبتداء پټه ده یعنی هذا الحکم لِمَنْ اَه۔ او د مَنْ نه مراد پلار او مور د بچی دی او که پلار مړ وی نو د هغه قریبی وارث مراد دے۔ یعنی چه یو د دوی نه اراده لری په پوره کولو د مدت د رضاع او بل انکار کوی نو دغه حکم دے او که دواړه رضا شی په نه پوره کولو د ټول مدت نو د هغے حکم روستو ذکر کوی په فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا سره۔

فائده:- د رضاع په پوره مدت کښ اختلاف دے د اکثر اهلِ علمو په نیز باندے چه د هغوی نه عمر، ابن عباس او ابن

مسعود رضی الله عنهم دی۔ او ورسره قول د زهری وقتاده او شعبي وسفیان ثوری، اوزاعی، امام شافعی، امام احمد، ابویوسف او محمد بن حسن رحمهم الله وغیرهم دی۔ چه اکثر مدت د رضاعت دوه کاله دے د هغے نه زیادت کول منع دی په دلیل د دے آیت سره چه په دیکښ ذکر د حَوْلَیْنِ تثنیه بیا لفظ د کَامِلَیْنِ بیا لفظ د یُتِمَّ الرَّضَاعَةَ په دے پانسکاره دلیلونه دی۔ او په نیزد امام ابوحنیفه رحمه الله مدت دوه نیم کاله دے په دلیل د حَمْلُهٗ وَفِصَالُهٗ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا، چه ثلاثون صرف د فصاله سره متعلق شی۔ لیکن دا تفریق د بلاغت د کلام نه یعیں دے۔ او د ابن عباس رضی الله عنهما نه بل روایت دے چه دوه کاله د هغه بچی د پاره چه په رحم د مور کښ شپږ میاشتے پاتے شی او که اووه میاشتے پاتے شی نو بیا مدت د رضاعت دیرویشت میاشتے دے۔ او که اته میاشتے وی نو بیا به دوویشت میاشتے رضاعت وی او که نهه میاشتے وی (لکه دا اکثر واقع ده) نو بیا به مدت د رضاعت یوویشت میاشتے وی۔ نو په آیت د سورة احقاف کښ تداخل دے په مبنځ د مدت د حمل او د مدت د رضاع کښ۔ د دے نور تفصیل په سورة احقاف کښ راځی۔ وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ، دا دویمه جمله ده په دیکښ ذکر د نفقے او د لباس د مرضعے (ریئ ورکوونکے) دے په پلار د بچی باندے۔ الْمَوْلُوْدِ لَهٗ پلار د بچی دے۔ لفظ د والد یا اب ئے ذکر نه کړو ځکه چه په دے لفظ کښ دوه فائدے دی اول ذکر د نعمت الٰهیه دے په پلار باندے د دے د پاره چه دے نفقه د مرضعے ادا کړی۔ دویمه دا چه نسب په اصل کښ په پلار پسے ځی (او د دینه په قرینه د بعض نصوصو سره آل د رسول صلی الله علیه وسلم مستثنیٰ دی لکه حسن او حسین رضی الله عنهما۔ ځکه چه د هغوی نسل او د هغوی نسب په خپلے مور فاطمه رضی الله عنها پسے ځی۔ او بیا ئے رسول الله صلی الله علیه وسلم ته نسبت کیږی۔ او د رزق نه مراد خوراک څښکاک دے او د کسوت نه مراد لباس دے۔ بِالْمَعْرُوْفِ، د عرف نه ماخوذ دے

په اعتبار دَ جنس دَ رزق او لباس سره - او په مقدار کښې عرف ته اعتبار دے۔ هر کله چه په دے باب کښې پئ ورکوونکے زنانه اکثر دَ نقد روپو اشرفو تقاضا نه کوی بلکه کفایت دَ نفقے او کسوت طلب کوی دَ دے وجے نه دَ هغے تخصیص اُوکړے شو - لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا ، دا دریمه جمله ده په دیکښې اشاره ده چه نفقه او کسوت کښې مالی حال دَ پلار ته اعتبار دے - په دے کښې څه څه تحدید دَ مقدار نیشته چه دومره او دومره به وی تو دَ نفس نه مراد دلته پلار دے - یا دا چه مور یا ته تنګسیا په نفقه کښې او په پلار یا ته په طور دَ اسراف سره نفقه نشی کیخودلے یا دا په خپل عموم یا ته حمل دے - ټولو احکامو ته اشاره ده لکه دَ دے سورت په آیت ۲۸۶ کښې دی او حکم دَ نفقے پکښې داخل دے - تکلیف په اصل کښې هغه حکم دے چه دَ هغے په کولو سره اثر دَ مشقت په مخ یا ین ت کښې ښکاره شي (لکه کلف الوجه) او شرعًا هغه ټولو احکام واجبه ته وئیلے شي چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه په هر عاقل بالغ سړی یا ښځه یا ته کیښودلے شوے وی - وَسْعَ په اصل کښې فراخئ دَ لوخې ته وئیلے شي او مراد دَ دینه طاقت دے ګویا که طاقت دَ نفس پښان دَ فراخ لوخې ګرځولے شوی ے دَ احکام شرعیه دَ پاره - لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ ، دا څلورمه جمله ده او تفریع یا تفسیر دے دَ مخکښې جملے - یعنی مور له نه دی جائز چه زیات اُجرت غواړی دَ بچی دَ پلار نه یا انکار کوی دَ رضاعت نه سره دَ طاقت لرلو نه او دا رنګ پلار له نه دی جائز چه دَ بچی مور له دَ پیو ورکولو نه منع کړی یا انکار دَ نفقے ورکولو نه اُوکړی - په لَا تُضَآرَّ کښې دوه احتمالات دی - اول دا صیغه دَ مجهول ده په اصل کښې لَا تُضَارَرْ دے او مخکښې معنی دَ دے احتمال مطابق ده - او په دے کښې والدةٌ نائب فاعل دے - دویم احتمال دا دے چه دا صیغه دَ معلوم ده په اصل کښې لَا تُضَارِرْ دے او والدةٌ ئے فاعل دے - تو معنیٰ دا ده چه مور به په سبب دَ بچی پلار ته تنګوی چه ډیر اُجرت

ترینه غواړي او یا د ارضاع نه انکار اوکړي - او پلار به په سبب د بچي مور ته تنګوي چه د ارضاع نه یې منع کوي یا ورله نفقه نه ورکوي - دلته د ولد (بچي) اضافت مور او پلار دواړو ته کړے شوے دے د پاره د شفقت کولو اګرچه تسبي صرف د پلار د پاره وو د دے وجے نه یې مَوْلُوْدٌ لَّهٗ ذکر کړو-

وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ، دا پنځمه جمله ده او دا معطوف ده په عَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ باندے او په مینځ کښې یې جملے معترضے دي - د لفظ اَلْوَارِثِ په مصداق کښې شپږ اقوال قرطبي او ابوحیان ذکر کړي دي لیکن صحیح قول په دیکښې د ضحاك، قبیصه او بشیر بن نصر وغیره دے چه مراد د دینه دغه مرضع (پئ خوړونکے) بچے دے چه هرکله د دهٔ پلار مړ شي او په میراث کښې دغه بچي ته څه حصه ورکړے شي نو د هغې حصے نه به د مور (پئ ورکوونکے) نفقه او کسوت ادا کیږے شي - هاں که چرے وراثت کښې بچي ته مال اونه رسیږي نو بیا وارث د دغه بچي مراد دے او وجه د صحت د دے قول دا ده چه اَلْوَارِث اسم فاعل هغه چاته وئیلے شي چه في الحال په هغه کښې صفت د وراثت موجود وي او هغه دغه بچے دے روستو د مرګ د پلار نه - نو اَلْوَارِث کښې الف لام بدل دي د مضاف الیه نه یعني وارث المولودله - مِثْلُ ذٰلِكَ کښې اشاره ده نفقے او کسوت ته د عرف مطابق سره د عدم اضرار نه-

فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا، دا شپږمه جمله ده او د اولے جملے سره متعلق ده - او دلیل دے چه پئ ورکول تردوو کلونو پورے مکمل واجب نه دي - اَرَادَا، مِنْهُمَا، او عَلَيْهِمَا ضمیرونه د تثنیے مور او پلار ته راجع دي - فِصَال او فطام دواړه په یو معنیٰ سره دي یعني جدا کول او پریکول د بچي د پیو خوړلو نه د مور نه - عَنْ په معنیٰ د بَعْدَ دے یا اجلیه دے - تَرَاضٍ مِّنْهُمَا کښې مراد دا دے چه دا اراده د پریکولو د بچي د پیو نه د دواړو په رضا سره به وي د اضطرار یا د خوف د وجے نه

په نه وي - تَشَاوُرٍ کښې اشاره ده چه بعض وخت مور او پلار هسې رضا شي په فصال باندې مشوره ئې نه وي کړې - او مقصد په مشوره کښې رائې او فکر استعمالول دي په باره د مصلحت د بچي کښې - نو بغير د مشورې نه رضامندي فائده نه ورکوي - مشوره په اصل کښې استخراج د رائې ته وئيلې شي تو هغه خاصخايل ملګري ته حاجت لري د دې وجې نه په دېکښې باب تفاعل يا مفاعله ذکر کيږي - فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا نه مراد دا دې چه مخکښې د پوره کيدو د دوه کالو ته په دې فصال کښې ګناه نيشته په مور او پلار باندې -

وَإِنْ أَرَدْتُمْ أَنْ تَسْتَرْضِعُوا أَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُمْ مَا آتَيْتُمْ بِالْمَعْرُوفِ، دا اوومه جمله ده - او دا خطاب دې پلار ته او ميانو ته په طريقه د التفات د غائب نه خطاب ته - تو په دې جمله کښې مستقل حکم دې د استرضاع د پردئ ښځې او دا په هغه وخت کښې چه د بچي خپله مور د ارضاع نه معذوره وي يا انکار اوکړي بغير د عذر نه ليکن رضا شي دواړه (مور او پلار) په استرضاع (رضاعي مور نيولو) باندې - استرضاع وئيلې شي طلب د مرضعې نه أَوْلَادَكُمْ کښې لام پټ دې - او استرضاع په اُجرت سره وي ځکه ئې ورپسې شرط ذکر کړو په إِذَا سَلَّمْتُمْ سره او تسليم کښې معنیٰ د پوره ورکولو د اُجرت ده يعني چه په مقرر اُجرت کښې به نقصان نه کوي - مَا آتَيْتُمْ نه مراد هغه اُجرت دې چه په رضا او اتفاق د جانبينو سره مقرر کړې شوې وي - او د زمخشري په نيز د دينه مراد هغه دې چه تاسو اراده کړې وي د هغې د ورکولو - بِالْمَعْرُوفِ نه مراد د عرف مطابق دې چه ډير زيات او ډير کم هم نه وي او ادا کولو کښې ئې ټال متهول هم نه کوي يا ترينه مراد مدت شرعيه د ارضاع دې - وَاتَّقُوا اللهَ، دا اتمه جمله ده اشاره ده چه په دې احکامو او عقد د اجارې د مرضعه کښې د اُمور شرعيه رعايت کوئ - وَاعْلَمُوا أَنَّ اللهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ، دا نهمه جمله ده - او د تذکير او تنبيه د پاره ده - بصير صفت د الله تعالیٰ دې بغير د تشبيه او تمثيل نه او بغير د تاويل او تحريف نه -

وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ أَزْوَاجًا
او هغه کسان چه مړه کړے شي ستاسو نه او پریږدي بیبیانے
يَّتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ
انتظار دِ کوي په خپلو ځانونو باندے څلور میاشتے
وَّعَشْرًا فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ
او لس شپے نو کله چه او رسی دوی نیټے دَعدت خپل ته نو نیشته گناه
عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ فِيْ أَنْفُسِهِنَّ
په تاسو باندے په هغه کارکښ چه کوي دوي په باره دَ ځانونو خپلو کښ
بِالْمَعْرُوْفِ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۲۳۴﴾
په نیکه طریقه او الله تعالیٰ ستاسو په عملونو باندے خبردار دے

۲۳۴ په دے آیت کښ دَ تیر منزل دَ اُمورونه دیار لسم امر دے چه هغه مسئله دَ عدت دَ وفات ده- او مقصد په دیکښ اجتناب دے دَ جاهلیت دَ طریقے نه په عدت دَ وفات کښ۔ او په دے حکم کښ هم دوه اړخونه دي یو اړخ دَ جاهلیت دَ طریقے دے او دویم دَ شریعت دَ طریقے۔

ربط ۱: هر کله چه مخکښ عدت دَ طلاق او دَ هغے متعلقات ذکر شول نو اُوس دَ خاوند دَ وفات عدت ذکر کوي۔

ربط ۲: مخکښ آیت کښ الوارث کښ اشاره وه وفات دَ خاوند ته نو په وخت دَ وفات دَ خاوند کښ هم دَ نفقے دَ رضاعت ئے ذکر کړو نو اُوس حکم دَ ښځے دَ عدت ذکر کوي۔

وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ، دا عطف دَ قصه دے په قصه باندے مناسبت پکښ بیان دَ حکم دَ زړنتوۓ دے۔ تَوَفّٰی په اصل کښ اخستل دي دَ یو څیز پوره پوره نو څوک چه مړشی نو خپل عمر او رزق مقدره ئے مکمل او پوره کړو۔ یا دا چه روح او بدن ئے دواړه واخستلے شول۔ دلته مراد مړکیدل دي۔

وَیَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا، دا لفظ عام دے که ښځه یې آزاده وی اوکه وینځه وی، مدخول بها وی اوکه غیر مدخول بها وی، حامله وی اوکه غیرحامله وی، بالغه وی اوکه غیر بالغه وی، تو په تیز دَ اکثر فقهاؤ دَ دینه وینځه مستثنیٰ ده یعنی دَ هغې عدت دوه میاشتې او پنځه ورځې دی او په تیز دَ اکثر صحابه کرامو او مجتهدینو حامله هم دَ دینه مستثنیٰ ده دَ هغې عدت وضع دَ حمل دَ هغې دے لکه چه لکه چه سورة طلاق کښ دی۔ دارنګ حدیث دَ سبیعه رضی الله عنها دے چه بخاری او مسلم راوړے دے چه دَ هغې دَ خاوند دَ وفات نه نیمه میاشت روستو بچے راوړو تو نبی صلی الله علیه وسلم ورته اُوفرمائیل چه ستا عدت ختم شو ته بل نکاح کولے شے۔ هاں غیر مدخول بها دَ دینه نه ده مستثنیٰ کړے شوے۔
یَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا، دا خبر دے دَ الذین لیکن په تقدیر دَ عبارت سره یعنی وَاَزْوَاجُ الَّذِیْنَ یُتَوَفَّوْنَ یا اَزْوَاجُهُمْ یَتَرَبَّصْنَ، دَ تربص نه مراد عدت تیرول دی لیکن لفظ دَ عدت یې نه دے وئیلے ځکه چه په لفظ دَ تربص کښ حکم دَ عدت ته اشاره ده چه هغه منع ده دَ بل نکاح نه۔ او دلته ورسره مراد دَ خاوند په کور کښ اُوسیدل دی او زینت، ډول سنګار به نه کوی رنګینې، خائسته جامے به نه اغوندی، رنګونه سرخی ناخن پالش او کریم وغیره به نه لګوی او خوشبوئي به نه استعمالوی او دیته احداد وئیلے شی او دا په سنت سره ثابت دی عَشْرًا نه مراد په تمیز کښ لیالی (شپے) دی ځکه دے وجے نه عشرة یې نه دے وئیلے او په قول دَ جمهور اهلِ علمو کښ لسمه ورځ په کښ داخله ده۔ او ابوحیان وئیلی دی چه دلته ایام مراد دی لیکن قاعده دا ده چه معدود مذکر وی او پټ وی نو اسم عدد کښ تانیث او تذکیر دواړه جائز دی۔ او صاحب اللباب وئیلی دی چه دا ورځے دَ عدت دَ وفات دا دَ غم او دَ حزن ورځے دی تو مشابه دی دَ شپو سره۔
فائده:- په دے مقرر مدت کښ فائده دا ده چه مقصد

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهٖ

او نیشته ګناه پـه تاسو باندے پـه هغه الفاظو کښ چه اشارے کوئ تاسو پـه هغے سره

مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِيٓ

دَ غوښتلو (دَ نکاح) دَ ښځو نه یا پټ ساتئ تاسو پـه

اَنْفُسِكُمْ ؕ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ سَتَذْكُرُوْنَهُنَّ

زړونو ستاسو کښ عالم دے الله تعالیٰ چه یقیناً تاسو بـه یادوئ دوی لره

دَ رحِم دَ ښځے معلومول دی چه دَ بچی نه خالی دے او کـه نه، او وجه ئے داده چه څلور میاشتے کښ پـه رِحم دَ ښځے کښ ولد تیاریږی او دَ څلورو میاشتو نه روستو پـه هغے کښ روح اچولے کیږی نو بیا هغه حرکت شروع کړی۔ نو هر کله چه پـه دے زمانه باندے څلور میاشتے اولس ورځے تیرے شوے او حرکت دَ بچی ئے محسوس نه کړو نو معلومه شوه چه رِحم (بچه دانی) ئے دَ بچی نه خالی دے نو دَ بل خاوند سره نکاح کولے شی۔ او دا قول دَ ابو العالیه نه نقل دے۔

فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِيٓ اَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ، پـه دے جمله کښ اشاره ده چه دَ څلورو میاشتو لسو ورځو نه روستو پـه دے ښځه باندے هیڅ ګناه نیشته پشان دَ طریقے دَ جاهلیت۔ بلوغ اجل نه مراد ختمیدل دَ عدت دی۔ عَلَيْكُمْ خطاب دے اولیاؤ دَ ښځے ته او حکامو او علماؤ ته ځکه چه هغوئ مکلف دی پـه نهی عن المنکر باندے۔ بِالْمَعْرُوْفِ نه مراد شرعی نکاح کول دی او ځان ښائسته کول او دَ کور دَ خاوند نه وتل او نقل کیدل۔

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ، پـه دے جمله کښ تحذیر دے دَ مخالفت کولو نه او خبیر عالم دے پـه باطنی اُمورو او باریک څیزونو باندے۔

وَلٰكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا اِلَّآ اَنْ

او لیکن وعدہ (دَ نکاح) دوی سره په پټه سره مه کوئ مګر که

تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۥ وَلَا تَعْزِمُوْا

وائي وینا دَ شرعے موافق (تعریض) او مه پخه دئ

عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ

غوټه دَ نکاح تردے پورے چه او رسیږی عدت فرض شوے

اَجَلَهٗ ۭ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ

آخری نیټے ته او پوهه شئ چه یقینًا الله تعالیٰ عالم دے

مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ فَاحْذَرُوْهُ ۚ وَاعْلَمُوْٓا

په هغه خیز وچه په زړونو ستاسو کښ دی نو ویره کوئ دَ هغه نه او پوهه شئ

اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿٢٣٥﴾

چه یقینًا الله تعالیٰ بخنه کوؤنکے صبرناک دے۔

۲۳۵ په دے آیت کښ څوارلسم امر دے دَ امورو دَ تدبیر منزل نه او په دیکښ حکم دَ ښځے دَ خطبے ذکر کوی په حال دَ عدت دَ هغے کښ روستو دَ خاوند دَ وفات نه او مقصد پکښ اجتناب دے په حال دَ عدت کښ دَ دوه څیزونو نه، اول وعده دَ نکاح کولو په پټه سره۔ دویم عقد دَ نکاح، او اجازت دَ دوه څیزونو دے اول خطبه په طریقے دَ تعریض سره۔ دویم په زړه کښ پټه اراده دَ نکاح کولو ساتل۔ او دا منکوره دوه اړخونه دی په دے مسئله کښ۔

ربط له:۔ هرکله چه مخکښ عدت دَ طلاق او بیا عدت دَ وفات ذکر شو نو اوس حکم دَ خطبے او نکاح تړلو ذکر کوی په حال دَ عدت کښ۔ ۲ له مخکښ آیت کښ ئے اُوفرمائیل چه روستو دَ عدت نه معروف کارکول دَ ښځے دَ پاره جائز دی۔ نو اُوس ذکر کوی چه په وخت دَ عدت کښ هغے دَ پاره نکاح کول حرام دی۔ او دَ دے

مناسبت دَ وجې نه يئې دا په ماقبل باندې عطف کړې دې.

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ، جناح په اصل لغت کښې امرِ شاق (سخت کار) ته وئيلې شي او په شرع کښې ګناه ته وئيلې شي. عليکم سره عام خطاب دې ټولو مؤمنانو ته. فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِ، تعريض په لغت کښې ضد دَ تصريح دې او په اصطلاح کښې تضمين دَ کلام دې په داسې معنىٰ سره چه په مقصود باندې صلاحيت دَ دلالت لري. او دا رنګ په غير مقصود ليکن اِشعار دَ هغې په مقصود باندې پوره وي.

مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ، خطبه په اصل کښې په معنىٰ دَ خطب سره دې او خطبِ حاجت ته وئيلې شي. او خِطبه دَ خطابت نه اخستلې شوې ده ليکن مراد دَ دينه مخاطبه ده په خبرو کښې په باره دَ نکاح دَ يو ښځې کښې. او دَ تعريض الفاظ دا دي چه يو سړې هغې ښځې ته اووائي چه يقيناً ته خائسته يئې او صالحه يئې او ځما اراده ده چه څه نکاح (واده) کوم يا خپل صفتونه ورته اوکړي. النِّسَاء نه مراد بعضِ اقسام دَ ښځو دي يعنې هغه چه په عدت دَ وفات کښې وي او هغه چه په عدت دَ طلاق مغلظ يا بائن يا لعان کښې وي اګرچه په دېکښې اختلاف دې دَ اهل علمو.

أَوْ أَكْنَنْتُمْ فِي أَنْفُسِكُمْ، اِکنان پټ ساتلو ته وئيلې شي او واضح دې دَ اعلان مطلب دا دې چه اراده دَ هغې نکاح لري ليکن نه تصريح کوي او نه تعريض کوي. يا دا چه په زړه کښې پخه اراده اوکړي چه پس دَ تيريدلو دَ عدت نه څه په دې خطبه باندې تصريح کوم.

عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ، دا دَ لَا جناح دَ پاره علت دې يعنې ميلان او رغبت چه په زړه کښې راځي نو دَ هغې دفع کول ګران دي نو دَ هغې دَ اظهار دَ پاره يئې دوه طريقې ذکر کړې، دې دَ پاره چه دَ مؤمنانو حرج (تنګسيا) لرې کړې شي نو دَ سَتَذْكُرُونَهُنَّ نه روستو تقدير دَ عبارت دې چه (ذکر کوئ صرف په تعريض او اکنان سره) ځکه چه ذکر دلته شامل دې ذکر کولو ته په ژبې سره يا په زړه سره. او بعض مفسرينو وئيلي دي چه په دې کښې يو قسم زور نه ده. وَلَكِنْ لَا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا، پس استدراک

کښې دوه اقوال دي - اول دا استدراک دے دَ سَتَن کروتهن نه
يعنې ډير قسمونه دي ليکن بعض اقسام دَ هغے دلته منع دي -
دويم قول دا چه مخکښې جمله پټه ده يعنې ذکر کوئ دوی لره
ليکن په وعده سری ( پټه ) سره ئے مه ذکر کوئ او په معنیٰ
دَ سِر کښې ډير اقوال دي - اول دا چه دَ ديته مراد زنا کول دي -
دويم دا چه په پټه دَ هغے سره دَ نکاح تذکره اُوکړی په طور دَ
وعدے چه ما سره به نکاح کوے - دريم په معنیٰ دَ نکاح دے -
اِلَّآ اَنۡ تَقُوۡلُوۡا قَوۡلًا مَّعۡرُوۡفًا ، دا استثناء منقطع ده ځکه قول معروف
دَ جنس دَ سِر نه نه دے نو اِلَّا په معنیٰ دَ لکن سره دے - يا
استثناء متصل ده دَ لا تواعدوهن سره يعنې لَا تُوَاعِدُوۡهُنَّ اِلَّا
بِاَنۡ تَقُوۡلُوۡا قَوۡلًا مَّعۡرُوۡفًا بِالتَّعۡرِيۡضِ ، او معروف نه مراد تعريض
کول دي چه په اول کښې ذکر شو يا مراد دَ ديته دا دے چه دَ هغے
سره دَ احسان او کفالت دَ مصالحو ذکر کوی نو دا به تاکيد وی دَ
تعريض دَ پاره - وَلَا تَعۡزِمُوۡا عُقۡدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبۡلُغَ الۡكِتٰبُ اَجَلَهٗ ،
عزم عقد دَ ره دے په يو کار باندے او دَ دے په صله کښې علیٰ
راځی نو دلته علیٰ پټ دے - او عزم کله په معنیٰ دَ ايجاب باندے
راځی او هغه مقابل دَ رخصت راځی نو په دے معنیٰ دا صفت دَ
الله تعالیٰ دے - او په اوله معنیٰ صفت دَ الله تعالیٰ نشی کيدے -
او ايجاب سبب دَ وجود وی نو دلته معنیٰ دا ده چه مهٔ موجودوئ
عقد دَ نکاح لره يعنې نکاح مه تړئ . عقد په اصل کښې پخولو
او تړلو ته وئيلے شي - نو عقده غوټے تړلے شوے ته وائی او په
نکاح يا په نورو عقودو کښې پخول او عهد کول دي ځکه هغے ته
عقد او عُقده وئيلے شي - کتاب په معنیٰ دَ مکتوب دے يعنې عدت
فرض کړے شوے ، قرطبي وئيلی دي چه کتاب په معنیٰ دَ قرآن
دے او مضاف پټ دے يعنې فرض القرآن - او اَجل په معنیٰ
دَ منتها او دَ غايئے دے -
وَاعۡلَمُوۡٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ مَا فِيۡٓ اَنۡفُسِكُمۡ فَاحۡذَرُوۡهُ ، دا تنبيه او تحذير
دے چه الله تعالیٰ په هر پټ او ښکاره باندے په هر حال کښې

لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ
نیشته گناه په تاسو باندے که چرے طلاق ورکړئ تاسو ښځو ته
مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ
څو پورے چه تاسو لاس نه وی لګولے هغوی ته یا نه وی مقرر کړی تاسو هغوی لره
فَرِيضَةً ۚ وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ
مهر مقرر او ځه سامان د فائدے ورکړئ دوی لره په فراخ مال والا باندے
قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ ۚ مَتَاعًا
په قدر د فراخئ د هغه دے او په تنګ رزق والا باندے په قدر د تنګسیا د هغه دے فائده ورکول دی
بِالْمَعْرُوفِ ۖ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِينَ ﴿٢٣٦﴾
په ښه طریقے سره دا حق لازم دے په احسان کوونکی باندے۔

عالم دے۔ او دا رنګ په باره د خطبے کښ۔ فَاحْذَرُوهُ، ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے یعنی عِقَابَهٗ۔ او زمخشری وئیلی دی چه دا راجع دے مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ته چه مراد تری نه غیر جائز څیز دے وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ، روستو د تحذیر نه بشارت دے او اشاره ده چه ایمان د مؤمن په مینځ د خوف او رجاء کښ دے۔
فائده:- په اوله جمله کښ خبر د اِن (یعلم) فعل مضارع ذکر کړو ځکه چه ما فی انفسکم مکرر کیږی نو ګویا چه علم په سبب د متعلق پورے هم متکرر کیږی۔ او په دویمه جمله کښ ئے خبر اسم ذکر کړو چه دلالت اوکړی په ثبوت او دوام د دے صفاتو باندے۔
۲۳۶ په دے آیت کښ پنځلسم امر دے د امورو د تدبیر منزل نه۔ او په دیکښ مسئله د طلاق قبل الدخول ده چه مخکښ د تقدیر د مهر نه یا روستو د هغے نه۔ او مقصد پکښ اجتناب دے د مظالمو د جاهلیت نه په دا سے حالت کښ۔ او په دیکښ دوه جهات دی یو جهت په اول کښ ذکر دے او بل جهت

په دويم آيت کښې ذکر دے۔
ربط:- تردے ځائے پورے د مس حول بها احکام وو یاد هغې چه خاوند يې مړ شوے وي تو اوس د غير مس حول بها حکم ذکر کوي۔
لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ، ما مصدريه ظرفيه دے يعنى مدت د عدم مسيس (نه مسه کولو کښې مَسِيس کنايه ده د جماع نه او هغه په اصل کښې فعل د سړي دے. د ددے وجے دلته هغه ته استاد کړے شوے دے۔
سوال:- د دے آيت نه معلومه شوه چه مخکښې د دخول او تسميه د مهر نه په طلاق ورکولو کښې ګناه نيشته نو د دخول او تسميه نه روستو طلاق کښې هم ګناه نيشته نو د دے تخصيص څه فائده ده؟
جواب ۱:- دلته د طلاق د جواز د پاره عام اجازت دے که په حال د حيض کښې وي يا پاکوالي کښې۔ او روستو د دخول نه په حال د حيض کښې طلاق ورکول ګناه دے (صاحب اللباب)۔
جواب ۲: ابن عطيه، زمخشري او قفال وئيلي دي چه دلته مراد د جناح نه ثِقل (بوج) د تاوان دے چه هغې ته تَبِعه وئيلے شي يعني تاوان د مهر (ټول يا نيم) په دا سے طلاق کښې نيشته۔ او قرينه د دے دا ذکر د غايې دے چه عدم مسيس او عدم تسميه د مهر ده۔ دا رنګ ورپسے آيت د دے په مقابل کښې دے۔
جواب ۳:- ابن عاشور وئيلي دي چه هر کله احاديث دلالت کوي چه خاوند د د ښځے سره ښه معاشره او کړي او د نکاح مقصد دوام دے صرف څکل د مزے نه دي لکه چه د بعض خلقو عادت دے چه ډير نکاحونه صرف د مزے اخستلو د پاره کوي او بيا يې طلاقوي چه د هغې نه منع کړے شوي ده۔ نو د دينه معلومه شوه چه د مسيس نه روستو څه وهم د ګناه شته يا د مسيس نه مخکښې د ترک د دوام په سبب سره ګناه شته نو د هغې وهم د دفع کولو د پاره يې او وئيل چه لَا جُنَاحَ۔
أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً، دا په تمسوهن باندے معطوف دے۔
أَوْ د أَحَدُ الشَّيْئَيْنِ د پاره دے ليکن خلو د دواړو نه مراد ده يا

اَوْ په معنیٰ دَ الا اَنْ سره دے یا اَوْ په معنیٰ دَ واو (و) سره دے۔ فرض په معنیٰ دَ تقدیر (مقرر کولو) دے۔ فَرِيْضَةً، مفعول به په معنیٰ دَ شیئًا مفروضًا دے او دا آیت دلالت کوی چه تفسِ الفاظو دَ نکاح سره وجوبِ دَ مهر نه راځی بلکه په تقدیر یا په مسه کولو سره راځی او مهر دَ توابعو یا متمماتو دَ نکاح نه دے۔ وَمَتِّعُوْهُنَّ، دا امر دے خاوندانو ته او ضمیر دَ هُنَّ هغه ښځو ته راجع دے چه طلاقے کړے شی مخکښ دَ دخول او دَ تسمیه دَ مهر نه۔ او اکثر اهلِ علم وائی چه دا متعه واجبه ده په دلیل دَ صیغه امر مطلق سره او دَ بعضِ په نیز امر دَ استحباب دَ پاره دے۔ او دَ دے متع دَ پاره تقدیر شرعی نیشته۔ دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه اعلیٰ درجه دَ متعے غلام یا وینزه ورکول دی او ادنیٰ دَ هغے درے جامے دی یعنی قمیص، ازار (پرتوګ) او لوپټه۔ او دَ امام ابوحنیفه رحمه الله قول دے چه متعه به دَ نصف مهر نه زیاته نه وی یعنی پنځه دراهم۔ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ، دا دلیل دے چه باب دَ متعه کښ حال دَ خاوند ته اعتبار دے حالت دَ ښځے معتبر نه دے۔ علیٰ لفظ هم دلالت کوی په وجوب دَ متعه باندے۔ الْمُوْسِعِ یعنی خاوند دَ وسعت په مال کښ، دَ دیته مراد مالدار خاوند دَ غِنَا دے۔ په قَدَرُهٗ کښ مصاف پټ دے یعنی قَدَرُ وُسْعِهٖ۔ قَدْرُ او قَدَرُ کښ اکثر اهلِ علم فرق نه کوی۔ او بعضو وئیلی دی چه دَ دے فرق دا دے چه قَدْرُ په سکون دَ دال سره په معنیٰ دَ وسع او طاقت دے او په زور دَ دال سره (قَدَرُ) په معنیٰ دَ مقدار دے۔ الْمُقْتِرِ، دَ قتر نه دے تنګوالی ته وئیلے شی یعنی تنګ رزق والا۔ قَدَرُهٗ، یعنی قدر اقتارِهٖ۔ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوْفِ متاع په معنیٰ دَ تمتیع سره دے او مفعول مطلق دے۔ یا متاعًا حال دے دَ المعروف نه۔ مراد ترینه هغه دے چه شرعًا او عرفًا معلوم وی او په هغے کښ په ورکوونکی باندے بوجه (درون والے) نه وی۔ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ، حقًّا دَ متاعًا صفت دَ

وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ

اوکه چیرې تاسو طلاق ورکړئ ښځو لره مخکښ د دې نه چه

تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ

یو ځائے شوے یئ تاسو دَهغوی سره او حال دا چه مقرر کړے دی تاسو هغوی لره

فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ إِلَّا

مهر مقرر نو دَ هغې دَ پاره نیمه دَ هغه مهر وه چه تاسو مقرر کړے دی مګر

أَنْ يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَا الَّذِي بِيَدِهِ

چه معافی اوکړی زنانه دَ خپل حق نه یا معافی اوکړی هغه کس (خاوند) چه په لاس دَ هغه کښ

عُقْدَةُ النِّكَاحِ ۚ وَأَنْ تَعْفُوا أَقْرَبُ

غُنډه دَ نکاح ده او چه معافی کوئ تاسو نو ډیره نزدے ده

لِلتَّقْوَىٰ ۚ وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ۚ

تقوٰی ته او مه هیروئ مهربانی کول په مینځ خپل کښ

إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٣٧﴾

یقیناً الله تعالیٰ په هغه عملونو چه تاسو کوی لیدونکے دے.

یا فعل پټ دے یعنی حَقَّ حقاً (په معنی دَ وجوب سره دے) او دَ محسنین نه مراد مؤمنان دی ځکه چه هر مؤمن دَ ایمان او اسلام په سبب دَ ځان سره احسان کوی دارنګ محسن هغه څوک دے چه نیک عمل کوی او دا صفت دَ مؤمن دے. دَ بعضِ اهل علمو په نیز دا متعه واجب نه ده او هغوی استدلال کوی په لفظ دَ محسنین سره او وائی چه مُحسن کامل مؤمن ته وئیلے شی. لیکن اول قول غوره دے- او دلته ذکر په لفظ دَ محسن سره دَ پاره دَ ترغیب دے عمل کولو ته په دے امر باندے-

۲۳۷ په دے آیت کښ دَ مخکښ متن کور زنانه مِن وجه مقابل ذکر کوی یعنی هغه زنانه چه مهر خول بها نه ده لیکن مهر دَ هغې

دَ پاره دَ مخکښې نه مقرر کړے شوېوی - فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ، نصف په اصل کښې دَ دوؤ جزء ته وئيلے شی دلته مبتدا پټه ده يعنی فَالْوَاجِبُ نِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ، نو نيم دَ خاوند او نيم دَ ښځے شو-

فائده:- دواړه آيتونو کښې ذکر دَ مسيس دے چه جماع ته وئيلے شی او که چرے مسيس نه وی شوے بلکه خلوتِ صحيحه شوے وی يعنی ښځه خاوند په يو کمره کښې په داسے حال کښې يوځے شی چه روژه نه وی او ښځه په حالت دَ حيض کښې نه وی او بل هم هيڅ مانع نه وی نو په نيز دَ امام دَ ابوحنيفه او امام مالک رحمهما الله دا په حکم دَ مسيس کښې دے دَ وجے دَ حديث دَ ابن مسعود رضی الله عنه نه چه خلفائے راشدينو فيصله کړيده چه (کله ښځه خاوند) دروازه بند کړی يا پرده آويزانه کړی نو بيا دَ ښځے دَ پاره ميراث شته او عدت هم شته نو معلومه شوه چه مهر به هم کامل وی - دارقطنی دا حديث مرفوع ذکر کړيدے. او په نيز دَ قاضی شريح او امام شافعی رحمهما الله په دے سره عدت او مهر نه واجبيږی - او نور تفصيل به انشاء الله په سورة نساء ۲۱ کښې راشی-

إِلَّا أَنْ يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَا الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ، دا استثناء منقطع ده په معنیٰ دَ لکن سره او يعفون په معنیٰ دَ پريخودلو او مخ اړولو دے دَ خپلے برخے او حصے نه چه هغه نيم مهر دے - او دا حکم دَ هغه ښځے دے چه بالغه عاقله وی - دَ هغے دَ پاره په خپل مهر کښې اختيار دے - دَ الَّذِي بِيَدِهِ نه مراد خاوند دے لکه چه په حديث دَ جبير رضی الله عنه کښې دی چه قرطبی ذکر کړيدے. او دا په حديث مرفوع دَ دارقطنی کښې هم شته - او دا قول دَ اکثر صحابه کرامو او تابعينو او امام ابوحنيفه او امام شافعی رحمهم الله دے يعنی دَ ښځے دَ ولی په ديکښې اختيار نيشته - او دَ بعضِ تابعينو او امام مالک رحمهم الله قول دا دے چه مراد دَ ديته دَ ښځے دَ نکاح ولی دے چه هغه ته په عرف کښې دَ نکاح روړ وائی -

سوال:- عفو په معنیٰ دَ پريخودلو دے نو خاوند او ولی ته دَ

ذ دے ذ نسبت کولو څخه مطلب دے۹-

جواب ۱ :- عادت دا وو چه په وخت ذ نکاح کښ خاوند ټول مهر ښځے ته ورکولو نو هر کله چه طلاق قبل الدخول ئے ورکړو نو ذ خاوند حق دے چه نیم مهر ذ هغے نه واپس واخلی لیکن هر کله چه دا خاوند هغه واپس نه اخلی نو دیته عفو وئیلے شی او کله چه خاوند ټول مهر نه وی ورکړے او طلاق ورکړی نو ذ ښځے حق دا دے چه ذ خاوند نه ذ نیم مهر مطالبه اوکړی- او که دا ښځه دا مطالبه نه کوی او پریږدی ئے نو دیته عفو وئیلے شی-

جواب ۲ :- عفو په معنیٰ ذ آسانتیا سره ده-

وَاَنْ تَعْفُوْٓا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰی، دا خطاب عام دے سړو او ښځو ته لیکن صیغه ذ مذکر ئے تغلیباً ذکر کړیده- لِلتَّقْوٰی، اقرب کله متعدی کیږی په لام سره لکه دا آیت او کله متعدی کیږی په الیٰ سره لکه په سورة ق ۳۱ نو دلته لام اجلیه دے او لفظ حصول پټ دے یعنی لِحُصُوْلِ التَّقْوٰی، او دا په معنیٰ کښ غوره دے ذ الی التقوٰی نه ځکه چه په هغے کښ معنیٰ ذ علتیت نیشته دے او مفضل علیه ذ اقرب پټ دے یعنی مِنْ تَرْكِ الْعَفْوِ- ځکه چه په خپل حق اخستلو کښ شدت او بخل معلومیږی او په عفو کښ سماحت او سخاوت معلومیږی او دا سخاوت وسماحت خواصل صفت ذ متقی دے-

وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ، دا هم ترغیب دے عفو کولو ته پشان ذ اولے جملے او په دیکښ ذ عفو سبب ذکر دے- نسیان دلته په معنیٰ ذ ترک (پریښودلو) دے- او فضل کول ذ امرِ غیر واجبه دی خو چه نیکی وی نو دا فضل دے- دلته فضل ذ خاوند ذ طرف نه مهر پوره ورکول دی او ذ ښځے ذ طرف نه پریښودل ذ نیم مهر فضل دے- بَيْنَكُمْ کښ تاکید دے ذ یو بل سره ذ تعارف او ذ محبت او ذ محتاج کیدلو یو بل ته او مونږ ذ دیته تعبیر کوُو په اخوت اسلامی سره- اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ، هر کله چه په عفو او فضل کښ ورکول ذ حق دی او دا ذ قبیلے ذ مبصراتو نه دے

حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ

همیشګیری کوئ په ټولو مونځونو باندې او خاص په مونځ

الْوُسْطٰى ۗ وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ ﴿۲۳۸﴾

مینځنی باندې او اودریږئ الله تعالیٰ ته تابعداری کوونکی.

(هغه چه ښکاریږی په نظر سره) تو دَ دې وجې نه فاصله دَ آیت کښې یې صفت دَ بصیر ذکر کړو.

۲۳۸ په دې آیت کښې شپاړسم امر دې دَ امورو دَ تدبیر منزل نه او په دیکښې مسئله دَ حفاظت ده په مونځونو باندې سره دَ شغل او کار نه په احکام دُنیویه باندې- او په دیکښې مقصد اجتناب دې دَ پریښودلو دَ مونځ نه یا دَ سستئ کولو نه په هغې کښې په سبب دَ نورو مشاغلو سره یا په سبب دَ خوف سره- او په دیکښې هم دوه جهتونه دی- دَ کثرت مشاغلو په وجه په مونځ کښې سستی کول لیکن سره دَ دینه محافظت کول مامور به دی.

ربط له:- هر کله چه دَ بیبیانو سره متعلق ډیر احکام ذکر شول. تو په دې کارونو کښې مشغولیدل کله په انسان کښې دَ عبادتو په باره کښې سستی پیدا کوی تو دَ دې وجې نه حکم دَ مونځ یې ذکر کړو. ۲ له:- مخکښې محافظت په حقوق العباد باندې ذکر شو تو اوس محافظت په حقوق الله باندې ذکر کوی. ۳ له:- هر کله چه الله تعالیٰ بندګانو ته دعوت دَ عفو ورکړو په مخکښې آیت کښې لیکن حِرص دَ نفس په دیکښې لوئې مانع دې تو دَ هغې دَ پاره دوه علاجونه دی یو دُنیوی عقلی تو هغه ذکر شو لَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ سره- دویم علاج اُخروی روحانی دې چه هغه محافظت دې په مونځ باندې چه هغه دَ فحشاء او منکر (بدو کارونو) نه منع کوی.

حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوٰتِ، باب مفاعله دَ پاره دَ تکرار او همیشګرئ کولو دې. دَ دې وجې نه یې روستو علیٰ ذکر کړو. او بعضو وئیلی دی چه محافظت دَ بنده دَ جانب نه ادائیږی دَ مونځ ده او دَ

جانب دَ الله تعالیٰ نه حفاظت دَ نفس او دَ مال دَ بنده دے. او
محافظت لفظ شامل دے همیشه کولو او په مستحب اوقاتو کښ کول،
او فرائض سنن ټول اداکولو ته. او تعبیر په لفظ دَ حافظوا سره
دلالت کوی په اعراض کولو سره دَ مشاغلو او موانعو نه.
الصَّلَوٰتِ ته مراد ټول فرض مونځونه دی. او بل قول دا دے
چه دَ دینه مراد څلور مونځونه دی چه روستو هغه ذکر کیږی.
وَ الصَّلٰوةِ الْوُسْطٰی، وسطی مؤنث دَ اوسط دے. په یکښ معنیٰ دَ
تفضیل ده دَ دے وجے نه دا په معنیٰ دَ مختار (غوره) دے. او
بعضو ویلے دی چه دا په معنیٰ دَ مینځ دے (یعنی مینځنے مونځ)
لیکن اول قول غوره دے ځکه چه تفضیل (غوره والے) په هغه
ځائے کښ وی چه زیادت او نقصان قبلوی او دا معنیٰ په مینځ
کښ نه جوړیږی. بنا په دے دا تخصیص بعد التعمیم دے دَ وجے
دَ اهمیت دَ هغے نه. او بنا په دویم قول عطف دَ مغائرت دَ پاره دے
او په دے کښ پنځم مونځ مراد دے. دَ صلات وسطی په مصداق
کښ اُولس اقوال مفسرینو او محدثینو ذکر کړی دی. لیکن غوره قول
پکښ دا دے چه دا دَ مازیگر مونځ دے ځکه چه دَ دے دَ پاره صحیح
مرفوع حدیث شاهد دے چه په هغے کښ دَ عصر تعین دے. او
نور اقوال په روایاتو موقوفه یا صرف په ذکر دَ فضیلت دَ هغوی
باندے بنا دی.
فائده:- صاحب دَ اللباب او شارحینو دَ هدایه لیکلی دی چه دا
آیت دلالت کوی چه اقل درجه دَ مونځونو پنځه دی. وجه دا ده چه
الصَّلَوٰتِ جمع ده مراد به دَ دیته درے وی یا څلور زیات ته حاجت
نیشته ځکه چه اقله درجه دَ جمع درے وی او وَ الصَّلٰوةِ عطف دے
نو معطوف غیر وی دَ معطوف علیه نه. نو دا بل مونځ ته اشاره
ده. او الوسطی تقاضا کوی چه جانبین ئے برابر وی نو که
الصَّلَوٰتِ ته درے مونځونه مراد شی نو دَ درے دَ پاره وسط
حقیقی نیشته نو معلومه شوه چه دَ الصَّلَوٰتِ نه څلور مراد دی.
او وَ الصَّلٰوةِ کښ پنځم مراد شو. او دا په زیات عدد کښ هم

جوړیږي لے شي- خو هغه د مقتضا د الفاظو نه زیاتي وي -
وَقُومُوا لِلّٰهِ قٰنِتِيۡنَ، د دے آیت په دے جمله کښ دلیل دے چه قیام (اُودریدل) رکن د مونځ دے په هرهغه شخص باندے چه قادر وي په قیام باندے، منفرد او مقتدي وي او که امام وي- لیکن نفلي مونځ د دینه مستثنیٰ دے په سبب د بعضِ نصوصو سره- لِلّٰهِ دلیل دے چه قیام په نیت د عبادت سره غیر الله ته حرام دے- او قیام په طور د اهلِ عجم (چه هغے ته مُثل ویلے شي) هم په صحیح احادیثو سره منع دے- او نفسِ قیام د اکرام په طور بغیر د مُثلیت نه په هغے کښ اختلاف دے- قٰنِتِيۡنَ، په لغت کښ دوام، صبر او لزوم په یو څیز باندے ته ویلے شي- او په شریعت کښ خاص دے په دوام کولو په طاعت د الله تعالیٰ باندے- او په دیکښ روستو ټول اقوال داخل دي تو د لته په تفسیر د قنوت کښ ډیر اقوال نقل دي- اول قول د اکثر اهل علمو دے چه قنوت په معنیٰ د طاعت دے- او ابن عباس رضی الله عنهما نه مرفوع حدیث نقل دے چه هر قنوت په قرآن کریم کښ په معنیٰ د طاعت دے (امام احمد، ابویعلیٰ) لیکن په سند د دوي کښ ابولهیعه ضعیف راوي دے- دویم قول د مجاهد دے چه قنوت په معنیٰ د خشوع دے- دریم قول د شعبي او جابر دے چه په معنیٰ د طوع دے (خوشحالي کول)- څلورم قول د ابن عمر رضی الله عنهما دے چه په معنیٰ د طول د قیام دے او دا حاصلیږي په اوږد قراءت سره پنځم قول په روایت د ابن عباس رضی الله عنهما سره چه قنوت په معنیٰ د دُعا دے- شپږم په معنیٰ د مصلین دے- اووم په معنیٰ د قارئین دے- اتم په معنیٰ د عابدین دے (دا دریواړه د ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل دي)- نهم قول دا چه په معنیٰ د ذاکرین دے او دا قول زمخشري ذکر کړیدے- لسم دا چه قنوت په معنیٰ د منع کوونکي دے د لاسونو او د سترګو د حرکاتِ غیر مناسبه نه- دا قول د مجاهد دے- لیکن دا دویم تعبیر د خشوع دے چه دا قول د هغه نه مخکښ ذکر شوےدے- تو د دینه استدلال

# فَاِنۡ خِفۡتُمۡ فَرِجَالًا اَوۡ رُكۡبَانًا ۚ فَاِذَآ

نو که ویریږئ تاسو د دشمن نه نو مونځ کوئ چه پیاده روان یئ یا سواره یئ نو هر کله چه

کول چه رفع الیدین په مونځ کښې منع دی دا د جاهلانو قول دے ځکه چه د مجاهد د قول معنیٰ ابوحیان په خشوع سره ذکر کړیده - او بله وجه دا ده چه مراد د دغه قول دا دے چه لاسونه اوسترګے په غیر سنت طریقے سره مه خوزوئ او رفع الیدین (په خاص مواضعو کښې) په صحیح متواترا حادیثو سره ثابت دی.

یئو لسم قول دا چه قنوت په معنیٰ د سکوت دے او مراد د دیته عامو خبرو کولو ته سکوت دے. لیکن د قراءت نه سکوت مراد نه دے نو دا هم د بعض جاهلانو استدلال دے چه هغوی وائی چه د دینه د قراءت خلف الامام منع ثابت شوه او حال دا چه دا امر خو امام او منفرد ته هم شامل دے یواځے مقتدی ته خو نه دے او په هغوی باندے خو بالاتفاق قراءت فرض دے او دا قول چه دلته مراد سکوت دے د کلام نه دا غوره قول دے په سبب د دوه احادیثو سره - اول حدیث د زید بن ارقم رضی الله عنه دے هغه وئیلی دی چه مونږ به په مونځ کښې د یو بل سره خبرے کولے تر دے پورے چه دا آیت نازل شو نو حکم اُوکړے شو مونږ ته د سکوت او د کلام (خبرو کولو) نه منع کړے شو - دا حدیث امام احمد راوړے دے او ابن کثیر هم سره د اشکال او د جواب نه نقل کړیدے - او دویم حدیث د ابن مسعود رضی الله عنه دے چه هغه وئیلی دی چه مونږ د نجاشی بادشاه نه واپس راغلو او مونږ په نبی صلی الله علیه وسلم باندے سلام اوکړو نو د سلام جواب یئے را نکړو او وے فرمائیل چه اِنَّ فِی الصَّلٰوۃِ لَشُغُلًا، مزید تفصیل په باره د خبرو کولو کښې په مونځ کښې مفسر قرطبی او نورو محدثینو ذکر کړے دے.

أَمِنتُمْ فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَمَا عَلَّمَكُم

په امن شئ تاسو نو یاد دوئ الله تعالی لره لکه چه خودنه کړې ده تاسو ته

مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ﴿٢٣٩﴾

دَ هغه طریقې چه تاسو دَ هغې علم نه لرلو۔

ف۲۳۹ هر کله چه په مخکښ آیت کښ قیام په مونځ کښ فرض کړے شو نو اوس هغه عذر ذکر کوی چه په هغې سره قیام ساقطیږی. فَإِنْ خِفْتُمْ، دا شامل دے خوف ته دَ دُشمن، دَ رِندہ گانو یا سیلاب راتللو وغیره ته چه دغه وخت کښ دَ مونځ وخت داخل شی او په ځائے پاتے اُودریدے نشی۔ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا، دَ دے نه مخکښ فعل پټ دے یعنی فَصَلُّوا یا فَحَافِظُوا عَلَيْهَا، رجال جمع دَ راجل ده یعنی پیاده په خپلو خپو پاتے روان۔ او رُكْبَانًا جمع دَ راکب ده برابره خبره ده که په حیوان پاتے سوروی یا بل څه سورلئی پاتے خو دَ رکوع او سجدے دَ پاره به په سر پاتے اشاره کوی۔ او په دے حالت کښ جماعت هم نشی کیدے۔ او په وخت دَ قتال کښ په حال دَ التحام (یو بل کښ ورننوتل) دَ دُشمن کښ او په نورو حالاتو کښ دَ صلوٰۃ خوف ذکر په سورۃ نساء ۱۰۲ کښ شویدے۔ دا حالت ئے دلته خاص کړو په ذکر کولو سره چه قیام (اُودریدل په خپو پاتے) په دے حالت کښ ساقطیږی او دَ صلوٰۃ خوف په نورو حالاتو کښ دا قیام ساقط نه دے۔ قرطبی وئیلی دی چه په دے آیت کښ مقصود نهایت اهتمام دَ مونځ دے چه مونځ په هیڅ حالت کښ نه ساقطیږی. فَإِذَا أَمِنتُمْ، یعنی کله چه زائل شی سبب دَ خوف۔ یا دا یت اعتاته په امن کښ یئ نو فَاذْكُرُوا اللَّهَ، دَ ذکر دَ الله تعالی نه مراد مونځ کول دی او شکر کولو ته هم عام دے۔ كَمَا عَلَّمَكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ، کاف دَ تشبیه دَ پاره دے۔ او تعلیم دَ الله تعالی دَ وحی جلی او خفی په طریقے سره دے۔ مَا لَمْ تَكُونُوا عام دے تولو احکامو شرعیو ته او مونځ کولو ته په حال دَ امن یا خوف کښ.

وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ

او هغه کسان چه مړه کړے شي ستاسو نه او پريږدي

أَزْوَاجًا ۚ وَصِيَّةً لِّأَزْوَاجِهِم مَّتَاعًا إِلَى

بيبيانے نو وصيت دِ اوکړي د پاره د بيبيانو خپلو چه سامان (فائده) ورکړيشي تر

الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ ۚ فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا

يو کال له پورته به وي ويستل د هغوي نو که چرے او وتلے هغوي (روستو د واجب عدت نه) نو نيشته

جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِي مَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ

ګناه په تاسو باندے په هغه کارونو کښ چه کوي دوي په ځانونو خپلو کښ

مِن مَّعْرُوفٍ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (۲۴۰)

څۀ د نيکۍ کار او الله تعالیٰ زور آور دے حکمتونو والا دے۔

او مقصد د آيت دا دے لکه چه الله تعالیٰ په تاسو باندے په دے تعليم سره انعام کړيدے نو تاسو د دے نعمت موافق شکر ادا کوئ ياد دينه مراد دا دے چه په حال د امن کښ په هغه ارکانو شرطونو او کيفيانو سره مونځ کوئ کوم چه تاسو ته په قرآن او حديث سره معلوم وي۔ لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ، نه مراد دا دے چه په عقل سره تاسو دا علم نشئ حاصلولے کوم چه په وحي سره حاصليږي۔ او دا دليل دے چه د مونځ تفصيلي طريقه د قرآن او احاديثو نه ايزده کول ضروري دي۔

۲۴۰ په دے آيت کښ اُولسم امر دے د اُمورو د تدبير منزل نه او هغه په باره د احسان کولو کښ دے هغه زنانو سره چه خاوند ئے وفات شوے وي۔ او مقصد په دے حکم کښ اجتناب دے د هغه ظلم نه چه جاهليت والو به د وفات په عدت کښ په زنانو باندے کوو۔ او د جاهليت والو طريقه په موطا د امام مالک کښ ليکلے ده چه په دور د جاهليت کښ به د ښځے خاوند وفات شو نو هغه به داخله شوه يو تنګ کور ته او ناکاره

جامے یہ یئے اغوستلے او ہیڅ قسم خوشبوئی او زینت یئے نه شو کولے دا تر یو کال پورے - بیا به ورته یوښاروے راوستلے شو تو خپله څرمن به یئے په هغه ښاروی پورے اومخله او په ناکاره شکل کښ به راووتله تو بیا به یئے ورله په لاس کښ پچه ورکړه اوهغه به یئے شا طرف ته اُغورځوله بیا به دخپل موراوپلار کورته لاړه. ددے ظلم اورسم دجاهلیت د ردکولو دپاره دا شرعی حکم راغے۔

ربط لہ :۔ مخکښ احسان ذکر شو په مینځ د بنده او د الله تعالیٰ کښ. اوس احسان ذکر کوی په مینځ د ښځه او خاوند کښ. ۔ ۲ مخکښ یئے ترغیب ورکړے وو فضل کولو ته په مینځ د ښځے او خاوند کښ په وخت د طلاق کښ نو اوس فضل ذکر کوی په وخت د وفات د خاوند کښ. او مسئله د مونځ پکښ جمله معترضه ده۔

وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ، په دے زور د وَصِيَّةً کښ دوه قولونه دی. اول قول دا چه دلته فعل پټ دے یعنی لِيُوْصُوْا یا يُوْصُوْنَ - او داخبر دے د الذین دپاره یا دغسے فعل پټ دے مخکښ د الذین نه او هغه فاعل دے د پټ فعل. او وصیت مفعول مطلق دے د پټ فعل دپاره. او دا وصیت دے د خاوند په حکم د كُتِبَ عَلَيْكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ اِنْ تَرَكَ خَيْرَا الْوَصِيَّةُ ۲، ۱۸. نو مقصد دا دے چه خاوند دے د مرګ په وخت کښ خپلو ښځوته وصیت اوکړی چه تر یوکال پورے ځما په کور کښ اُوسیږئ او ستاسو نفقه به ځما د مال نه وی. نو بیا د هغوی خوښه ده که دا وصیت قبلوی او که نه قبلوی. یا دِے دا سے وصیت ورثوء ته اُوکړی د بیبیا نو په پاره کښ. او دویم قول دا دے چه وَصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ، دا وصیت دے د الله تعالیٰ د طرف نه ښځوته چه کور د خاوند کښ به پاتے کیدل تر یو کال پورے لازم کړی. نو دا د قبیلے د يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ نه دے. نو دا حکم د طرف د الله تعالیٰ نه دے په طریقه د وجوب سره۔

فائده :۔ په دے آیت کښ دوه اقوال دی چه هغه امام بخاری په کتاب التفسیر کښ نقل کړی دی. اول حدیث د ابن زبیر رضی الله عنه دے چه د هغے نه معلومیږی چه دا آیت منسوخ دے په

تیر شوی آیت ۲۳۴ سره او دا آیت په نزول کښې مخکښې دے. او هغه ترینه روستو دے. او دا په هغه دویمه توجیه سره دے چه په وَصِيَّةً کښې ذکر شوله. یعنی اول په اسلام کښې عدت دَ وفات یو کال مقرر شوے وو سره دَ اوسیدلو او نفقې نه بیا هغه منسوخ شو په څلورو میاشتو او لسو ورځو عدت دَ وفات سره او په آیت دَ میراث یعنی چه وارث دَ پاره وصیت نیشته. دویم قول امام بخاری دَ مجاهد رحمهما الله نه نقل کړیدے چه په دے آیت کښې نسخ نیشته او عدت دَ وفات دَ ابتداء نه څلور میاشتے او لس ورځے دی. صرف دَ وصیت په طور سره او وه میاشتے او شل ورځے زیاتی کړے شوے او دا په طور دَ استحباب او احسان سره دی. نو دا وصیت منافی نه دے دَ لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ سره او دا قول اکثر مفسرینو غوره کړیدے.

مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ، دا منسوب دے په حذف دَ جار سره یعنی بِمَتَاعٍ. او دَ دینه مراد نفقه او لباس ورکول دی دَ احسان په طور سره. غَيْرَ إِخْرَاجٍ، دا حال دے یا بدل دے دَ مَتَاعًا نه. یعنی ورثو دَ میت له پکار نه دی چه دا ښځه دَ خاوند دَ کور نه په زور سره اوباسی ځکه چه دَ وصیت بدلول جائز نه دی اګرچه احسانی وی.

فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَعْرُوفٍ، دَ دینه مراد وتل دی دَ خاوند دَ کور نه پخپله خوښے سره. لیکن بنا په اول قول سره دا خروج مخکښې دَ پوره کولو دَ کال او روستو دَ کال پوره کیدلو نه دے. دلته معروف عام دے چه ولی دَ میت او حاکم باندے حرج نیشته چه نفقه دَ دیته قطع کړی یا یئے دَ کور نه اوباسی. یا ښځه اوځی دَ خاوند دَ کور نه یا ځان له دَ خاوند طلب او لټون کوی یا کسب کوی دَ روزئ ګټلو دَ پاره په شرعی طریقے سره.

فائده:. په آیت ۲۳۴ کښې یئے بِالْمَعْرُوفِ وئیلے وو او دلته مِنْ مَعْرُوفٍ اشاره ده چه هلته صرف زینت کول (ترک دَ احداد)

# وَلِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ ۭ حَقًّا

او دپاره دَ طلاق ورکړے شوے زنانو سامان (فائده) ورکول دی دَ عرف موافق ۱۵

# عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴿۲۴۱﴾

لازم دہ په متقیانو باندے۔

مراد دے او هغه یو معین څیز دے او دلته مراد عام دے لکه چه ذکر شونو ځکه یې نکره په مِنْ سره راوړه چه دَ هغې مختلف اقسامو ته اشاره اُوشي۔

وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ، لفظ دَ عزیز کښې تحذیر ته اشاره ده په سبب دَ اخراج دَ هغې په جبر او ظلم سره۔ او حکیم کښې دے حکم منافعو ته اشاره ده ۲۴۱ په دے آیت کښې اتلسم امر دے دَ اُمورو دَ تس بیر منزل ته په باره دَ متعه ورکولو ټول مطلقاتو ته په طور دَ احسان سره۔ او مقصد پکښې اجتناب کول دی دَ ظلم نه په عامو مطلقو (طلاقو کړے شوو) باندے۔ یعنی طلاق دَ ظلم کولو دَ پاره سبب مه ګرځوئ بلکه دَ هغې دَ زړه دَ خوشحالولو دَ پاره متعه ورکول پکاردی۔

وَلِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ، مخکښې آیت ۲۳۶ کښې حکم دَ متعه ورکولو وو دَ یو قسم مطلقې دَ پاره چه هغه غیر ممسوس بهاده سره دَ عدم تسمیې دَ مهر نه او په دے آیت کښې ټولے مطلقې مراد دی۔ یاداچه مخکښې دَ متعه نه لباس وغیره مراد وُو او دلته ترے مراد نفقه ده او نفقې ته هم متاع وئیلے شی لکه چه مخکښې آیت کښې دی۔ په لفظ المطلقات کښې دوه اقوال دی۔ اول داچه ټول اقسام مراد دی او دَ ټولو دَ پاره متعه ورکول واجب دی۔ او دا قول دَ سعید بن جبیر رضی الله عنه ابوالعالیه او زهری رحمهما الله دے۔ او دویم قول داچه دلته ټول اقسام مراد دی خو دا حکم استحبابی دے ماسیوا دَ هغې قسم نه چه آیت ۲۳۶ کښې ذکر دے۔ او دا قول دَ جمهور اهلِ علمو دے۔

حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ، مراد دا دے چه کله حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ نازل شو نو بعضِ کسانو او وئیل چه که څه نه غواړم احسان کول

# كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ

| دغسې | بیانوي | الله تعالیٰ | تاسو ته | احکام خپل |
|---|---|---|---|---|

# لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۲۴۲﴾

دَ پاره دَ دې چه دَ عقل نه کار واخلئ.

نو متعه به نه ورکوي م تو او وئيلې شو چه حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ، يعنې دا دَ هر متقي حق دے- او احسان دلته مرادف دَ تقوىٰ دے او دَ متقين نه مراد عام مؤمنان دي چه ځان دَ شرک او نفاق نه بچ ساتي-

فائده:- په آيت ۲۳۶ کښ دَ متعې دَ وجوب ذکر وو دَ هغې ښځې دَ پاره چه خاوند ترې نه هيڅ فائده نه ده اخستې (يعنې غير مدخول بها) نو دغسې ښځې له حق (واجب) اداکول په عرف کښ احسان ګڼړلے کيږي دَ دې وجې نه هلته يې محسنين وئيلي وو- او دلته دَ عام و طلاقو کړې شوو ذکر دے اګرچه هغوي دَ پاره مهر هم شته ليکن خاوند ترې نه فائده هم اخستلې ده نو دَ دوي په طلاق سره دَ دوي زړه ډير خفه شوے او دردېدلے وي نو دَ هغوي زړه دَ خفه کولو نه دَ بچ کولو دَ پاره لفظ دَ تقوىٰ مناسب وو-

۲۴۲ په دے آيت کښ ترغيب دے دَ تير شو و احکامو امتثال ته او دَ راتلونکو احکامو دَ پاره هم- يعنې مخکښ چه څرنګ وضاحت او تفصيل اوکړې شو دغسې به روستو هم کوي- يا کاف دَ بيان کمال دَ پاره دے يعنې دا بيانات په کمال فصاحت، بلاغت او وضاحت کښ کامله درجه لري-

لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ، دَ وضاحت نه روستو په احکام شرعيو کښ تدبر او تفکر کار عقل کولے شي نو دَ دے وجې نه يې تعقلون ذکر کړو- هان کله مغيبات يا مجملات وي نو بيا عقل په هغې کښ نشي چليدلے-

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا مِن

آيا ته نه گوري هغه كسانو ته چه وتلي وو هغوي د

دِيَارِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ

كورونو خپلو نه او حال دا چه دوي په زرگونو وو د وجې د بچ كيدلو د مرگ نه

فَقَالَ لَهُمُ اللَّهُ مُوتُوا ثُمَّ

نو اوويل دوي ته الله تعالى مړه شئ بيا ئې

أَحْيَاهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ

ژوندي كړل هغوي يقينًا الله تعالى خاوند د فضل دے

عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ

په خلقو باندے او ليكن اكثر خلق

لَا يَشْكُرُونَ ﴿٢٤٣﴾

شكر نه كوي -

سـ٢٤٣ دَ څلورم باب خلاصه:- دَ دے آيت نه تر سـ٢٥٣ پورے څلورم باب دے او په ديكښې دَ ترغيب الى القتال دَ پاره دوه واقعات ذكر كوي - چه په اوله واقعه كښې اشاره ده چه دَ بزدلئ او دَ يرے دَ مرگ دَ وجے نه دَ قتال فى سبيل الله نه مخ مه گرځوئ او ورپسے امر دے په قتال سره او ترغيب دے انفاق فى سبيل الله ته تر آيت سـ٢٤٥ پورے. بيا دويمه واقعه ده چه په هغے كښې دَ قتال دَ وجوب سبب ذكر كوي شرعًا او طبعًا سره دَ ماتع نه او ضرورت دَ امير نه اشاره كوي په آيت سـ٢٤٦ كښې. بيا دَ امير منتخب كول او شرطونه دَ امارت ذكر كوي په سـ٢٤٧ كښې. بيا دَ حق امير علامت دَ انتخاب ذكر كوي چه هغه اعاده دَ بركاتو الهيو ده په سـ٢٤٨ كښې. او بيا سياسيات دَ يو حق امير ذكر كوي چه تميز او فرق كولے شي په مينځ دَ مس اهتيتو او شجاعت والو

کښ سرۀ دَ اشارے نه چه دَکم والی دَ عدد (افرادو) دَ وجے نه قتال فی سبیل الله مه پریږدئ په ۲۴۹ کښ - بیا دُعا دَ میدان جنګ ذکر کوی په ۲۵۰ کښ - بیا حصول دَ فتح او خلافتِ حقه په ذکر دَ داؤد علیه السلام سره - او دا دَ جهادِ اسلامی نتیجه ده سره دَ ذکر دَ فائدے دَ قتال او نصرت الٰهیه نه په ۲۵۱ کښ بیا دَ دفع دَ کفر او شرک دَ پاره ارسال دَ آخری رسول صلی الله علیه وسلم په ۲۵۲ کښ او ارسال دَ مخکنو رسولانو سره دَ تفاضل دَ هغوی نه - لیکن سبب دَ قتال اختلاف دَ خلقو دے په ایمان او کفر کښ دا په ۲۵۳ کښ ذکر کوی -

**ربط ۱:-** مخکښ یئے دَ نکاح سره متعلق احکام ذکر کړل چه په هغے سره دَ انسان دَ نفس تحصین راځی او دا انفرادی او منزلی (کورنئ) اصلاح ده نو اوس ذکر دَ قتال کوی چه په هغے سره تحصین او حفاظت دَ دین او دَ مسلمانانو دَ مالونو راځی چه دا اجتماعی او سیاسی اصلاح ده۔

**۲:-** مخکښ احکام تکلیفیه ذکر شول چه په هغے سره دَ قتال استعداد پیدا کیږی نو اوس دَ قتال حکم راوړی -

**۳:-** په آخری امر کښ دَ وفات ذکر وو چه هغه حقیقی مرګ دے نو اوس بل قسم مرګ ذکر کوی چه هغه عقوبتی مرګ دے۔

اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِیۡنَ خَرَجُوۡا مِنۡ دِیَارِهِمۡ ، لفظ دَ اَلَمۡ تَرَ کله دَ هغه چا دَ پاره ذکر کیږی چه مخکښ په واقعه علم لری نو دا دَ پاره دَ تقریر او تنبیه کیږی او دا سے په قرآن کښ ډیر دے - او کله دَ هغه چا دَ پاره ذکر کیږی چه دَ مخکښ نه علم نه لری نو دا دَ تعجب او تنبیه دَ پاره وی -(قاسمی) کله چه فعل دَ رویت په دیکښ متعدی شوے هغه خبر ته چه دَ مخکښ نه سامع نه دے لیدلے نو مقصد په دے کلام کښ ترغیب دے په علم دَ هغه خبر چه رویت هغه ته متعدی شوے په الی سره دَ دے وجے نه اتفاق دَ مفسرینو دے چه دلته همزه دَ استفهام دَ حقیقی استفهام دَ پاره نه دے - او خطاب په دیکښ دَ معین

دَ پاره نه دے۔ او په دے استفهام کښ درے اقوال دی۔
اول قول دا چه دا دَ تعجب او تعجیب دَ پاره دے۔ دویم دا چه
دا استفهام تقریری دے لکه دَ أَلَمْ نَشْرَحْ پشان۔ دریم قول
دا استفهام انکاری دے او په دریواړه حالاتو کښ مقصد تیزی
ورکول دی په علم دَ ما بعد باندے (ابن عاشور) قرطبی وئیلی
دی چه دا رویتِ قلبی دے په معنیٰ دَ الم تعلم سره۔ او په
نیز دَ سیبویه دا دَه چه تَنَبَّهْ إِلَى أَمْرِ الَّذِيْنَ، او دا رویت
دوه فعلونه نه غواړی۔ ابوحیان وئیلی دی چه دا همزه دَ
استفهام داخل دے په نفی باندے نو استفهام تقریری شو نو
ممکن دَه چه مخاطب په دے باندے دَ مخکښ نه علم لری۔ او
دا هم ممکن دَه چه دَ مخکښ نه علم نه لری خو مراد پکښ
تنبیه او تعجیب وی۔ او دا رویت علمیه دے متضمن دے
داسے فعل لره چه متعدی کیږی په الیٰ سره نو دلته معنیٰ
دا شوه أَلَمْ يَنْتَهِ عِلْمُكَ إِلَى كَذَا (آیا ستا علم فلانیٔ واقعے
ته نه دے رسیدلے) په دے ټولو اقوالو سره ثابت دَه چه
لفظ دَ أَلَمْ تَرَ مخکښ علم او رویت لره مستلزم نه دے نو
دا قول دَ جاهلانو (بریلیانو) باطل دے چه هغوئ وائی چه دَ
دینه معلومه شوه چه نبی صلی الله علیه وسلم په تیر شوو ټولو
واقعاتو باندے علم لرلو مخکښ دَ وحی نه او هغه حاضر ناظر
وو او س هم دے۔ دا دَ قرآن تحریف دے۔ الَّذِيْنَ خَرَجُوْا
مِنْ دِيَارِهِمْ، دَ دے قوم په باره کښ دوه اقوال مشهور دی
اول دا چه دا دَ بنی اسرائیلو قوم وو چه دَ دوی په وطن کښ
طاعون مرض (وباء) راغلے وو نو دَ مرګ دَ یرے دَ هغه
وطن نه اوتختیدل (او دَ دے قول په بنا سره قرطبی دلته
دَ طاعون احکام ذکر کړیدی) دویم قول دا دے چه دا دَ
حزقیل علیه السلام قوم وو۔ او دَ دوی بادشاه دوی ته دَ
قتال حکم اوکړو نو دوی دَ هغه نه او تختیدل دَ دے یرے دَ
ویرے نه چه قتال کښ خو به مونږ مړه شو۔ نو الله تعالیٰ په

دوی بانده مړګ راوستلو - بیا د حزقیل علیه السلام په دُعا سره اته ورځې روستو راژوندی شول - ابن عطیه وئیلی دی چه د دے ټولو اقوالو سند ونه کمزوری دی لیکن د قصص د بنی اسرائیل په قرینے سره د تورات فصل اوودیرشم باب نبوت حزقیل کښ دا واقعه لیکلے ده - قرآن کریم هم اکثر د بنی اسرائیلو هغه قصے او واقعے ذکر کوی چه په عربو کښ د یهودیانو سره د نزدیکت د وجے نه مشهورے وے او دا قول په دے وجے سره غوره دے چه روستو ئے ورپسے امر د قتال ذکر کړے دے په وَقَاتِلُوا سره - وَهُمْ اُلُوْفٌ، په دیکښ دوه اقوال دی - اول قول دا جمع د الف ده او په دیکښ بیا ډیر اقوال دی لیکن غوره قول دا دے چه لس زره یا زیات وو ځکه جمع کثرت ئے ذکر کړے ده یا مراد د دے نه نفس کثرت دے - دویم قول، دا جمع د آلِفٌ ده یعنی دوی کورنئ کښ متفق او متحد وو یعنی اختلاف سبب د ترکِ قتال نه وو بلکه یره د مرګ نه سبب وو - حَذَرَ الْمَوْتِ، دا مفعول لهٔ دے د خروج د پاره - او حذر، هغه خوف دے چه ځان بچکول ورسره مقصد وی - فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا، په دے سره مراد قول تکوینی دے یعنی زر واقع کیدل د مراد د الله تعالیٰ - په قضا وتقدیر سره قول تشریعی په دیکښ مقصد نه دے - ابن عربي وئیلی دی چه دا مرګ د عقوبت او سزا دے - په دے پسے روستو دنیوی حیات راځی او بل موت اجلی دے په هغے پسے دُنیوی ژوند بیا نه راځی - ثُمَّ اَحْیَاهُمْ، دوی د حزقیل علیه السلام په دُعا باندے الله تعالیٰ بیا راژوندی کړل دا د هغه نبی معجزه وه پشان د معجزاتو د عیسیٰ علیه السلام - او دا سے واقعه د بنی اسرائیلو په طلب د رویت کښ په آیت ۵۵ کښ او د بقرے په واقعه کښ په آیت ۷۳ کښ هم تیره شوے ده - او دادریم کرت دے -

وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاعْلَمُوا

او جنګ کوئ په لار د الله تعالی کښ او پوهه شئ

أَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۲۴۴﴾

چه یقیناً الله تعالی هر څه آوری عالم دے په هر څه باندے.

فائده ۱:- قرطبی د ابن عطیه نه نقل کړی دی چه په دے واقعه کښ عبرت دے چه مرګ په اختیار د الله تعالی کښ دے د هغے نه خلاصیدل په هیڅ تن بیرسره تشی کیږی او دا رنګ دا تمهید دے د پاره د امر د جهاد دے اُمت ته. یعنی که دوی چرته بزدلی اُوکړه د قتال کولو نه نو الله تعالی به په دوی باندے ذلت راولی.
فائده ۲:- د معجزاتو منکرین د دے واقعے د ظاهر نه انکار کوی او تاویل کوی چه موت د دوی دا سے نه وو چه روح ئے د بدن نه جدا شو بلکه دا یو مرض دے چه د سکتے او بے هوشئ نه زیات دے نو هغه په دوی راغلے وو. دا رنګ ابن راوندی د تولو مړو په باره کښ دا عقیده لری چه د بدن نه ارواح نه جدا کیږی بلکه د غشے حالت وریاندے راځی چه روح د بدن په اجزاؤ (اندامونو) کښ موجود وی هر ځائے کښ چه وی. آلوسی وئیلی دی چه د دوی دا قول او مذهب د عقل (او شرع) نه مخالف دے. او الله تعالی دے موږه او تول مسلمانان د دا سے عقیدے نه بچ اُوساتی - إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ، دا پشان د علت د ما قبل دے یعنی فضل په دغه کسانو باندے په ژوندی ورکولو سره وو او نورو خلقو باندے په عبرت اخستلو سره د دے واقعے نه. وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ، دا استدراک دے د پټ عبارت نه یعنی په ټولو خلقو باندے واجب دے شکر د نعمتونو د الله تعالی. لیکن ډیر د دوی نه ناشکره دی لکه په سورة اسراء ۸۹ کښ ذکر دی. او شکر ګزار لږ بندګان دی لکه چه په سورة سبا ۱۳ کښ دی.
۲۴۴:- په دے آیت کښ دے امت ته د قتال امر دے. او

مَنْ ذَا الَّذِیْ یُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا

څوک دے هغه کس چه قرض ورکړی الله تعالیٰ ته قرض

حَسَنًا فَیُضٰعِفَهٗ لَهٗ اَضْعَافًا كَثِیْرَةً ؕ

ښائسته (په اخلاص) نو دو چنده به کړی هغه ده دپاره په دو چنده کولو ډیرو سره

وَاللّٰهُ یَقْبِضُ وَیَبْصُۜطُ ۪ وَاِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۴۵﴾

او الله تعالیٰ تنګوی (رزق) او فراخوی او خاص ده هغه طرفته اوکرځولے شئ تاسو۔

عطف دَ مضمون دے په حاصل مضمون دَ ماقبل باندے یعنی دَ مرګ دَ ډیرے دَ وجے نه سستی مه کوئ بلکه وَقَاتِلُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ۔ قرطبی وئیلی دی چه ټول عبادات په سبیل الله کښ داخل دی۔ او امام مالك رحمه الله وئیلی دی چه لارے دَ الله تعالیٰ ډیرے دی او په هره لار باندے یا په هغے کښ یا دَ هغے دپاره قتال ضروری دے۔ وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ سَمِیْعٌ عَلِیْمٌ، په دیکښ ترغیب او تحذیر دواړه دی۔ سمیع دے آوری آوازونه دَ مجاهدینو او دَ هغوی دَ آسونو او دَ ګزارونو دَ وسلو۔ یا دا چه ترغیب ورکوی بل چاته دَ جهاد۔ عَلِیْمٌ یعنی عالم دے په زړونو او نیتونو چه دَ چا نیت دَ فی سبیل الله او دَ چا بل څه دُنیوی غرض دے۔

۲۴۵: په دے آیت کښ ترغیب دے انفاق فی سبیل الله ته حکه قتال بغیر دَ اسبابو نه نشی کیدے۔ او دَ حصول دَ اسبابو دپاره مالی انفاق ضروری دے۔ او دیته جهاد بالمال وئیلے شی۔

مَنْ ذَا الَّذِیْ یُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا، مقصد په دے استفهام کښ تیزی ورکول دی. مَنْ استفهامیه دے او ذَا موصول مبهم دپاره دے۔ قرض په لغت کښ قطع (ریکولو) ته وئیلے شی نو دَ مال نه یو ټکړه پریکول قرض دے۔ بیا په نیز دَ زجاج وکسائی هرهغه فعل چه په هغے سره جزاء طلب کیږی که خیر وی او که شر وی۔ او بعضو په خیر باندے خاص کړیدے۔ او په عرف کښ دَ مال وغیره ورکول دی دے دپاره چه دغه ته بیا واپس

کړیشي - لیکن دلته استعمالیږي د خرچ کولو د یو شیز د پاره په لار د الله تعالیٰ کښ د پاره د طلب د جزاء که هغه شیز نفس وي، بدن وي او که مال وي - او قَرْضًا حَسَنًا (حسن) کښ اشاره ده چه دا قرض خالي وي د عیب د ریا او زیادلو اوادي (تکلیف) ورکولو نه او په اخلاص باندې بنا وي - قرطبي وئیلي دي چه انفاق في سبیل الله ئې مشابه کړیدې د قرض د انسانانو سره نو په دیکښ ډیر ترغیب دې د ښه اعمالو کولو ته او وعده د ثواب ورکولو ده ځکه چه قرض واجب الاداء وي او مقروض په هغې باندې شکر هم ادا کوي - فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗٓ اَضْعَافًا كَثِيْرَةً، ضِعَفٌ په اصل کښ مثل د یو شیز دې په مقدار کښ او مضاعفه زیات دې د مثل نه په ډیرچنده سره - او اضعاف جمع د ضعف ده او موصوف ده په کثرت سره نو د دې د زیاتوالي شمار یو الله تعالیٰ ته معلوم دې د دې انتها او حد معلوم نه دې - فَيُضٰعِفَهٗ کښ زور د دې وجې نه دې چه دا په معنیٰ کښ جواب د استفهام دې تو اَنْ ناصبه د دې په جواب کښ پټ دې - وَاللّٰهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ، په دیکښ ترغیب دې چه انفاق د مال کمیدلو د وجې نه مه پریږدئ ځکه چه انفاق سره په مال کښ کمے زیاتے نه راځي بلکه کمے زیاتے خو د الله تعالیٰ په اختیار کښ دے او په دے جمله کښ ډیر اقوال دي - ۱ـه الله تعالیٰ د مال او رزق تنګسیا او فراخي راولي ۲ـه صدقات قبض کوي (قبلوي) او فراخ عوض (بدله) ورکوي - ۳ـه مرګ راولي په قبض کولو د روح سره او ژوند اوږدوي - ۴ـه بعض زړونه تنګوي او په بعضو کښ خوشحالي او فراخي پیدا کوي - او نور هم اقوال شته - وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ، په دیکښ تنبیه او تذکیر د آخرت دے - او ارجاع (واپسي) د اعمالو د جزاء د پاره ده -

أَلَمْ تَرَ إِلَى الْمَلَإِ مِنْ بَنِي إِسْرَآءِيلَ

آیا نه گورې تهٔ طرف د ډلې ته د بني اسرائیلو نه

مِنْ بَعْدِ مُوسَى إِذْ قَالُوا لِنَبِيٍّ لَّهُمُ

روستو د موسٰی علیه السلام نه کله چه دوی اُوویل خپل نبي ته

ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ط

مقرر کړه زموږ د پاره بادشاه چه جنګ اوکړو په لار د الله تعالٰی کښې

قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ إِن كُتِبَ عَلَيْكُمُ

اُوویل هغه نزدې ده (ستاسو د حال نه) که چرې فرض کړې شي په تاسو باندې

الْقِتَالُ أَلَّا تُقَاتِلُوا ط قَالُوا وَمَا لَنَا

جنګ چه جنګ به اونه کړې دوی اُوویل او څه وجه ده موږ لره

أَلَّا نُقَاتِلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَدْ

چه جنګ به نه کوؤ په لار د الله تعالٰی کښې او حال دا چه یقیناً

أُخْرِجْنَا مِن دِيَارِنَا وَأَبْنَآئِنَا ط فَلَمَّا

موږ ویستلې شوې یو د کورونو خپلو او ځامنو خپلو نه نو هر کله

كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا إِلَّا قَلِيلًا

چه فرض کړې شو په دوی باندې جنګ دوی مخ اوګرځوؤ مګر لږ کسانو

مِّنْهُمْ ط وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿۲۴۶﴾

د دوی نه او الله تعالٰی خه علم لرونکې دې په ظالمانو خلقو باندې

سبق ۲۴۶:- د دې آیت نه دویمه واقعه د بني اسرائیلو ذکر کوی۔
ربط ۱:- مخکښې یې وقاتلوا فی سبیل الله امر ذکر کړو نو
اوس تحذیر ذکر کوی چه د فرضیت د قتال نه روستو په قتال
کولو کښې سستي اونکړئ اګرچه تاسو لږ یئ پشان د بني اسرائیلو

ورنه ذليل او رسوا به شئ
۲ :- مخکښ امر وو په قتال سره نو اوس دَ هغے دَ نظام دَپاره ضرورت دَ امیرِ جهاد (مَلِك، بادشاه) ذکر کوی - اَلْمَلَاءُ، هغه جماعت ته وئیلے شی چه دَ هغوی په مینځ کښ اتفاق وی او دا اسم جمع ده - او دا اخستے شوید ے دَ مِلأٌ نه (ډکول دَ لوخی په اوبو وغیره سره) دَ عربو عادت دا وو چه دَ اوبو کودرته به جمع شول نو دَ یو بل سره به ئے دَ مشکیزو او نورو لوخو دَ اوبو کښ په ډکولو کښ امداد کوؤ - او اوبه خو اصل دَ حیات (ژوند) دے نو اشاره شوه چه څوک دَ یو بل سره دَ ژوند په منافعو کښ امداد کوی نو هغوی ته مَلأٌ وئیلے شی گویا که دوی دَ شرافتِ دُنیوی یا اخروی نه ډک دی - او زجاج وئیلی دی گویا که دوی ډک دی دَ هغه خیزونو نه چه دوی هغے ته محتاج دی - مِنۡۢ بَعۡدِ مُوۡسٰی، دَ دینه مراد وفات دَ موسیٰ علیه السلام دے - اِذۡ قَالُوۡا لِنَبِیٍّ لَّهُمُ، دَ دې نه مراد صمویل علیه السلام وو چه هغه ته په عربئ کښ شمویل وئیلے شی - لِنَبِیِّهِمۡ ئے نه دے وئیلے ځکه چه دا نبی معروف نه وو دَ مخاطبینو دَ قرآن پوخت کښ او بله وجه دا ده چه عبرت دَ واقعے په تعین دَ نبی باند ے موقوف نه دے بلکه دَ هر نبی مخالفت کول دَ ذلت سبب دے - اِبۡعَثۡ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلۡ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ، تاریخ والو لیکلی دی چه تردے واقعے پور ے په بنی اسرائیلو کښ عَصۡرُ الۡقَضَاتِ وو یعنی دَ هر ے ډلے دَ بنی اسرائیلو دَپاره جدا جدا حاکم وو که هغه به نبی وو یا غیر نبی وو - او هغه به دَ دوی فیصلے کولے او دا صمویل علیه السلام دَ دغے زمانے آخری نبی وو - ابن کثیر وئیلی دی چه دَ موسیٰ علیه السلام نه روستو څه زمانے پور ے بنو اسرائیل په خپل دین باند ے پاښۀ وو - خو بیا په دوی کښ بدعات او شرک پیدا شو - او انبیاؤ کرامو به دوی ته دعوت کوو لیکن دوی به دَ انبیاؤ قتل کوؤ یا به ئے انکار کوو تردے پور ے چه په دوی باند ے فلسطین والا (دُشمنان دَ دوی) غالب شول او دَ

هغوی بادشاه مشهور وو په جالوت سره- او هغه دوی لره دکور وتو نه اوشړل او د دوی بچي ئې غلامان کړل او د تورات تابوت ئې د دوی نه قبضه کړو او په اشدود علاقه کښ ئې کیښودو- دغه وخت بني اسرائیل پوهه شول چه د جالوت تیاتو په مقابله کښ منظم قتال ضروري دے لیکن صمویل علیه السلام د بدن لحاظ سره کمزورے شوے وو تو دوی د هغه نه مطالبه اوکړه چه د نظام قتال د پاره یو مَلِك (بادشاه) ضروري دے تو د هغے نه روستو په دوی کښ عصر الملوك بیل اشو- دا سے واقعات د تورات په سفر صمویل الاول اصحاح سابع کښ ذکر دے-

قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ إِن كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ أَلَّا تُقَاتِلُوا، دا استفهام تقریری دے او أَلَّا تُقَاتِلُوا مُسْتَفْهَمٌ دے د پاره د هَلْ او خبر دے د عسی د پاره، او دلیل دے د جواب د إِنْ شرطیه- یعنی په أَلَّا تُقَاتِلُوا کښ معنی د تنازع ده د هَلْ او عَسٰی او إِنْ- تو په دیکښ معنی د تحذیر ده د ترکِ قتال نه روستو د فرضیت نه د بعضِ شیطاني وسوسو او د بزدلئ د وجے نه- او د نبي گمان دا وو چه دوی به په قتال کښ بزدلي اوکړي د وجے د مخکښ گناهو تو د دوی نه- قَالُوا وَمَا لَنَا أَلَّا نُقَاتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ، دا جمله په اصل کښ معطوف ده په اِبْعَثْ لَنَا مَلِكًا باندے او په مینځ کښ د دوی د نبي قول په طریقه د جملے معترضے سره دے- مَا په معنی د أَيُّ شَيْءٍ سره استفهام انکاري دے- د دینه مراد دا دے چه څه سبب دے مونږ له د پریښودلو د قتال او مفهوم دا دے چه هیڅ مانع نیشته د قتال کولو نه- مقصد د دوی دا وو چه زمونږ امید دے چه الله تعالی به زمونږ مدد اوکړي او بزدلي زمونږ نیشته دے- وَقَدْ أُخْرِجْنَا مِن دِيَارِنَا وَأَبْنَائِنَا، دا جمله حالیه ده په طریقه د علت د مخکښ انکار د پاره- او مراد په دیکښ وجود د سبب د قتال دے طبعًا او شرعًا ځکه چه غیرت طبعي د انسان تقاضا کوی د دشمن نه د بدل اخستلو- اخراج په اصل کښ لرے کول د څیز دی د خپل ځائے او د خپل صاحب نه- تو دا معنی

وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللّٰهَ قَدْ بَعَثَ

او اُویل دوی ته نبی دَ دوی یقینًا اللّٰه تعالیٰ مقرر کړے دے

لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا ۚ قَالُوٓا أَنّٰى يَكُونُ

ستاسو دَ پاره طالوت بادشاه دوی اُویل څه رنګ به کیږی

لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ أَحَقُّ بِالْمُلْكِ

دَده دَ پاره بادشاهی په مونږ باندے او مونږ ډیر حقدار یو په بادشاهئ سره

مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ ۚ

دَ ده نه او نه ده ورکړی شوے ده ته فراخی دَ مال

اَبْنَآئِنَا ته شامل ده یعنی دَ ځامنو نه یئے مونږ لرے کړی یو او هغه یئے زمونږ نه قید کړی دی۔ مؤرخینو لیکلی دی چه دَ دوی نه یئے څلور سوه اَو څلویښت هلکان غلامان کړی وو. لیکن سبب دَ ضعف دَ دوی روستو دا وو چه دوی دا نه دی وئیلی چه قَدْ اَمَرَنَا اللّٰهُ بِالْقِتَالِ وَاَوْجَبَ عَلَيْنَا یعنی قصد او نیت دَ دوی امتثال دَ اَمرالله نه وو۔ صرف سبب دَ غیرتِ طبعی ذکر کړو۔ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ، دا خلاصه او اجمال دَ دوی دَ قصے دے چه هغه روستو په تفصیل سره ذکر کیږی۔ او دا هغه ضعف دے چه مخکښ دَ هغے سبب ذکر شو۔ او په دیکښ دَ دے اُمت دَ مؤمنانو دَ پاره تحذیر دے. یعنی اے مؤمنانو هر کله چه تاسو باندے قتال فرض شی نو تاسو دَ بنی اسرائیلو پشان دَ دُنیا پرستئ دَ وجے نه سستی او بزدلی اونکړئ۔ اِلَّا قَلِيلًا، په حدیث سره ثابت ده چه دغه قلیل درے سوه دیارلس (۳۱۳) کسان وو په مقدار دَ اصحابو دَ واقعے دَ بدر چه په اسلام کښ اوله غزوه وه۔

وَاللّٰهُ عَلِيمٌ بِالظّٰلِمِينَ، په دے وعید کښ اشاره ده چه دَ فرض قتال نه مخ کرځول ظلم دے۔ او دا سے ظلم دَ اقوامو دَ ذلت سبب ګرځی۔

قَالَ اِنَّ اللّٰهَ اصۡطَفٰىهُ عَلَيۡكُمۡ وَزَادَهٗ

اُویل هغه یقیناً الله تعالیٰ غوره والے ورکړیدے ده لره په تاسو باندے او زیاتی کړیدے ده ته زیاته

بَسۡطَةً فِى الۡعِلۡمِ وَالۡجِسۡمِ‌ؕ وَاللّٰهُ

فراخی په علم او جسم کښ او الله تعالیٰ

يُؤۡتِىۡ مُلۡکَهٗ مَنۡ يَّشَآءُ‌ؕ وَاللّٰهُ

ورکوی بادشاهی خپله چالره چه او غواړی او الله تعالیٰ

وَاسِعٌ عَلِيۡمٌ ﴿۲۴۷﴾

فراخ فضل والا دے عالم دے په هر څه باندے۔

۲۴۷ په دے آیت کښ اجابت دے د دے قول چه اِبۡعَثۡ لَنَا مَلِکًا، او دَبنی اسرائیلو قباحت ذکر دے چه هغوی دَ خپل نبی قول په خپلے رائے سره رد کړے وؤ۔ او دا رنګ په دیکښ دَ امیر دَپاره دَ صفاتو شرعیو ذکر دے۔

اِنَّ اللّٰهَ قَدۡ بَعَثَ لَكُمۡ طَالُوۡتَ مَلِکًا، په دیکښ تاکید دے په ذکر دَ لفظ دَ اِنَّ سره او صریح نسبت دے الله تعالیٰ ته او په لفظ دَ قَدۡ سره اشاره ده چه دا انتخاب دَ طالوت بادشاه دَ نبی په رائے سره نه دے۔ په تورات کښ یۓ دَ هغه نوم شاؤل ذکر کړیدے نو طالوت دَ هغه لقب وو۔ یا دَ قرآن په اصطلاح کښ او یا مخکښ دَ بادشاهئ دَ هغه نه په خپل قوم کښ دا دَ هغه لقب وو۔ مَلِکًا نه مراد امیر دَ لښکر دے (مجاهد)۔ قَالُوۡۤا اَنّٰى يَكُوۡنُ لَهُ الۡمُلۡكُ عَلَيۡنَا، دا کلام دَ دوی په طریقه دَ تعنت سره رد دے دَ انتخاب دَ الله تعالیٰ او دَ قول دَ نبی دَ الله تعالیٰ او دا عادت دَ بنی اسرائیلو دے چه تقدیم دَ مفضول په فاضل باندے نه منی او فقیر انسان ته سپک کوری او اعتبار نسب ته ورکوی ځکه چه په دوی کښ دَ مخکښ نه دوه خاندانونه مشهور وو یو خاندان (کورنئ) دَ نبوت چه هغه اولاد دَ لاوی بن یعقوب علیه السلام وو۔ او بله کورنئ دَ ملکیت وه چه اولاد دَ یهودا وو۔

نو دوی نسب ته اعتبار ورکړو او نسب او مال اړی خو اسباب ضعیفه دی په مقابله د لوئے سبب کښ چه هغه قول د الله تعالیٰ او د هغه د رسول دے۔ او تقدیر او قضاء الٰهی ده۔ او الله تعالیٰ فرمائیلی دی چه اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقَاكُمْ (یقیناً عزت مند ستاسو نه په نیز د الله تعالیٰ زیات تقوی والا دے) او صحیح حدیث کښ واردی چه لَا فَضْلَ لِعَرَبِيٍّ عَلٰى عَجَمِيٍّ وَلَا لِعَجَمِيٍّ عَلٰى عَرَبِيٍّ اِلَّا بِالتَّقْوٰى (نیشته غوره والے د عربی په عجمی باندے او نه د عجمی په عربی باندے مګر په تقوی سره) (ابو حیان)۔ او دا عادت د بنی اسرائیلو او س هم د دے امت په بعضے جاهلانو کښ شته دے چه مال ارئ او نسب له په دینداری باندے غوره والے ورکوی۔ وَنَحْنُ اَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ، دا هم مستلزم دے اعتراض کولو له په الله تعالیٰ باندے چه الله تعالیٰ زیات حقدار او غوره شخص ته حق نه دے ورکړے۔ او دا رنګ داخپله تزکیه کول دی بے ځایه۔ او دا دواړه هم قبیح اخلاق دی۔ او دلته دعوی حقیقتاً په اعتبار د نسب او د مال سره ده۔ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ، دا هم دوی د بادشاهئ نه مانع ذکر کوی (چه هغه فقیری او غریبي ده) د دوی په ګمان کښ۔ او دا خوی او خصلت د مال ارو اوس هم په یهودیانو کښ شته دے۔ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ، دا جواب دے د دے قول د دوی چه نحن احق بالملك۔ یعنی دا انتخاب ما د ځان نه نه دے کړے بلکه پدے باندے امر د الله تعالیٰ دے او دا یقینی حجت دے او الله تعالیٰ په مصلحتونو د خلقو باندے ښه عالم دے۔ نو د طالوت په انتخاب کښ ډیر حکمتونه دی۔ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ، دا رد دے د هغوی په قول باندے چه لَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ، یعنی شریعت فضیلت په مال ارئ سره نه دے ورکړے بلکه په زیادت د علم او جسم سره دے۔ او دا د انتخاب د امیر او بادشاه د پاره

وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ

او ويل دوی ته نبي د دوی يقيناً نخه د بادشاهۍ د ده

أَنْ يَأْتِيَكُمُ التَّابُوتُ فِيهِ سَكِينَةٌ

دا ده چه رابشي تاسو ته صندوق چه په هغې کښې آرام د زړونو وی

مِّنْ رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ آلُ

ستاسو د رب د طرف نه او باقي به وی د هغې نه چه پريخودلے دے آل

مُوسَىٰ وَآلُ هَارُونَ تَحْمِلُهُ الْمَلَائِكَةُ ۚ إِنَّ

د موسیٰ او آل د هارون علیهما السلام را اوچت کړے به وی ملائکو يقيناً

ع ۳۲ ۱۶ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٤٨﴾

په دیکښ ضرور نخه ده تاسو لره که چرے تاسو مومنان يئ۔

شرعي صفات دی۔ او اَلْعِلْمِ نه مراد علم او پوهه د تن بیر د جنګ او سیاست د رعیت دے او دا په علم د وحی او د دین سره حاصلیږی او اَلْجِسْمِ نه مراد خائسته او روغ بدن دے او زیات طاقت او صبر په حال د جنګ۔ ځکه چه زیادت د ظاهری جسم په لیدو نکی باندے رعب او هیبت اچوی او زیادت معنوی ډیر والے د خیر او د شجاعت دے (ابن کثیر، قرطبی) او دا صفات په خلفاء راشدینو او معاویه رضی الله عنهم کښې هم پوره موجود وو دا رنګ د هغوی نه روستو په نورو خلفاؤ کښې هم موجود وو اګر چه د صحابه کرامو نه کم وو)۔ وَاللّٰهُ يُؤْتِي مُلْكَهُ مَنْ يَّشَاءُ، دا هم د هغوی د نبی په کلام کښې داخل دے۔ او دا تاکیدی رد دے د هغوی په مخالفت کولو باندے ځکه چه الله تعالیٰ فاعلِ مختار دے نو د هغه په انتخاب باندے اعتراض نشی کیدے۔

وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ، په دیکښ رد دے د هغوی په اعتراض یعنی الله تعالیٰ وسیع او فراخ فضل والا دے نو په فقیر او غریب شخص باندے هم فضل کوی۔ او په حقدار د بادشاهۍ او مشرۍ کولو باندے ښه علم لری۔

ت۲۴۸ په دے آیت کښ دَالله تعالیٰ دَطرف نه په حقانیت دَ طالوت دَبادشاهئ باندے یو علامت ذکر کوی - او دا تنزول دَ برکاتِ الٰهیه دے په سبب دَحق مَلِك (بادشاه) سره.
وَقَالَ لَهُمْ، ظاهر دا ده چه دوی دَ تعنت دَ وجے دَخپل نبی نه یو علامت غوښتلے وو تو دَ هغے په جواب کښ دا علامت راغے. او مخکښ ذکر شوی دی چه دَ دوی دَ عصیان دَ وجے دُشمنانو (عمالقو. فلسطینیانو) دَ دوی نه تابوت قبضه کړیو و. نو دَهغه تابوت بغیر دَ جنګ نه واپس راتلل او بغیر دَ ظاهری اسبابو نه (په واسطه دَ ملائکو سره) راتلل ضرور یو معجزه وه او په هغے کښ دننه هم امور معجزانه موجود وو. او موجوده تورات کښ په سفر صمویل کښ دَ تابوت دَ واپس راتللو وجه او طریقه یے ذکر کړیده. او مفسرینو هم دَ هغے دَ پاره مختلفے قصے ذکر کړی دی.
اَنْ یَّاْتِیَکُمُ التَّابُوْتُ، تسبت تابوت ته دَ راتللو مجاز دے. تابوت صندوق او بکسے ته وئیلے شی او دَ الف لام نه معلومیږی چه دا په تیز دَ بنی اسرائیلو معلوم او معروف وو او دا هغه وو چه په هغے کښ اصل الواح دَ تورات دَ موسیٰ علیه السلام دَ وخت نه پراته وو او هغے ته تابوت الشهادت وئیلے کیدلو.
فِیْهِ سَکِیْنَةٌ مِّنْ رَّبِّکُمْ، په ضمیر دَ فِیْهِ کښ دوه اقوال دی اول قول دا دے چه ضمیر راتللو دَ تابوت ته راجع دے چه دَ هغه راتلل په خرق عادت (نا آشنا طریقے) سره وو. دویم دا چه ضمیر تابوت ته راجع دے یعنی په تابوت کښ دننه معجزانه څیزونه پراته وو. سَکِیْنَةٌ، دَ سکون نه اخستلے شویدے په معنیٰ دَ اطمینان او وقار لکه چه په حدیث دَ ورتللو دَ مونځ دَ پاره کښ وارد دی چه عَلَیْکُمْ بِالسَّکِیْنَةِ، او په حدیث دَ براء رضی الله عنه کښ دی تِلْكَ السَّکِیْنَةُ تَنَزَّلَتْ لِلْقُرْاٰنِ، او په حدیث دَ اُسید بن حضیر رضی الله عنه کښ دی تِلْكَ الْمَلَآئِکَةُ کَانَتْ تَسْتَمِعُ لَهٗ نو معلومه شوه چه په اول حدیث کښ مراد دَ سکینه نه اصحاب السکینه دی چه هغه ملائک دی. نو دلته هم تابوت

او دَ هغې راتلل سبب وو دَ اطمینان دَ هغوی دَ زړونو په باره دَ طالوت کښې - دا رنګ سبب دَ سکون دَ زړونو دَ دوی وو په حالت دَ جنګونو کښې - ځکه چه دا معجزه وه یا په دیکښې کتاب دَ الله تعالیٰ پروت وو - وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ اٰلُ مُوسٰى وَ اٰلُ هٰرُوْنَ، بقیه په اصل کښې هغه زیاتی څیز دے چه پاتے شوے وی دَ څه ډیر څیز نه او کله نفیس او عمده ( شُکلے ) څیز ته هم وئیلے شی - او دلته دَ دے په مصداق کښې ډیر اقوال دی - ۱ـه عصا (کونټۍ) دَ موسیٰ علیه السلام او جامے دَ هغه او دَ هارون علیه السلام ۲ـه عصا دَ موسیٰ علیه السلام او پګړۍ دَ هارون علیه السلام ۳ـه علم او تورات (مجاهد او عطاء) ۴ـه جهاد فی سبیل الله او په هغې پاندے امر دَ الله تعالیٰ (ضحاک) په اضافت دَ آل موسیٰ او آل هارون کښې مضاف او مضاف الیه دواړه داخل دی یعنی نفس دَ موسیٰ او هارون علیهم السلام او دَ هغوی اهل بیت او تابعداران - او ابوحیان وئیلی دی چه مراد دَ دینه هغه انبیاء علیهم السلام دی چه په اولاد دَ دے دواړو کښې راغلی وو تو دغه څیزونه هغوی دَ یو بل نه په توارث (وراثت) سره نقل کړی وو او په تابوت کښې پراته وو - تر دے پورے چه عمالقو دَ دوی نه قبضه کړل -

تَحْمِلُهُ الْمَلٰٓئِكَةُ، دا جمله حالیه ده یا مستانفه ده او دا هم دلالت کوی په عظمت شان دَ دغه تابوت پاندے یعنی ملائکو هغه تابوت راوړو (تو) ظاهری اسباب یئے نه وو او دَ طالوت په خوا کښې یئے کیښودلو - اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ، په ذٰلِكَ کښې دَ تابوت راتلو ته اشاره ده - اٰيَةً نه مراد دا چه دا دلیل دے ستاسو دَ پاره په باره دَ بادشاهئ دَ طالوت کښې - دا رنګ علامت دے دَ پاره دَ نصرت دَ الله تعالیٰ تاسو سره په مقابله دَ دُشمن کښې - اِنْ دَ شرط دَ پاره دے ځکه چه دیته آیت هله وئیلے شی چه څوک صحیح ایمان لری په الله تعالیٰ او دَ هغه په قدرت او په معجزاتو او ملائکو باندے - یا مؤمنین په معنیٰ دَ تصدیق

کئ ونکو دے په بادشاهئ دَ طالوت یاندے۔

فائده ۱:- لفظ دَ سکینه په قرآن کریم کښ شپږ کرته ذکر دے اول دا آیت بیا په سورة توبه سنه ۲۶، سنه ۴۰ او سورة فتح سنه ۴، سنه ۱۸، سنه ۲۶ کښ۔ او په دے روستو پنځه واړه آیتونو کښ په نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو باندے انزال دَ سکینه ذکر دے نو معلومه شوه چه دا عظیم نعمت دے دَ الله تعالیٰ۔ دا رنګ لفظ دَ بقیه په قرآن کریم کښ درے کرته ذکر دے اول دا آیت دویم سورة هود سنه ۸۶ سنه ۱۱۶ په دے دواړه آیتونو کښ دَ اکثر مفسرینو په نیز باندے دَ بقیه نه مراد طاعت دَ الله تعالیٰ او علم دَ دین او عقل او پوهه ده. نو معلومه شوه چه په دے آیت کښ هم دَ بقیه نه مراد علم دے یعنی علم دَ موسیٰ او هارون علیهما السلام دَ تورات نه علاوه (ځکه چه تورات خو مصداق دے دَ سکینت دَ پاره) او دا سے علم ته علم دَ حدیث دَ انبیاء کرامو وئیلے شی۔ او صاحب اللباب وئیلی دی چه دَ بقیه نه مراد دَ موسیٰ او هارون علیهما السلام دین او شریعت دے۔ یعنی په سبب دَ دغه تابوت سره دَ دوی باقی دین او شریعت منظم کړے شو. نو حاصل دا شو چه په دغه تابوت کښ دَ الله تعالیٰ کتاب (تورات) وو او دَ بنی اسرائیلو دَ انبیاؤ احادیث وو۔ او دا دواړه سبب دَ اطمینان دَ زړونو دے او په دیکښ آیات الٰهیه هم شته دے او دیته برکاتِ الٰهیه وئیلے شی۔ چه دَ طالوت په وجه سره بنی اسرائیلوته دا برکات واپس راغلل۔ نو معلومه شوه چه دَ صالح او نیک امیر او بادشاه دَ وجے نه په ملک او وطن کښ علوم دَ کتاب الله او احادیث دَ نبی عام کیږی او خوشحالی راځی۔

فائده ۲:- سوال: هر کله چه دَ بقیه نه مراد عصا دَ موسیٰ علیه السلام او جامے او پګړئ دَ هارون علیه السلام شی او دَ هغے په وجود سره دَ زړونو سکون او اطمینان او نصرت الٰهیه حاصلیدلو نو دَ دینه ثابته شوه چه تبرک نیول په څیزونو

د پیغمبرانو سره جائز دی؟ - جواب نمبر ۱ :- مخکښې معلومه شوه چه دلته غوره تفسیر دا دے چه د دینه د هغوی علم او دین او شریعت مراد دے - او کتاب د الله تعالیٰ او احادیث د انبیاؤ علیهم السلام او دین او شریعت سبب د برکاتِ الٰهیه دے په یقین سره - جواب نمبر ۲ :- که چرے صحیح ثابت شی چه دغه څیزونه عصا او جامے، پګړئ وغیره وے نو هم د دینه انکار نشی کیدے ځکه چه په اشیاؤ د انبیاؤ تبرک حاصلول جائز دی او د دے دلیل دا دے چه صحابه کرامو به د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د اوددس استعمال کړے شوے اوبو سره او د هغه په ویښتو مبارکو سره تبرک حاصلولو - د دے په باره کښې ډیر احادیث وارد دی - لیکن د دے تبرک د پاره شرطونه او شرعی طریقه ضروری ده - اول شرط دا دے چه په صحیح سند سره ثابت وی چه دغه جامه، پیزار، عصا او ویښته وغیره د نبی صلی الله علیه وسلم دی ځکه چه صحیح سند ئے نه وی او هسے په خلقو کښې مشهور وی کیږی نو افتراء راځی څه رنګه چه د حدیث د پاره صحیح سند ضروری دے نو دغه شان د دے څیزونو د صحت د پاره هم صحیح سند ضروری دے - دویم شرط دا دے چه تبرک په شرکی طریقے سره نه کوی لکه چه بعضِ جاهلان د داسے څیزونو نه طوافونه کوی او د هغے نذرانې پیش کوی او هغے ته سجدے کوی او سرونه ورته ښکته کوی او د هغے عرسونه او میلے جوړوی وغیره - دریم شرط دا دے چه هغه به د برکاتو د پاره یو مستقل مؤثر سبب نه ګڼړی ځکه چه د برکت په طور د فاعلیت صرف الله تعالیٰ ته نسبت کیدے شی لکه چه د دے تفصیل مونږ په تنشیط الاذهان فی اصول تفسیر القرآن باب شرک فی البرکات کښې ذکر کړیدے - څلورم شرط دا دے چه څیزونه د غیر معصوم اشخاصو په جواز د تبرک کښې په څیزونو د انبیاؤ علیهم السلام باندے نه قیاس کوی اګرچه بعضِ علماؤ د دے د جواز قول کړیدے لیکن په دیکښې

دَ هغوی سره هیڅ دلیل نیشته سیوا دَ قیاس کولو نه په څیزونو دَ پیغمبرانو اوحال دا چه قیاس مساوات غواړی۔او په څیزونو دَ معصوم (نبی) او غیر معصوم کښې خو ډیر فرق دے۔او شاطبی په کتاب الاعتصام جلد ۲ صفحه ۸ باندے ذکر کړیدی حاصل ئے دا دے چه دَ صحابه کرامو اجماع ده چه هغوی دَ غیر انبیاؤ په څیزونو تبرك نه دے طلب کړے لکه څیزونه دَ ابوبکر او عمر رضی الله عنهما او نور مشران صحابه شول۔او دَ دے نه کولو دوه وجے دی۔اوله وجه دا چه دَ هغوی په علم کښې ثابت دی چه دا تبرک حاصلول مختص دی په اشیاؤ دَ پیغمبرانو پورے او نور خلق په هغوی باندے نشی قیاس کیدے۔دویمه وجه دا ده چه هغوی دَ غُلُو کولو او دَ شرک پیدا کیدلو نه یره کوله۔دَ دے وجه نه عمر رضی الله عنه هغه اونه پرے کړه چه خلقو ګمان کوو چه دا هغه اونه ده چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ دے دَ لاندے دَ صحابه کرامو نه بیعت الرضوان اخستلے وو نو دے خلقو به دَ هغے لاندے بیا مونځونه کول نو عمر رضی الله عنه دَ هغے دَ پرے کولو حکم صادر کړو او هغه لارئے هم بنده کړه۔او نن زمانه کښې ډیر جاهلانو دَ خپلو پیرانو دَ چیلے ځایونه او دَ هغوی دَ عبادت ځایونه داسے برکت والا ګنړلے دی لکه کعبه شریفه۔او دغه ځایونو ته سفرے هم کوی۔اهل علمو او ذمه دارکسانو له پکار دی چه دَ شرک پیدا کیدلو داسے دروازے بندے کړی چه خلق په شرک کښې واقع نشی او خلقوته ترغیب ورکړی چه دَ قرآن وصحیح احادیثو ته علمی تبرکات او فوائد حاصل کړی۔دا سے تفصیلات شاطبی په کتاب الاعتصام کښې او مولانا عبدالحئ لکهنوی په مجموعة الفتاوی جلد اول صفحه ۲۷۸ کښې لیکلی دی۔

فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِالْجُنُودِ ۙ قَالَ

نو هر کله چه او وتلو طالوت (د ښار نه) سره د لښکرو نه اُویل ئې

إِنَّ اللَّهَ مُبْتَلِيكُم بِنَهَرٍ فَمَن شَرِبَ

یقیناً الله تعالیٰ امتحان کوی په تاسو باندے په یو سیند سره نو چا چه او څکلو

مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّي ۖ وَمَن لَّمْ يَطْعَمْهُ

د هغې نه نو نه به وی دے زما نه او چا چه او نه څکلے د هغې نه

فَإِنَّهُ مِنِّي إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً

نو یقیناً دے به وی زما نه مګر هغه څوک چه ډک ئې کړو یو چونګ

بِيَدِهِ ۚ فَشَرِبُوا مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا

په لاس خپل سره نو او څکلے دوی د هغې نه مګر لږ کسانو

مِّنْهُمْ ۚ فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ

د دوی نه نو هر کله چه پورے وتلو دے (د نهر نه) او هغه کسان چه

آمَنُوا مَعَهُ قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا

ایمان ئې راوړے وو د هغه سره اُویل دغه پاتے شوو خلقو طاقت نیشته مونږ لره

الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ ۚ قَالَ

نن د جالوت او د هغه د لښکر سره اُویل

الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو اللَّهِ

هغه کسانو چه دوی ګمان کوۀ چه یقیناً دوی مخامخ کیدونکی دی د الله تعالیٰ سره

كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً

ډیر کرته ډله لږه غالب شوے ده په ډله

كَثِيْرَةً ۢ بِإِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ مَعَ
ډیرہ باندے پہ حکم دَ اللہ تعالیٰ سرہ او اللہ تعالیٰ خاص ملګرے

الصّٰبِرِيْنَ ﴿۲۴۹﴾
دَ صبر کوؤنکو دے۔

س۲۴۹ پہ دے آیت کښ دَ طالوت بادشاہ سیاست ذکر کوی پہ بارہ دَ صفایئ دَ فوجیانو کښ چہ کمزوری ( دُنیا پرست او دَ امیر نافرمان ) دَ بهادرانو او نیکانو نہ جدا شی دے دَ پارہ چہ پہ قتال کښ کامیابی حاصلہ شی۔ هرکله چہ دوی دَ قتال دَ انتظام دَ پارہ بادشاہ طلب کړے وو۔ نو روستو دَ انتخاب او تصدیق دَ هغه نہ پہ راتللو دَ تابوت سرہ اوس تیاری دَ قتال شروع شوہ۔ فَصَلَ ، دلته لازمی دے پہ معنیٰ دَ اِنْفَصَلَ او خَرَجَ سرہ یعنی جدا شو او اووتلو دَ ښار دَ آبادئ نہ۔ یا دا متعدی دے او مفعول ئے پټ دے یعنی فَصَلَ نَفْسَهٗ۔ بِالْجُنُوْدِ ، دا باء دَ مصاحبت دَ پارہ دہ یا دَ تعدیت دَ پارہ دہ۔ جُنُوْد جمع دَ جند دہ۔ دَ مخلوق هر قسم تہ جُند وئیلے شی۔ ډیر ملخانو تہ جُند وئیلے شوی دے۔ ارواحو تہ هُم جُنُوْدٌ مُّجَنَّدَةٌ وئیلے شوی دے۔ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ ، دَ قَالَ فاعل طالوت دے او دا قول دَ اللہ تعالیٰ دَ طرف نہ وحی دہ لیکن طالوت دَ شمویل علیہ السلام وحی نقل کړہ ځکه چہ دَ بادشاہ کار دا وی چہ پہ رعیت کښ بہ دَ اللہ تعالیٰ دَ وحی نفاذ کوی۔ مُبْتَلِيْكُمْ ، پہ دے ابتلاء او امتحان کښ دوہ فائدے دی اوله دا چہ تمیز راشی پہ مینځ دَ مطیع او دَ عاصی او کمزوری او بهادر کښ۔ دویمه فائدہ دا دہ چہ دوی عادت شی پہ سختو باندے دَ صبر کولو سرہ او ابتلاء دَ اللہ تعالیٰ دَ خلقو دَ اعلام او دَ فائدے دَ پارہ وی۔ اللہ تعالیٰ دَ هغے نہ علم او فائدے اخستلو تہ محتاج نہ دے۔ دَ نهر پہ بارہ کښ ماجدی وئیلی دی چہ دا نهر یردن ( اردن ) دے چہ پہ فلسطین کښ بهیږی او دَ شمال نہ

جنوب طرف بحر مروه ته ور پر یوځی - اول سرکښی یې اوبه خوږې
او صفادی او مخکښې چه لاړے شی تو بیا یې اوبه خرابیږی -
او ابتلاء دا سے وه چه موسم د گرمئی وو او دا صحرا وو او د دوی
سره اوبه لږے وے تو په دوی پاندے تنده راغله - نو طریقه
د ابتلاء دا سے وه چه - فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّي ، د شرب نه
روستو چه مِنْ راشی نو دلالت کوی په کرع پاندے - ( پر مخے
د نهر اوبه څښکل ) لیکن کله عام هم استعمالیږی دلته په
کرع پورے خاص نه دے په روستو قرینے سره - مِنِّي کښې مِنْ
د تبعیض د پاره راغی یعنی ټکره او مراد د دینه جماعت او تابعداری
کول دی او دا دا سے دے لکه چه سورة آل عمران ۲۸ کښې ذکر دے
چه فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِي شَيْءٍ - او په سورة انعام ۱۵۹ کښې -
وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهُ مِنِّي ، طعم په اصل کښې ذوق (سکلو) ته
وائی او ذائقه سکل د طعام او مشروب دواړو کیږے شی -
سوال :- وَمَنْ لَّمْ يَشْرِبْ یې ولے او نه وئیلو ؟
جواب :- نفی د طعم مستلزم ده نفی د شرب لره ځکه دا هم طعم
دے چه اوبه په خوله کښې واچوی او بیا یې اوباسی نو وئیلے شی
چه د اوبو خوند یې اوڅکلو لیکن شرب ورته نشی وئیلے - نو په
دے نفی کښې مبالغه ده چه شرب خو په بالکل نه کوی لیکن
څکل قدرے به هم نه کوی او ابن عطیه وئیلی دی چه په
دیکښې پټ ولو د ذرائعو د حراموته اشاره ده -
سوال :- دلته یې لَمْ يَطْعَمْهُ او وئیلو لَمْ يَطْعَمْ مِنْهُ یې نه دے وئیلے ؟
جواب :- مخکښې یې شَرِبَ مِنْهُ وئیلے وُو نو ظاهر دا ده چه کرع
منع ده نو دلته یې مِنْ حذف کړو چه معلومه شی چه شرب په
کرع سره او بغیر د کرع نه دواړه منع دے - او بله وجه دا ده چه
استثناء متصل د اِغْتَرَفَ هم صحیح شی ځکه چه هغه خو په
واسطه د لاس سره شرب دے کرع نه ده -
اِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهٖ ، دا استثناء ده د اولے جملے نه یعنی
فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ ، ځکه چه په هغے کښې حرمت وو د شرب نو په

استثناء سره اباحت ثابت شوکړ بوغرفے (چونګ) او دویمه جمله په مینځ کښ معترضه ده - او متمم ده د اولے جملے د پاره ځکه چه د استثناء نه مخکښ یئے راوړے ده - غُرْفَةً په پیښ د غین سره په معنیٰ د مفعول دے او دا وزن استعمالیږي د لږ څیز د پاره لکه لُقْمَةً. او په زور د غین سره مصدر دے د یو کرت د پاره مبرد وئیلی دی چه په زور سره عام دے لږ او ډیر دواړو ته شامل دے او په پیښ سره خاص دے په ډک چونګ پورے - بِيَدِهٖ، تفسیر دے د غُرْفَةً چه په یو لاس سره مراد دے په دواړه لاسه (لپه) سره مراد نه ده - د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه چا صبر اوکړو په هغه غرفه باندے نو الله تعالیٰ په هغے کښ برکت واچوو - او دا معجزه وه د نبی یا کرامت وو د طالوت - فَشَرِبُوا مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ، دلته په مِنْهُ سره اشاره ده چه دوی د حرص د وجے نه په کرع سره اوبه اوڅښکلے یعنی سر یئے په نهر باندے ورختله کړو او ځان یئے ښه موړ کړو - د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه قلیل دوه قسمه وو یو قسم ډیر صبر ناک وو نو هغوی بالکل اونه څښکلے او په عزیمت باندے عمل اوکړو - دویم قسم لږ صبر والا وو. نو هغوی اکتفا اوکړه یو چونګ سره نو دوی په رخصت باندے عمل اوکړو - او په حدیث د بخاری کښ ثابت ده چه دا قلیل په مقدار د عدد د اصحاب بدر وو یعنی درے سوه دیارلس کسان وو - فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ، ظاهر د آیت نه او قول د ابن عباس رضی الله عنهما نه معلومیږی چه پورے وتونکی صرف هغه کسان وو چه شرب (څښکل) یئے نه وو کړے یا یئے په یو چونګ باندے اکتفا کړیوه - او الَّذِينَ آمَنُوا نه مراد کامل ایمان والا دی - مَعَهُ نه مراد تابعداری د هغه د حکم ده یا ملګرتیا ده په پورے وتلو کښ - قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ

وَجُنُوْدِهٖ، دلته عبارت پټ دے یعنې ایمان والو پاتے کیں وتکو ته آواز ورکړو چه راشئ قتال فی سبیل الله ته نو دوی جواب ورکړو چه لَاطَاقَةَ لَنَا اُځکه دوی ته قوت دَجالوت دَ مخکښ نه معلوم وو نو دَ هغه وخت نه دَ دوی په زړونوکښ پټه یره پرته وه لیکن په سبب دَ گناه کولو (چه ځښکل دَ اُوبو وُو) دَ دوی جبن (بزدلی) ښکاره شو او دېته په حدیث کښ وَهَن وئیلے شی او دَ هغې تفسیر په یره کولو سره دَ مرگ نه او په محبت دَ دُنیا سره کړے شوے دے۔ جالوت دَ فلسطینیانو پادشاه وو۔ او دَ یهودیانو په کتابونوکښ هغه ته جُلیات وئیلے شوے دے۔ قَالَ الَّذِیْنَ یَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوا اللّٰهِ، دَ لقاء الله نه مراد مرگ دے دَ الله تعالٰی په لاره کښ او ظن په خپله معنٰی سره دے۔ یا دَ دینه مراد ملاقات دے دَ ثواب دَ طاعاتو سره چه هغه جنت دے او ظن پخپله معنٰی سره دے۔ یا دَ لقاء الله نه مراد بعث بعد الموت دے او ظن په معنٰی دَ یقین سره دے۔ الَّذِیْنَ یَظُنُّوْنَ نه مراد هغه خلق دی چه دَ طالوت سره پورے وتلی وو۔ اشاره ده چه سبب دَ طاعت او دَ بهادرئ دَ دوی عقیده دَ بعث بعد الموت وه۔

كَمْ مِّنْ فِئَةٍ قَلِیْلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِیْرَةًۢ بِاِذْنِ اللّٰهِ، دَ دوی په دے قول کښ مقصد تیزی ورکول وو دغه منکرو ته په قتال فی سبیل الله باندے۔ او ردوُ دَ یره کؤونکو ته دَ جالوت او دَ لښکرو دَ هغه نه۔ كَمْ دلته دَ تکثیر دَ پاره دے۔ فِئَةٍ جماعت دَ خلقو ته وئیلے شی دَ فِیْئٌ نه اخستلے شوے دے او رجوع ته وئیلے شی یعنې دَ یو بل نه رجوع کوی۔ بِاِذْنِ اللّٰهِ کښ اذن په معنٰی دَ نصرت او دَ توفیق سره دے۔ نو په آیت کښ اشاره وه چه دَ کثرت دَ دشمن دَ وجے نه قتال پریخودل جائز نه دی۔ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِیْنَ، دا قول دَ هغوی دے یا قول دَ الله تعالٰی دے او مقصد پکښ تیزی ورکول دی په صبر باندے۔

وَلَمَّا بَرَزُوا لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالُوا

او هر کله چه دوی بسکاره شول مقابلې د جالوت او د لښکرو د هغه ته اُویل دوی

رَبَّنَآ أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ

اے ربه زمونږه راتوے کړے په مونږ باندے صبر او کلک کړے

أَقْدَامَنَا وَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴿۲۵۰﴾

قدمونه زمونږ او غلبه را کړے مونږ ته په قوم کافرانو باندے۔

ت۲۵۰ په دے آیت کښې مقصد د تعلیم د دُعا دے د میدان د قتال د پاره۔ بَرَزُوا، براز ډاګے زمکے ته وئیلے شي۔ او مبارزه دا ده چه په میدان جنګ کښې جنګ کوونکی یو بل ته ښکاره شي د مقابلے د پاره۔ رَبَّنَا، دا لفظ د زیادت تضرع د پاره دے او د اصلاح د خپلو احوالو د پاره طلب دے د الله تعالیٰ نه۔ أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا، افراغ د لوخی نه د اوبو راتویول دی تردے پورے چه لوخے خالی شي۔ او لفظ د عَلٰی اشاره ده استعلاء د صبر ته نو افراغ دلالت کوی په ډیر والی باندے او عَلٰی دلالت کوی په غلبه او احاطے د صبر باندے او صَبْرًا نکره دلالت کوی په عظمت د هغے باندے۔ وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا، د خپو تثبت د زړونو د پوخوالی نه پیدا کیږی۔ او هغه صبر دے۔نو صبر د زړه سبب دے د پاره د کلکوالی د خپو او مراد د دے نه بچکیدل دی د تیښتے کولو نه د میدان جنګ نه۔ وَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ، د نصرت نه روستو لفظ د علی د پاره د معنے د غلبے دے۔ او نصرت عام دے که په پیدا کولو د اسبابو د جنګ سره وی او که په نصرت غیبی سره وی۔ یعنی مجاهد فی سبیل الله سره د صبر او استقلال نه نصرت الٰهیه ته محتاج دے۔

فَهَزَمُوْهُمْ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۙ۫ وَقَتَلَ دَاوٗدُ

نو شکست ورکړ دوی هغوی لره په مدد د الله تعالیٰ سره او قتل کړو داؤد علیه السلام

جَالُوْتَ وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ

جالوت لره او ورکړے وه الله تعالیٰ هغه ته بادشاهي

وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهٗ مِمَّا يَشَآءُ ؕ

او نبوت او علم یې ورکړے وؤ هغه ته د هغه نه چه الله تعالیٰ غوختلو

وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ

او که چرے نه وے دفع کول د الله تعالیٰ خلقو لره بعضو لره (کافران)

بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْاَرْضُ وَلٰكِنَّ

په بعضو سره (مؤمنان) ضرور ورانه شوے په وے زمکه او لیکن

اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۵۱﴾

الله تعالیٰ فضل والا دے په ټولو خلقو باندے۔

۲۵۱ په دے آیت کښ هزیمت د دُشمن ذکر دے۔ او د هغے نه روستو په داؤد علیه السلام باندے جمع د بادشاهئ او نبوت دواړو اُوشوه۔ او بیا حکمت د قتال او نصرت الٰهیه ذکر دے چه هغه دفع کول د فساد دی په زمکه کښ۔

فَهَزَمُوْهُمْ، فا دلالت کوی په سببیت د مخکښ د پاره د روستو یعنی اطاعت د هغے لږ وکسانو د خپل امیر او توکل په الله تعالیٰ باندے، او دُعا د صبر او د نصرت په دُشمنانو باندے د غلبے سبب شو۔ بِاِذْنِ اللّٰهِ، هر کله چه اسباب پخپله په تاثیر کښ الله تعالیٰ ته محتاج دی نو ځکه یې ورسره اذن الٰهی ذکر کړو۔ هزم په اصل کښ ماتولو ته وئیلے شی او دلته ماتولو نه مراد د هغوی زور ماتول او مغلوب کول دی۔ وَقَتَلَ دَاوٗدُ جَالُوْتَ، دا

دهغوی د هزیمت صورت دے یعنی په لښکر د طالوت کښ داؤد
بن ایشا یا ایسا یو شخص شریک وو چه د یهوذا بن یعقوب علیه
السلام د اولاد نه وو - او د هغه په لاس سره جالوت قتل کړے
شو - چه د هغے تفصیلی قصے مفسرینو لیکلی دی خو په قرآن یا سنت
کښ د هغے څه ذکر نیشته - او په دغه جنګ کښ جالوت سره تور هم
ډیر کسان د هغه د لښکر نه قتل کړے شو او باقی کسان ئے کمزوری
شول - وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهٗ مِمَّا يَشَآءُ، مخکښ ذکر
شوی وو چه په بنی اسرائیلو کښ د موسیٰ علیه السلام نه روستو
بادشاهی او نبوت په یو شخص نه وو جمع شوی - نو داؤد علیه
السلام اول نبی وو په بنی اسرائیلو کښ چه نبوت سره بادشاهی
هم ورکړے شوه - الْمُلْكَ نه مراد کامله بادشاهی ده داسے چه
د انسانانو د شان سره ښائی - وَالْحِكْمَةَ، ابن کثیر وغیره وئیلی
دی چه د دینه مراد نبوت دے - بل قول دا دے چه زبور
کتاب ترینه مراد دے - او چا وئیلی دی چه مراد د دینه
استعمال د هر هغه څیز دے چه مناسب وی د محل سره
او دا هم په نبوت سره حاصلیږی - وَعَلَّمَهٗ مِمَّا يَشَآءُ، نه
مراد زغرے جوړول دی په طریقه د معجزے سره لکه
په سورة سبا ۱۰ ۱۱ کښ ذکر دی - دارنګ د مارغانو په
خبرو پوهیدل او علم د دین او طریقے د فیصلو کولو او خائسته
آواز - یشاء ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے - او بعضو وئیلی
دی چه داؤد علیه السلام ته راجع دے - او دا فعل مضارع
په معنیٰ د ماضی ده په قرینه د عَلَّمَهٗ سره (قرطبی) -

وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْاَرْضُ،
دا ذکر د حکمت د قتال او د نصرت د الله تعالیٰ دے د مؤمنانو
سره - دلته دفع کوونکے ذکر دے چه الله تعالیٰ دے او بعضهم
بدل دے د الناس نه - او بعضهم کښ مراد مدفوع (دفع
کړی شویدی) - او ببعض کښ مراد مدفوع بِه دی - او
دا دفاع عامه ده ډیرو اقسامو ته - اول قسم دفاع کوونکی

انبیاء علیهم السلام او نور دعوت کؤونکی دَ دین چه کفر دَ کافرانو دفع کوی په اظهار دَ دلیلونو سره۔ دویم قسم دفع کوونکی امر بالمعروف او نهی عن المنکر کؤونکی دی چه منکرات او معاصی دفع کوی دَ خلقو نه۔ دریم قسم انبیاء علیهم السلام او خلفاء دَ مسلمانانو او ملائیک چه دَ دُنیا نه فسادونه او فتنے دفع کوی۔ څلورم قسم وجود دَ صالحینو مؤمنانو چه دَ دوی په وجے سره الله تعالیٰ دَ ډیرو خلقو نه تکالیف او مصیبتونه دفع کوی۔ دَ دے دَ پاره یو حدیث هم ذکر دے خو هغه ضعیف دے۔ پنځم قسم په یو صالح مسلمان شخص سره مصیبتونه دفع کوی دَ هغه دَ اولاد، قبیلے او محلے نه په دیکښ هم ضعیف حدیث شته لیکن دَ دے تائید په سورة کهف ۸۲ سورة فتح ۲۵ او سورة انفال ۳۳ کښ شته دے۔ شپږم قسم وجود دَ ابدالو دے چه په حدیث دَ علی او ابودرداء رضی الله عنهما کښ راغلی دی لیکن ابن قیم په المنار المنیف کښ وئیلی دی چه هغه حدیث ضعیف او منقطع دے۔ اووم قسم وجود دَ ګواهانو دے په فیصلو کښ چه دَ صحیح شهادت په سبب سره حقوق دَ مستحقینو حاصل شی او جګړے ختم شی۔ اتم قسم مجاهدین او مقاتلین فی سبیل الله دی چه په سبب دَ هغوی سره دَ کافرانو مشرکانو زور دفع شی او اسلام غالب شی۔ او دا مناسب ده دَ واقعے دَ داؤد علیه السلام سره په مقابله دَ جالوت کښ (دا اقوال صاحب اللباب، ابوحیان، ابن کثیر او قرطبی وغیره ذکر کړیدی) بیا صاحب اللباب وئیلی دی چه غوره دا ده چه دا جمله په اعتبار دَ عموم دَ لفظ سره دے ټولو ته شامل ده۔ لَفَسَدَتِ الْاَرْضُ، دَ عموم دَ الفاظو په وجے سره په دیکښ نظام معاش خرابیدل او فتنے، ګناهونه او تکالیف ډیریدل او باطلے دعوے کول او دَ کفر او کافرانو غالب کیدل ټول داخل دی۔ او دَ عبادت دَ الله تعالیٰ او دَ توحید مرکزونه خرابیدل او شاړیدل په سبب دَ سورة حج ۴۰ کښ داخل دی۔ تو دا جمله رد دے په

تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ

دغه آیاتونه دَالله تعالیٰ دی لولو مونږ لره په تا باندے

بِالْحَقِّ ؕ وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۵۲﴾

په حقه سره او یقیناً ته ضرور دَ رسولانو نه یئے۔

هغه چا باندے چه دعوت دَحق یا جهاد کولو ته فساد او دهشت گردی وائی بلکه دا خو عین اصلاح ده۔

وَلٰكِنَّ اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ، په دے استدراک کښ دفع دَ وهم دَ مقسد ده چه هغه خیال اُوکړی چه څما مقصد حاصل نه شو نو څه دَ فضل دَ الله تعالیٰ نه محروم شوم۔ حاصل جواب دا دے چه دغه مقسد هم په عالمینو او مخلوقاتو کښ داخل دے او فضل دَ الله تعالیٰ ټول عالم ته شامل دے۔ او په نیز دَ الله تعالیٰ دَ دهٔ فساد دفع کول دا په دهٔ باندے فضل دَ هغه دے۔

۲۵۲ په دے آیت کښ اثبات دَ صدق دَ آخری رسول الله صلی الله علیه وسلم دے یعنی اے نبی دَ دے تیر شوو واقعاتو ذکر خو په مخکنو کتابونو کښ شته لیکن تا خو کتابونه لوستلی نه دی او حال دا چه رشتینی او صحیح واقعات دِے بیان کړل دا دَ وجے دَ وحی دَ الله تعالیٰ نه تا ته۔ نو دا دلیل شو ستا په رسالت باندے۔

ربط:۔ مخکښ په واقعه دَ داؤد علیه السلام سره معلومه شوه چه دَ فساد دَ دفع کولو دَ پاره سبب قتال فی سبیل الله او نصرت دَ الله تعالیٰ دے نو اوس ذکر کوی چه دَ دفعے دَ فساد دَ پاره اصل ذریعه رسولان رالیږل دی او خاصکر آخری رسول صلی الله علیه وسلم۔ تِلْكَ، اشاره ده مخکښ ټولو آیتونو ته او بالخصوص هغه آیتونه چه دَ واقعے دَ طالوت او داؤد علیه السلام سره متعلق وُو چه هغه مشتمل وو په ډیرو عبرتونو او معجزاتو باندے۔ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ، دا دلیل دے چه تلاوت (لوستل) صفت دَ الله تعالیٰ دے بغیر دَ تمثیل او تاویل نه. بِالْحَقِّ، دا په معنیٰ دَ صدق او دَ هغه امر دے چه مطابق دے دَ واقعے سره

تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ

دغه رسولان غوره والي ورکړي دي مونږ بعضِ دَ دوی ته

عَلٰى بَعْضٍ ۘ مِنْهُمْ مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ

په بعضِ باندي بعضِ دَ دوی نه هغه څوک دی چه خبرې کړي دی الله تعالیٰ د دوی سره

وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ ؕ وَاٰتَيْنَا

او پورته کړي دی بعضِ دَ دوی نه په ډیرو درجو سره او ورکړي دي مونږ

عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ

عیسیٰ ځوي دَ مریم علیهما السلام ته ښکاره معجزات او کلک کړي دَي مونږ دي

بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ

په پاک روح سره او که چرې الله تعالیٰ غوښتلې

مَا اقْتَتَلَ الَّذِيْنَ مِنْ بَعْدِهِمْ

نو جنګونه به نه وُو کړي هغه کسانو چه روستو دَ دي رسولانو نه وُو

مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ وَلٰكِنِ

روستو دَ هغې نه چه راغلي وُو دوی ته ښکاره احکام او لیکن

اخْتَلَفُوْا فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ وَمِنْهُمْ

اختلاف او کړو دوی نو بعضِ دَ دوی نه هغه څوک دی چه ایمان یې راوړي دي او بعضِ دَ دوی نه

مَّنْ كَفَرَ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا ۘ قف

هغه څوک دی چه کفر یې کړیٰ او که چرې الله تعالیٰ غوښتلې نو جنګونه به نه وُو کړي دوی

وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ﴿٢٥٣﴾ ع

او لیکن الله تعالیٰ کوی هغه چه او غواړی۔

چه په کتابونو دَ اهل کتابو کښې ذکر دي ـ یعني په دیکښې القاء شیطاني او کهانت وغیره نیشته ـ وَ اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِیْنَ، دا عطف په طریقه دَ عطف دَ مسبب دے په سبب بانده او عطف دَ نتیجے دے په دلیل بانده ـ

۲۵۳ـ ربط ۱:ـ هر کله چه مخکښې آیت کښې دَ نبي صلی الله علیه وسلم صدق او تسلي ذکر شوه په بیان دَ حقانیت دَ هغه سره نو اوس تسلي ذکر کوي په اشارے کولو سره مصیبتونو دَ مخکنو رسولانو او دَ هغوی صبر و استقلال ته او دَ هغوی قتال کول دَ کافرانو سره ـ

ربط ۲:ـ هر کله چه المرسلین لفظ نه ظاهراً معلومه شوه چه ټول رسولان په مرتبه دَ رسالت کښې برابر دي نو اوس ذکر کوي چه دَ هغوی په مرتبو کښې تفاضل شته دے ـ

ربط ۳:ـ مخکښې دَ فساد دفع کولو دَپاره قتال في سبیل الله او رالیږل دَ آخري نبي (صلی الله علیه وسلم) ذکر شو نو اوس یو وهم دفع کوي ـ هغه وهم دا دے چه کیدیشي چه دَ فساد دَپاره سبب تفاضل دَ رسولانو وي او فرق دَ هغوی په احکامو شرعیو کښې ـ نو دا وهم دفع کوي چه دَ فساد سبب دَ رسولانو تفاضل نه دے ـ او دا تفاضل سبب دَ فساد گرځول نه دي پکار بلکه سبب دَ فساد خو اختلاف دَ خلقو دے په ایمان او کفر کښې ـ یعني فرعي اختلاف دَ فساد سبب نه دے بلکه اصولي (ایماني) اختلاف ئې سبب دے ـ

تِلْكَ الرُّسُلُ، تِلْكَ لفظ ئې مؤنث ذکر کړو په تاویل دَ جماعت سره ـ او په تِلْكَ کښې یو څو اقوال دي ـ اول قول دا چه مشار الیه هغه انبیاء دي چه په دے سورت کښې مخکښې ذکر شوي دي یعني ابراهیم، اسماعیل، اسحاق، یعقوب، شمویل او داؤد علیهم السلام ـ دویم قول دا چه دا هغه رسولان دي چه په لفظ دَ المرسلین کښې ذکر شو او دَ فساد دَ دفع کولو دَپاره الله تعالی رالیږلي وو ـ او په لفظ الرسل کښې هم دے

خصوصیت ته اشاره ده. فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰی بَعْضٍ، دا سے په
سورة بني اسرائیل ۵۵ کښې هم ذکر دی. قرطبي وئیلي دي چه
دا تفاضل ما سیوا د نبوت نه په نورو احوالو، معجزاتو، مهربانئ
د الله تعالٰی او عزتونه ورکولو کښې دے. او په وصف د رسالت
او نبوت کښې یو شان دی. تو په دے سره جواب اوشو د هغه
حدیث چه وارد دے (لَا تُفَضِّلُوْا بَیْنَ الْاَنْبِیَاءِ، وَلَا تُفَضِّلُوْنِيْ
عَلَی الْاَنْبِیَاءِ، وَلَا تُخَیِّرُوْا بَیْنَ الْاَنْبِیَاءِ) تو دا منع په اعتبار
د اصل نبوت سره ده. او نور څلور جوابونه ابن کثیر ذکر کړیدي.
مِنْهُمْ مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ، دا د بعض وجوهو د تفاضل تفسیر دے. او د
نبوت نه روستو د کلام الٰهي شرافت ډیر زیات دے. د دے وجے
نه ئے د دے تخصیص اوکړو. مَنْ كَلَّمَ اللّٰهُ کښې اختلاف دے.
یو قول دا دے چه دا خاص دے په موسٰی علیه السلام پورے په
قرینه د سورة نساء ۱۴۶ سره. دویم قول دا چه په دے کښې
آدم علیه السلام او آخري نبي صلی الله علیه وسلم هم شریک دي
او د دے کلام نه مراد کلام دے بغیر د واسطے د جبرائیل علیه السلام
یا بل فرښتے نه. خو دا په طریقه د اکرام او تشریف سره دے تو
کلام د الله تعالٰی د ابلیس سره په دیکښې نه دے داخل ځکه چه
هغه په واسطه سره وو یا په طریقه د زورنے او تذلیل سره وو
او دا آیت دلیل دے چه کلام صفت د الله تعالٰی دے. او د دغه
کلام صفت په قرآن او سنت کښې په سمع او لوستلو سره هم راغلے
دے نو هغه شامل دے کلام لفظي ته. لیکن بغیر د تمثیل، تشبیه
تحریف او تاویل نه. وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ، په مصداق د بعضهم
کښې اختلاف دے یو قول دا دے چه د دینه مراد عام دے هر
یو نبي مراد کیږے شي ځکه چه هر یو لره هغه درجه شته چه
بل لره نیشته. تو دا جمله تفسیر دے د فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ. یعني
فضیلت جزئیه مراد دے. دویم دا چه مراد د دینه صرف اولوالعزم
پنځه پیغمبران دي چه هغه په سورة احزاب ۷ او سورة شوری
۱۳ کښې ذکر دي. او مراد د درجات نه کثرت د معجزاتو او کثرت

دَ اُمت دے- او دا هم دَ دغه پنځو پیغمبرانو په مینځ کښ جزئیه فضیلت دے- دریم دا چه دَ دینه مراد صرف آخری رسول محمد صلی الله علیه وسلم دے او مراد دَ دینه فضیلت کلیه دَ هغه دے په ټولو رسولانو باندے- او په لفظ دَ بعضهم سره اشاره ده علو او اُوچتوالی دَ شان دَ هغه ته- او دَ دے دلیل هغه آیاتونه او احادیث دی چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم په فضیلت کلیه باندے دلالت کوی اول سورة انبیاء ۱۰۷ چه رحمت دے دَ ټول عالم دَ پاره. دویم په سورة انشراح ۴ کښ- دریم دا چه الله تعالیٰ دَ هغه طاعت، بیعت، رضا او استجابت دَ خپل طاعت، بیعت رضا او استجابت سره یو ځائے کړیدی په سورة نساء ۸۰، فتح ۱۰، توبه ۶۲ او سورة انفال ۲۴ کښ- څلورم بقاء دَ هغه دَ معجزے چه هغه قرآن کریم دے- پنځم سورة انعام ۹۰ چه دلالت کوی چه آخری نبی صلی الله علیه وسلم کښ ټول محاسن دَ مخکنو انبیاؤ راجمع دی- شپږم بعثت ټولے دُنیا او ټولو خلقو ته- او وم هغه حدیث چه ټول انبیاء به دَ هغه دَ جنډے دَ لاندے وی دَ قیامت په ورځ- او حدیث اَنَا سَیِّدُ وُلْدِ آدَمَ وَلَا فَخْرَ، مسند احمد جلد اول صفحه ۲۸۱- ترمذی جلد ۵ صفحه ۵۸۵- درمنثور جلد اول صفحه ۲۳۰- بخاری جلد اول صفحه ۱۹۰ په رد یکښ مختلف احادیث دی) او نور هم ډیر احادیث شته چه هغه په دے دلالت کوی چه مصداق دَ بعضهم آخری نبی صلی الله علیه وسلم دے- وَ اٰتَیْنَا عِیْسَی ابْنَ مَرْیَمَ الْبَیِّنٰتِ وَ اَیَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ، دَ دے تفسیر په آیت ۸۷ کښ تیر شویدے او دا هم دلته دَ فضلنا بعضهم دَ پاره تفسیر دے.

(سوال) په مقام دَ تفصیل کښ دَ موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام تخصیص ئے ولے اوکړو؟

(جواب) دَ قرآن دَ نزول په وخت کښ دَ دے دواړو اُمتونه موجود وو- نو دا طعن دے دَ دوی په اُمتونو باندے چه سره دَ فضیلت دَ دے دواړو نه دَ دوی دَ اُمت خلقو دَ

هغوی دیننونه او کتابونه بدل کړل - او بیا تخصیص دَ عیسیٰ علیه السلام په بینات او په تائید سره په یهودیانو دَ رد دَپاره دے چه هغوی دَ عیسیٰ علیه السلام دَ رسالت او معجزاتو نه انکار کوی۔

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلَ الَّذِیْنَ مِنْ بَعْدِهِمْ مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَیِّنٰتُ ، اول ربط ئے دَ مخکښ سره دا دے چه دا دفع دَ یو وهم ده - هغه دا چه هر کله الله تعالیٰ رسولان دَ هدایت دَپاره په معجزاتو او دلیلونو سره را اولیږل نو بیا ولے خلقو قتل وقتال کړو ؟ حاصل دَ جواب دا دے چه سبب دَ قتل وقتال او اختلاف په خلقو کښې په اختلاف دَ ایمان او دَ کفر سره دے۔

ربط ۲ :- هر کله چه دَ انبیاؤ دَ درجاتو تفاضل او تفاوت ذکر شو نو اوس ذکر کوی چه سبب دَ قتل او قتال تفاضل او تفاوت دَ درجاتو نه دے بلکه اختلاق دے په عقیده کښې۔

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ کښې دَ شاء مفعول پټ دے په دلیل دَ جزاء دَ هغے سره یعنی شَآءَ اَلَّا یُقَاتِلُوْا یا شَآءَ اَلَّا یَخْتَلِفُوْا - او دا مشیت په معنیٰ دَ اراده تکوینی او تقدیری سره دے - مشیت تشریعی او په معنیٰ دَ رضا سره نه دے - اقْتَتَلَ کښې کثرت دَ قتال ته اشاره ده۔ دَ مِنْ بَعْدِهِمْ ضمیر الرُّسُلُ ته راجع دے او مراد دَ بعدیت نه روستو والے دے په جدا جدا زمانو کښې یعنی دَ هر رسول نه روستو دَ هغه په قوم کښې اختلاف او اقتتال جوړ شو - او دَ دے مثال په واقعه دَ طالوت او جالوت کښې ذکر شو - بعضو وئیلی دی چه دَ بعدیت نه مراد دَ ټولو رسولانو دَ زمانے نه روستو اقتتال او اختلاف دے دَ دے اُمت دَ مشرکین عرب او یهودیانو او نصاراؤ سره لیکن اول قول غوره دے - مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَیِّنٰتُ نه مراد هغه دلیلونه او معجزات او کتابونه الٰهیه دی چه سبب وو دَپاره دَ دفع دَ اختلاف او اقتتال په شرط دَ ایمان راوړلو سره - وَلٰکِنِ اخْتَلَفُوْا ، دا استدراک دَ مَا اقْتَتَلَ نه په ذکر دَ

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا مِمَّا

اے ایمان والو خرچ کوئ دَ هغه مال نه

رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ

چه درکړیدے مونږ تاسو ته مخکښ دَ دے نه چه رابشی داسے ورځ چه

سبب دَ اقتتال سره دے چه اختلاف اصولی دے۔ او دا اختلاف سبب شرعی دے دَ اقتتال او دا دلیل دے چه سره دَ تقدیر الٰهی نه اعمال دَ خلقو هم سبب دَ اختلاف او اقتتال دی۔ او په داسے افعالو کښ مشیت انسانیه لره دخل ورکړے شوید ے۔ نو دا رد دے په جبریه ډله باندے۔ او ذکر دَ مشیت الٰهیه رد دے په معتزله او قدریه باندے۔

فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ وَمِنْهُمْ مَّنْ كَفَرَ، دا تفصیل دَ اختلاف دے۔ او په دیکښ اشاره ده چه اختلاف فرعی اګرچه په هغے سره خلق دَ یو بل تکفیر او کړی خو هغه سبب شرعی دَ قتال نه دے بلکه خلاف دے دَ شرع نه۔ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا، په دے جمله کښ دوه اقوال دی۔ اول دا چه دا تکرار دے دَ تاکید دَ پاره دَ رد کولو په هغه چاچه تعلق دَ تقدیر دَ بندګانو په کارونو یا دَ شر په کارونو پورے نه ګڼړی۔ دویم قول دا دے چه په دواړو کښ مغائرت دے په څو وجوهو سره۔ اوله وجه دا چه دا متعلق دے دَ اول مشیت عدم وجود دَ اقتتال سره او متعلق دَ دویم مشیت عدم امر دے مؤمنانو ته په اقتتال سره۔ دویمه وجه دا ده چه په اوله جمله کښ اقتتال دَ مخکنو مؤمنانو او کافرانو مراد دے او په دے جمله کښ اقتتال دَ دے اُمت دَ مؤمنانو او مشرکین عرب، یهودیانو او نصاراؤ سره مراد دے۔ دریمه وجه دا ده چه په مخکښ سبب سره ئے سبب شرعی دَ قتال ذکر کړو او دلته دَ مشیت سره سبب تقدیری ذکر کوی چه وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ، چه هغه اختلاف دَ

لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَّلَا شَفَاعَةٌ ط

نه به وی خرڅول په هغې کښ او نه به دوستانه وی او نه به سفارش وی

وَالْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۵۴﴾

او کافران خاص دوی لوئے ظالمان دی۔

خلقود ے۔ چاله توفیق د ایمان ورکوی او چاله نه ورکوی۔ په چا کښ ایمان پیدا کوی او په چا کښ کفر۔ په هغه باندے هیڅ اعتراض نیشته۔ او دا دلیل دے چه اراده هم صفت د الله تعالیٰ دے۔ او د الله تعالیٰ اراده ضرور پوره کیږی هیڅوک د هغے د پاره مانع نشته دے۔

۲۵۴ **د آخری حصے خلاصه**:۔ د دے آیت نه تر آخر د سورت پورے څلورمه حصه ده او دا په باره د انفاق فی سبیل الله کښ ده۔ او دا حصه تقسیم ده څلور و بابونو ته۔ اول باب تر آیت ۲۶۶ پورے دے په دیکښ اول ترغیب دے انفاق ته په وخت د قبولیت د هغے کښ۔ دویم ذکر د مسئلے د توحید دے سرهٔ د لس دلیلونو نه په ذکر د اسمائ صفاتو د الله تعالیٰ سره او دا مقصد د انفاق د مال دے۔ دریم په کښ جواب د یو سوال دے سرهٔ د ذکر د حال د دوه فریقونه او تعلق د یو فریق د الله تعالیٰ سره او د بل د شیطان سره۔ څلورم مثالونه د دواړو ډلو دی۔ اول مثال د شیطان د ډلے سره متعلق دے او دویم او دریم د الله تعالیٰ د ډلے سره متعلق دی۔

**ربط له**:۔ هر کله چه مخکښ آیتونو کښ ذکر د قتال اوشو نو اوس د قتال چلولو د پاره مسئله د انفاق ذکر کوی۔ نو دا ذکر د جهاد بالمال دے روستو د ذکر د جهاد بالنفس نه۔ ۲ له هر کله چه مخکښ آیت کښ ئے فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ ذکر کړل نو اوس مؤمنانو ته خاص خطاب ذکر کوی په یا ایها الذین آمنوا سره۔ یعنی د ایمان تقاضا دا ده چه اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰكُمْ، په دے انفاق کښ عموم مراد دے هر فرض انفاق او تطوع نه لیکن د ما قبل په

قرینې سره اول مراد په دیکښې دَجهاد دَپاره انفاق دے اوهغه هم واجب انفاق دے۔ مِمَّا رَزَقْنَاكُمْ، هر کله چه انفاق دَبعضې مال واجب دے دَدے وجې مِمَّا (چه په اصل کښې مِنْ مَا دے) ذکر کړو. او هر کله چه دَ زکوٰة او صدقاتِ واجبه نه علاوه نور انفاق دَپاره خاص حد مقرر او شرط نه دے۔ دَ دے وجې نه ئې دلته مِمَّا مطلق ذکر کړو۔ او رزق نه مراد صرف حلال مال دے په دلیل دَ صحیح حدیث سره چه لَا صَدَقَةَ مِنْ غُلُوْلٍ (دَحرام مال نه هیڅ صدقه نه قبلیږی)۔ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ، په دے جمله کښې ترغیب دے انفاق کولو ته فی الفور (سمد ستی) ځکه چه دَ داسے ورځ دَراتللو مقرر وخت معلوم نه دے۔ دَ یوم نه مراد دَ قیامت ورځ ده چه دا روستو مذکور منفی حالات دَ قیامت په ورځ کښې دی۔ او احتمال شته چه دَ دینه دَ مرګ ورځ مراد شی لکه چه په سورة منافقون ۱۰ کښې دی۔ لَا بَيْعٌ فِيْهِ، یعنی هغه انفاق چه دُنیا کښې ستاسو نه فوت شی دَ هغې دَ حصول دَپاره اوله طریقه بیع ده چه انسان دَ ځان دَپاره څه مال یا ثواب واخلی نو چه بیع (رخر څول) نیشته نو اخستل هم نیشته۔ وَلَا خُلَّةٌ، دویمه طریقه دَ حصول دَپاره دَ اخلاص دوستانه ده۔ چه یو دوست په داسے حالت کښې دَ بل دوست سره خامخا احسان کوی۔ لفظ دَ وَدٌّ یا صداقت ئې نه دے وئیلے ځکه چه خلت خالص مُوَدَّتْ (دوستانے) ته وئیلے شی۔ ځکه چه په مجبورئ او سختئ کښې هر دوست لاس نه ورکوی بلکه خالص دوست بکار راځی نو نفی دَ خُلّت مقید ده په غیر دَ متقیانو پورے ځکه چه دَ متقیا خُلّت خو بو بل ته فائده ورکوی لکه چه په سورة زخرف ۶۷ کښې ذکر دی۔ وَلَا شَفَاعَةٌ، دریمه طریقه دَ څه څیز او فائدے دَ حصول دَپاره سفارش دے دَ داسے سفارش کوونکی چه هغه قبلیږی لیکن هغه هم نیشته۔ شفاعت کله دَ دفع دَ ضرر دَپاره وی او کله دَ څه فائدے دَ حصول دَپاره وی۔ دلته مراد دَ شفاعت

اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ ۚ۵

الله تعالی نیشته حقدار د بندګۍ سِوا د هغه نه همیشه ژوندی دے نظام چلوونکے دے

لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ ؕ لَهٗ

نه نیسي هغه لره پرکالی او نه خوب خاص د هغه په

مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ

اختیار کښې دی هغه څه چه په آسمانونو کښې دی او هغه څه چه په زمکه کښې دی۔

مقید دے په قبولیت سره او هغه شفاعت بِالِاذن دے او هغه شفاعت د مؤمن د پاره دے۔ نو دا د منکرینو د پاره د مطلق شفاعت دلیل نه دے لکه چه معتزله او منکرین حدیث انکار کوی۔ د هغوی په رد کښې ډیر آیتونه او احادیث متواتره شته دے۔ او د دے مسئلے څه تفصیل په مقدمه (د اول جلد) کښې او په تفسیر د آیت ۴۸ کښې تیر شویدے۔ وَالْکٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ، دلته د ظلم اعلیٰ درجه مراد ده د دے وجے نه ئې حصر په کافرانو کښې کړیدے بیا د دے جملے په تعلق کښې ډیر توجیهات دی۔ اوله توجیه دا ده چه دا علت دے د پاره د ماقبل تقید یعنی خُلَّۃٌ او شفاعت د کافرانو د پاره نیشته ځکه چه هغوی ظالمان دی او د ظالم سره دوستانه او احسان کول مناسب نه دی۔ دویم په دیکښې تعریض دے مؤمنانو ته چه تاسو د کافرانو اقتداء مه کوئ په عدم تقدیم د انفاق کښې او نورو نیکو کارونو کښې ځکه چه هغوی په ځان باندے ظلم کړیدے د وجے د پریخودلو د نیکو کارونو نه۔ دریم دا چه انفاق کول د جهاد د پاره دے چه د کافرانو ظلم دفع شی ځکه چه هغوی په مؤمنانو باندے ظلمونه کوی۔

فائده :- د عطاء بن دینار نه روایت دے چه الحمد لله

مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا

څوک دے هغه چه سفارش به اوکړی د الله تعالیٰ سره مګر

بِاِذْنِهٖ ؕ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

په اجازت د هغه سره عالم دے په هر هغه څه چه مخکښ د دوی ته دی

وَمَا خَلْفَهُمْ ۚ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ

او هغه څه چه روستو د دوی ته دی او نشی راګیر ولے هیڅ حصه

مِّنْ عِلْمِهٖٓ اِلَّا بِمَا شَآءَ ۚ وَسِعَ

د علم د الله تعالیٰ نه مګر هغه چه الله تعالیٰ اوغواړی فراخه ده

كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ وَلَا

کرسئ د هغه آسمانونو او زمکے نه او نه

يَئُوْدُهٗ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ ﴿٢٥٥﴾

ستړے کوی هغه لره ساتنه د دے دواړو او هغه ډیر اوچت دے لوے شان والا دے۔

چه الله تعالیٰ دا سے نه دی فرمائیلی چه وَالظّٰلِمُوْنَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ، ځکه چه هر ګناهګار خو ظالم دے لیکن کافر نه دے۔

٢٥٥ ربط ـ۱ه هر کله چه مخکښ د موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام د حقانیت ذکر اوشو۔ او د هغوی امتیان د قرآن د نزول په وخت کښ موجود وو لیکن هغوی پخپل دین کښ کفر او ظلم بوځائے کړیں ے په سبب د انکار د توحید نه او انکار د صفاتو د الله تعالیٰ نه نو په دے آیت کښ هغوی ته تنبیه ورکوی چه صرف په نسبت د موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام سره خلاصید نیشته بلکه په تاسو باندے عقیده د توحید فرض ده۔ ـ۲ه مخکښ ئے اوفرمائیل چه وَالْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ نو په دے آیت کښ د هغوی لوئے ظلم ته اشاره ده چه هغه انکار دے د تفصیلاتو د توحید نه ـ۳ه هر کله چه

مخکښې اتفاق ته دعوت ذکر کړے شو نو اوس هغه مسئله ذکر کوی چه هغه د اتفاق فی سبیل الله د پاره مقصد دے.

**د دے آیت فضیلت**:- دیته آیت الکرسی او اعظم آیت وئیلے شی (مسلم) سید البقره (بحر)، سید آي القرآن (قرطبی).

چاچه دا آیت ماسخوتن د اوده کیدلو نه مخکښې اولوستلو نو همیشه به په ده باندے د الله تعالی د طرف نه حافظ (ساتونکے) مقرر وی او شیطان به ورته ترصبا پورے نه نیزدے کیږی (بخاری) دا د قرآن کریم د دریمے حصے سره برابر دے (بحر).

دا افضل آیت دے او د دے په فضیلت کښې ابن کثیر دولس احادیث ذکر کړیدی. په دے آیت کښې پنځوس کلمات دی او هره کلمه کښې پنځوس برکات دی. او دا اشرف آیت دے په قرآن کښې ځکه چه په دیکښې نوم د الله تعالی په ضمیر او اسم ظاهر سره اتلس کرته راغلے دے (قرطبی). او په دے کښې د توحید لس جملے دی. او په دیکښې استدلال دے په توحید باندے په نومونو او صفتونو د الله تعالی سره. او په دیکښې نومونه د الله تعالی پنځه ذکر دی او صفتونه د الله تعالی درے ثبوتی او درے سلبی ذکر دی. دا رنګ په دیکښې رد دے په شرک فی الالوهیت، شرک فی التصرف او شرک فی العلم. او رد دے د شفاعت قهریه شرکیه. نو دا په باب د توحید کښې یو پوره آیت دے.

اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ، د دے تفسیر مخکښې په آیت ۱۶۳ کښې او په مقدمه کښې په مسئله د اِله کښې تیر شوید ے. دلته لفظ د الله مبتدا ء ده او لا اله الا هو ئے خبر دے. یعنی د الله تعالی د پاره صفت د الوهیت په خصوصیت سره ثابت دے او د هغه نه سیوا د هر چا نه منتفی دے. او دا دعوی د توحید ده چه روستو په هغے باندے لس عقلی دلیلونه ذکر کوی. اَلْحَیُّ، دا صفت په قرآن کښې په سورة آلعمران ۲ طه ۱۱۱ او سورة فرقان ۵۸ او سورة غافر ۶۵

کښې ذکر دے. داخیر دے د میتن اء پنځے د پارہ یا یں ل دے د لفظ د هُوَ ته. یا دویم خبر دے د لفظ الله د پاره یا صفت دے د لفظ الله. دا د الله تعالیٰ د اسماء حسنیٰ نه یو اسم دے او وئیلې شوې دی چه دا اسم اعظم دے. د دینه مراد الحی الذی لا یموت دے لکه چه په سورة فرقان ۵۸ کښې دی. او بل قول دا دے چه دا په معنیٰ د باقی سره دے (قرطبی) او دا صفت د ذات د الله تعالیٰ دے یعنې الله تعالیٰ لره ژوند ثابت دے په دا سې ژوند سره چه همیشه دے او زوال وریانې ے نه راځي. او ابن جریر وئیلی دی چه د الله تعالیٰ د پاره دا صفات فعلی ضروری دی لیکن په دیکښې به څوک فکر او سوچ نه چلوی یعنې د مخلوق سره به ئے تشبیه او تمثیل نه کوی. او په دے سره رد دے په آلهۀ د مشرکانو یانې ے چه هغوی مړی دی یا جمادات (بتان) دی. یا ژوندی دی لیکن فنا وریانې ے راځي په دلیل د دے قول د الله تعالیٰ سره چه كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ، كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ، او وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ، او چا چه وئیلی دی چه حَيٌّ (ژوندے) دے لیکن بغیر د صفت د حیات نه نو دا قول د معتزلو دے او باطل دے. الْقَيُّومُ، دا صیغه د مبالغے ده په صفت د الله تعالیٰ کښې. او په قرآن کریم کښې په سورة آل عمران ۲، سورة طٰهٰ ۱۱۱ کښې ذکر دے. د دے په معنیٰ کښې اقوال دی مجاهد، ربیع او ضحاک وئیلی دی چه قائم دے په هر څیز بانې ے سره د حالاتو د هغے نه لکه په سورة رعد ۳۳ کښې دی. سعید بن جبیر وئیلی دی چه وجود ئے همیشه دے. ابن عباس رضی الله عنهما وئیلی دی چه زوال وریانې ے نه راځي. او قتاده وئیلی دی چه قائم دے په تدبیر د ټول مخلوق بانې ے او په حفظ د هغے بانې ے. دا اقوال یو بل ته نیژدے دی او په دیکښې رد دے په مشرکانو بانې ے چه څوک وائي چه مدبر د ټول عالم د دوی آلهه دی او څوک وائي مدبر الله تعالیٰ دے خو آلهه د دوی شفعاء او شرکاء دی او تقسیم کوونکی د

کارونو دَ ټولو طرفونو دی - او مشرکین یونان وائی چه دَ هر الله دَ پاره دَ مخلوقاتو نه جدا جدا اقسام دی چه هغوی پکښ تصرفات کوی - او متصوفه وائی چه تد بیر کوونکی دَ عالم قطب او غوث دی - او دَ دوی سره په دے باب کښ هیڅ حدیث مرفوع او موقوف نیشته ما سیوا دَ بے سنده قول نه چه ابن عساکر په خپل تاریخ کښ ذکر کړے دے - او بعضے صوفیا خپل ځان او خپل پیران په دے صفت کښ الله تعالیٰ سره شریک جوړوی وائی چه فلانے قیوم زمان دے - لَا تَأْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّ لَا نَوْمٌ ، دا دَ الله تعالیٰ سلبی دائمی صفت دے چه مستلزم دے کمال لره - او دا تاکید دے دَ قیوم دَ پاره ځکه چه دَ غفلت دَ صفت سره قیومیت امکان نه لری - او په دیکښ دفع دَ وهم ده که څوک دا وهم اوکړی چه الحی القیوم کښ په مجاز او صرف مبالغه مقصد وی نو په دے جملے سره هغه وهم دفع کړے شو. ابن کثیر وائی چه لَا تَأْخُذُهٗ په معنیٰ دَ غالب کیدلو دے لیکن مراد ترینه عدم اتصاف دے دَ الله تعالیٰ په سنة او نوم سره - سِنَةٌ ، دا اوله حمله دَ خوب وی او اثر ئے په سر باندے راځی - او نعاس په سترګو راځی او نوم په زړه راځی - نو حاصل دا دے چه سِنَة هغه فتور او سستی ده چه عارض کیږی انسان ته لیکن عقل او هوش وحواس ئے نه روکیږی - یعنی په الله تعالیٰ باندے هیڅ خلل (نقصان) او مَلَل (ستړے والے) نه راځی (قرطبی) - وَ لَا نَوْمٌ ، نوم هغه فتور دے چه دَ ستړیوالی دَ وجے او دَ بدنی بخاراتو دَ راتللو نه په دماغو باندے راځی - او په وخت دَ تیارو کښ دماغ استراحت طبعی غواړی - او رفته رفته دَ حواسو طاقت غائبیږی - او انسان اموته درانه شی - نو دا عبارت دے دَ کمال غفلت نه -

سوال :- نفی دَ سِنَةٌ ئے ولے مقدم کړه په نفی دَ نوم باندے ؟

جواب سله :- دا ترقی ده په نفی کښ دَادنیٰ نه اعلیٰ ته یعنی په الله تعالیٰ باندے نه لږ غفلت راځی او نه ډیر او نه کسبی اختیاری او نه غیر اختیاری۔

جواب سله :- بیضاوی وغیره وئیلی دی چه په دیکښ رعایت دے دَ ترتیب وجودی چه اول په انسان باندے سِنَة (پرکالی) راځی او بیا نوم لیکن دا ضروری نه ده کله په انسان باندے نوم راشی بغیر دَ راتللو دَ پرکالئ نه او کله پرکالی راشی او نوم نه وی (ابن عاشور) او هر کله چه دَ دے دواړو ملازمه نیشته دَ دے وجے نه نفی دَ سِنَةٌ او نفی دَ نوم دواړه جدا جدا ذکر کول ضروری شول۔

سوال :- په دیکښ ئے دَ نعاس نفی ولے اونکړه ؟

جواب ۱ :- سنة په وجود کښ مستلزم وی نعاس لره دا رنګ برعکس نو په نفی دَ یو سره نفی دَ بل لازمیږی.

جواب ۲ :- بعضو اهل لغت سنة او نعاس مترادف (په یو معنیٰ سره) ګنړلے دی۔

تنبیه :- مفسرینو چه دلته کوم روایات دَ موسیٰ علیه السلام په باره کښ لیکلے دی نو قرطبی او ابن کثیر وئیلے دی چه هغه سنداً ضعیف دی او اسرائیلیات دی۔ او صاحب اللباب وئیلی دی چه دا دَ نبی دَ شان سره نه خائیږی۔ که صحیح وی نو دَ هغه دَ قوم بعضے جاهلانو به دا سے وینا کړے وی۔ او دا رنګ ابوحیان په دے باندے رد کړیدے چه دا حدیث حشویؤ وضع کړیدے چه دَ موسیٰ علیه السلام جهل او ګناه ثابتوی۔

لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ، دا صفت ثبوتیه دے او مخکښ راوړل دَ لَهٗ دلیل دَ تخصیص دے او ما لفظ دَ عموم دَپاره دے۔ ذوی العقول او غیر ذوی العقول ټولو ته شامل دے۔ او السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ نه مراد ټول مکانونه دَ موجوداتو دی او هر کله چه عموم دَ ملک الله تعالیٰ

لره دلسے ثابت دے چه دَ هغے نه هیڅ بهر نه دی۔ او دا هم معنیٰ دَ حصر ده او په تقدیم دَ لهٔ سره تور تخصیص دے۔ تو دا هم رد دے په ډلو دَ مشرکانو یا ن ے۔ دَ ستورو عبادت کوونکی او نور مشرکان چه په تصرفاتو دَ عالم کښ الله تعالیٰ سره خپل آلهه یا ستوری شریک ګنړی۔ لهٔ کښ لام دَ پاره دَ مِلك، مُلك او تصرف او اختیار دے او دینه اختیار دَ الوهیت وئیلے شی۔ او هر کله چه ټول موجودات مملوك او مربوب او مخلوق دی دَ الله تعالیٰ نو دوی دَ الله تعالیٰ سره په صفت دَ مِلك و مُلك کښ شریک نشی کیں ے۔ مَنْ ذَا الَّذِیْ یَشْفَعُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا بِاِذْنِهٖ، په دے کښ هم مقصد اثبات دَ عظمت او دَ کبریاء دَ الله تعالیٰ دے نو صفت ثبوتیه دے۔ او په دیکښ مراد رد دے دَ مشرکانو چه هغوی دَ شفاعت قهریه شرکیه عقیده لری لکه چه په سورة یونس ۱۸ او سورة زمر ۳ کښ ذکر دی۔ او اِذْنِهٖ دلیل دے په ثبوت دَ شفاعت یا ن ے په اذن سره دَ پاره دَ انبیاؤ او علماؤ او مجاهدینو او ملائیکو په هغه شرطونو سره چه په نورو آیتونو کښ ذکر دی۔ او دَ هغے تفصیل قرطبی دَ دے آیت په تفسیر کښ لیکلے دے۔ او عِنْدَهٗ متعلق دے په یشفع پورے او په مشهوره معنیٰ سره دے۔ یا متعلق دے په پټ لفظ پورے۔ یعنی چه قریب وی الله تعالیٰ ته ملائک او انبیاء او صالحین۔ نو هر کله چه مقربین بغیر دَ اذن نه شفاعت نشی کولے نو نور خلق خو په هیڅ حال کښ نشی کولے۔ یَعْلَمُ مَا بَیْنَ اَیْدِیْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ، دا بل صفت ثبوتیه دے چه په دیکښ اثبات دَ علم محیط دے دَ الله تعالیٰ دَ پاره۔ او دا تاکید دے دَ مضمون دَ تیر شوو جملو دَ پاره۔ دا رنګ دا علت دے دَ جملے (مَنْ ذَا الَّذِیْ یَشْفَعُ آه) دَ پاره چه نور مخلوق بغیر دَ اذن دَ الله تعالیٰ نه شفاعت نشی کولے۔ یعنی اذن دَ الله تعالیٰ دَ دے وجے نه شرط دے چه الله تعالیٰ عالم دے په هغه چا باندے

چه حق دَ شفاعت لری او په هغه چا باندې چه دَ شفاعت حق نه لری یعنی شفاعت کول بل چا لره یا دَ ځان دَ پاره شفاعت حاصلول - مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ، دا ضمیرونه ما فی السمٰوات او ما فی الارض ته راجع دی (ټولو مخلوقاتو سماوی او ارضی ته) او په دیکښ ډیر اقوال دی - دَ مجاهد او عطاء قول دا دے چه دَ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ نه مراد دَ دنیا امور دی او دَ مَا خَلْفَهُمْ نه دَ آخرت امور مراد دی - او دَ ضحاك او کلبی قول دَ دے په عکس سره دے - او دَ ابن عباس رضی الله عنهما په روایت سره مراد دَ دینه آسمانونه او زمکے دی - او بل قول دا دے چه تیر شوی حالات او راتلونکی حالات یا دَ دے په عکس سره - یا دَ اول نه مراد محسوسات دی او دَ دویم نه مراد معقولات دی - او که په هر قول سره وی خو مراد تری نه عموم دَ علم دَ الله تعالیٰ دے او علم دے په شافع او مشفوع باندے - او دا جمله رد دے په منکرینو دَ علم دَ الله تعالیٰ چه هغه فلسفیان او بعضے منطقیان دی - وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖٓ اِلَّا بِمَا شَآءَ، دا جمله دَ ما قبل تتمه او تکمله ده دَ دے وجے نه ئے په عطف سره ذکر کړه او دا سے په سورة طه ١١٠ کښ هم دی او په دیکښ رد دے دَ شرك فی العلم یعنی مخلوقاتو کښ هیڅوک علم محیط او علم بکل شیءٍ نه لری او کوم علمونه چه دوی ته حاصل دی په هغے کښ هم مشیت دَ الله تعالیٰ ته محتاج دی - او دَ احاطے نه مراد علم تام دے چه شامل وی ټولو حالاتو او کیفیاتو دَ هر څیز ته - دَ مِنْ عِلْمِهٖ په ضمیر کښ دوه احتمالونه دی. اول دا چه راجع دے الله تعالیٰ ته نو مصدر مضاف دے فاعل او علم په معنیٰ دَ معلوم سره دے او دویم احتمال دا دے چه ضمیر راجع دے مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ته نو اضافت دَ مصدر دے مفعول ته - اِلَّا بِمَا شَآءَ دَ دے سورت آیت ٣٢ پشان دے - او مفعول دَ شاء پټ دے

يعنى شَآءَ اللهُ أَنْ يُحِيْطُوْا بِهٖ ، او بنا په اول احتمال چه ضمير دَ عِلْمِهٖ الله تعالىٰ ته راجع شى او اضافت دَ اختصاص دَ پاره شى او علم نه مراد علم غيب حقيقى وى نو اِلَّا بِمَا شَآءَ استثناء منقطع ده يعنى لٰكِنْ يُعْطِيْهِ الْعِلْمَ بِمَا شَآءَ بِبَعْضِ الْجُزْئِيَّاتِ - او بنا په دويم احتمال باندے استثناء متصل ده او دَ علم نه مراد علم غيب اضافى دے - او دا بيان دَ سورة آلعمران ۱۷۹ او سورة جن ۲۶ تا ۲۷ دے.

ليكن په هغه آياتونو كښ افاده دَ علم ده دَ طرف دَ الله تعالىٰ نه او په دے آيت كښ استفاده دَ بندګانو ده علم لره.

وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ، دا دَ الله تعالىٰ بل صفت ثبوتيه دے - دَ كرسئ په باره كښ ډير اقوال دى. اول قول دَ ابن عباس رضى الله عنهما دے چه دا موضع دَ قدميتو دَ الله تعالىٰ دے - ابن كثير وئيلى دى چه دا قول په مرفوع سند سره صحيح نه دے او په موقوف سره صحيح دے - حاكم په مستدرك كښ وئيلى دى چه دا صحيح دے - او امام ذهبى دَ هغے تائيد كړے دے. او بيهقى په الاسماء والصفات كښ هم ذكر كړے دے نو دا دَ آيات الصفات نه دے - بغير دَ څه تشبيه او تاويل نه دَ دے منل واجب دى - دويم قول دَ حسن بصرى رحمه الله دے چه كرسى او عرش يو څيز دے - دا قول ابن كثير رد كړے دے - دريم قول په بل روايت سره دَ ابن عباس رضى الله عنهما دے چه كرسى علم دَ الله تعالىٰ دے - څلورم قول چه دا ملك او سلطان دَ الله تعالىٰ دے - ليكن دا معنے والا ارباب الالحاد دى ځكه چه دوى انكار كوى دَ عرش او كرسى نه (قرطبى) - پنځم قول دا دے چه دا اتم فلك دے او دَ اوو افلاكو نه بره دے او ديته فلك الثوابت وئيلے شى ليكن دا تخيلات دَ فلاسفو دى - ځكه چه الله تعالىٰ په ډيرو آياتونو كښ

صرف دَ اوو آسمانونو ذکر کړېدے - او دَ دے دَ وسعت ذکر په ډیرو احادیثو کښ راغلے دے یو دَ هغے نه حدیث دَ ابن جریر دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه اووه آسمانونه په کرسئ کښ داسے دی لکه اووه روپئ چه په یو ډال کښ واچولے شی - او دا دلالت کوی په ډیر عظمت او کبریاء دَ الله تعالیٰ باندے - وَلَا يَئُودُهٗ حِفۡظُهُمَا ، دا جمله په وَسِعَ كُرۡسِيُّهُ باندے عطف ده په طریقه دَ تتمے سره - او صفت سلبیه دَ الله تعالیٰ دے چه کمال دَ علم او دَ قدرت باندے بنا دے ځکه چه حفظ پوره علم او قدرت غواړی - اَدَ يَئُودُ په معنیٰ دَ دروند والی او مشقت اچولو سره راځی - اَوَدٌ (کوږ والے) او مَوءوده (ژوندئ خخه کړے شوے جینئ) دَ دینه اخستلے شویدے. ٗه ضمیر راجع دے الله تعالیٰ ته یا کرسئ ته - او په دے جمله کښ اشاره ده چه دا آیت لوستل دَ حفاظت دَ انسان دَ پاره فائده ورکوی لکه چه په حدیث کښ راغلے دی (مخکښ تیر شویدے) - وَهُوَ الۡعَلِيُّ الۡعَظِيۡمُ ، دا جمله په ماقبل باندے عطف ده او په دیکښ دوه صفات ثبوتیه دَ الله تعالیٰ دی - ابن کثیر وئیلی دی چه دا آیت او کوم احادیث صحیحه چه دَ دے په معنیٰ کښ دی ، کَرَه خیره په دیکښ طریقه دَ سلفو صالحینو ده - چه چلوئ دے لره څه رنګ چه په ظاهره کښ راغلے دی بغیر دَ تکیف او تشبیه نه. او سمعانی وئیلی دی چه عَلِیّ په معنیٰ دَ متعالی (اوچت) دے دَ خیزونو او شرکاؤ ته - او چا وئیلی دی چه اوچت دے په بادشاهئ او سلطنت سره - او ابو حیان وئیلی دی چه دَ عَلِیّ معنیٰ اوچت دَ مخلوق دَ پاسه دے - او ماوردی وئیلی دی چه فرق په مینځ دَ عَلِیّ او عالی کښ په دوه وجوهو سره دے - اول وجه دا ده چه عالی هغه دے چه موجود وی په اوچت محل کښ او عَلِیّ هغه دے چه مستحق دی

لَآ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ ۖ قَدْ تَّبَيَّنَ

نيشته زور په عقيده كښ يقيناً ښه ښكاره شوے دے

الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ

هدايت د ګمراهئ نه تو هغه څوک چه انكار ئے اوکړو

بِالطَّاغُوْتِ وَيُؤْمِنْ بِاللّٰهِ فَقَدِ

د بندګئ د غير الله نه او يقين ئے اوکړو په الله تعالىٰ نو يقيناً

اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ۚ

راټينګه کړه هغه کړئ مضبوطه

لَا انْفِصَامَ لَهَا ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿٢٥٦﴾

چه نيشته جدا کيدل د هغے او الله تعالىٰ هرڅه آوري عالم دے په هرڅه باندے۔

د اوچتوالی۔ دويمه وجه دا ده چه عالی هغه دے چه امکان لری د شرکت د بل چا او علی هغه دے چه امکان د شرکت نه لری۔

فائده :۔ د الله تعالىٰ د اوچتوالی د پاره د قرآن اووه تعبيرات دی۔ اول علو سورة اسراء ۴۳ دويم المتعال سورة رعد ۹ دريم اعلیٰ دوه ځله۔ څلورم عَلِیُّ اته ځله۔ پنځم تعالیٰ څوارلس ځله۔ شپږم فوقيت درے ځله انعام ۱۸ ، ۶۱ او نحل ۵۰۔ اووم استواء علی العرش سورة اعراف ۵۴ يونس ۳ رعد ۲ طٰه ۵ فرقان ۵۹ المسجدة ۴ حديد ۴

اَلْعَظِيْمُ، يعنی قدر او شرف ئے ډير لوے دے (قرطبی)۔ خاوند د عظمت دے چه هر څيز د هغه نه خکته دے۔ نو د هغه نه هيڅ څيز اعظم نيشته (ابوحيان)۔

۲۵۶ - ربط ۱ :۔ هر کله چه په آيت الکرسی کښ دليلونه د توحيد او د عظمت د الله تعالىٰ واضح ذکر شول چه هغه تقاضا کوی چه عقل والا خلق ئے بغير د جبر او اکراه نه

قبول کړی- تو یو سوال پیدا شو چه دا مشرکان به آیا بخپل حالت باندې پریښودلے کیږی او که په دوی به زور کیدے شی توجواب اُوشو چه لَا اِكْرَاهَ- تو دیته جمله استینا فیه بیانیه وئیلے شی- ۲ـه دا متعلق دے د قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللهِ سره او په منځ کښ ئے جملے معترضے دی تو جواب د سوال دے چه په قتال سره معلومیږی چه په دین کښ اکراه چلیږی تو جواب اُوشو په دے جملے سره چه لا اکراه آه -

لَا اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ، اکراه په اصل کښ زور کول دی په کولو د مکروه (طبعی) کار یا قول باندے- او دا کیږی په یره کولو د داسے سزا چه هغه زیا ته مکروهه وی د هغه عمل نه- او فرق د اکراه او اجبار دا دے چه په اکراه کښ رضا نه وی لیکن اختیار باقی وی او په اجبار کښ رضا او اختیار دواړه سلب وی-

الدِّيْنِ، د دے معانی په تفسیر د سورة فاتحه کښ ذکر شویدی- دلته مراد د دینه عقیده د زړه ده (راغب، قرطبی او ابو حیان) او په دے جمله کښ دوه اقوال دی اول قول دا دے چه دا جمله خبریه ده- دویم دا چه دا خبریه په معنیٰ د انشاء (نهی) کښ ده بنا په اول قول باندے د دے دوه معنے دی- اوله معنیٰ دا ده چه اِكراه نیشته د الله تعالیٰ د طرف نه په ایمان او اسلام قبلولو باندے بلکه دا پنا دے په اختیار باندے په دلیل د آیت فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ وَمَنْ شَاءَ فَلْيَكْفُرْ سورت کهف ۲۹ سره او روستو جمله هم په دے باندے دلیل دے چه دین واضح شوے دے زور ته حاجت نیشته- دویمه معنیٰ دا ده چه هیڅ انسان د عقیدے په باره کښ په بل چا باندے زور نه شی کولے ځکه چه عقیده د زړه عمل دے په هغے باندے زور نه چلیږی- او د دے دلیل په سورة یونس ۹۹ کښ دے او قرطبی وئیلی دی چه هر چه مسئله د اکراه ده په احکامو کښ یعنی بیع، هبه، نکاح او طلاق وغیره تو دلته هغه مراد نه ده په دے توجیها تو سره دا جمله منسوخ یا خاص نه ده بلکه محکم

او عام ده او بنا په دویم قول (چه دا په معنی دَ انشاء شی) تو
په دیکښ قرطبی شپږ اقوال نقل کړی دی چه په بعضو
کښ دعوی دَ نسخ ده او په بعضو کښ تخصیص دَ آیت دے
په بعضے حالاتو پورے۔ او که آیت دَ قتال سره متعلق شی
نو په قتال کښ اکراه په ژبه باندے کیدیشی چه دَ زور دَ
وجے نه په ژبه باندے کلمه او وائی لیکن په زړه باندے
زور نشی کیدے۔ تو دَ دے جملے نسخ یا تخصیص دَ قتال
په آیتونو سره نشی کیدے۔ قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ،
دا دَ لا اکراه دَ پاره دلیل دے۔ تبین نه مراد دا دے چه ډیر
ښکاره شوی دے په دلیلونو سره په دے سورت کښ او په
آیت الکرسی او په ټول قرآن کښ۔ الرُّشْد هدایت او حقانیت دَ
رائے او مقصد ته رسیدلو ته وئیلے شی۔ الْغَيّ مقابل دَ رُشد
دے۔ او گمراهئ او خطایئ دَ عقیدے او دَ رائے ته وئیلے شی۔
دلته مراد حق او باطل او ایمان او کفر دے۔ او لفظ دَ مِنْ
دلالت کوی په فرق او تمیز باندے۔ فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ
دا دَ اصحابِ الرشد او اصحابِ الغی تفصیل دے۔ کفر په معنیٰ
دَ انکار دے او دا معنیٰ لغوی ده۔ طاغوت دَ طغیان نه ماخوذ
دے۔ هغه دَ حد نه تیریدل دی۔ او په دیکښ اختلاف دے
دَ نحویانو۔ په نیز دَ ابو علی فارسی دا مصدر دے او دَ سیبویه
په نیز دا اسم جنس مفرد دے۔ او په نیز دَ مبرد دا جمع ده۔
او کله دا مؤنث راځی په دلیل دَ والذین اجتنبوا الطاغوت ان
یعبدوها سورة زمر ۱۷ او کله مذکر راځی لکه په وَقَدْ امروا
ان یکفروا به سورة نساء ۶۰ کښ۔ او دَ دے په مصداق
کښ اختلاف دے اول قول، دا شیطان دے (عمر، مجاهد او
قتاده)، دویم قول دا کاهن دے (ابن جریر) دریم قول دا
ساحر دے (ابو العالیه) څلورم دا هر هغه څیز دے چه انسان
لره سرکش کوی۔ پنځم هر هغه څوک چه دَ هغه عبادت او طاعت
کیدے شی په رضا دَ هغه سره۔ شپږم هر تعدی کوونکے یا

هغه څیز چه د هغه عبادت کیږي شي - اووم هر معبود من دون الله - نو غوره دا ده چه دلته دا دے ټولو معانیو ته شامل دے او زمونږ مشائخو د تفسیر وئیلی دی چه په شپږمه او اوومه معنی سره نیکانو ته هم شامل دے هغوی اګرچه طغیان والا نه دی لیکن عبادت د هغوی سبب د طغیان د خلقو دے او دا اطلاق مجازی دے - لیکن دا صفت د نیکانو سره مناسب نه دے - او بل کوم ځائے کښې هم د دے اطلاق په نیکانو باندے نه دے شوے قائده - طاغوت په قرآن کښې اته کرته راغلے دے کله په معنیٰ د حاکم غیر شرعی لکه سورة نساء ۶۰ کله په معنیٰ د هر شیطان او سرکش لکه ورپسے آیت کښې رائحي او کله په معنیٰ د هر معبود من دون الله لکه په دے آیت کښې او سورة زمر ۱۷ کښې ۲ کفر بالطاغوت ئے مخکښې ذکر کړلو ځکه چه دا په حقیقت کښې مخکښې دے په ایمان باندے - او دفع د فساد مخکښې وی په منفعت حاصلولو باندے -

وَيُؤْمِنْ بِاللهِ، د دے ایمان نه مراد ایمان شرعی دے -

سوال :- کفر بالطاغوت مستلزم دے ایمان بالله لره نو ایمان ئے ورپسے ولے ذکر کړو؟

جواب :- دا استلزام نیشته ځکه چه کله یو انسان د طاغوت بندګی نه کوی او حال دا چه ایمان هم نه راوړی هیڅ دین ئے نه وی -

سوال :- ایمان بالله خو مستلزم دے کفر بالطاغوت لره نو هغه ئے ولے ذکر کړو؟

جواب :- په دیکښې مراد پوره انسلاخ او راوتل دی د کفر نه د دے وجے نه ئے هغه مخکښې او مستقل ذکر کړو -

فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ، دا د ما قبل د پاره جزاء ده اګر چه شرط ئے فعل مضارع دے لیکن جزا ئے مبالغتًا فعل ماضی ذکر کړے شوے ده ګویا چه دے د مخکښې زمانے نه کلک دے -

عُرْوَةِ، د او سپنے هغه کړئ ته وئیلے شي چه انسان ئے په لاس سره

رانیولے شی۔ اَلْوُثْقٰی، مؤنث دے۔ دَ اوثق نه دے یعنی ښه کلکه او مضبوطه کړئ۔ او دا سے په سورۃ لقمان ۲۲ کښ هم دی۔ لَا انْفِصَامَ لَهَا، دا حال دے دَ العروۃ نه۔ انفصام دَ فصم نه دے او فصم په فا سره قطع ده بغیر دَ جدا کولو نه او قصم په قاف سره قطع ده سره دَ جدا ایئ نه او کله دَ یو بل په معنیٰ سره راځی۔ او هر کله چه هسے قطع پکښ نه راځی نو سره دَ جدا ایئ نه قطع خو په طریق اولیٰ سره نه راځی۔ په دے جمله کښ تشبیه ده سره دَ مبالغے نه په شپږ وجوهو سره۔ اوله وجه فعلِ ماضی، دویمه وجه تمسك کول، دریمه باب استفعال دَ استمسك چه ښه کلکوالی ته وئیلے شی، څلورمه عروه، پنځمه وثقی، شپږمه عدم انفصام دَ هغے یعنی کړئ ښه پخه او مضبوطه ده او روستو هم نه شلیږی او انسان هم ورپورے لاس ښۀ پاښه لګولے او انخلولی دی۔ نو دا سے انسان دَ طوفان او سیلاب او پریوتلو نه بچ وی۔ او وجه دَ تشبیه دا ده چه ایمان او توحید پشان دَ کړئ دی او هغه مضبوط دی په عقلی او نقلی دلیلونو سره او دَ هغے دلیلونو مقابله او مناقضه هیڅوک نشی کولے۔ او دَ مؤمن یقین او علم په دغه دلیلونو بانـدے پوخ دے چه هیڅ شک او شبهه ورته نه راځی نو دا سے مؤمن دَ دُنیا دَ هر قسم فتنونه بچ وی او په قیامت کښ هم دَ هر عذاب نه بچ دے۔

**سوال**:۔ دا دَ اصحاب رُشد ذکر وو نو دَ اصحاب الغَیّ ذکر ئے ولے اُو نکړو؟ - **جواب**:۔ دَ هغے حکم دَ مقابلے نه معلومیږی چه دوی کافر بالله او مؤمن بالطاغوت دی لکه په سورۃ نساء ۵۱ کښ دی۔ او دَ دوی دَ عقیدے دَ کمزوری والی مثال په سورۃ ابراهیم ۲۶ کښ ذکر دے۔ لیکن په دیکښ په مخکښ جملو کښ ترغیب دے ایمان ته۔ دَ دے وجه نه ئے اکتفاء اوکړه په اول قسم بانـدے دَ پاره دَ ترغیب۔ وَاللّٰهُ سَمِیْعٌ عَلِیْمٌ، سمعانی وئیلی دی چه الله تعالیٰ آوری ستا دا دعوت دوی لره اسلام ته او عالـم دے په حرص ستا په اسلام دَ دوی بانـدے۔ یا آوری کلمه دَ

اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُخْرِجُهُمْ

الله تعالیٰ خاص دوست دَ هغه کسانو دے چه ایمان ئے راوړے دے او باسی دوی لره

مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۬ؕ وَالَّذِيْنَ

دَ تیارو نه رڼا طرف ته او هغه کسان

كَفَرُوْٓا اَوْلِيٰٓـُٔهُمُ الطَّاغُوْتُ يُخْرِجُوْنَهُمْ

چه کفر ئے کړے دے دوستان دَ هغوی شیطانان دی او باسی دوی لره

مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ ؕ اُولٰٓئِكَ

دَ رڼا نه تیارو طرف ته دغه کسان

اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۵۷﴾

اور والا دی دوی به هغے کښ همیشه وی

شهادت دَ مؤمن او کلمه دَ کفر دَ کافر۔ او عالم دے په پاکه عقیدهٔ دَ مؤمن او په پلیته عقیده دَ کافر باندے (صاحب اللباب)۔
ت ۲۵۷۔ په دے آیت کښ ذکر دَ حال دَ اصحاب الرشد او اصحاب الغی دے په نسبت دَ اولے ډلے الله تعالیٰ ته په ولایت سره او په نسبت دَ دویمے ډلے طاغوت ته په ولایت سره۔ او ذکر دَ آثارِ مختلفه دَ دغه ولایتونو دے۔ اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا، په لفظ دَ الله سره دَ ابتداء کولو دوه وجے دی۔ اوله وجه اطمینان او تسلی ورکول په نزدیکت دَ مؤمنانو الله تعالیٰ ته۔ دویمه وجه دا تیز دے جمله دہ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ته۔ وَلِيُّ، ولی په اصل کښ نزدیکت ته وئیلے شی۔ او روستو په ډیرو معانیو سره استعمالیږی چه هغه ټولے معانے دلالت کوی په نزدیکت باندے دلته مراد په دیکښ مختلف اقوال دی۔ اول مددګار، دویم محبت کوونکے۔ دریم متولی (رواکدار) دَ دوی دَ کارونو۔ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا، نه مراد هغه خوک دی چه ایمان شرعی ئے راوړے وی لکه چه مخکښ آیت

کښې په فمن يکفر بالطاغوت ويومن بالله سره ذکرشويدي.
دويم قول دا چه هغه کسان مراد دي چه اراده دايمان لري
په سبب دَ اثابت سره - يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ،
دَ واقدي نه ابوحيان روايت کړيدے چه په قرآن کښې هر
ځائے چه ظلمات او نور ذکر دے نومراد تريئه کفر او
ايمان دے ماسيوا دَ سورة انعام سړ نه - يا مراد دَ ظلمات
نه شبهات دي او په نور سره مراد يقين دے.
سوال :- اخراج خو مخکښې دخول غواړي نو ټول مؤمنان خو
اول په کفر کښې نه وو داخل ؟
جواب (۱):- مراد دَ دينه صرف هغه مؤمنان دي چه اول په کفر
او شرک کښې داخل وو او الله تعالیٰ هغوی له توفيق دَ ايمان
ورکړو لکه عام صحابه کرام رضی الله عنهم.
جواب ۲:- دَ دينه مراد ټول مؤمنان دي لکه مراد دَ ظلمات نه
شبهات دي چه کله په مؤمنانو باندے عارض کيږي.
جواب ۳:- دَ اٰمَنُوْا نه مراد هغه خلق دي چه ايمان ئے نه
وي راوړے ليکن اراده دَ ايمان لري.
جواب ۴:- مراد دَ اخراج نه منع کول دي يعنی که چرے دَ
توفيق دَ الله تعالیٰ نه خالي شي نو په ظلماتو کښې به واقع شي.
نو توفيق دَ الله تعالیٰ سبب اوګرځيدو دَ پاره دَ دفع کولو دَ
ظلمتونو.
سوال :- ظلمات ئے جمع او نور ئے مفرد ذکر کړے دے؟
جواب :- دَ ظلماتو اسباب او اقسام ډير دي لکه دَ شرک اوکفر
ټول قسمونه، شبهات او شکونه وغيره، او نور، ايمان او يقين
يو دے. وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَوْلِيَاءُهُمُ الطَّاغُوتُ، دا دَ دويمې
ډلې ذکر دے چه اصحاب الغي دي او شروع ئے اوکړه په
وصف دَ کفر دَ دوي سره - او اشاره ده قباحت شان دَ دوي
ته او دا علت دے دَ پاره دَ مابعد - او اولياء نه مراد دَ دوي
ملګري يا دَ دوي متبوعين (تابعداري کړے شوي) دي - الطاغوت

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ

آیا نه گورے ته هغه کس ته چه جګړه یې اوکړه د ابراهیم علیه السلام سره

فِي رَبِّهِ أَنْ آتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ إِذْ قَالَ

په باره د رب د هغه کښ د دے وجې نه چه ورکړے وه الله تعالیٰ هغه ته بادشاهي کله چه اُویل

إِبْرَاهِيمُ رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ

ابراهیم علیه السلام رب زما هغه ذات دے چه ژوندی کول کوی او مړه کول کوی

قَالَ أَنَا أُحْيِي وَأُمِيتُ قَالَ إِبْرَاهِيمُ

هغه اُویل زهٔ ژوندی کول کوم او مړه کول کوم اُویل ابراهیم علیه السلام

فَإِنَّ اللَّهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ

نو یقیناً الله تعالیٰ راولی نمر د مشرق نه

فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِي

نو ته یې راوله د مغرب نه نو چُپ او حیران کړے شو هغه کس چه

كَفَرَ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿۲۵۸﴾

کفر یې کړے وو او الله تعالیٰ هدایت نه ورکوی قوم ظالمانو ته۔

مصدر دے په معنیٰ د جنس۔ یا مفرد جنسی دے نو جمع او مفرد په دیکښ یوشان دی۔ دلته په معنیٰ د جمع سره دے ځکه چه مراد د دینه شیاطین انسی او جنی دی او هغه ډیر دی۔
يُخْرِجُونَهُمْ مِنَ النُّورِ، سوال:۔ کافران خو اول په نور کښ داخل نه دی نو څهٔ رنګه اووئیلے شو چه د نور نه یې اُویاسی؟۔
جواب دا:۔ د دینه خاص هغه یهود مراد دی چه مخکښ د بعثت د نبی صلی الله علیه وسلم نه په هغه باندے ایمان لرو (چه دا سے نبی به راځی) لیکن روستو د بعثت نه یې کفر اوکړو په تقلید د احبار او رهبان سوء سره۔

جواب ۲ :- مراد ترینه قول کافران دی او اخراج نه مراد منع کول دی دَ قبلولو دَ نور نه په اچولو دَ شبهاتو، شکونو او وسوسو سره - أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ. په أُولَٰئِكَ سره اشاره ده کافرانو او طواغیتو دواړو ته چه تابعین او متبوعین دی -

۲۵۸ - ربط :- مخکښ ذکر شو چه الله تعالیٰ مؤمنانو لره دَ ظلماتو دَ شبهاتو، شکونو او وسوسو نه اوباسی - او طاغوت خپل ملګری په شکونو او شبهاتو کښ اخته کوی نو اوس په دے باندے دلیلونه ذکر کوی په درے واقعاتو سره دَ دے وجے نه ئے په عطف سره نه دے راوړے - نو اوله واقعه دَ دواړو ډلو سره تعلق لری او روستو دواړه صرف دَ اولے ډلے سره تعلق لری یعنی نمروذ دَ ظلماتو ته او نه وتلو دَ وجے دَ تابعدارئ دَ طاغوت نه او ابراهیم علیه السلام غالب شو په هغه باندے ځکه چه الله تعالیٰ دَ هغه ولی وو - او دا واقعه ئے دَ څو وجونه مخکښ راوړه - اوله وجه دا ده چه دا سے کافران ډیر دی - دویمه وجه داچه دا نیزدے ده والذین کفروا اولیاء هم الطاغوت ته - دریمه داچه دا ښکاره دلیل دے دَ اثبات دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دَپاره او روستنی دواړه امور خارقه للعادت دی دَپاره دَ اثبات دَ قدرت الهیه - أَلَمْ تَرَ، دَ دے تفسیر مخکښ تیر شوید ے - إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ، دغه شخص کافر وو یقینًا په دلیل دَ فَبُهِتَ الَّذِي كَفَرَ سره او اکثرو مفسرینو وئیلی دی چه نمروذ بن فالخ بن عابر وو دَ اولاد دَ حام بن نوح علیه السلام نه - او چا وئیلی دی چه نمروذ بن کنعان بن کوش بن سام بن نوح علیه السلام وو - او دا جبار بادشاه وو - دَ بابل ښار ئے جوړ کړے وو او په بابل کښ ئے لویه ماڼۍ جوړه کړیوه - او دۀ ته نمرود (په دال یا په ذال سره) وئیلے کیږی - حَاجَّ دَ حجت نه اخستلے شوید ے لیکن غالبًا په باطله جګړه کښ استعمالیږی دلته هم مراد دا دے

چه باطله جګړه ئے کوله دَ ابراهیم علیه السلام سره۔ اودَ دے
وجے نه ئے فاعل دَ دے هغه کافر ګرځولے دے او باب
مفاعله په اعتبار دَ زعم دَ هغه ده یعنی هغه پخپل ګمان
کښ ځان غالب ګڼړلو۔ فِیْ رَبِّهٖ، مراد دینه وصف دَ ربوبیت
دَ الله تعالیٰ دے۔ یعنی تصرف او تدبیر دَ عالم الله تعالیٰ کوی
په دیکښ ورسره هیڅوک شریک نیشته۔ او دلیل په دے روستو
الفاظ دی چه دهٔ ځان ته دَ احیاء او اماتت دَ تصرف نسبت کولو۔
نو معلومه شوه چه دَ وجود دَ الله تعالیٰ نه منکر نه وو صرف دَ
خپل ربوبیت دعوی ئے کوله پشان دَ فرعون۔ او دعوی دَ
ربوبیت مستلزم وی دعوے دَ الوهیت (معبودیت) لره۔
اَنْ اٰتٰهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ، دا دَ حَاجَّ دپاره علت دے په حذف دَ لام
سره۔ او وجه دَ علتیت دا ده چه دغه بادشاهی سبب اوګرځید له
دَ تکبر دَ هغه۔ دَ دے وجے نه ئے جګړه اوکړه۔ یا دا په طریقه دَ عکس
او دَ تهکم سره دے۔ یعنی دهٔ لره دَ دے انعام په سبب شکر کول
پکار وو لیکن دهٔ دَ شکر په ځائے کفر او محاجه اوکړه۔ او مراد دَ
مُلك نه ډیر مال، قوت او ډیر والے دَ تابعدارانو دے او دا سے
بادشاهی الله تعالیٰ کافرانو ته هم ورکوی په طریقه دَ استدراج
یا ابتلاء سره۔ اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّیَ الَّذِیْ یُحْیٖ وَیُمِیْتُ، دا ظرف
دے دَ حاجَ دپاره او دا دلیل دے چه ابراهیم علیه السلام اول
دعوت دَ توحید شروع کړے وو او تصرفات دَ ربوبیت ئے دَ الله
تعالیٰ دپاره خاص کړل په بیان کښ نو نمرود ورسره په دیکښ
جګړه شروع کړه لکه چه موسیٰ علیه السلام فرعون ته دعوت
شروع کړے وو چه اِنَّا رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ او بیا ئے دَ ربوبیت
تفصیل ذکر کړو چه هغه په سورة شعراء کښ دَ آیت ۱۶ نه
دے۔ او صفت دَ احیاء او اماتت په طور دَ دعوے سره دے
یا په طور دَ استدلال سره دے لیکن دا ډیر واضح او جامع صفت
دے او معنیٰ دَ احیاء هر عقل والا پیژنی که احیاء دَ انسان وی
یا حیوان وی او که دَ زمکے وی۔ چه مراد دَ هغے نه پیدائش دَ انسان

اوحیوان دے د نطفے نه. او احیاء د زمکے په قوتِ نباتی پیدا کولو سره ده - دا رنګ د امانت معنیٰ هم هر عقل والا پیژنی چه روح جدا کول دی د بدن نه که د انسان وی او که د حیوان وی. او اوچول د قوتِ نباتیه دی په زمکه کښ. او تمام عقل والا پیژنی چه دا فعل د هغه ذات وی چه قدرت په هر څیز او علم د هر څیز لری. او هغه په خپل حیات کښ چا ته محتاج نه وی او فنا وربانے نه راځی او د هغه مقابله هیڅوک نشی کولے او دا صفتونه د الله تعالیٰ دی. نو معلومه شوه چه ربوبیت هغه لره خاص دے.

سوال:- په ډیرو آیاتونو کښ ئے موت د حیات نه مخکښ ذکر کړے دے لکه سورة بقره ۲۸، سورة شعراء ۸۱ او سورة ملک ۲ او دلته ئے احیاء مخکښ کړه؟.

جواب:- دلته مقصود دعوت د توحید د ربوبیت دے نو په هغے کښ هغه تصرف مخکښ ذکر کول پکار دی چه په هغے کښ عجائب د پیدائش ډیر او واضح وی او دا په احیاء کښ دی.

قَالَ اَنَا اُحۡیٖ وَاُمِیۡتُ، دا تفصیل د حاج دے او په دے قول کښ (که دعویٰ وی او که دلیل وی) مغالطه ورکول مقصد دے په دوه وجوسره. اول وجه بنا ده په مشهور قول د مفسرینو سره چه دهٔ قصد او کړو هغه یو کس ته چه حکم د امانت (پهانسئ) ئے په هغه باندے کړے وو نو هغه ئے معاف کړو لیکن دا خو امانت نه دے بلکه قتل کول دی. دویمه وجه دا ده چه احیاء او امانت خو پټ څیز دے او هغه په قدرت د الله تعالیٰ سره دے نو دهٔ په دے لفظ سره هغه خپل قدرت او عمل اوګڼړلو او دلته ئے اَنَا اُحۡیٖ اووئیل انا الذی اُحۡیٖ ئے نه دے وئیلے ځکه چه دغه شخص دعویٰ د حصر نشوه کولے د دے وجے نه چه د دهٔ نه مخکښ هم ډیر خلق پیدا شوی او مړه شوی وو. لیکن دهٔ دعویٰ د اشتراک کړیده د الله تعالیٰ سره په احیاء او امانت کښ.

قَالَ اِبۡرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ یَاۡتِیۡ بِالشَّمۡسِ مِنَ الۡمَشۡرِقِ فَاۡتِ بِهَا مِنَ الۡمَغۡرِبِ

دا فا دَ جواب دَ شرط پهٔ ځای دَ پاره ده - ابراهیم علیه السلام دا ئې ته اووئیل چه هرکله تا دعوی دَ احیاء او اماتت دَ ځان دَ پاره اوکړه او په دې سره دې په خلقو باندې تلبیس اوکړو- نو اوس واضح حجت واوره چه حرکات دَ نمر تصرفات فلکیه دی او دَ بندګانو دَ دعوې نه اوچت دی- نو نمر دَ مشرق نه راښکاره کول دَ الله تعالیٰ فعل دې یقیناً اوکه ته دَ دې یقیني تصرف مقابله کولې شې نو دا حرکات دَ نمر بدل کړه او دَ مشرق په ځائې ئې دَ مغرب نه را اوخیژوه -

سوال :- اصول دَ مناظرې خو دا دی چه په دلیل دَ خصم باندې اعتراض اوکړېشي نو دَ هغې بطلان ښکاره شي - او دلته ئې دَ یو دلیل نه بل دلیل ته انتقال اوکړو ؟

جواب له :- اکثرو مفسرینو وئیلې دی چه دا انتقال دې دَ یو دلیل نه بل ښهٔ واضح دلیل ته دَ خصم دَ چپ کولو دَ پاره او دا جائز دې دَ مستدل دَ پاره لیکن ابن کثیر وئیلی دی چه دا توجیه دَ منطقیانو ده او دا احسن نه ده بلکه بیا هم پدې باندې اعتراض راځي چه په دیکښ دَ خصم په نیز دَ اول دلیل ضعف (کمزوری) لازمیږي او دا خو صحیح نه ده- دا رنګ امام رازي یل اعتراض ذکر کړیدې چه دویم دلیل دَ اول دلیل نه ښهٔ واضح نه دې او دَ هغې وجوه ئې ذکر کړیدي -

جواب ۲ :- ابن کثیر او امام رازي وغیره ذکر کړي دي چه دا دَ یو دلیل نه بل دلیل ته انتقال نه دې بلکه دَ دلیل دَ پاره دوه مثالونه دي اول مثال احیاء او دویم مثال تصرف په حرکت دَ نمر کښ - نو دلیل په اصل کښ حدوث دَ څیزونو دې چه دَ هغې دَ پاره یو ذات محدث قادر مختار ضروري دې او هغه الله تعالیٰ دې- نو دَ هغه حوادثو یو مثال دَ عدم نه وجود ته راوستل دي او دَ وجود نه عدم ته بوتلل دي- او دویم مثال حرکات دَ افلاک او دَ ستورو دي - لیکن پدې باندې اعتراض کیدې شي چه هرکله چه خصم دَ اول قسم نسبت ځان ته

اوکړو نو ضروری وه چه دَ هغې ابطال کړے شوے وے۔
جواب ۳ه:۔ امام رازی او صاحب اللباب وئیلی دی چه په دیکښ هیڅ انتقال نیشته بلکه دا جواب دَ سوال مقدرَ دَ خصم دَ طرف نه هغه دا سے دے چه ابراهیم علیه السلام دلیل ذکر کړو دَ اِحیاء او اماتت نو منکر اعتراض اوکړو چه دا تصرف بغیر دَ اسباب سماویه او ارضیه نه دے او که په واسطه دَ دغه اسبابو سره دے۔ نو اول قول خو دَ حقیقت او واقع نه خلاف دے۔ او دویم قول دلیل په مقصد باندے نشی کیدے ځکه چه یو انسان هم په اِحیاء او اماتت باندے په بعضے اسبابو سره ظاهری قدرت لری لکه دَ اِحیاء دَ پاره جماع کول دَ ښځے سره او دَ اماتت (قتلولو) دَ پاره زهر ورکول یا بل سبب استعمالول۔ نو ابراهیم علیه السلام دَ دے جواب په دے قول سره ذکر کړو چه فان الله یاتی بالشمس آه۔ حاصل دَ جواب دا دے چه صحیح ده چه احیاء اماتت په اسبابو سره دے لیکن په هغے کښ ښکاره اسباب حرکاتِ فلکیه دی او دَ هغے فاعل مدبر الله تعالیٰ دے او خصم که دعویٰ کوی نو په دے اسبابو کښ دے مخالف دخل اوکړی۔ دا جواب صحیح دے لیکن تقدیر دَ سوال ته محتاج دے۔
جواب ۴ه:۔ ملیح آبادی په تفسیر مواهب القرآن کښ وئیلی دی حاصل ئے دا دے چه دَ مناظرے دَ قیام دَ پاره په جانبینو باندے اول ذکر دَ دعوے ضروری دے او بیا استدلال کول۔ نو دلته ابراهیم علیه السلام دعویٰ ذکر کړه چه رَبِّیَ الَّذِی یُحیِی وَیُمِیتُ په حصر او اختصاص سره نو نمروذ هم خپله دعویٰ ذکر کړه چه انا احی وامیت یعنی دعویٰ ئے اوکړه چه ځه متصرف یم په ایجاد او فنا دَ څیزونو کښ۔ نو ابراهیم علیه السلام دَ خپلے دعوے دَ پاره دلیل ذکر کړو په دے قول سره چه فَاِنَّ الله آه۔ او دَ خصم نه ئے هم دلیل طلب کړو لیکن هغه فی الحال عاجز شو دَ دلیل پیش کولو نه۔ دا جواب

احسن دے او دَ اصولو دَ مناظرے سره پوره موافق دے۔ او خصم ورسره سمدستی چپ شو۔ او فا په دلیل کښ ذکر کیږی۔ ځکه چه دعوٰی تقاضا دَ دلیل کوی نو په مقتضاء کښ فا داخلیږی۔

فَبُهِتَ الَّذِیْ كَفَرَ، فاعل په ظاهر کښ ابراهیم علیه السلام او په حقیقت کښ الله تعالیٰ دے۔ دَ دے وجے نه مجهول صیغه ذکر شوه۔ او په لفظ دَ الذی کفر کښ اشاره ده علت دَ بُهِتَ ته۔ او بَهَتَ په لغت کښ حیرانیدل او هیبت زده کیدل دی او ابن کثیر وئیلی دی چه چاړا شو او چپ شو۔ او صاحب اللباب وئیلی دی چه مغلوب شو او دَ سوال په جواب باندے قادر نه وو۔ ابن عاشور وئیلی دی چه عاجز شو دَ مناظرے نه۔

سوال:۔ نمرود دا جواب ولے نه کوو چه نمرد دَ مشرق نه ئے راخیژووم ستا رب دے دَ مغرب نه را اوخیژوی؟

جواب ۱:۔ سیوطی وئیلی دی چه دَ دۀ نه په عمر کښ مشران خلق موجود وو که چرے دہ دا دعوٰی کړے وے چه نمرد دَ مشرق نه ئے راخیژووم نو هغه مشرانو اګرچه دَ ډیرے نه به ئے ښکاره تکذیب دَ دۀ دَ قول نه وے کړے لیکن په پټه او په زړه کښ به ئے وئیلے وے چه دا خو ستا دَ پیدائش نه مخکښ دَ مشرق نه راختلو او ستا دعوٰی باطله ده۔

جواب ۲:۔ سمعانی وئیلی دی چه دے په زړه کښ پوهیدلو که چرے ئے دَ ابراهیم علیه السلام نه طلب اوکړم چه ستا رب دے دَ مغرب نه را اوخیژوی نو ضرور به ئے الله تعالیٰ دَ مغرب نه را اوخیژوی نو دے به ښۀ شرمنده شوے وے۔

جواب ۳:۔ الله تعالیٰ دَ دۀ نه دا جواب هیر کړو دے دَ پاره چه خلقو ته اظهار دَ حق اوشی۔ او دا مراد دے په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ چه وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ۔ او دَ دے هدایت نه مراد خودنه دَ دلیل او دَ حجت ده۔ راوهرچه مؤمنان دی نو دَ هغوی په باره کښ راغلی دی والذین جاهدوا فینا لنهدینهم سبلنا (سورة عنکبوت آخری آیت)

أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ وَّهِيَ

یا (لیدلے تا) پشان د هغه چا چه ورتیر شو په یو ښار باندے او هغه

خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا ۚ قَالَ أَنَّىٰ

پریوتلے وُ په چتونو خپلو باندے اُویل هغه څه رنگ

يُحْيِي هَٰذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ

به ژوندی کوی دے لره الله تعالیٰ روستو د مرگ د هغے نه

فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ ۖ

نو مړ او ساته ده لره الله تعالیٰ سل کلو ته بیا ئے راژوندے کړو

قَالَ كَمْ لَبِثْتَ ۖ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا

اُویل الله تعالیٰ څومره حصار شوے ته اُویل هغه حصار شوے یم یو ورځ

أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ۖ قَالَ بَل لَّبِثْتَ

یا ټکره د ورځ اُویل الله تعالیٰ بلکه حصار شوے ئے ته

نو مراد د هس ایت نه هس ایت خاصه دے۔ یا مراد د ظالم نه عنادی او ضدی دے چه په هغه باندے مهر وهلے شوے وی۔

فائده ۱:- په دے آیت کښ دلیل دے چه محاجه او مناظره په دے غرض سره چه اثبات د حق اُوشی داسنت د انبیاء علیهم السلام دے۔ په دے شرط چه ضد او عناد او تعصب او ریا پکښ مقصد نه وی۔ او قرطبی د دے د پاره نور هم دلیلونه ذکر کړی دی۔ ۲ په دے آیت کښ رد د شرک فی الربوبیت دے او مراد د ربوبیت نه تصرف کول او تدبیر کول د مخلوق دی۔ او دا مستلزم دے قدرت د الله تعالیٰ لره په بعث بعد الموت باندے چه روستو دا ړه واقعے په هغے باندے صراحتاً دلالت کوی۔

مِائَةَ عَامٍ فَانْظُرْ اِلٰى طَعَامِكَ

سل کاله تو اوګوره خوراک خپل

وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ ج وَانْظُرْ

او څکاک خپل ته ته دی خراب شوی او اوګوره

اِلٰى حِمَارِكَ قف وَلِنَجْعَلَكَ اٰيَةً

خر خپل ته (چه دلیل پرے اونیسی) او دے دپاره چه اوګرځوؤ مونږ تا یو نخه

لِّلنَّاسِ وَانْظُرْ اِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ

دپاره د خلقو او اوګوره هډوکو ته چه څه رنګ

نُنْشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوْهَا لَحْمًا ط فَلَمَّا

را اوچتوؤ هغے لره بیا اغوندوؤ مونږ هغے ته غوښه نو هر کله

تَبَيَّنَ لَهٗ لا قَالَ اَعْلَمُ اَنَّ اللّٰهَ

چه ښه ښکاره شوه ده ته ده اُوویل پوهه شوم (په مشاهدے سره) چه یقیناً الله تعالیٰ

عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۲۵۹﴾

په هر څیز باندے قدرت لرونکے دے.

س۲۵۹:- دا دویمه واقعه ده او تعلق لری د اَللّٰهُ وَلِیُّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا سره یعنی الله تعالیٰ ایمان والا د شبهاتو نه یقین ته بوځی.

ربط ۱:- اوله واقعه کښ اثبات وو د توحید د ربوبیت چه هغه اول اصل دے د اصولو د ایمان نه نو اوس دویم اصل ثابتوی چه هغه بعث بعد الموت دے.

ربط ۲:- په اوله واقعه کښ اثبات د قدرت د الله تعالیٰ وو په احیاء او امانت باندے او په تصرف کولو د انقلابا تو د نمر باندے. نو اوس په دے واقعه کښ په هغے باندے تفریع کوی چه دا رنګ الله تعالیٰ قادر دے په بعث

بعد الموت باندے او په امورِ خارقوٗ دَ عادت باندے۔
اَوْ كَالَّذِيْ مَرَّ عَلٰى قَرْيَةٍ، اَوْ دَ تنويع دَپاره دے په قدرت دَ
الله تعالىٰ کښ يعنى مخکښ يو قسم اثبات دَ قدرت دے نو اوس
بل قسم دے۔ او دا عطف دے په معنىٰ دَ ما قبل باندے (په
نيز دَ کسائی او فراء بغوی) او مبرد وئيلى دى چه دا عطف دے
په لفظ باندے ليکن عبارت پکښ پټ دے يعنى اَلَمْ تَرَ اِلَى
الَّذِيْ حَآجَّ اِبْرٰهِيْمَ، او اَلَمْ تَرَ مَنْ هُوَ كَالَّذِيْ مَرَّ
عَلٰى قَرْيَةٍ، او په دے دواړه حالاتو کښ کاف اسم دے په
معنىٰ دَ مثل سره دے او په ديکښ اشاره ده چه دَ دے واقعے
پشان نور مثالونه هم دَ الله تعالىٰ دَ قدرت شته دے۔ الَّذِيْ
کښ ډير اقوال دى۔ دَ اکثرو مفسرينو په نيز مراد عزير عليه
السلام بن شرخيا دے او دَ بعضو په نيز ارميا بن حلقيا نبى
دے او دَ بعضو په نيز حزقيل بن بوزى نبى مراد دے۔
سمعانى وئيلى دى چه اول قول صحيح دے او ابن عاشور وئيلى
دى چه دَ تورات مطابق دريم قول صحيح دے۔ او اکثرو
معتزلو وئيلى دى چه دا (نبى حزقيل بن بوزى) کافر وو۔
قَرْيَةٍ، دَ اکثرو مفسرينو په نيز دا قريه بيت المقدس وو چه
بخت نصر جابر دا قريه دَ بنى اسرائيلو خرابه کړيوه او دَ هغے
خه اوسيدونکى ئے قتل کړى وو او خه کسانو ترينه هجرت کړے
وو او دا رنګ تورات ئے هم خيژلے وو۔ يا دا ارض مقدسه
وه په قول دَ ضحاک سره او دا هغه قريه وه چه په زرګونو خلق
ترينه تختيدلے وو لکه په آيت ۲۴۳ کښ تير شويدى۔ ابن
عطيه دا قول رد کړيدے۔ او يا دا قريه دَ ديرِ هرقل وه يا سابور آباد
وۀ دا قول دَ کلبى دے۔ يا مسلم آباد وو دا قول دَ سدى
دے۔ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا، دا جمله حاليه ده۔ خاويه
په دوه معنو سره راځى (۱) غورځيدلے (۲) خالى۔ دلته اوله
معنىٰ مراد ده۔ او عروش جمع دَ عرش ده چهت دَ کوټے او
سپرونو ته وئيلے شى۔ يعنى دَ هغه کلى چهتونه او باغونه او

سپړونه اول غورځیدلی وو تو بیا دَ هغې دَ پاسه دیوالونه دَ هغې آبادو هم راغورځیدلی وو نو دَ هغې نه ډیرکئ جوړے شوے وے۔ لکه اُوس زمانه کښ زاړهٔ کهنډرات په داسے طریقے سره وی۔
قَالَ اَنّٰى يُحْيِ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعْدَ مَوْتِهَا، اَنّٰى په معنیٰ دَ کیف سره دے او احیاء دَ قریئے (ښار) په آبادئ او په اُوسیدونکو سره وی۔ او موت دَ هغې شاړیدل او تړیدل دی۔ او دا سوال مشتمل دے په احیاء دَ هغه انسانانو چه په دغه کلی کښ آباد او ژوندی وو۔ او دا سوال په طور دَ انکار او شک سره نه دے بلکه په طریقه دَ استعظام دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دے (چه دَ هغه قدرت ډیر عظیم دے) یا په طور دَ افسوس دے په مړه کړی شوی بنی اسرائیلو پسے یا په طور دَ کیفیت دَ دویم ژوند دے یعنی دویم ژوند خوحق دے لیکن طریقه او کیفیت یئے دهٔ ته تر دغه وخت پورے معلوم نه وو چه آیا دوباره ژوند به دَ اول پیدائش پشان (تدریجًا) وی یا چه څهٔ رنګه مړشوے وی تو په هغه طریقے به راژوندی کیږی۔
تنبیه:۔ بعض مفسرینو وئیلی دی چه دا قول په طریقه دَ شک سره وؤ او دا شخص کافر وؤ لکه چه زمخشری او ابوعلی (معتزلؤ) وئیلی دی۔ لیکن ابن عطیه په دے باندے رد کړیدے۔ او صاحب اللباب وئیلی دی چه دا تپوس دلالت کوی چه دے شخص الله تعالیٰ منلو او بعث بعد الموت یئے اجمالاً منلو لیکن دَ تفصیل نه خبر نه وو تو معلومه شوه چه دا شخص مؤمن وو او هرکله چه دَ الله تعالیٰ سره مکالمه شویده تو دلیل دے چه دے نبی هم وو۔
فَاَمَاتَهُ اللّٰهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهٗ، مِائَةَ ظرف دے دَ اَمَاتَهٗ دَ پاره لیکن یو لفظ پټ دے چه وَاَلْبَثَهٗ (حصار یئے کړو) او الله تعالیٰ چه ځان ته نسبت اوکړو تو معلومه شوه چه الله تعالیٰ دَ خلقو دَ نظرونو او تور وحوادثو نه هم ساتلے وو۔ او دا موت په جدا کولو دَ روح سره وو دَ جسم دَ هغه نه لیکن مرګ دَ تیتے نه وو بلکه دَ خرق عادت په طور سره وو۔ بعث په معنیٰ دَ دوباره ژوند سره دے۔ او داسے واقعات په دے سورت کښ دړے تیر

شویدی او داخلورمه ده۔ منکرین معجزات او منکرینِ حدیث دَ دینه انکار کوی او دَدے تحریف کوی او وائی چه قرآن کښ خو صرف دَ دُنیا ژوند او بیا مرګ او بیا دَ قیامت ژوند ذکر دے۔ جواب دا دے چه قیامت دَدے وجے نه تاسو منئ چه په قرآن کښ ثابت دے. نو داسے واقعات هم په قرآن کښ ثابت دی نو دَدے منل هم ضروری دی۔

سوال :- ثم بعثه یٔ او وئیلو او ثُمَّ اَحۡیَاهُ یٔ او نه وئیلو ؟

جواب :- دَ بعث نه مراد دا دے چه په کوم حالت کښ مړ شوے وو نو په هغه حالت کښ یٔ راژوندے کړو یعنی عقل علم او نظر یٔ لرلو۔ او په لفظ دَ اَحۡیَاء سره دا فائده نه حاصلیږی۔ مفسرینو لیکلی دی چه اویا کلونه دَ دهٔ دَ مرګ نه روستو تیر شو نو الله تعالیٰ یو فارسی بادشاه (چه نوم یٔ کوشك یا لوسك) لره قوت ورکړو او بیت المقدس یٔ دوباره آباد کړو او بنی اسرائیل یٔ دَ جابر دَ پنجے نه خلاص کړل او په بیت المقدس کښ آباد شول نو بیا په دیرش کاله کښ دوی پوره آباد کړو۔ قَالَ کَمۡ لَبِثۡتَ، قرطبی وئیلی دی چه ظاهر دا ده چه تپوس کوونکے الله تعالیٰ دے په دلیل دَ روستو لفظ کَیۡفَ نُنۡشِزُهَا ثُمَّ نَکۡسُوۡهَا لَحۡمًا،

سوال :- الله تعالیٰ ته خو دَ هغه دَ بعث مدت معلوم وو۔ دارنګ دا هم معلومه خبره ده چه مړے (دَ مرګ په حال کښ) دَ دُنیا دَ حال نه خبر نه وی نو دَدے تپوس څه فائده ده ؟

جواب ۱ :- دا دَدے دَ پاره چه په هغه باندے اشتباه دَ مرګ دَ خوب سره رانشی ځکه چه خوب خو عادتاً سل کالو پورے نه اوږدیږی۔

جواب ۲ :- هر کله چه دَ جاهلانو عقیده ده چه مړی دَ دُنیا دَ حالاتو نه خبروی او دَ دُنیا والو سره امداد هم کوی۔ نو دلته الله تعالیٰ دا سوال او جواب دَدے دَ پاره ذکر کړل چه عزیر علیه السلام اګرچه په مؤجل مرګ سره مړ نه وو لیکن

سره دَ دینه هغه ته مدت (وخت) معلوم نه وو چه په هغه څو
کاله، میاشتې یا ورځې شپې او نور دَ دُنیا احوال تیر شویوو- نو
څوک چه په مقرر (مؤجل) مرګ سره مړشي نو هغه خو په
طریق اولی سره دَ دنیا دَ حالاتو خبر نه لري-

قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ، دا قول دَ هغه په ګمان باندے
بنا وو- هر کله چه یو خبر په غالب ګمان سره صادر شي او دَ
واقع نه خلاف وی نو هغے ته دروغ (کذب) نشی وئیلے-
مفسرینو وئیلی دی چه دے کوم وخت مړ کیدلو نو دَ ورځے
صبا وخت وؤ او چه دوباره ژوندے کړے شو نو دَ نمر دَ
پریوتلو نه مخکښ وخت وو- نو چه نمر ته ئے لاکتلی نه وؤ
نو اُوئیل ئے لبثت یومًا او چه نمر ته ئے اوکتل چه پوره
پریوتے نه وو نو بیا ئے اُوئیل چه أَوْ بَعْضَ يوم- او أَوْ په
معنیٰ دَ بَلْ سره دے- قَالَ بَلْ لَبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ، دا بَلْ
دَ عطف دَ پاره دے په پټ کلام باندے یعنی ما لبثت یومًا
او بعض یوم بل لبثت- په دیکښ دَ هغه سوال (أنى يحي
هذه الله بعد موتها) اول جواب دے چه دَ هغه په بدن
کښ الله تعالیٰ ښکاره کړو- حاصل جواب دا دے چه دوباره
ژوند به دَ مخکښ حالت په صورت کښ وی لکه چه عزیر
علیه السلام څرنګه بالغ، عاقل، عالم او خاوند دَ حواسو
وو نو هغسے ئے دوباره راژوندے کړو- فَانْظُرْ إِلَىٰ طَعَامِكَ
وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ، ظاهر دا ده چه دَ دهٔ سره دَ سفر
توښه وه- طعام ئے اینځر وو او دَ خښکلو څیز ئے دَ انګورو
رس (عصیر) وو یا پئ وو لکه چه مفسرینو لیکلی دی- او
هغه په دغه سل کاله کښ دَ خپل حالت نه بدل شوی
نه وو- لَمْ يَتَسَنَّهْ، دا هاء دَ دے اصلی ده او پیخ ترینه
دَ لَمْ دَ وجے نه غورځیدلے دے- نحاس وئیلی دی چه
دا دَ سنه نه اخستلے شویدے- او تیریدل دَ کلو نو
مستلزم وی تغیر لره نو معنیٰ اصلی دا ده چه کلونه

په دے بانس ے نه دی تیر شوی. لیکن دلته معنی التزامی مراد ده یعنی نه دے بدل کړے هغے لره کلونو او نه به بویه شوے.

او لَمْ يَتَسَنَّهْ جمله حالیه ده یعنی نظر اوکړه د دے حال ته بدلیدلو نه.

سوال :- دا صیغه مفرد ده او مخکښ دوه څیزونه تیر شوی دی طعام او شراب؟

جواب :- دا دواړه د یو بل سره لازم دی په عادت کښ نو دا په حکم د یو غذا کښ دی ځکه ورته ضمیر مفرد راجع دے.

سوال :- د بل لَبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ د توضیح د پاره انظر الی الحمار مخکښ راوړل پکار وو چه هغه دلالت کوی په ډیره موده تیریدلو باندے. او د خوراک څښاک نه بدلیدل په ډیره موده تیریدلو دلالت نه کوی؟

جواب :- د مِائَةَ عَامٍ نه یو وهم پیدا شو چه بدن د دهٔ په سلو کالو کښ ولے نه خرابیدلو نو په دے سره ئے وهم دفع کړو چه د الله تعالی قدرت عظیمه دا دے چه خوراک څښاک چه هغه زر خرابیږی نو هغه نه دی خراب شوی په سبب د حفاظت د الله تعالی سره. نو دا رنګ د بعض مړو بدن نو نه هم الله تعالی محفوظ ساتی لکه بدن د عزیر علیه السلام او بدن نو نه د ټولو انبیاء کرامو او د بعض شهدائو او اولیاء کرامو. او دا رنګ د ټولو مړو نه یو هډوکے محفوظ ساتی چه هغے ته عَجْبُ الذَّنَبِ (لکه لمے) وئیلے شی. نو دا د الله تعالی د قدرت عظیمه لویه نښه ده.

وَانْظُرْ اِلٰی حِمَارِكَ، اکثر مفسرین وائی چه د دهٔ څورلی چه حمار وو مړ شوے وو او هډوکی د هغه خوارهٔ وارهٔ پراته وو (غوښه، څرمن تر ینه ختمه شوې وه) نو الله تعالی د خپل قدرت عظیمه د اظهار د پاره یله نښه اوخودله.

سوال :- د طعام او شراب سره ئے حالت ذکر کړے وو چه هغه محل د عبرت وو او دلته ئے د حمار حالت ذکر نه کړو؟

جواب :- د ضحاك او وهب بن منبه قول دا دے چه هغه

حمار د ده ځوزن ے اولاد وو په خپل ځائے پاتې ے او د طعام او د شراب پشان الله تعالیٰ محفوظ ساتلے وو- زمخشري وئیلي دي چه هغه حمار سل کاله خوراک څښکاک نه وو کړے (او ځوزن ے اولاد وو) نو دا هم لویه نښه د قدرت الهیه ده- نو د دے وجے نه د هغه حالت یے ذکر نه کړو-

وَلِنَجْعَلَكَ اٰيَةً لِّلنَّاسِ، فراء وئیلي دي چه د دے فعل روستو پټ دے یعني فَعَلْنَا ذٰلِكَ (دا کار مونږ اوکړو) بل قول دا دے چه واو زیاتي دے او دا متعلق دے په انظر پورے- دریم قول دا دے چه دلته کلام پټ دے یعني اَرَيْنَاكَ ذٰلِكَ لِتَعْلَمَ قُدْرَتَنَا وَلِنَجْعَلَكَ آه- (دا مونږ تا ته اوښودلو دے د پاره چه عالم شے په قدرت زمونږ او مونږ تا د خلقو د پاره نښه اوګرځوو) لِلنَّاسِ کښ الف لام عهدي دي یعني هغه خلق چه په دغه زمانه کښ وو او عزیر علیه السلام یے اولیدلو یا الف لام جنسي دي نو مراد هغه خلق دي چه تر قیامت پورے دا واقعه آوري- مفسرینو لیکلي دي چه دے ځوان مړ شوے وو د څلویښتو کالو په عمر- او واپس چه راغے نو هم ځوان وو او ځامن او توسي یے اولیدل چه د هغوی عمرونه د سلو کالو نه ډیر وو- او هغوی دے په بعض نښو سره او خصوصًا د تورات په حفظ سره اوپیژندلو- ابن عطیه وئیلي دي چه د ومره موده مړ ساتل او بیا ژوندے کول د الله تعالیٰ د قدرت یو عظیمه نښه ده د دے په یوه خبره پورے تخصیص نه ضرورت نیشته-

تنبیه :- دا قصه د عزیر علیه السلام د بعض یهودیانو د پاره د دے عقیدے سبب اوګرځیدو چه عزیر علیه السلام د الله تعالیٰ ځوئے دے او مظهر د تولو علمونو یے ګرځولے دے. خو دا د دوي باطله عقیده ده بلکه دوي د توحید د دلیل نه د شرک دلیل جوړ کړو

وَانْظُرْ اِلَى الْعِظَامِ، لفظ د انظر یے مکرر راوړلو ځکه چه د مخکښ نظر او د دے نظر په مینځ کښ فرق دے هغه دا چه اول نظر

حمار ته وو دَ هغه دَ مړ کولو او هډوکي يې ترسل کاله پورې ساتلو دَ پاره او دا نظر په پاره دَ دوباره ژوندی کولو کښې دے په طريقے دَ مشاهدے سره - العظام کښې الف لام دَ اکثرو مفسرينو په نيز عهدی دی يعنی هډوکی دَ حمار - او دَ ضحاک وغيره دَ قول په بنا دَ عظام نه مراد هډوکي دَ بعضے انسانانو يا حيواناتو وو - كَيْفَ نُنشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا، دا بدل دے دَ العظام نه او دَ بعضو په تيز حال دے - تو مراد نظر کول دی حال دَ هډوکو ته چه روستو يې دوه حالات ذکر دی - اول حال ننشزها - دا دَ أَنْشَزَ نه اخستلے شويدے - او نشز په لغت کښې ارتفاع (اوچتوالی) ته وئيلی شی - او ابن عطيه وئيلی دی چه اوچتوالے په دمه دمه سره او دَ يو بل سره پيوست کول دی - نو معنی دلته دا ده (حرکت ورکوؤ او پورته کؤو بعضے هډوکی بعضو ته). او په بعضے قراء تونو کښې په راء سره دے په معنیٰ دَ ژوندی کولو دے چه په قرآن کريم کښې اکثر دَ بعث بعد الموت دَ پاره په راء سره ذکر دے - ليکن په هغے کښې معنیٰ صرف دَ ژوندی کولو ده او دلته ذکر دَ کيفيت دَ ژوندی کولو دے نو دَ دے سره قرائت دَ زاء مناسب دے - دويم حال دَ هډوکو ثم نکسوها لحمًا دے او دا دَ اول ترتيب سره په بعضے حالاتو کښې موافق دے لکه چه په سورة مؤمنون ۱۴ کښې ذکر دے - فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ، مفعول دَ دے پټ دے يعنی کيفيت الاحياء يا مَا أَشْكَلَ عَلَيْهِ (کيفيت دَ ژوندی کولو يا هغه څيز چه ده باندے يې اشتباه وه) - او زمخشری وئيلی دی چه روستو أَنَّ اللهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، مفعول دے دَ تبين په طريقه دَ تقدير سره او مفعول دے دَ أَعْلَمُ دَ پاره هم په اعتبار دَ ظاهر سره - قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ اللهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، دَ علم نه مراد علم دَ مشاهدے دے چه پيدا شو روستو دَ دے واقعے نه - او مخکښې علم وو ليکن بغير دَ مشاهدے نه او دَ دے وجے نه يې فعل مضارع أو وئيلو چه نوے علم

وَإِذْ قَالَ إِبْرٰهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ

او کوم وخت چه اُوویل ابراهیم علیه السلام اے ربه او ښائے ما ته چه څه رنګ په

تُحْيِ الْمَوْتٰى ۖ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِنْ ۖ

ژوندی کوے ته مړی اُوویل الله تعالیٰ آیا ته ایمان نه لرے

قَالَ بَلٰى وَلٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي ۖ

اُوویل هغه هاں (ایمان لرم) او لیکن چه کلک شی زړه زما

قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ

اُوویل الله تعالیٰ نو اونیسه څلور د مارغانو نه نو ټکړے ټکړے کړه دوی

إِلَيْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلٰى كُلِّ جَبَلٍ

(او ساته ئے) د ځان سره بیا کیږده په هر غر باندے

پیدا شو۔ د آیت په فاصله کښ لفظ د قدیر د دے وجے ذکر کړو چه په دے واقعه د قدرت د الله تعالیٰ کښ ډیرے نمونے ذکر شوے ۱ محفوظ ساتل مړیدان لره۔ ۲ محفوظ ساتل د خوراک څښکاک سل کاله پوره ۳ سل کاله روستو د انسان (عزیر علیه السلام) دوباره ژوندی کول۔ ۴ بعض انسانانو له په دُنیا کښ علم د مشاهدے ورکول۔

فائده:- دا آیت دلالت کوی چه خورلی د حمار سنت د انبیائے کرامو ده۔ او په حدیث صحیح د معاذ رضی الله عنه کښ هم راغلی دی چه زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم په حمار باندے خوړلی کړیده۔ او په دیګښ نور احادیث هم شته دے۔ نو هیڅ مؤمن لره جائز نه دی چه د حمار خورلئی ته په بد نظر سره اُوګوری او په دے زمانه کښ د چا د شرمنده کولو او سپکولو په طور سره په حمار باندے خورول دا هم د یهودیانو او انګریزانو طریقه ده دے د پاره چه د نبی د سنت توهین اوکړی۔

مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا ۚ

دَ دے نه څه ټکړه بیا آواز ورکړه هغوی ته راځي به تا ته منډے په وهلو

وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦٠﴾ ع

او پوهه شه چه یقیناً الله تعالیٰ زور آور حکمتونو والا دے۔

۵ ۳۵ ع ۳ ۳

۲۶۰ دا دریمه واقعه ده او متعلق ده دَ اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا، سره۔ یعنی الله تعالیٰ ابراهیم علیه السلام دَ یو قسم ظلمت نه (چه په سوال کښ دے) سرهٔ دَ علم یقیني نه نور (رڼا) دَ مشاهدے ته اوویستلو او په دیکښ دَ مخکښ قصے نه ترقي ده۔ هلته تپوس په لفظ دَ اَنّٰی سره او دلته په لفظ دَ کیف سره دے چه دا صریح دے په سوال دَ کیفیت کښ هلته الله تعالیٰ دَ عزیر علیه السلام په بدن کښ نمونه اُوخودله او دلته نمونے دی په خارجي حیواناتو کښ۔ هلته نمونے دَ قدرت اُوخودلے او دلته ئے حکمتونه اُوخودل۔ هلته ئے بعث دَ هډوکو (بدن) دَ انسان او دَ حمار اُوکړو لیکن دَ هغے اختلاط نه وو راغلے او دلته روستو دَ اختلاط دَ هډوکو نه ئے نمونه دَ بعث خودلے ده۔ او دا فرقونه دلالت کوی په فضیلت دَ ابراهیم علیه السلام په عزیر علیه السلام باندے۔ او واقعه دَ عزیر علیه السلام ئے په دے واقعے باندے مخکښ کړے ده ځکه چه دا ترقي ده دَ ادنیٰ نه اعلیٰ ته په اثبات دَ بعث بعد الموت کښ۔

وَإِذْ قَالَ إِبْرٰهِيْمُ، او دَ دے مناسبتونو دَ وجے نه ئے دا په ماقبل باندے عطف کړے دے په حرف دَ واو سره۔ رَبِّ أَرِنِيْ كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتٰى، مفسرینو دَ دے سوال مختلف اسباب لیکلی دی لیکن غوره دا ده چه روستو سبب ذکر دے چه لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ۔ او زیاتوالے دَ علم دَ علماؤ او انبیائے کرامو په نیز مطلوب او محبوب دے۔ او لفظ دَ أَرِنِيْ دلیل دے چه علم مشاهده غواړی او کیف لفظ هم په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه وجود دَ یو څیز دَ سائل او دَ مسئول په نیز باندے معلوم وی لیکن بعض

احوال ورته معلوم نه وي - دلته هم دا سے ده چه بعث بعد الموت باندے د ابراهیم علیه السلام یقین دے لیکن سوال دا دے چه د مړو اجزاء او اعضاء ګلا وده شي نو آیا هغه اجزاء به ټول یوځائے راجمع کوی یا به بعض پریږدی یا به په دمه دمه راجمع کیږی او که نه سمدستی به راجمع کیږی - نو ابراهیم علیه السلام د دا سے احوالو د علم حاصلولو د پاره تپوس کوی -

قَالَ اَوَلَمۡ تُؤۡمِنۡ قَالَ بَلٰى ، په دے سوال او جواب کښ مقصد دفع د وهم د خلقو ده - یعنی که څوک وهم اوکړی چه د ابراهیم علیه السلام سوال کول دلالت کوی چه هغه په بعث بعد الموت کښ شک کولو نو حاصل د جواب دا دے چه الله تعالیٰ پخپله د هغه نه د سوال د سبب تپوس کړے وو په دے قول سره چه اَوَلَمۡ تُؤۡمِنۡ نو هغه جواب کړیں ے او په دغه جواب باندے الله تعالیٰ راضی وو ځکه ئے د هغے رد نه دے کړے -

وَلٰكِنۡ لِّيَطۡمَئِنَّ قَلۡبِىۡ ، طمانینت په اصل کښ سکون او اعتدال ته وئیلے شی او دا په اعضاؤ کښ ظاهر دے - لکه چه په مونځ کښ تعدیل او طمانینت کار کانو دے - او طمانینت د زړه سکون دے د فکر په هغه څیز کښ چه په هغے باندے عقیده وی او هغه څیز دلته صورت د ژوندی کولو دے نو په هغے کښ طمانینت دا دے چه علم ضروری د علمِ استدلالی سره یوځائے شی نو په هغے کښ محل د شک پاتے نشی (زمخشری، ابوحیان) طمانینت زیادت د یقین ته وئیلے شی (سعید بن جبیر) -

یا مراد د دینه زیاتوالے د ایمان دے د مخکښ ایمان سره (قتاده) د دے وجے نه امام بخاری په کتاب الایمان کښ دا د اثبات د زیادت د ایمان د پاره په طور د دلیل ذکر کړیدے - او ابن عاشور وئیلی دی چه مراد د قلب نه علم دے په ذکر د محل او اراده د حال سره او مراد د اطمینان نه علم محسوس او انشراح د نفس ده په هغے سره - نو معلومه شوه چه زیادت د مراتبو د علم ته انبیاء علیهم السلام

هم محتاج دی۔
سوال :- امام بخاری په کتاب التفسیر او کتاب الایمان کښې حدیث راوړیدے د ابو هریره رضی الله عنه چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی نَحْنُ اَحَقُّ مِنْ اِبْرَاهِیْمَ اِذْ قَالَ رَبِّ اَرِنِیْ آه (مونږ ډیر حقدار یو په شک کولو سره د ابراهیم علیه السلام نه کله چه هغه دا کلمه اووئیله) دا خو دلالت کوی چه ابراهیم علیه السلام دا کلمه د شک د وجے نه وئیلے وه او حال دا چه انبیاء کرام په قدرت د الله تعالیٰ کښې د شک نه پاک دی؟
جواب :- قرطبی، ابن عطیه او صاحب اللباب د خطابی نه په نقل سره وئیلی دی چه دا په طریقه د تواضع سره دے او په دیکښې مراد تعلیق دے یعنی لو کان هذا القول عن ابراهیم علی سبیل الشك فنحن احق به (که چرے دا قول د ابراهیم علیه السلام په طریقه د شک سره وے نو مونږ به زیات حقدار وے د شک کولو لیکن هر کله چه مونږ شک نه کوو نو ابراهیم علیه السلام خو په اولیٰ طریقے سره شک نه کوو) - او ابن جریر او طبری چه د دے په باره کښې د شک د جواز ذکر کړیدے نو ابن عطیه وئیلی دی چه دغه قول د دوی مردود دے۔ او قرطبی او نیشاپوری هم د هغے سخت رد ذکر کړیدے۔ قَالَ فَخُذْ اَرْبَعَةً مِّنَ الطَّیْرِ، دا د ابراهیم علیه السلام د سوال اجابت دے په عملی محسوسی طریقے سره۔ او نیول په لاس کښې سبب د جمع کولو د حاسے (د محسوسولو قوت) د لیدلو په سترګو سره او د حاسے د لمس (د خیز سره لاس لګول) نو دا سبب د کمال علم دے۔ اَرْبَعَةً، الله تعالیٰ دلته عدد معین ذکر کړیدے لیکن د مارغانو تعین ئے نه دے ذکر کړے۔ نو په هغے کښې د صحابه کرامو او تابعینو نه مختلف روایات نقل دی۔ د مجاهد او عطاء قول دے چه دا مارغان طاؤس، بانګی، کونتره او کارغه وو۔ او د ابن عباس رضی الله عنهما نه د کونترے په بدل

کبښ کنجئ (چه غټ مارغه دے) نقل ده۔
سوال:۔ دَ یو مارغه امرئیے ولے اونکړو؟
جواب ۱:۔ دَ ابراهیم علیه السلام په سوال کښې مُوتٰی جمع ده نو جواب کښې جمع پکار وه۔
جواب ۲:۔ دلته مقصد ټولو کول دی روستو دَ اختلاط دَ اجزاؤ نه او دَ اختلاط دَپاره ډیر عدد پکار دے۔
سوال:۔ دَ مارغانو تعین کښې څه حکمت دے؟
جواب ۱:۔ دَ مارغانو صفت اوچت الوتل دی او دَ ابراهیم علیه السلام همت هم رسیدل وو ملکوت ته۔
جواب ۲:۔ اشاره ده چه په هوا کښې په الوتلو سره هم انسان دَ مرګ او بعث بعد الموت نه نه خلاصیږی۔
سوال:۔ دَ څلورو عدد په تخصیص کښې څه حکمت دے؟
جواب ۱:۔ اشاره ده څلورو عناصرو ته چه په بدن دَ انسان کښې دی۔
جواب ۲:۔ دَ مارغانو صفات په څلور قسمونو کښې منحصر دی۔ خائستت لکه چه په طاؤس کښې او شدت شهوت لکه په بانګی کښې دے۔ او ډیر حرص کول دَ خوراک لکه چه کارغه کښې دے او ډیر غفلت لکه په کونتره کښې دے یا ډیر خوراک لکه په کنجئ کښې دے۔ نو دَ هر صفت نه ئے یو یو راجمع کړو۔ او په دغه صفاتو کښې انسانان هم دَ مارغانو سره مشابهت لری۔
تنبیه:۔ دَ هر نبی دَپاره الله تعالیٰ څه معجزات خاص کړی وی په هغے سره دَ هغه نبی خصوصیت معلومیږی۔ خو موږ په ډیر رازونو او حکمتونو دَ الله تعالیٰ بانده علم نه لرو۔
فَصُرْهُنَّ اِلَیْکَ ، ابوحیان او قرطبی وئیلی دی چه دَ ابن عباس رضی الله عنهما، مجاهد، ضحاک، او ابن اسحاق په نیز دَ دے معنیٰ دا ده چه قطع (ټوټے کړه) دوی لره۔ او قتاده وئیلی دی چه جدا جدا ئے کړه (دا هم دَ اولے معنے پشان دے) او عطاء وئیلی دی چه ځان سره ئے پیوست کړه۔ او دَ کسائی

قول دے چه ځان ته یې مائل کړه (یعنی عادت او اموخته یې کړه) نو په مخکنو معانیو سره اِلَیۡکَ دَ خُذۡ سره متعلق دے او په آخری معنیٰ سره دَ صُرۡهُنَّ سره متعلق دے۔ او په دیکښې دوه مشهور قراء تونه دی یو په پیښ دَ صاد سره او بل په زیر دَ صاد سره. فراء وئیلی دی چه دَ پیښ په حالت کښې مشترک دے په معنیٰ دَ قطع او اِماله (مائیل کول) کښې او په زیر سره خاص دے په قطع پورے۔ زه وایم چه دلته معنیٰ دَ قطع کولو غوره ده۔ یو وجه دا ده چه په کلام کښې تقدیر ته حاجت نه راځي او په معنیٰ دَ اماله (مائیل کولو) سره به فَقَطِّعۡهُنَّ پټ را اویاسے۔ او په کلام کښې بے ضرورته تقدیر دَ عربیت دَ قانون نه خلاف دے۔ دَ ترجیح نور وجوه به روستو په تنبیه کښې ذکر شي۔

ثُمَّ اجۡعَلۡ عَلٰی کُلِّ جَبَلٍ مِّنۡهُنَّ جُزۡءًا، جزء ټکړے دَ یو څیز ته وئیلے کیږی۔ دَ تَجۡزِی (ټکړے کولو) نه پیدا کیږی۔ نو دا هم صریح دلیل دے چه دَ صرهن نه مراد تقطیع ده۔

کُلِّ جَبَلٍ، دَ مجاهد او ضحاک په نیز دَ دینه مراد بحسب الامکان دے (چه په طاقت کښې دے څومره وی) او دَ حسن او قتاده قول دے چه څلور واړو اطرافو ته څلور غرونه مراد دی۔ او دیته استغراق عرفی وئیلے شي۔ لفظ دَ کُلِّ په قرآن کښې کله کله دَ دے استغراق دَ پاره استعمالیږی۔ او په غرونو باندے په تقسیمولو سره یو حکمت دا دے چه دَ مارغانو اکثر تعلق دَ اوسیدلو دَ غرونو سره وی۔ دویم دا چه په غرونو کښې یو څیز موندل ګران وی لیکن دَ الله تعالیٰ قدرت ته هیڅ ګران والے نیشته۔ ثُمَّ ادۡعُهُنَّ، دَ دُعا نه مراد نداء (آواز) کول او راغوختل دی۔ دا دُعا عبادت نه دے (یعنی دَ حاجت روایئ دَ پاره رابلل نه دی) ځکه چه په ډیرو آیتونو او احادیثو کښې معلومه شویده چه غیرالله ته داسے کول دَ شرک کار دے او الله تعالیٰ چاته دَ شرک کولو حکم نه کوی۔ نو دَ دے لفظ نه چه چا دا معنیٰ او مراد اخستلے دے

هغوی تحریف معنوی کړیدے - او په حال د مړک او ټکړے کولو کښ او آواز ورکولو او د هغوی ژوندی کیدلو او راتللو کښ د الله تعالیٰ عظیم قدرتونه او حکمتونه دی - بل په دے کښ معجزه د ابراهیم علیه السلام ده چه د هغه په آواز سره هغه مارغان ژوندی کیږی - يَأْتِينَكَ سَعْيًا، دا مصدر په معنیٰ د اسم فاعل سره حال دے یعنی سَاعِيَاتٍ (منډے وهونکی) اِتیان او سعی اکثر د زمکے د راتللو سره تعلق لری یعنی په داسے طریقه د دوی راتلل چه د دوی د عادت نه خلاف دی (د دوی عادت خوالوتل دی) دا هم د الله تعالیٰ د قدرت نښه ده. د مفسرینو په روایاتو کښ شته چه ابراهیم علیه السلام هغه مارغان راونیول او ذبح ئے کړل او غوښے، هډوکی او بڼرے د هغوی ئے د یو بل سره گډوډ کړۀ او په تیږو ئے غرونو ئے تقسیم کړۀ - بیا ئے ورته آواز کړو نو د هرے مرغئ ټکړے د یو بل سره یوځائے شوے او ابراهیم علیه السلام ته په منډه راغلے - وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ، عزت متضمن دے قدرت او غلبے لره - یعنی د دے ناآشنا (خلاف عادت) کارونو کول د الله تعالیٰ د عزت او غلبے په مخکښ هیڅ گران نه دی - نو چا لره نه دی جائز چه د دیته انکار اُوکړی - حَكِيمٌ کښ اشاره ده چه په دے واقعه کښ اظهار د ډیرو حکمتونو دے چه بعض ځے هغے نه موږ بیان کړل -

فائده:- په دے کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ د ټولو قسمونو انسانانو او پیریانو بعث کوی یعنی دوباره به ئے راژوندی کوی - دا رنگ چه دوی مړه شی او د خاورو سره گډ شی او که د سیلئ په ذریعے سره ئے اجزاء د یو بل سره خلط شی لیکن په ورځ د بعث به الله تعالیٰ د هر یو شخص اجزاء راجمع کوی او روح به په کښ اچوی او میدان حشر ته به بیا دغه شخص په منډه سره راغلی -

تنبیه:- په دے آیت کښ د فَصُرْهُنَّ ډیرے معنے ذکر کړے

شوے او په هغې کښې د مفسرينو درے اقوال دی - **اول قول:** د ابو مسلم اصفهانی دے (او په دے زمانه کښې د منکرين حديث قول دے) د هغوی د قول حاصل دا دے چه د صُرهُنَّ معنیٰ صرف اموخته کول دی او په اجابت پاندے عادت کول دی (لکه چه دا طريقه د مارغانو سره د لويوکوونکو خلقو ده) او بيا ابراهيم عليه السلام ژوندی مرغوته آواز اُوکړو تو هغوی بے حواله راغلے د دوی دليلونه دا دی چه د صرهن ته اموخته کول معنیٰ مشهوره ده - **دويم قول:** چه د تقطيع په معنیٰ شی نو اِلَيْكَ لفظ بے فائدے دے يا په کلام کښې تقديم تاخير راځی - **دريم قول:** د هُنَّ ضمير اجزاؤ ته نشی راجع کيدے بلکه ژوندی مارغانو ته راجع دے - تو دا قول د معتزلؤ او منکرين حديث بِنا دے په انکار د معجزاتو پاندے - د دے دليلونو جوابونه بالترتيب دا دی (۱) تفسير د صرهن په اموخته کولو سره بالکل نه دے بلکه شاذ او ضعيف قول دے لکه روستو به ثابت شی - (۲) او لفظ اِلَيْكَ متعلق دے په خُذْ پورے او تقديم تاخير په کلام د عربو کښې بلکه په قرآن کريم کښې ډيرځايه ثابت دے. (۳) ضمير د هُنَّ اجزاؤ ته د راجع کولو هيڅ مانع نيشته - او اعتراضونه په دے قول پاندے ډيردی - اول دا چه دا بِنا دے په انکار د معجزاتو پاندے او هغه مفضی دی کفر ته يا کفر دے - دويم دا چه په دا سے عمل سره خو د ابراهيم عليه السلام هيڅ خصوصيت ثابت نشو بلکه دا کار خو عام ښکاريان باز او د مارغانو ساتونکی خلق هم کوی - دريم دا چه لفظ د جزء او جزئی کښې فرق دے - جزء ټکړے د کل ته وئيلے شی او جزئی يو مستقل فرد ته وئيلے شی - دلته لفظ د جُزْءًا صريح دليل دے چه هغه يے ټکړے کړی وے - څلورم دا چه ابراهيم عليه السلام د کيفيت د اِحياء او اماتت تپوس کړے وو تو په دغه تفسير سره د هغه د سوال اجابت اُونه شو - دا د مقصد د قرآن نه بالکل خلاف دے -

**دويم قول:** د بعض اهلِ سنت مفسرينو دے چه صرهن په

معنیٰ دا موخته کولو سره دے لیکن قَطَّعۡهُنَّ په دیکښې
پټ دے او دلیل په هغے باندے لفظ دَجزءًا دے۔ نو په
دے قول کښې انکار دَ معجزاتو نیشته۔ لیکن دا موهم (شکی)
دے دَ مخکښې قول دَ پاره او دَ دے وجے نه چه دَ انکار حدیث
والا په وړاندے دا معنیٰ او کړیشی نو هغوی خوشحاله شی۔
وائی چه دا زمونږ دَ تفسیر تائید دے۔ او په دے باندے
ځما تجربه شویده چه هغوی دا سے معنے کؤونکو ته
شاباسے ورکوی۔ او حال داچه دَ موهما تو نه منع کړے
شویده لکه چه تفسیر دَ راعنا کښې تیر شویدی. بل داچه
په دے سره حذف دَ فعل (قطعهن) بے ضرورته واقع
کیږی۔ بل داچه دا دَ مشهور تفسیر نه خلاف دے لکه چه
روستو ذکر کیږی۔
دریم قول :- دَ اکثر اهلسنت دے چه صرهن په معنیٰ دَ ټکړے
کولو سره دے او دا راجح تفسیر دے۔ ترجیح ئے په لاندے
وجوهو سره ذکر کیږی
اوله وجه :- قول دَ صاحب اللباب (متوفی ۸۸۰ھ) دے چه
وَاَجۡمَعَ الۡمُفَسِّرُوۡنَ عَلٰی اَنَّ الۡمُرَادَ مِنَ الۡاٰیَةِ الۡکَرِیۡمَةِ
قَطِّعۡهُنَّ جلد څلورم صفحه ۳۷۳۔ او قول دَ نیشاپوری (متوفی
۷۲۸ھ) وَزُیِّفَ قَوۡلُ اَبِیۡ مُسۡلِمٍ بِاَنَّهٗ خِلَافُ اِجۡمَاعِ الۡمُفَسِّرِیۡنَ.
جلد دویم صفحه ۳۰۔ او قول دَ ابوحیان (متوفی ۷۵۴ھ)
وَاحۡتَجَّ لِلۡقَوۡلِ الۡاَوَّلِ (مراد ترینه قطعهن دے) بِاِجۡمَاعِ
الۡمُفَسِّرِیۡنَ الَّذِیۡنَ کَانُوۡا قَبۡلُ (ابی مسلم) (جلد دویم صفحه
۶۴۹) او قول دَ امام رازی دے چه اَجۡمَعَ اَهۡلُ التَّفۡسِیۡرِ عَلٰی
اَنَّ الۡمُرَادَ بِالۡاٰیَةِ قَطِّعۡهُنَّ غَیۡرَ ابی مسلم (جلد اووم صفحه
۴۱) او قول دَ آلوسی حنفی دے (متوفی ۱۲۷۰ھ) (دَ ابو مسلم
دَ قول په باره کښې) چه وَلَا یَخۡفٰی اَنَّ هٰذَا اِخۡلَافُ اِجۡمَاعِ
الۡمُسۡلِمِیۡنَ وَضَرۡبٌ مِّنَ الۡهَذَیَانِ لَا یَرۡکَنُ اِلَیۡهِ اَرۡبَابُ الدِّیۡنِ
اه (جلد دریم صفحه ۳۰) ترجمه دَ اول قول (مفسرینو

اجماع کړیده چه مراد دَ دے آیت نه قطعهن دے) دَ دویم قول ترجمه (ضعیف کړے شویدے قول دَ ابومسلم په دے وجه چه دا خلاف دے دَ مفسرینو دَ اجماع نه) دریم قول ترجمه (دلیل نیولے شویدے دَ اول قول دَ پاره په اجماع دَ مفسرینو چه مخکښ دَ ابومسلم نه وو) څلورم قول ترجمه: (اجماع کړیده مفسرینو چه مراد په دے قول سره قطعهن دے سیوا دَ ابومسلم نه) دَ پنځم قول ترجمه (پته دِ نه وی چه دا قول (دَ ابومسلم) دَ اجماع دَ مسلمانانو نه خلاف دے او یو قسم بکواس (دروژے) دے - او دیندار خلق دیته هیڅ میلان او توجه نه کوی -

سوال :- په دیکښ صرف (دَ ابومسلم) دَ قول رد دے دَ دویم قول تردید پکښ نیشته ؟

جواب ۱ :- مخکښ اول قول او څلورم قول کښ تصریح ده چه قطعهن معنیٰ په اجماع سره ثابت ده نو دویم قول دَ صرف په تفسیر کښ دَ اجماع نه خلاف دے -

جواب ۲ :- مخکښ او وئیلے شو چه په دویم قول دَ مفسرینو کښ ایهام دے او تشبیه ده دَ اول قول سره (یعنی قول دَ ابومسلم او منکرین حدیث سره) نو دَ دے وجے نه هغه هم ردکیدے شی -

دویمه وجه دَ ترجیح دا ده چه ابن کثیر په تفسیر کښ قَطِّعُهُنَّ او اُوثِقْهُنَّ دوه معنے لیکلے دی - دَ اَمِلْهُنَّ معنے ته ئے هیڅ تعریض نه دے کړے - او حال دا چه ابن کثیر تفسیر په متداول تفاسیرو کښ اصح او ارجح دے -

دریمه وجه :- قرطبی اَمِلْهُنَّ په صیغه دَ قیل سره ذکر کړیدے او نسبت ئے هیڅ قائل ته نه دے کړے - او دَ قول دَ قطعهن سره ئے نسبت دَ بعضے صحابه کرامو او تابعینو ذکر کړیدے -

څلورمه وجه :- تفصیل دَ ابن جریر دے (متوفی ۳۱۰ھ) حاصل ئے

دا دے چه یوے ډلے دَ نحویانو دَ کوفے وئیلی دی چه صرهن په معنیٰ دَ قطعهن سره دَ عربو په کلام کښ معروف نه دے مګر په هغه وخت چه په کسره (زیر) دَ صاد سره شی - او دَ بصرے نحویانو وئیلی دی چه زیر او پیښ دَ صاد دواړه په معنیٰ دَ تقطیع سره دی - بیا ابن جریر وئیلی دی چه دَ بصریانو دا قول ډیر نیز دے دے حق ته په نسبت دَ قول دَ کوفیانو سره - ځکه چه اجماع دَ مفسرینو ده چه صرهن دَ دے دوه معنونه بهرته دے یو معنیٰ قطعهن او بله معنیٰ اُضْمُمْهُنَّ نو په دے اجماع کښ اوضح دلیل دے په صحت دَ قول دَ بصریانو او په خطایئ دَ قول دَ کوفیانو - بیا ابن جریر په شپاړس سندونو سره نقل کړیده معنیٰ په قطعهن، شَقِّقْهُنَّ او فَرِّقْهُنَّ سره او دَ دے مرادف نورے - نو په آخر کښ ئے فیصله کړیده چه په دیکښ ښکاره دلیل دے چه هغه معنیٰ چه مونږ وئیلے ده (قطعهن) صحیح ده او دَ دینه مخالف قول فاسد دے - او بیا ئے صرف درے سندونه ذکر کړیدی دَ معنے دَ اَوْثِقْهُنَّ، اُضْمُمْهُنَّ او اَجْمَعْهُنَّ دَ پاره. او دَ اَمِلْهُنَّ (اموخته کړه) دَ پاره ئے هیڅ قول مسند او غیر مسند ته دے ذکر کړے - (تفسیر ابن جریر صفحه ۵۴ ته ۵۷ پورے) په سندونو کښ کلام شته لیکن په کثرت دَ سندونو سره خبر درجے دَ حسن ته رسیږی (دا اصول دَ حدیثو دی) دارنګ امام بخاری دَ صرهن معنیٰ په قطعهن سره ذکر کړیده - عینی وئیلی دی چه دا نقل دے دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه او عکرمه، سعید بن جبیر، ابو مالك، حسن بصری او سدی (عمدة القاری) ته - او اَمِلْهُنَّ معنیٰ ئے په قیل (ضعیف) سره ذکر کړیده - او علامه سیوطی په (درمنثور جلد دویم صفحه ۳۵) کښ دَ سعید بن منصور، عبد بن حمید، ابن جریر، ابن المنذر، ابن ابی حاتم او دَ بیهقی (شعب الایمان) په سندونو سره دَ ابن عباس رضی الله عنهما، دا رنګ په سند دَ سعید بن جبیر دَ ابن عباس رضی الله عنهما

دارنګ دَعکرمه نه اودَعبد بن حمید اوقتاده نه اودارنګ دَ طریقے دَابن جمره عن ابن عباس رضی الله عنهما نه - په دے ټولو سندونو سره دَ فصرهن معنیٰ قطعهن کړیده - او دَ آمِلْهُنَّ ئے هیڅ ذکر نه دے کړے - په دے سندونو کښې اګرچه په بعضے کښې کذاب شته دے - لیکن ډیر سندونه دَ کذب نه خالی دی - او داسے کثیر سندونه اګرچه ضعیف وی خو په حدیث کښې حُسن پیدا کوی - دَضعف دَ هر واحد په بهانه دَ دے تفسیر انکار کول یا مرجوح ګڼړل جهل دے او انکار معجزات طرف ته میلان دے -

فائده ۱:- په دے باره کښې دا تفصیل ما دَ دے وجے نه اوکړو چه اول خو دَ منکرین حدیث دَ دے زمانے تحریفِ قرآن معلوم شی - دویم دا چه دَ دے زمانے یومنلے شوے معاند او حاسد څما دَ مختصر تفسیر په باره کښې دَخپل ارزان شهرت حاصلولو او څما دَ تفسیر مقبولیت کمولو دَپاره څه بے بنیاده اعتراضونه کړیدی - دَ هغے خو تفصیلی جواب مولوی محمد اسحاق ګبرالی حفظه الله تعالیٰ (دَ سوات) خپل کتاب کښې کړیو - اوس علماؤ او طلباؤ ته عرض دے چه دَ هغه معاند دَ اعتراضونو او نازیبا طرز کلام او څما او دَ مولوی اسحاق صاحب تفصیلی کلام کښې موازنه اوکړی - انشاء الله تعالیٰ ضرور به اووئیلے شی چه عَامَلَهُ اللهُ تعالیٰ بِمَا یَلِیْقُ بِالْمُعَانِدِیْنَ وَالْحَاسِدِیْنَ اِنْ لَّمْ یَتُبْ -

فائده ۲:- آلوسی او نیشاپوری دَ دے آیت په تفسیر کښې وئیلی دی چه اجزاء دَ مړو مارغانو راټولول او هغوی له آواز ورکول اوژوندی کول دلیل دے په دے خبره چه دَ انسان دَ برزخی حیات دَپاره بُنیه (روغ اوسالم بدن) شرط نه دے یعنی الله تعالیٰ قادر دے چه ټکړو دَ بدن له چه هرځائے کښې وی نعمتونه یا عذابونه دَ قبر ورکړی لیکن په دیکښې دَ روح واپس کیدل شرط نه دی - او په

مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ
مثال دَ هغه کسانو چه خرچ کوی مالونه خپل
فِیْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ
په لارے دَ الله تعالیٰ کښ پشان دَ حال دَ یو دانے دے
اَنْۢبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِیْ كُلِّ
چه زرغون کړی اوو وږی په هر وږی کښ
سُنْۢبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ ؕ وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ
سل دانے دی او الله تعالیٰ زیاتوی
لِمَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ (۲۶۱)
دَچا دَپاره چه اوغواړی او الله تعالیٰ فراخ فضل والا عالم دے په هرڅه باندے.

حیات اخرویه کښ به الله تعالیٰ ټول اجزاء دَ مړو راجمع کوی او روغ بدن به ورله دوباره جوړ کړی او روح به ورته واپس کړی او حیات حقیقیه اُخرویه به ورکوی۔ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْئَلُكَ الْهُدٰى وَالتُّقٰى وَالْعَفَافَ وَالْغِنٰى۔

۲۶۱: دا دویم باب دے دَ دے حصے چه هغه تر آیت ۲۷۴ پورے دے په دے کښ څلور مثالونه ذکر کوی چه هغه متعلق دی دَ انفاق سره۔ اول او دریم مثال دَ شرعی انفاق دَپاره دے۔ بیا اول دَ هغه چا دَپاره دے چه انفاق فی سبیل الله کوی یعنی جهاد او دعوت۔ او دریم دَ هغه چا دَپاره دے چه انفاق کوی په اخلاص سره او دَ مضبوطوالی دَ زړه دَپاره په صحیح مصرف کښ بغیر دَ جهاد او دعوت نه۔ او دویم او څلورم دَ هغه چا دَپاره دے چه انفاق کوی بغیر دَ شرعی طریقے نه۔ نو دویم مثال دَ هغه چا دے چه مصارفو شرعیو کښ انفاق کوی لیکن په ریا، زیادلو او اذی (تکلیف ورکولو) سره۔ او څلورم مثال دَ هغه چا دے چه انفاق کوی بغیر دَ

مصارف شرعیه نه سرهٔ دَ ظلم او فسق وفجور او ریاتو ته روستو دَانفاق نه په شرعی طریقے سره- او دَ دے مثالو نو ته روستو دَانفاق فی سبیل الله پنځه شرطونه دی دوه سلبی دی چه مَن اواذی به نه کوی او درے ثبوتی دی، ابتغاء مرضات الله، تثبیت دَ زړه او انفاق دَ طیب څیز- بیا شپږ امور متعلق دی په انفاق پورے- اول دفع کول دَ وسوسے دَ شیطان نه په ۲۶۸ کښ- دویم انواع دَ انفاق په ۲۷۰ کښ- دریم طریقه دَ اداء دَ هغے په ۲۷۱ کښ- څلورم دفع دَ وهم او فائده دَ انفاق په اخلاص سره ۲۷۲ کښ- پنځم مصرف دَ انفاق فی سبیل الله په ۲۷۳ کښ- شپږم تعمیم دَ اوقاتو او احوالو دَ پاره دَ انفاق په ۲۷۴ کښ-

ربط ۱: هر کله چه مخکښ واقعاتو کښ بعث بعد الموت ثابت شو نو اوس ذکر کوی توښه دَ قیامت دَ پاره چه هغه انفاق فی سبیل الله دے- ۲ هر کله چه دَ قدرت علی البعث بعد الموت دَ پاره ئے امور خارقه للعادت ذکر کړل نو اوس دَ هغے دَ اثبات دَ پاره مثال ذکر کوی په بوټو او پیستلو سره دَ زمکے نه- ۳ هر کله چه په آیت ۲۵۴ کښ امر دَ انفاق ئے ذکر کړو او په مینځ کښ په طور دَ جملے معترضے سره عقیده دَ توحید او دَ معاد ذکر کړه نو اوس تفصیل دَ انفاق ذکر کوی-

مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ، سوال: دَ انفاق کوونکو انسانانو مثال خو دَ دانے سره واضح نه دے؟

جواب: عبارت کښ تقدیر دے یعنی مَثَلُ صَدَقَاتِ الَّذِيْنَ يَا كَبَاذِرِ حَبَّةٍ (پیشان دَ کروند ے کوونکی دَ دانے) دَ لفظ مثل او دَ انفاق تفسیر دَ سورت په اول کښ تیر شوید ے- فی سبیل الله نه مراد قتال او جهاد دے په لار دَ الله تعالیٰ کښ- او دعوت الی الله او دَ قرآن وسنت دَ درس وتدریس مرکزونه ایادول هم په سبیل الله کښ داخل دی- په دے ټولو سره اعلاء دَ کلمة الله حاصلیږی- دا رنګ دا انفاق عام دے که په ځان باندے وی او که په بل چا باندے وی

دے دَپارہ چه دَجهاد او دعوت کولو دَ پارہ یې ن کښې تقویت راشي.
کَمَثَلِ حَبَّةٍ اَنۡبَتَتۡ، حبه هغه دانے دې چه په هغې کښې قوت دَ
روزئ دَ انسانانو او دَ حیواناتو وي لکه غنم، ورېشے، جوار او
روږے (شولے) وغیرہ ټول پکښې داخل دي- انبتت کښې نسبت
دَانبات دانے ته اسناد مجازي معروف دے او حقیقت کښې فاعل
دَانبات الله تعالیٰ دے- او دا صفت دَ حبه مستلزم دے دَ انبات
لوازمو لره چه زمکه صالحه (ښه برابر) وي دَ کرونے دَ پارہ او
وخت په وخت اوبه کیږي او مناسب سره ورته هم اچولے
کیږي او حفاظت یې هم کیږي نو هله یې په انبات کښې ترقي
وي- سَبۡعَ سَنَابِلَ، مراد دا دے چه دَ هغې بوټے زرغون شي په
هغې کښې اووه ځانګے جوړے شي یا بغیر دَ ځانګو ته وي او
اووه وږي په کښې پیدا شي- مفسرینو لیکلي دي چه داسے بوټي
جاروس، دخن او جوار دي- او په بعضِ ملکونو کښې دَ غنم بوټے
هم داسے وي- او که داسے بوټي موجود نه وي لیکن دَ مثال دَ پارہ
تصور ذهني هم کافي دے- لفظ دَ سنابل جمع کثرت یې په
ځائے دَ قلت یاڼے ذکر کړیں ے ځکه چه مقصد دَ سبع نه
صرف اووه نه دي بلکه ډیر والے مراد دے- ابوحیان وئیلي
دي چه سبع په عشرات کښې اکثر عدد دے او سبعون (اویا)
په مِائاتو (سل ګوتو) کښې اکثر دے او سبع مائة (اوو سوه)
په الف (۱۰۰۰) کښې (زروکښې) اکثر عدد دے- او دَ عربو په
محاوره کښې داسے استعمالیږي- په قرآن کریم کښې سبع
سنبلات، سبع بقرات، سبع سماوات، سبع سنین، سبعین
مره او سبعون ذراعًا او په حدیث کښې سبع مائة ضعف
او سبع مائة آلاف ذکر دي- او ابوحیان ثابت کړیده چه
سبع په اصل کښې جمع متناهي ده نو په ډیر والي باندے
دلالت کوي- فِيۡ كُلِّ سُنۡۢبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ، دا جمله صفت
دے دَ سنابل یا دَ سبع دَ پاره- ابن عطیه وئیلي دي چه
په وږو دَ غنمو کښې ډیر داسے وي چه سل دانے وي پکښې

او دَ دے نه علاوه دَ جوارو وغیره په وړو کښ دَ سلونه هم زیاتے دانے وي - او دلته هم مقصد تحدید نه دے بلکه تکثیر دے - وَاللّٰهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ ، دا جمله دلیل دے چه ماقبل کښ مراد تکثیر دے - او دَ دے زیاتوالي (تضاعف) نه مراد زیاتوالے دے تر اوو سوو پورے لکه چه مخکښ ذکر شو یا اوو سوو نه زیات مراد دے - او دا جمله متعلق ده دَ مثال سره یعنی دَ بعضو دانو نه دَ اوو سوو نه زیاتے پیداکړي. یا دَ ممثل سره متعلق ده یعنی بعضو انفاق کوونکو لره دَ اوو سوو چنده نه زیات بے اندازے ثوابونه ورکوي چه دَ هغے تحدید په اوو زرو یا په نهه څلویښت لاکهه (۴۹۰۰۰۰) کښ یا په بل څه مخصوص عدد کښ منحصر او مناسب نه دے - وَاللّٰهُ وَاسِعٌ ، دا هم دلیل دے دَ کثرت بغیر دَ تحدید نه - دَ دے تفسیر مخکښ تیر شوید دے - دلته مراد واسع قدرت والا دے په واسعه (فراخه) جزاء ورکولو باندے. عَلِيمٌ پوهه دے په نیتونو دَ انفاق کوونکی او په تفاوت دَ درجاتو دَ هغوي باندے -

فائده ۱ :- قرطبي وئيلي دي چه دا آیت دلالت کوي چه کسب دَ زراعت ډیر خائسته کسب دے ځکه چه دَ دے خیر او فائدے متعدي او غیر منقطع دي او دَ دینه انسانانو، ځنارو او مارغانو ټولو ته فائدے رسیږي (خو شرط دا دے چه دَ زمیندارئ په کار کښ دَ مشغولتیا په وجه به دَ دین کار یعنی مونځ، جهاد او نور وعبادتونه نه پریږدي) -

فائده ۲ :- تفصیل دَ مثال داسے دے لکه چه یوه دانه په صحیح زمکه کښ کرلے شوید ه او ښهٔ تربیت ئے کیدیشي نو دَ هغے نه اول دَ اوو وږو په شکل سره اووه سوه دانے پیدا شوے - دَ دغه وږو تعلق دَ یو بوټي سره دے او دَ اوو سوو دانو تعلق دَ وږو سره دے بیا چه دا اووه سوه دانے هم په صالحه او برابره زمکه کښ او کرلے شي او او به خور

او صحیح پالنه او ساتنه ئې اوشي او وه سوه ضرب کړه په اووه سوه کښې نو شلور لاکهه او نوي زره (۴۹۰۰۰۰) دانې ترې جوړې شوې - بیا دا ټولې دانې چه په لوئې فراخه او صالحه پټې کښې اوکرلې شي سره د پالنې او ساتنې نه نو د دینه په کروړونو دانې پیدا کیږي چه بورئ اوکندوان ترینه ډکیږي او چه د کروندې دا سلسله جاري وي نو بې شماره حد ته رسیږي. انسانان او حیوانات به ترینه د خوراک فائده اخلي، پټې او زمکې به شنې وي او خلق به په روزئ ماړه وي - او دې مثال ته قریب مثال د سورة فتح ۲۹ هم دې (کَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْاَهٗ فَاٰزَرَهٗ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰی عَلٰی سُوْقِهٖ یُعْجِبُ الزُّرَّاعَ) نو تطبیق د مثال دا دې چه د لږ مال په خرچ کولو سره د یو داعي یا مجاهد د روزئ انتظام اوکړیشي او د هغه عقیده وي، عملي او اخلاقي تربیت اوکړیشي او د قرآن وحدیث په تعلیم سره د هغه د ذهن او به خور اوکړیشي بیا هغه داعي یا مجاهد پخپل کوشش سره د نورو اووکسانو تربیت اوکړي بیا هر یو د دغه اووکسانو نه کوشش د دعوت او د جهاد اوکړي تر دې پورې چه د یو عقیدې او مسلك په زرګونو داعیان او مجاهدین خائسته عقیدې او عملونو سره ګل ګلزار شي او بې شمار مرکزونه به د قرآن وحدیث د درسونو او د دعوت وجهاد پیدا شي لیکن اول شخص چه کوم مال خرچ کړې وو او دا ټوله سلسله د خیر د هغې نه جوړه شوه نو په تقاضا د حدیث چه مَنْ سَنَّ سُنَّةً حَسَنَةً فَلَهٗ اَجْرُهَا وَاَجْرُ مَنْ عَمِلَ بِهَا الخ به د دغه اول شخص د ثوابونو انتها نه وي.

ترجمه: (چا چه یو خائسته طریقه کیخودله نو دغه شخص لره د هغې ثواب دې او ثواب د هغه چا (د عمل هم د ده دې) چه په دې باندې عمل کوي او حال دا چه د هغه د برخې نه به څه ثواب نه کمیږي) - نو دیته اجر غیر ممنون و ئیلې شي او دا مقصد دې د وَاللّٰهُ یُضٰعِفُ لِمَنْ یَّشَآءُ، او دې

اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ

هغه كسان چه خرچ كوى مالونه خپل په

سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُوْنَ مَآ

لار دَ الله تعالىٰ كښ بيا نه كوى په هغے پسے چه

اَنْفَقُوْا مَنًّا وَّلَآ اَذًى لَّهُمْ اَجْرُهُمْ

خرچ كړى زبادنه او نه تكليف دَدى دپاره ثواب دَدوى دے

عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا

په نيز دَ رب دَ دوى او نه به وى هيڅ ويره په دوى باندے او نه

هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۲۶۲﴾

به دوى غمژن كيږى۔

مضمون ته اشاره ده په هغه حديث كښ چه چا صدقه اُوكړه په مقدار دَكهجورے سره دَحلال كسب نه نو الله تعالىٰ هغه قبلوى په ښى لاس سره بيائے زياتوى دَپاره دَ هغه صاحب لكه چه پالنه كوى يوتن ستاسو دَخپل بيا تركى تر دے چه په شان دَ يوغر اُوګرځى (بخارى كتاب التوحيد) او ابن كثير وئيلى دى چه په دے مثال كښ اشاره ده چه نيك اعمال الله تعالىٰ زياتى كوى كڼو نكو دَ هغے لره لكه چه زياتوى فصل هغه چالره چه په صالحه زمكه كښ اوكرى۔

۲۶۲ په دے آيت كښ ذكر دَ دوه شرطونو دَ قبوليت او دَ هغه زياتوالى دَاجر دے چه په مخكښ آيت كښ ذكر شو۔ او دا شرطونه سلبيه دى چه مَن او اذى به نه وى۔

ثُمَّ لَا يُتْبِعُوْنَ مَآ اَنْفَقُوْا مَنًّا وَّلَآ اَذًى، زمخشرى وئيلى دى چه ثُمَّ دلته دَ تراخى دَزمان دَپاره نه دے بلكه دَ تفاوت دَ انفاق او دَ اِتباع دَمَن (زبادنه) او اذى دَپاره دے۔ يعنى دا دواړه كاروته يوځائے كول دَعقل نه لرے خبرے دى او قاسمى وئيلى دى چه

دائمٌ دلالت کوی په دوام او همیشوالی دَ روستو فعل په مخکښ فعل پسې یعنې زیاد نه پریښودل او اذی نه کول به همیشه وی دَ یو وخت دَ پاره به نه وی او لفظ دَ اتباع هم دَ دے تقاضا کوی۔ دارنګ لفظ دَ اتباع دلالت کوی چه اتفاق په لارِ دَ الله تعالیٰ کښ روان وی لیکن من او اذی ورله لا ربنده کړی۔ مَنّ زیاد نه کولو ته وئیلے شی یعنې چه چا ته څهٔ څیز نفقه کښ ورکړی او بیا روستو ورته وائی چه ما تا سره فلانے احسان کړیں ے۔ یا بل چا ته او وائی چه ما فلانی سره احسان کړیں ے او هغه دهٔ ته را اُورسیږی قرطبی وئیلی دی چه زیاد نه ګناهِ کبیره دے۔ او اذی دا ده چه چا یادی ئے احسان کړے وی بیا هغه ته بد رد وائی او خبرے ورته ترینه اخلی یا ئے بل دا سے تن ته تن کره کوی چه دے شخص یادے دَ هغه خبریدل بد لرې-ږي۔ نو دا عمل هم غیر مناسب دے۔

لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ، دا جزاء مشروط ده په عدم دَ کفر او شرک سره په دلیل دَ نورو نصوصو سره۔

سوال:۔ دلته ئے فا نه ده ذکر کړے اګرچه موصول مبتداء متضمن وی معنیٰ دَ شرط لره پشان دَ آیت ۲۷۴؟۔

جواب:۔ کوم ځائے کښ چه مقصد بیان وی دَ مستحق دَ جزاء په حصر سره نو هلته فا نه راوړی یعنې څوک چه انفاق دَ مال کوی په شرط دَ عدم مَنّ او اذی سره نو صرف هغه مستحق دَ اجر دے نه هغه څوک چه من او اذی کوی۔ او روستو آیت کښ عموم دَ احوالو او دَ اوقاتو مقصود دے حصر مقصد نه دے نو هلته ئے فا را اوړیده چه صرف په سببیت یادے دلالت کوی۔

وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ، دَ دے یو معنیٰ دا ده چه په دوی یادے به یره نه وی دَ روکیدلو دَ انفاق روستو دَ وجود دَ هغے نه او نه به غمژن کیږی په عدم وجود دَ هغے یادے۔ دویم دا چه په دوی یادے یره دَ عذاب نه وی په راتلونکی وخت کښ او نه به خفګان وی په تیر شوی وخت پسے۔

قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ وَّمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ

| | | | |
|---|---|---|---|
| دينا | نيكه | او بخته | غوره ده |

مِّنْ صَدَقَةٍ يَّتْبَعُهَآ اَذًى ؕ وَاللّٰهُ

| | | | |
|---|---|---|---|
| دَ داسے | صدقے نه | چه ورپسے اوشي | تكليف وركول او الله تعالىٰ |

غَنِيٌّ حَلِيْمٌ ﴿۲۶۳﴾

| | |
|---|---|
| بے حاجته | صبر ناک دے۔ |

۲۶۳ :۔ په دے آیت کښ دَ صدقے نه روستو دَ آذی ورکولو دَ
قباحت بله طریقه ذکر کوی۔ او ادب ذکر کوی دَ پاره دَ واپس
کولو دَ سائل۔ قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ ، داسے قول چه زړونه ئے قبلوی۔
نو هغه واپس کول دی دَ سائل په خائسته طریقے سره۔
او عطاء وائی چه خائسته وعده ورسره اوکړی۔ او سمعانی
نقل کړیدی چه لږ څیز ورکوی او دُعا دَ برکت ورته اوکړی
یا نه ورکوی خو دُعا دَ خیر ورته اوکړی۔ وَمَغْفِرَةٌ ، مراد دا چه
دَ هغه په حاجت باندے پرده واچوی۔ دا رنګ که چرے سائل په
سوال کولو کښ سختی اوکړی نو دے ورته معافی اوکړی۔ یا په سبب
دَ قول معروف سره چه مغفرت دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه حاصلیږی۔
بیا په قول معروف کښ نفع ده بغیر دَ ضرر نه نو هغه غوره دے
دَ مغفرت نه ځکه ئے مخکښ راوړے دے۔ او قول معروف
دلالت کوی په لږ والی۔ او تنوین دَ صدقةٍ دَ ډیر والی دَ پاره
دے یعنی لږ معروف قول (خائسته جواب) دَ هغه ډیرے
صدقے نه غوره دے چه ورپسے اذی ورکوی۔
سوال :۔ دلته ئے صرف آذیٰ ذکر کړه او مَنّ ئے ذکر نه کړو؟
جواب :۔ دیته اکتفا وئیلے شی چه یو څیز ذکر کړی او بل حذف
کړی لیکن هغه مذکور دلالت کوی په هغه پټ باندے۔ دلته
هم آذیٰ عام ده او مَنّ لره مستلزم ده ځکه چه مَنّ دَ دے
وجے نه قبیح دے چه آذیٰ پیدا کوی۔ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَلِيْمٌ ، غنی

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا
اے ایمان والا مه برباد وئ
صَدَقَاتِكُم بِالْمَنِّ وَالْأَذَىٰ كَالَّذِي
(ثواب) دَخپلو صدقو په زبادنه کولو اوتکلیف ورکولو سره پشان دَ هغه چا
يُنفِقُ مَالَهُ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا
چه خرچ کوی مال خپل دَپاره دَ ریاء دَ خلقو اونه لری
يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۖ فَمَثَلُهُ
ایمان په الله تعالیٰ او په ورځ روستنئ نومثال دَهغه
كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ
پشان دَ هموارے ګټے دے چه په هغے باندے خاؤرے وی نو اورسیږی هغے ته
وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا ۖ لَّا يَقْدِرُونَ
شبے دَ باران نو پریږدی هغے لره خویه قدرت نه مومی
عَلَىٰ شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوا ۗ وَاللَّهُ لَا
په څیز باندے دَ هغه عمل نه چه دوی کړے وی او الله تعالیٰ نه
يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿٢٦٤﴾
ورکوی هدایت (توفیق) قوم کافرانو ته۔

کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ دَ بندګانو دَ صدقاتو نه مستغنی دے۔ بندګانو ته دَ هغے حکم دَ دے وجے نه ورکوی چه هغوی ثواب حاصل کړی۔ نو اشاره ده چه مَنّ او اذی په اصل کښې یو قسم شرک لره مستلزم دی او الله تعالیٰ دَهغه عمل نه غنی دے چه په هغے کښې بوئی دَ شرک وی۔ حَلِیْمٌ یعنی څوک چه مَنّ او اذی کوی نو هغه له زر عذاب نه ورکوی بلکه مهلت ورکوی دے دَپاره چه توبه اوباسی۔

۲۶۴ په دے آیت کښ د مخکښ خَيْرٌ مِّنْ صَدَقَةٍ آه د پاره علت
ذکرکوی او دا رنګ په منع د مَنّ او آذی کښ ډیر تاکیدات ذکر
کوی۔ اول خطاب په لفظ د آمنوا سره دے چه دغه صفت
د ایمان کامل سره منافی دے۔ دویم تصریح کول په ابطال
د صدقاتو په مَنّ او اذی سره۔ دریم تمثیل د ریاکارئ سره۔
څلورم تمثیل د صفوانٍ آه سره۔

لَا تُبْطِلُوا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰى، بطلان د عمل دا دے
چه د هغې په کولو باندے شرعی اثر مرتب نشی نو که عمل واجب
وی نو بطلان ئې دا دے چه ذمه د مکلف په هغې سره فارغه
نشی ځکه چه یو رکن یا شرط د یو عمل نقصانی شی نو ټول
عمل نقصانی کیږی۔ او که عمل د نفل وی نو د بطلان نه
مراد عدم ثواب د هغې دے۔ د وجے د مانع شرعی نه دلته لفظ
صدقات عام دے واجب او نفل دوا ړو ته نو معنیٰ د بطلان
هم عامه ده۔ سمعانی یو قول ذکر کړے دے چه مَنّ په صدقه
کښ دا سے دے لکه یے او دسی په موزغ کښ۔ او قرطبی وئیلی دی
چه د آیت مراد دا دے چه کومه صدقه کښ مَنّ او اذی اُوشی
نو هغه به باطله شی۔ نو رے صدقے یا نور اعمال په دے سره
نه باطلیږی۔ او هر چه شرک او کفر دے نو په هغې سره هر
عمل باطلیږی۔ او عرب پخپله محاوره کښ هغه صدقے ته
چه ورپسے مَنّ او اذی اُوشی تور لاس وائي او هغه چه بغیر د
سوال نه ورکړے شی هغې ته سپین لاس وائي او هغه چه په
سوال کولو سره ورکړے شی هغې ته شین لاس وائي: او لَا
تُبْطِلُوا عام دے دوه وجوهو ته اوله دا چه د صدقے سره مَنّ
او اذی کوی۔ دویمه دا چه اول صدقه په اخلاص سره اُوکړی
لیکن روستو ورپسے مَنّ او اذی اُوکړی۔

كَالَّذِىْ يُنْفِقُ مَالَهٗ رِئَآءَ النَّاسِ، دلته مضاف پټ دے یعنی
كَاِبْطَالِ الَّذِىْ ۲ آه۔ رِئَاءِ د رای نه اخستلے شوے دے۔ مراد پکښ
ښائسته عمل خلقو ته ښکاره کول دی دے د پاره چه د دغۀ

تعریف اوکړي یعنی ریا کار د خلقو نه عوض (مدح کول) غواړي او وجه د تشبیه دا ده چه د ریا کار شخص د الله تعالیٰ مخ او رضا مقصد نه وي بلکه د خلقو نه مدح حاصلول ئې مقصد وي - دا رنګ چه په فقیر باندې مَنْ او اذي کوي د صدقې د وجې نه نو د هغه مقصد هم رضا او مخ د الله تعالیٰ نه دے۔
او دا رنګ په دواړو طریقو کښې دا صدقه کوؤنکے خلقو ته دا ښکاره کوي چه څه د دین کار کوؤم او الله تعالیٰ رضا کووم او پټ مقصد ئې بل دے نو دوي دواړه په ظاهر عمل او پټ مقصد کښې یو شان دي - او د ریا په قباحت کښې ډیر نصوص راغلي دي - اول دا چه دا عمل د منافقانو دے لکه چه په سورة نساء ۳۸، ۱۴۲ او سورة ماعون ۶ کښې دي - او حدیث صحیح کښې دیته شرک خفي او شرک اصغر وئیلے شوے دے۔

وَلَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، په دیکښې دوه اقوال دي اول دا چه دلته مراد نفي د ایمان حقیقتًا نه ده بلکه هر کله چه دغه ریا کار د الله تعالیٰ د رضا او ثواب قصد نه کوي نو دا سې شوه چه یقین ئې نیشته په ثواب د الله تعالیٰ او په ورځ د قیامت باندے - دے قول ته ابن کثیر اشاره کړیده - دا رنګ مهائمي په تبصیر الرحمٰن کښې هم وئیلي دي - نو مراد د دینه ریا کار مسلمان دے - دویم قول دا دے چه مراد نفي د ایمان حقیقي شرعي ده یعنی کافر دے لیکن په منافقت سره ځکه چه صریحي کفر سره خو هسې هم عمل برباد وي لیکن د دهٔ کفر پټ دے او ریا کاري ئې معلومه ده نو هغه سبب ظاهري دے د پاره د بربادئ د عمل د دهٔ - نو مراد د دینه منافق ریا کار دے۔

فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ، په ضمیر د مَثَلُهُ کښې دوه احتمالات دي - اول دا راجع دے الذي ینفق ته نو دا مثال د مثال دے یعنی تمثیل د ریا کار دے د

کروندے کوونکی سره په یو کټه (تیګه) باندے۔ دویم دا راجع دے مَنّ او مُوذِیْ ته نو دا دویم مثال دے روستو د مثال اول نه۔ صفوان غټه کټه چه همواره، خویه او مئینه وی۔ او په دیکښ د اهل لغت درے اقوال دی[1] دا مفرد دے[2] دا جمع ده[3] دا مفرد او جمع دواړه ده۔

فَاَصَابَهٗ وَابِلٌ، دا هٗ ضمیر صفوان ته راجع دے یا تراب ته۔ وابل ډیر او سخت او ګڼړو څاڅکو د باران ته وئیلے شی (اَخْذًا وَّبِیلًا هم د دینه اخستے شویدے دے) او لفظ د اصاب هم په ډیر والی دلالت کوی۔

فَتَرَكَهٗ صَلْدًا، دا ضمیر خو صرف صفوان ته راجع دے۔ صَلْدًا، خویه کټه او خالی د خاورو نه او وچه۔ تشبیه د مفرد د مفرد سره دا ده چه کافر پښان د صفوان دے چه هیڅ عمل ئے قبول نه دے۔ تراب مثال د انفاق دے په دے سره دے خپل ځان پټوی لکه خاوره (دوړه) چه صفوان پټوی۔ او وابل کفر د دهٔ دے او ریاء، مَنّ او اذی د دهٔ دی چه په هغے سره ئے هغه انفاق او نور عملونه باطل شی۔ صَلْدًا یعنی دے بعضے مؤمنانو ته ښکاره شی چه خالص کافر دے او په دُنیا کښ پرے علامات د کفر اووینی۔ او په آخرت کښ به ټولو خلقو ته ښکاره شی کله چه جهنم ته روان کړیشی۔ حاصل د مثال دا دے لکه چه یوه صفا پاکه کټه وی او د هغے د پاسه خاوره (دوړه) پرته وی نو څوک کم عقل ګمان اوکړی چه دا یو همواره زمکه ده نو تخم پکښ واچوی په دے اراده سره چه دا به زرغون شی او فائدے به راکړی لیکن هر کله چه په هغے باندے تیز باران اوشی نو هغه خاوره، تخم وغیره هرڅه او تختوی او کټه خالی پاکه پاتے شی نو هغه کم عقل شخص حیران او خفه شی چه څما محنت هسے برباد شو او مال م هم تاوان شو خو بیا صرف افسوس

کوی او په لاس یې څه نه راځي - نو دارنګ منافق ریا کار،
مَنْ او اذی کوونکي ډیر صدقات، خیراتونه او نیک اعمال یې
کړي وي په مقصد د ریاء، مَنْ او اذی سره او دده خیال
دا دے چه دا به ما ته فائده راکوی لیکن هغه ته صرف
فائده د مدح د خلقو ملاؤ شی - تاخیره خلق د هغه
تعریفونه او ستائینې کوی چه دا ډیر سخی او ښه سړے دے
نو دا تعریفونه د خلقو په منزله د خاورے دی چه د ده حال
په هغې سره پټ دے -

لطیفه: (د دے وجې نه په حدیث کښ راځي اذا رأیتم
المداحین فاحثوا فی وجوههم التراب (مسلم، مشکوٰۃ)
نو د دے په معنیٰ سره دایو برابر بدلے ته اشاره ده چه
د هغه په مخ خاورے واچوئ) لیکن هر کله چه بعضے مؤمنانو
ته د ده منافقت په علاماتو سره معلوم شو چه هغه ریا کاری،
مَنْ او اذی ده نو د ده د عزت پرده او شلیږی - او په آخرت
کښ هم د منافقت د وجې نه د ده ثوابونه برباد شی - نو
خالی لاس به پاتے شی - حیران او پریشان به وی -

لَا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوا، په دیکښ درے اقوال دی.
اول دا چه دا ضمیر راجع دے مخاطبینو ته په دے قول کښ
چه لا تبطلوا صدقاتکم - یعنی تاسو چه داسے کار او کړئ نو
د خپل عمل نه به په هیڅ خیز باندے نفع وانخلئ - دویم
دا چه ضمیر راجع دے الذی ینفق ته ځکه چه الذی په
معنیٰ کښ جمع دے یعنی دغه ریا کار، مَنْ او اذی کوونکے
په هیڅ ثواب باندے وس نه مومی ځکه چه هغه باطل
شو - دریم دا چه ضمیر عام دے یعنی هغه کروندہ کوونکے
په صفوان باندے روستو د تیز باران نه په هیڅ فائده
باندے وس نه مومی نو دوی مشابه شول د کافرانو سره -

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ، د دینه مراد ایصال دے د رسول دی
ثواب د آخرت نه) او په دیکښ یره ورکول دی مؤمنانو ته د مشابهت د
کافرانو نه -

وَمَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ

او مثال د هغه کسانو چه خرچ کوي مالونه خپل

ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ وَتَثْبِيْتًا مِّنْ

د پاره د طلب کولو د رضا د الله تعالی او د وجې کلک والی د

اَنْفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍۢ بِرَبْوَةٍ

نفسونو خپلو ته پشان د حال د يو باغ دے په خړه زمکه باندے

اَصَابَهَا وَابِلٌ فَاٰتَتْ اُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ ۚ

چه اورسيږي هغے ته ګټر باران نو ورکوي ميوے خپلے دوچنده دوچنده

فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ؕ

نو که او نه رسيږي هغے ته ګټر باران نو لږ باران پوره دے،

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۶۵﴾

او الله تعالی ستاسو عملونو لره ليدونکے دے.

۲۶۵ په دے آيت کښ دريم مثال دے د پاره د هغه چا چه د سبيل الله نه علاوه په توره وصحيح مصارفوکښ خرچ کوي په شرعي شرطونو او په صحيح مقصد سره. او د دے د مخکښ آيت سره تقابل او تضاد دے يعنی دا چه د هغه دے ځکه چه هلته رِئَاءَ النَّاسِ ذکر وو نو دلته د هغے مقابل اِبْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ذکر دے. او هلته لَا يُؤْمِنُ آه ذکر وو نو دلته وَتَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ ذکر دے.

اِبْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ، دا مفعول لهٗ دے يا حال دے. ابتغاء په معنیٰ د طلب ده په پوره کولو د قصد سره. مرضات مصدر ميمي دے په معنیٰ د پوره رضا سره. وَتَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ، په دےکښ هم دوه احتمالات دی چه دا مفعول له دے يا حال دے. په نيز د ابن عطيه مفعول له کيدل يۓ صحيح نه دی ليکن

تفصیل دا دے که د تثبیتاً سره تقریر اُوشی یعنی الثواب علی تلك النَّفَقَةِ، او دا په معنیٰ د تصدیق او یقین سره وی نو دا باعث کیږے شی د انفاق کولو د پاره یعنی د وجے د یقین د ثواب د رسِقے نه خرچ کوی - او که تقریر اُوشی یعنی اَعْمَالَهُمْ بِاِخْلَاصِ النیةِ، او مِنْ په معنی د لام سره شی (لِاَنْفُسِهِمْ) او تثبیتاً په معنیٰ د احتساب (ثواب گنړلو) شی نو بیا باعث او مفعول له نه دے بلکه غایه ده یعنی په خرچ کښ مقصد د ځان د پاره ثواب حاصلول دی په خپلو عملونو سره په اخلاص د نیت سره. او مفسرینو د تثبیتاً ډیرے معنے ذکر کړیدی - تصدیق، یقین، ثواب گنړل، تبیُّن (تحقیق کول د مصرف چه صحیح دے او که نه دے) بصیرت او اخلاص - او دا ټولے معنے صحیح کیږی لیکن غوره دا ده چه دا دواړه په موضع د حال کښ دی او غایئے دی د پاره د انفاق کولو لکه چه ابن عطیه او ابن عاشور دے له ترجیح ورکړیده یعنی انفاق د دے د پاره کوی چه الله تعالیٰ رضا شی او د دے د پاره چه نفس پوخ شی په انفاق کولو په صحیح مصرفونو او بخل نه کوی - او په غایاتو کښ هم معنیٰ د علتیت وی یعنی دا اسباب هم کیږے شی - او د روستو تشبیه هم د دے تائید کوی - كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ، جَنَّةٍ په اصل کښ بوټل پټولو ته وئیلے شی او په عرف کښ هغه ټکړه ده د زمکے چه په هغے کښ خائسته اونے او بوټی وی او زمکه ئے پټه کړے وی - رَبْوَةٍ، هغه اُوچته زمکه چه خوړه وی او لږه اُوچته وی - او د داسے زمکے بوټی خائسته وی دیته خربه زمکه وئیلے شی لیکن د اُوچتوالی د وجے هغے ته نهرونه نهٔ ورخیژی د دے وجے نه ئے د هغے د پاره وَابِل او طَل ذکر کړیدے.

سوال:- خائسته بوټی او فصل خو د هموارے زمکے وی نو دلته ئے ربوه ولے ذکر کړه؟

جواب له:- دا ئے د عربو د عرف مطابق وئیلی دی چه د هغوی په علاقه کښ داسے صفت والا زمکے ښه فصل کوی اگرچه

نهرونه ورته نه رسیږي -
جواب ۲ :- امام رازي وئیلي دي چه دَ دینه مراد اوچته زمکه نه ده بلکه په دلیل دَ سورة حج ۵ هغه زمکه ده چه څربه او بوګه وي نو هغې ته یې دلته ربوه وئیلې ده -

اَصَابَهَا وَابِلٌ ، دا صفت دَ رَبْوَةٍ یا جَنَّةٍ دے - فَاٰتَتْ اُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ ، اٰتت دوه مفعوله غواړي یو حذف دے یعني اَهْلَهَا - او اكلها دویم مفعول دے او ضعفین حال دے - یا اٰتت په معنیٰ دَ اُخْرِجَتْ دے او اكلها یې مفعول دے - او نسبت دَ اِیْتَا مجازي دے -
اُكُلُ هغه څیز ته وئیلې شي چه خوړلے کیږي او اکثر دَ او نو په میوؤ کښ استعما لیږي لکه ذَوَاتَيْ اُكُلٍ خَمْطٍ (سورة سبا) تؤتي اكلها كل حين باذن ربها (كهف) ضعفین تثنیه دَ تکرار دَ پاره ده یعني ډیرے میوے ورکوي - او عطاء وئیلي دي چه په کال کښ دومره میوے ورکوي چه نور باغونه هغه په دوه کاله کښ ورکوي -

فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ، دَ دے خبر پټ دے یعني یَکْفِیْهَا ، یا فعل پټ دے یعني فَيُصِيْبُهَا طَلٌّ - طل نرۍ نرۍ څاڅکي دَ باران او بعضو وئیلي دي چه دا پرخه (شبنم) ده لیکن دا مجازي معنیٰ ده دلته مراد نه ده - دَ مثال تفصیل دا دے چه هغه باغ چه په یو څربه زمکه باندے وي نو دَ لاندے نه ورته هر وخت نمي (لوند والے) ور رسیږي او تازه وي.
او هر کله چه دَ بره طرف نه ور باندے غټ باران کیږي نو اونے یا بوټي یې غټیږي او میوے پکښ ډیریږي - نو دَ دے باغ اوبه خور په دوه طریقو سره کیږي ځکه یې میوے هم دوچند وي - او کله چه ورته دَ بره طرف نه غټ باران او نه رسیږي نو لږ باران سره هم میوے ورکوي لیکن دَ مخکښ نه کمے وي ځکه اوبه کیدل صرف دَ لاندے نه دي او دَ بره طرف نه صرف دَ لاندے نمۍ دَ حفاظت دَ پاره لږ باران کیږي (تطبیق له دَ مثال) یو مؤمن چه انفاق کوي

أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ أَنْ تَكُونَ لَهُ جَنَّةٌ
آیا خوخوی یو کس ستاسو چه وی دِ هغه لره باغ

مِّنْ نَّخِيلٍ وَّأَعْنَابٍ تَجْرِي
دَ کجورو او انګورو بهیږی

مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ لَهُ فِيهَا مِنْ
لاندے دَ هغے نه ولے دهٔ دَپاره په هغے کښ دی دَ

كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَأَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهُ
هر قسم میوۀ نه او رسیدلے وی دهٔ ته بوډاوالے او دَ ده دَپاره

ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ فَأَصَابَهَا إِعْصَارٌ
بچی کمزورے وی نو اورسیږی هغے ته تیزه سیلئ

دَخپل حلال مال ته او دَ هغه مقصد ونه یا اسباب هم دوه وی یو دَ بره طرف سره تعلق لری یعنی ابتغاء مرضات اللهِ او دویم دَ لاندے سره تعلق لری چه تثبیت دَ نفس دے نو دَ هغه دَ انفاق په ډیر زیات ثوابونه وی.
او کله ئے چه صرف تثبیت مقصد وی چه هغه اخلاص لره مستلزم دے او دَ ریاء، مَنّ او اذی نه پاک دے نو دا هم سبب دَ یو ثواب دے. یعنی سبب دَ ثواب ئے شته او دَ حبط سبب ئے نیشته (تطبیق ۲ـه) لکه چه دغه باغ په هرحال کښ میوه ورکوی. برابر خبره ده که میوه ئے لږه وی او که ډیره وی. دا رنګ صدقه دَ مؤمن چه دَ ریاء، مَنّ او اذی نه پاکه وی نو هغه قبوله ده په نیز دَ الله تعالیٰ که لږه وی او که ډیره وی.

وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ، خطاب عام دے انفاق کوونکو او نورو خلقو ته او بصیر کښ اشاره ده چه دَ نفقاتو مقدار او کیفیات او دَ هغے اسباب دَ الله تعالیٰ نه پټ نه دی او اشاره دَ وعد او وعید دواړو ته

فِيْهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ

چه په هغې کښې اور دی نو او سوزوی د غه باغ د غسې بیا نوی

اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿٢٦٦﴾ ع

الله تعالیٰ تاسو ته آیاتونه (مثالونه) د دے د پاره چه فکر اوکړئ تاسو.

۲۶۶ په دے آیت کښې د مثال د پاره اګرچه صریح لفظ نیشته لیکن عبارت دلالت کوی په مثال باندے ضرورتاً. او داخلوم مثال دے هغه څوک چه انفاق په باطلے طریقے سره کوی او تور هم داسے اعمال کوی چه مخکښې صحیح انفاق او صحیح اعمال ئے باطل شی او عمر او مال وغیره هرڅه ئے برباد شی په داسے وخت کښې چه بیا هیڅ کته نشی کولے.

اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ، همزه د استفهام انکاری د پاره دے. يَوَدُّ وَدّ د زړه کامل محبت ته وئیلے شی چه په ژبه ورسره تمنا هم منکر شی لفظ د یحب پا پریښی ئے نه دے وئیلے اشاره ده چه محبت د هر سړی د عدم د دے حالت سره کامل محبت دے نو دیته انکار تام وئیلے شی. اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ، جنة اسم جنس دے او مراد ترینه هغه باغونه دی چه په هغې کښې دا دواړه قسمه اونے (کهجورے او انګور) ډیرے وی. نخیل اسم جمع ده. یا جمع ده د نخل چه اسم جنس دے بنا په اختلاف باندے. امام راغب وئیلی دی چه دیته نخیل ځکه وئیلے شی چه دا منخول (چاڼ کړے شوے) ده په اونو کښې ځکه چه د دے منافع ډیر دی او مشابهت ئے دے د بنی آدم سره. دلته ئے د دے دواړه اونو ذکر ځکه اوکړو چه د عرب په زمکه کښې دا ډیرے وے او دا رنګ دواړه په اونو کښې ډیرے اشرف دی او فائدے ئے د ټولو نه ډیرے دی اګرچه په باغ کښې د دینه علاوه نورے اونے او بوټی هم وی.

سوال:- قرآن کریم کښې اکثر د نخیل ذکر کوی او د هغې د میوے ذکر ئے نه دے کړے او د کرم (د انګورو اونه) ئے میوه ذکر

کړے دہ چہ اعناب (انګور) دی؟
جواب:- پہ دے وجہ چہ دَ نخیل منافع دَ هغے پہ میوه، پاڼړو، څانګو، پوستکي او تنہ ټولو کښں دی او دَ انګورو منافع صرف پہ دانو (میوه) کښں دی دَ هغے اونہ یا پاڼړو وغیره کښں نور څہ خاص فائده نیشتہ۔
تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهَارُ، دا دَ جنة (باغ) صفت دے او پہ دیکښں اشاره ده چہ دغه باغونہ باران تہ محتاج نہ دی بلکہ خپلے اوبہ ئے شتہ دے چہ تهروتہ دی نو دَ سوکړے دَ وجے دَ وچوالی خطره ئے نیشتہ۔
لَهٗ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ، یعنی سیوا دَ کهجورو او انګورو نہ نورے میوے او غلے پکښں هم وی۔ زمخشري وئیلی دی چہ دَدینہ مراد هغه مختلف منافع دی چہ دَ هغے نہ حاصلیږی۔ مِنْ دَ اخفش پہ نیز زیاتی دے۔ او دَ کوفیانو پہ نیز زیاتوالی دَ پاره روستو نکره ضروری ده او دَ بصریانو پہ نیز نکره او مخکښں منفی کلام ضروری دے او دغه شرطونہ نیشتہ نو دَ دوی پہ نیز مِنْ زیاتی نہ دے بلکہ عبارت کښں تقدیر دے یعنی لَهٗ فِيْهَا ثَمَرَاتٌ مِّنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ۔
وَاَصَابَهُ الْكِبَرُ، دا جملہ حالیہ ده یا عطف دَ ماضی دے پہ يَوَدُّ یا پہ تکون باندے پہ اعتبار دَ معنیٰ سره۔ غوره پہ دیکښں عطف دے او انکار دے پہ دیکښں دَ جمع دَ روستو صفاتو دَ مخکښں صفت سره چہ کیدل دَ باغوتو دی۔ یعنی دَ دواړو حالتونو جمع کیدل هیڅوک نہ غواړی۔ او پہ لفظ دَ اصاب کښں اشاره ده پوره بوډا والی تہ۔
وَلَهٗ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ، دَ ضعفاء نہ مراد ډیر واړه بچی دی چہ کار کسب نشی کولے یا ترینہ مراد فقراء دی یعنی دغه اولاد پہ نفقه کښں پہ پلار باندے بوج وی دوی دَ هغه سره هیڅ مدد نشی کولے۔
فَاَصَابَهَآ اِعْصَارٌ فِيْهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ، اعصار پہ اصل کښں نچوړلو

ته وئیلے شی او په عرف کښ دا دَ یو قسم سیلئ نوم دے. دَ اکثرو په نیز هغه تیزه سیلئ ده چه دَ زمکے نه دَ آسمان طرف ته الوزی پشان دَ تیغے ستنے او تاویږی نو دا دَ ځان سره اونے او بوټی نچوړوی - او بعضو وئیلی دی چه دا وریځے نچوړوی - او دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه دا هغه سیلئ ده چه په هغے کښ گرم سوزوونکے باد وی. ابن عطیه وئیلی دی چه دا په سخته گرمئ او سخته یخنئ کښ پیدا کیږی - نَارٌ نه مراد سخته گرمه هوا ده یعنی سموم او دیته تشبیه بلیغ وئیلے شی ، فَاحْتَرَقَتْ یعنی سوزیدلے دی چه په دے سره میوے او پانړے ټولے مړاوے او اوچے شی او خکته راپریوځی - نو دا دَ یو سخت حاجت په وخت کښ ناساپه محرومتیا او نا امیدی ده - دَ مثال تفصیل دا دے لکه یو شخص دے او یو باغ ئے لګولے (تیار کړے) وی او په هغے کښ ډیرے میوے او فائدے وی لیکن هغه بخپله بوډا شوے وی او بچی (ځامن او لونړه) ئے هم ماشومان او کمزورے وی نو دَ دے ټولو دَ ژوند ضروریات دَ دغے باغ نه پوره کیږی - دغه شخص بخپله او بچی ئے هم بل کسب او مزدوری نشی کولے یعنی دَ بچو بوج هم په پلار باندے وی نو ناساپه الله تعالیٰ په دغه باغ باندے دَ اور نه ډکه سیلئ رااولیږی او هغه باغ اُوسوزی - او س دَ دے شخص طاقت نیشته چه دوباره دا شان باغ اولګوی او اولاد ئے هم کمزوری دے دَ دهٔ سره مدد نشی کولے نو په دا سے وخت کښ دے ډیر زیات غمژن او پریشان حاله وی -(دَ مثال تطبیق) امام بخاری دَ عمر رضی الله عنه حدیث ذکر کړیدے چه هغه یو ورځ دَ صحابه کرامو نه دَ دے تفسیر طلب کړو نو هغوی دَ عجز اظهار اوکړو په دے قول سره چه والله اعلم نو دے غصه شو- نو ابن عباس رضی الله عنهما جواب اوکړو چه دا دَ عمل مثال دے نو هغه اُوئیل کوم عمل نو دهٔ اوئیل چه یو مالدار شخص دے چه

دَ الله تعالیٰ په طاعت سره یې عملونه کول بیا وروسته یې شیطان مقرر کړے شو (دَ ابتلاء په طور سره) نو دا سې کنا هونه یې شروع کړل چه خپل تیر شوی نیک اعمال یې ځان له برباد کړل. ابن کثیر وئیلي دی چه په دے حدیث کښ کفایت دے دَ پاره دَ تفسیر دَ دے آیت. (لیکن دَ وضاحت دَ پاره یې) تفصیل دا دے چه یو شخص مالدار دے هر قسم مالونه ورسره شته او مالونه دَ الله تعالیٰ په لاره کښ او په طاعاتو دَ الله تعالیٰ کښ خرچ کوی او لکه څرنګه چه دَ دهٔ باغونه دوه قسمه دی نو دا رنګ انفاق یې هم دوه قسمه دے یعنی فرض انفاق او نفلی. او څنګه چه دَ دهٔ دَ باغونو نهرونه هم شته نو دا سې داصدقات ورکول یې هم وخت په وخت ډیریږی او ایمان ورسره هم شته چه په هغې سره دَ صدقاتو سیرابي کیږی. او لکه څنګه چه دَ دهٔ نور ثمرات او منافع هم شته دے نو دا رنګ دَ دهٔ نور طاعات او اعمالِ خیر هم شته دے (عبادات بدنیه او مالیه) او څرنګه چه دے بوډا شو نو ضعیف او کمزورے شو دَ نور کسب کولو نه نو دا رنګ دَ نیت او دَ عقیدے ضعف پکښ راغے دَ شیطان په وسوسو سره یې ایمان او نیک اعمال پریخودل. او څرنګه چه دَ باغ دَ مالک اولاد شته خو کمزوری وو نو دا رنګ پدے شخص باندے دَ بندګانو حقوق هم راغلل په سبب دَ ظلم دَ دهٔ او هغه اهل حقوق دَ دهٔ سره هیڅ قسم امداد نشی کولے بلکه دَ دهٔ نه دَ خپلو حقوقو مطالبه کوی او لکه چه په باغ باندے ګرمه او نچوړوونکے سیلئ راغله نو دا رنګ دَ دهٔ په انفاق کښ ریاء، مَنْ او اذی راغله په اعمالو کښ رسمونه او بدعات شروع شول چه هغې سره دَ طاعاتو نه ثوابونه نچوړ شو. او لکه چه دَ سیلئ سره اور دے نو دا رنګ دغه شخص پسکاره شرک او کفر شروع کړو. او لکه چه په سیلئ او اور سره باغ او سوزیدلو نو دا رنګ دَ دے شخص طاعات او عبادات بدنیه او مالیه په دا سې وخت

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِن

اے ایمان دالو خرچ کوئ دَ

طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا

کره هغه مال نه چه تاسو گټلے وی او دَ هغه څیزونو نه چه را ویستلی مونږ

لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ ۖ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ

ستاسو دَ پاره دَ زمکے نه او قصد مه کوئ دَ ردی

مِنْهُ تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِآخِذِيهِ

دَ دغه مال نه چه خرچ کوئ او نه یئ تاسو اخستونکی هغے لره په خپل حق کښ

إِلَّا أَن تُغْمِضُوا فِيهِ ۚ وَاعْلَمُوا

مگر هغه وخت چه سترگے پټے کړئ په هغے کښ او پوهه شئ

أَنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿٢٦٧﴾

چه یقیناً الله تعالیٰ بے حاجته دے ستائیلے شوے دے۔

کښ برباد شول چه دے دَ نورو طاعاتو او عباداتو وس او طاقت نه لری نو دے پس دَ هلاکت او دَ مرگ نه په عذاب دَ قبر او دَ حشر کښ مبتلا شی ځکه چه اعتبار خاتمے ته دے۔ او دارنگ دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه هم دَ مثال تطبیق په اجمال سره نقل دے چه دا مثال دَ هغه چا دے چه عملونه دَ طاعاتو کوی لیکن خاتمه ئے په ناکاره عقیده او عمل سره اوشی (ابوحیان)

كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ، په دے جمله کښ ترغیب دے آیاتونو دَ قرآن ته په علم او عمل سره او تفکر پکار دے دَ پاره دَ تطبیق دَ مثال او ممثل لهٔ۔ او دَ پاره دَ تمیز کولو په مینځ دَ صحیح انفاق چه مفید وی او باطل انفاق کښ چه غیر مفید وی۔

۲۶۷۔ ربط له :- هر کله چه تیر شوی آیاتونو کښ انفاق ته ترغیبات او د هغے د موانعو د قبولیت ذکر تیر شو او هغه تمهید وو۔ نو اوس مقصد ذکر کوی چه امر دے په انفاق کولو سره۔

ربط ۲ :- هر کله چه مخکښ سلبی او ایجابی شرطونه د فعل د انفاق د پاره ذکر شول د هغے د قبولیت د پاره نو اوس د مُنْفَق (خرچ کړے شوی مال) په باره کښ ایجابی شرط ذکر کوی۔

اَنْفِقُوْا ، د علی رضی الله عنه ، حسن بصری او ابن سیرین رحمهما الله نه روایت دے چه دا امر د فرضیت د پاره دے۔ او د دینه مراد زکوٰة او عشر دے۔ او د بعضو علماؤ نه نقل دے چه دا فرض او نفل دواړو ته عام او شامل دے۔

مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ ، هر کله چه انسان د مال په لحاظ سره دوه قسمونه دی اول سرمایه دار چه تجارت پیشه او کارخانه دار خلق دی۔ دویم قسم جاګیردار او زمیندار او صاحب جائیداد خلق دی۔ نو په دے ایت کښ په دواړه قسمونو کښ د انفاق امر ذکر کوی۔ په دے مذکور جمله کښ اول قسم انسانان ذکر دی۔ طیبات جمع د طیب ده۔ دا صفت غالبه دے۔ یعنی بغیر د موصوف نه ذکر کیږی۔ د دے معنے مخکښ تیرے شوی دی دلته مراد کره (روغ) مال دے او صفت د حلال ورسره هم مراد دے۔ كَسَبْتُمْ ، کسب هغه عمل دے چه د بدن په ستړی والی سره کیږی نو هغه تجارت، مزدوری ، نوکری کاریګری او تجارت د څارو وغیره ټولو ته شامل دے۔

وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ ، په دیکښ دویم قسم ذکر کوی یعنی هغه آمدنی او ګټه چه د زمکے نه حاصله شی یعنی فصلونه او معدنیات وغیره دی۔ او په دیکښ فریضه هغه اداکول د عشر (لسمه حصه یا شلمه) او زکوٰة دے۔

تنبیه :- مَا كَسَبْتُمْ او مَا اَخْرَجْنَا لَكُمْ دواړه عام دی لیکن د دے تشریح په احادیثو کښ ذکر ده۔ د روپو اشرفو وغیره سرو زرو سپین زرو او د تجارت د مالونو نصاب او د هغے

نه دَ زکوٰة دَ واجب کیدلو مقدار څلویښتمه حصه ده اودَ فصلونو نصاب او په هغې کښ عشر یا شلمه وغیره اودَ څاروو نصابونه او په هغې کښ مقدار دَ وجوب دَ زکوٰة دا ټول په احادیثو کښ په تفصیل سره ذکر دی - په قرآن کریم باندې دَ احادیثو نه بغیر عمل نشی کیدې -

فائده ۱ :- دَ ما کسبتم سره یې طیبات ذکر کړې وو او دَ ما اخرجنا سره یې نه دې ذکر کړې ؟

حاصل جواب دا دې چه دیته اکتفاء وئیلې شي چه په یو قسم کښ ذکر شو نو په بل کښ هم مراد دې -

فائده ۲ :- زَرَعْتُمْ یا اَنْبَتْنَا ئې نه دې وئیلې ځکه چه ایجاب دَ عشر وغیره دَ فصلونو دَ حاصلیدلو په وخت کښ وی او په هغې باندې لفظ دَ اخراج دلالت کوی - دا رنګ دَ زمکې معدنیاتو ته انبات او زرع شامل نه ده بلکه اخراج لفظ ورته شامل دې -

وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ ، تیمم په لغت کښ قصد کولو ته وئیلې شي - دَ اَمَّ یا يَمَّمَ نه اخستلې شویدې - خلیل وئیلی دی چه اَمَمْ قصد کول دی دَ مخکښ طرق ته او یمم قصد کول دی دَ هر طرف ته - اَلْخَبِيْثَ دلته په معنیٰ دَ ردی سره دې او وصف دَ حرام هم ورسره دې - مِنْهُ ضمیر راجع دې ما کسبتم او ما اخرجنا ته او تنفقون حال دې - او په دې جمله کښ مقصد تاکید دې دَ انفاق دَ کره او حلال مال - او دفع دَ یو وهم ده - وهم دا دې چه په مالونو کښ خو اکثر کره او ردی ګډ وډ موجود وی نو دَ هغې نه کره جدا کول خو تکلیف دې ؟

نو په دې جملې سره یې وهم دفع کړو حاصل دَ دفع دا دې چه ردی دَ کره مال دَ مینځ نه راټولول دَ انفاق دَ پاره منع دی او که ګډ وډ وی نو انفاق یې جائز دې .

فائده :- دَ الخبیث ماده په قرآن کریم کښ شپاړس کرته

ذکر ده او دَ هغې اووه معنې دی۔ اول په معنیٰ دَ ردی مال په دے آیت
کښ۔ دویم په معنیٰ دَ منافق سورة آلعمران ت۱۷۹، دریم په معنیٰ
دَ حرام سورة ت۱۰۰، څلورم په معنیٰ دَ شرك سورة الانفال ت۳۷،
پنځم په معنیٰ دَ خوړه زمکې سورة اعراف ت۵۸، شپږم په معنیٰ
دَ ترخې اُونې (بوټي) سورة ابراهيم ت۲۶، اووم په معنیٰ دَ گناهونو
سورة الانبياء ت۷۴،

وَلَسْتُمْ بِاٰخِذِيْهِ اِلَّآ اَنْ تُغْمِضُوْا فِيْهِ، په دے جمله کښ دَ ردی
تعریف دے۔ او دا جمله حالیه ده یا علت دے دَ لَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيْثَ
دَ پاره۔ یعنی کوم مال چه تاسو دَ بل چا نه دَ ځان دَ پاره نۀ قبلوئ
په اخستلو خرڅولو، قرض او په اُجرت دَ عمل کښ نو دغسے
مال په زکوٰة کښ هم مه ورکوئ یعنی ورکول ئے قیاس کړل په
کسب یانس ے۔ او اغماض په اصل کښ سترګے پټولو ته وئیلے
شی په یو ځائے کولو دَ زیزمو سره۔ او دَ دے سره دوه څیزونه لازم
دی یو آرام کول او دویم تسامح او آسانتیا کول په یاره دَ یو مکروه
څیز کښ۔ دلته آخری معنیٰ مراد ده۔ یعنی یو شخص ته چه دَ
هغه حق ورکیږے شی نو هغه پکښ ردی څیز نه قبلوی لیکن
کله چه مجبوره شی دَ هغې اخستلو ته نو تسامح اوکړی یعنی سترګے
پرے پټے کړی او قبول ئے کړی دَ وجے دَ خپل احتیاج نه۔

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ، وَاعْلَمُوْٓا سره تنبیه مقصد ده هغه
انسان ته چه دَ ردی مال په خرچ کولو سره گویا چه دے الله تعالیٰ
محتاج گنړی۔ او دا جواب دَ سوال دے۔ که څوک سوال اُوکړی
چه هر کله انسان په خپل حق اخستلو کښ اغماض کوی نو الله
تعالیٰ به هم اغماض کوی؟ حاصل جواب دا دے چه انسان
خو دَ احتیاج دَ وجے نه اغماض کوی او الله تعالیٰ خو غنی (بے حاجته)
دے نو هغه اغماض ته حاجت نه لری۔ او حمید په معنیٰ دَ
محمود دے په هغه انعاماتو چه تاسو یانس ئے کړیږی یا په
معنی دَ حامد دے یعنی نیک اعمال چه تاسو ئے کوئ نو الله تعالیٰ
دَ هغې حمد کوی۔ او دا صفت دَ غنی سره دَ دے وجے نه دے چه

اَلشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَاْمُرُكُمْ

شیطان ویره وی تاسو دَ فقیرئ نه او حکم درکوی تاسو ته

بِالْفَحْشَآءِ ۚ وَاللّٰهُ يَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً

دَ بخل کولو او الله تعالیٰ وعده کوی تاسو سره دَ بخنے دَ گناهونو

مِّنْهُ وَفَضْلًا ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۶۸﴾

دَطرف خپل نه او دَ زیاتی کولو دَ مال او الله تعالیٰ فراخه فضل والا دے عالم دے په هرڅه باندے۔

په بدن کاتو کښ مالدار سړے چه تساموح هم دَچا سره نه کوی نو هغه بدګڼړلے کیږی او الله تعالیٰ خو سره دَ غنانه ستائیلے شوے دے په خائسته صفتونو سره۔

س ۲۶۸ :۔ دَ دے آیت نه دَ آیت س ۲۷۴ پورے شپږ امور ذکر کوی چه هغه متعلق دی په انفاق پورے۔ او په دے آیت کښ اوله خبره دا چه ځان بچ کول دی دَ وسوسے دَ شیطان نه دَ انفاق په باره کښ۔

ربط :۔ هر کله چه مخکښ دَ انفاق ترغیبات او په آخر کښ دَ کره او پاک مال خرچ کول ذکر شو۔ خو چونکه دَ دے عمل نه منع کوونکے شیطان دے نو اوس په دے آیت کښ دَ هغه مانع دَ اتباع نه منع کوی په طریقه دَ تقابل دَ شیطانی وسوسے او احکام الٰهیه سره۔

يَعِدُكُمْ ، وعده په خیر او شر دواړو کښ استعمالیږی۔ مثال دَ خیر په سورة فتح س ۲۰ کښ دے او مثال دَ شر په سورة حج س ۷۲ کښ دے۔ دلته هم دَ شر سره ذکر دے چه هغه فقر دے۔ او کله چه دَ خیر او شر ذکر نه وی نو بیا وعد په خیر کښ او وعید په شر کښ ذکر کیږی۔ او دلته یعدکم په معنیٰ دَ ویره ورکولو دے۔ او شیطان عام دے جنی او انسی بلکه نفس اماره بالسوء ته شامل دے۔ اَلْفَقْرَ ، په اصل کښ دَ ملا هډوکی ته وئیلے شی۔ او په عرف کښ سخت احتیاج دے

لوازماتو دَ ژوندَ ته دَ وجې دَ نیشتوالی یا کمولی دَ مال نه تو فقیرهم په اصل کښ ملاماتې وی یعنی کمزورې وی په مالی کمزوری سره۔ مقصد دا چه شیطان انسان ته وسوسه اچوی چه مال مه خرچ کوه فقیر به شې۔

وَيَأْمُرُكُم بِالْفَحْشَاءِ، مخکښ سلبی صفت وو او دا ثبوتی صفت دے نو ترقی ده په تحذیر کښ دَ وسوسو دَ شیطان ته، یَأْمُرُ، امر په اصل کښ کلام کول دی دلته ئې په وسوسو باندې اطلاق شویدے چه هغه هم په زړه کښ قوی تاثیر پیدا کوی نو مراد ترینه ترغیب ورکول دی بدکارونو ته او خائسته ښکاره کول دی دَ هغې۔ اَلْفَحْشَاءِ دَ فحش نه اخستلې شویدے دَ حد نه تجاوز کولو ته وئیلې شی نو فحشاء نوم دَ هغه قول یا فعل دے چه په قباحت کښ دَ حد نه ورتیر شوې وی تردې پورې چه هر عقل سلیم والا دَ هغې په قباحت باندې اقرار کوی۔ او قرطبی وئیلی دی چه فحشاء ټولو ګناهونو ته وئیلې شی او بخل کول پکښ هم داخل دے۔

فائده:۔ تخویف دَ فقرئې مخکښ راوړو په امر دَ فحشاء باندې ځکه چه بخل دَ ټولو عقل والو په نیز باندې قبیح دے نو شیطان دا وس او طاقت نه لری چه هغه دَ اول نه یو کار چا ته خائسته ښکاره کړی نو په دمه دمه کار کوی۔ یعنی اول ورته دَ فقر نه یره ورکړی نو بیا ئې په بخل باندې آماده کړی۔ دا دلیل دے چه دَ شیطان په هره وسوسه کښ دَ خیر امید نیشته بلکه مقصد ئې شر وی۔

وَاللَّهُ يَعِدُكُم مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا، لفظ دَ الله ئې دَ ډیر تسلئ او ترغیب دَ پاره مخکښ ذکر کړو۔ او دلته یَعِدُ په معنیٰ دَ وعد سره دے۔ مغفرةً لفظ نکره راوړل او په مِنْهُ سره مقید کول دلالت کوی په عظمت دَ مغفرت باندې۔ او دا شامل دے دَ ټولو ګناهونو۔ بخښې ته او پټولو

يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَاۤءُ ۚ وَمَنْ

درکوی پوهه د قرآن هغه چاته چه اوغواړی او څوک چه

يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ اُوْتِيَ خَيْرًا

ورکړے شوه هغه ته پوهه د قرآن نو یقینًا ورکړے شو هغه ته خیر

كَثِيْرًا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿٢٦٩﴾

ډیر او نصیحت نه اخلی مگر صاف عقل والا۔

دَ عیبونو نه۔ وَ فَضْلًا نه مراد عام دے یعنی زیاتوالے او برکات په مال کښ په دُنیا کښ او بیا ثواب په آخرت کښ۔ قرطبی دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدے چه په دے ایت کښ دَ الله تعالیٰ دَ طرق نه دَ خیر دوه وعدے دی او دوه وعدے دَ شر دی دَ شیطان دَ طرق نه۔ نو عقل والوله ضروری دی چه دَ دے دواړو په انصاف سره موازنه اوکړی او دَ شیطان نه ځان بچ کړی۔

وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ، جود، فضل او مغفرت دَ الله تعالیٰ فراخه دے۔ په یکښ اشاره ده چه الله تعالیٰ دَ خپلو وعدو خلاف ځکه نه کوی چه دَ هغه په فضل و رحمت کښ تنګسیا نیشته۔ عَلِيْمٌ یعنی عالم دے په مناسب ځایونو دَ فضل کولو۔ او بعضے وخت په چا باندے تنګسیا راولی ځکه چه دَ هغه په حال باندے عالم دے۔

س٢٦٩ ربط :۔ هر کله چه وعده ذکر شوه دَ الله تعالیٰ او دَ شیطان نو دَ دے دَ تمیز دَ پاره سیب پکار دے چه هغه حکمت دے نو اوس دَ هغه تقسیم ذکر کوی په مقتضا دَ علم خپل سره چه علیم دے۔

يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَاۤءُ، دَ ایتاء استعمال په اعیانو، مالونو، اعراضو او معانیو ټولو کښ کیدیشی۔ څوک چه وائی چه دا په مالونو یا په اعیانو پورے خاص دے نو دَ هغوی هیڅ دلیل

نیشته - اَلْحِكْمَةَ مصدر دے دَ احکام نه - نو حکمت مضبوطوالے دے په علم، قول او عمل کښ. ابن عطیه او قرطبی وئیلی دی چه کتاب الله او سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم حکمت دے. او دَ دے په مصداق کښ ابوحیان یوکم دیرش (۲۹) اقوال ذکر کړیدی. ابن عطیه وئیلی دی چه دغه ټول اقوال یو بل ته قریب دی ما سیوا دَ قول دَ سدی نه چه هغه وئیلی دی چه حکمت نبوت دے. دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه دَ علی بن طلحه، قتاده او ابوعالیه روایات دا دی چه پوهه دَ قرآن کریم او دَ هغے ناسخ او منسوخ، محکم متشابه، مخکښ نازل شوے او روستو نازل شوے معلومول دا حکمت دے. دا رنګ دَ ابوعثمان قول دا دے چه دا سے نُور (علم) چه دَ وسوسے او الهام په مینځ کښ فرق کولے شی. نو دا معنے غوره دی او په دے سره دَ مخکښ آیت سره ربط هم معلومیږی. حاصل دا چه دَ قرآن و سنت دا سے پوخ علم چه دَ هغے په ذریعه دَ حق او باطل په مینځ کښ پوره فرق کیدیشی او عمل کوی په حق باندے او دَ باطل نه ځان بچ کوی نو دا پوره حکمت شرعیه دے. او امام رازی اشاره کړیده چه ترجیح دَ وعدے دَ الله تعالیٰ په حکمت او عقل سره معلومیږی او ترجیح دَ شیطان دَ وعدے په شهوت او هوٰی سره معلومیږی. او حکمت او عقل خو دَ شهوت او هوی نه ډیر غوره دی او څوک چه دَ دینه دَ یونانیانو فلسفیانو حکمت مراد کوی نو هغوی دَ قرآن کریم تحریف کوی. وَمَنْ يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ، لفظ دَ حکمت ئے دوباره ذکر کړو دَ وجے دَ اهمیت او شرافت دَ دے نه. فَقَدْ اُوْتِیَ خَيْرًا كَثِيْرًا.

سوال :- شرط فعل مستقبل دے نو جزاء ئے فعل ماضی ولے ذکر شوه؟

جواب :- هغه فعل ماضی چه قَدْ ورباندے داخل وی

وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ نَّفَقَةٍ اَوْ نَذَرْتُمْ

او هغه چه خرڅ کوئ تاسو څه خرڅه یا منخته کوئ تاسو

مِّنْ نَّذْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُهٗ ؕ وَمَا

څه منخته کول نو یقینًا الله تعالی پوهه دے په هغے باندے او نیشته

لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿۲۷۰﴾

ظالمانو د پاره هیڅوک مددګاران۔

اوجواب ئے شرط وی نو دا په لفظ کښ ماضی وی او په معنیٰ کښ مستقبل وی نو په دیکښ تقدیر د عبارت ته حاجت نیشته۔ او کله چه سره د قد نه لفظًا او معنًا دواړه فعل ماضی وی نو هلته جواب شرط پټ وی لکه وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ۔

خَيْرًا تنکیر د تعظیم د پاره دے او عظمت ئے په اعتبار د کیفیت سره دے۔ او كَثِيْرًا نه مراد کثرت په اعتبار د افرادو سره دے۔ قرطبی وئیلی دی چه علم د قرآن چا ته ورکړے شو نو علم د مخکنو کتابونو او صحیفو هم ورکړے شو۔ او دا سے په حدیث د بخاری کښ هم دی چه مَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ بِهٖ خَيْرًا يُّفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ (د چا په باره کښ چه الله تعالی د ډیر خیر اراده اُوکړی نو هغه له په دین کښ ډیر علم او پوهه ورکړی۔

فائده:۔ حلال مال ته په آیت ۲۷۲ کښ خیر وئیلے شوے دے او علم د قرآن ته خیر کثیر وئیلے شوے دے نو دا ښکاره دلیل دے په فضیلت د علم په دُنیا داری باندے۔ نو دارنګ د انفاق په باره کښ چه کوم ترغیبات او کوم شرطونه مخکښ ذکر شول نو هغه په باره د خیر کثیر کښ هم مراد دی۔

وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ، اَلْبَاب جمع د لُب ده هغه خالص عقل ته وئیلے شی چه د مقابلے د وهمونو نه پاک وی۔ اشاره ده چه د حکمت نه د فائدے اخستلو د پاره خالص عقل ضروری

دے۔ او ذکر د دے صفت په دے سورت آیت ۱۹۷ کښ او سورة آلعمران ۷، ۱۹۰، سورة زمر ۱۸ او سورة طلاق ۱۰ کښ تفصیلی ذکر شوے دے۔

۲۷۰ د حکمت بو تقاضا دا ده چه انسان مالی خرچ کوی لیکن په دوه طریقو سره۔ کله په طریقه د التزام په ځان باندے چه هغے ته نذر وئیلے شی او کله بغیر د التزام نه چه هغے ته نفس انفاق وئیلے شی۔ او په دے آیت کښ دویم امر ذکر دے چه هغه متعلق دے د انفاق سره او هغه تقسیم دے دوه قسمونو ته۔ وَمَآ اَنۡفَقۡتُمۡ مِّنۡ نَّفَقَةٍ، ظاهر دا ده چه مراد د دینه عام انفاق دے که هغه شرعی وی او که غیر شرعی وی لکه چه د دے دواړو ذکر په تیر شوو مثالونو کښ اوکړے شو۔ او د مِنۡ نَّفَقَةٍ په تعمیم کښ مقصد دا دے چه که لږ وی او که ډیر وی، فرض وی او که نفل وی، عبادت بدنیه وی او که مالیه وی۔ اَوۡ نَذَرۡتُمۡ مِّنۡ نَّذۡرٍ، دلته هم دغه دواړه تعمیمات مراد دی یعنی که نذر د طاعت وی او که د معصیت وی، مشروط وی او که غیر مشروط وی، نذر مسمّٰی وی او که غیر مسمّٰی وی۔ د دے ټولو مختلف احکام په احادیثو کښ په تفصیل سره ذکر دی۔ او نذر په لغت کښ هغه تړل دی د انسان خپل زړه (اراده) لره په یو خیز پورے۔ او په شریعت کښ دا هغه عبادت دے چه یو مکلف ئے واجب کوی په خپل ځان باندے دا سے چه الله تعالیٰ په هغه باندے نه وی لازم کړے۔ فَاِنَّ اللّٰهَ یَعۡلَمُهٗ، مخکښ ما شرطیه دے او دا جواب شرط دے۔ او دا کنایه ده د جزا ورکولو نه که جزاء د خیر وی او که د شر وی۔ او ۂ ضمیر مفرد دے لفظ د ما ته راجع دے۔ وَمَا لِلظّٰلِمِیۡنَ مِنۡ اَنۡصَارٍ، دا وعید دے د ناجائز انفاق او نذر کوونکو د پاره او لفظ د ظالمین عام دے ټولو مشرکانو او گناه کوونکو ته شامل دے او خاصکر په انفاق کښ ظلم کول انفاق نه کول دی یا په غیر شرعی مصارفو کښ خرچ کول یا په ریاء، مَنّ او اذی سره کول دا ظلم دے

إِن تُبۡدُوا۟ ٱلصَّدَقَٰتِ فَنِعِمَّا هِيَ ۖ

که چرے ښکاره ورکوئ تاسو صدقات نو ښه دی دغه

وَإِن تُخۡفُوهَا وَتُؤۡتُوهَا ٱلۡفُقَرَآءَ

او که چرے پټ ورکوئ هغه او ورکوئ يئ محتاجانو ته

فَهُوَ خَيۡرٌ لَّكُمۡ ۚ وَيُكَفِّرُ عَنكُم

نو دا غوره دے تاسو لره او لرے کوی الله تعالیٰ ستاسو نه

مِّن سَيِّـَٔاتِكُمۡ ۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ

گناهونه ستاسو او الله تعالیٰ ستاسو په عملوتو باندے

خَبِيرٌ ﴿٢٧١﴾

خبردار دے۔

اونرد معصيت اوتنر په شرکی طريقه يعنی په نوم د غيرالله که خاروی وی اوکه نقود وی اوکه نور عبادات وی دا ټول ظلمونه دی۔
سوال :- د دے نه معلوميږی چه د گناهګارو د پاره شفاعت نيشته (او دا مذهب د منکرين حديث او د معتزلو دے)؟
جواب :- شفيع ته په عرف کښ ناصر نشی وئيلے د ديته په دے سورت آيت ۱۲۳ کښ نفی د شفاعت او نفی د نصرت يئ جدا جدا کړيده ځکه چه شفيع صرف مهربانی او شفقت کوی او ناصر په قوت او زور سره کار کوی. ۲ه :- دا آيت عام دے ټولو اشخاصو او وقتونو او دليلونه د اثبات د شفاعت خاص دی او خاص مقدم وی په عام باندے۔
۲۷۱ :- په دے آيت کښ دريم امر د انفاق سره متعلق ذکر کوی چه هغه ادا د صدقاتو ده ښکاره وی او که پټه۔
ربط :- هر کله چه مخکښ معلومه شوه چه الله تعالیٰ په هر انفاق باندے عالم دے نو وهم پيدا شو چه په ديکښ

اظهار عبث دے نو جواب اُوشو چه اظهار د نورو فوائدو د پاره جائز دے په شرط د عدم ریاء سره۔

اِنْ تُبْدُوا الصَّدَقٰتِ، اِبداء نه مراد ورکول دی په ښکاره طریقے سره یعنی چه نور خلق یې اووینی. الصَّدَقٰتِ، ماده د صدق دلالت کوی په صحت او کمال باندے نو زکوٰة او خیرات ته صدقه د دے وجے نه وئیلے شی چه سبب دے د صحت او د کمال د مال- یا دلیل دے په مصداق د ایمان او کمال د ایمان د بنده باندے- او دلته لفظ د صدقات عام دے فرض او نفل دواړو ته شامل دے- او حسن او قتاده وئیلی دی چه مراد ترینه فرض زکوٰة دے او عام مفسرینو وئیلی دی چه مراد ترینه نفل دے- د صدقات فرضیه په ښکاره ورکولو کښ ابن عباس رضی الله عنهما وئیلی دی چه اظهار افضل دے د پټ ورکولو نه- او ابن جریر په دے باندے اجماع نقل کړیده- او اصح داده چه دا موقوف ده په نیت باندے چه نیت صفا وی او ریاء پکښ نه وی او مقصد یې اظهار د سنت وی او ادا د فرض وی او د دے د پاره چه نور خلق هم د هغه اقتداء اوکړی په زکوٰة ورکولو کښ او ځان به د خلقو د بدګمانئ نه بچ کوی نو په دغه بنیاد سره ښکاره ورکول غوره دی او که داسے نه وی نو بیا پټ ورکول غوره دی- او نفل صدقات خو په هر حال کښ پټ ورکول غوره دی۔

فَنِعِمَّا هِیَ، دا په اصل کښ نعم الشیٔ شیئًا هی دے- او ضمیر د هِیَ ابداء الصدقات ته راجع دے- معنیٰ دا چه ښه څیز دے د څیز په لحاظ سره دغه ښکاره ورکول د فرض صدقاتو- لفظ د نِعْمَ دلالت کوی په صرف جواز باندے سره د معمولی ترجیح نه لکه چه دا د مواضعو د استعمال نه معلومیږی او د دے وجے نه دا ته فعل مدح وئیلے شی۔

وَاِنْ تُخْفُوْهَا وَتُؤْتُوْهَا الْفُقَرَآءَ فَهُوَ خَیْرٌ لَّکُمْ، په دے جمله کښ د اخفاء (پټ ورکولو) تفصیل ذکر کوی په شرط د

ورکولو سره فقراؤ ته.
سوال :- صدقات نه چه مراد فرض زکوٰة دے او تخفوها کښې ضمیر هم هغې ته راجع دے. نو مخکښې معلومه شوه چه هغه خو ښکاره ورکول غوره دی دارنګ د هغې ورکول خو فقراؤ پورے خاص دی نو د وتؤتوها الفقراء قید لګولو څه فائده ده؟
جواب ۱ :- د صدقات نه مراد نفل دی په قول د عامو مفسرینو سره نو هغه ښکاره ورکول صرف جائز دی او پټ ورکول افضل دی او فقراؤ ته ورکول هم د مالدارو په نسبت غوره دی.
جواب ۲ :- صدقات فرض او نفل دواړو ته عام دے لیکن په إن تبدوا الصدقات کښې فرض مراد دے او تخفوها ضمیر کښې نفل مراد دے او دیته علم بدیع کښې استخدام وئیلے شی چه په لفظ سره یو معنیٰ مراد شی او په ضمیر سره بله معنیٰ مراد شی.
جواب ۳ :- اول هم فرض صدقات مراد دی او په ضمیر کښې هم فرض مراد دی لیکن افضلیت په سبب د بچکیدلو د ریاء او سمعت نه دے او جواز یے صرف په نیت د عدم ریاء سره دے چه د نورو فوائدو لحاظ پکښې نه وی.
فائده :- په ابداء کښې د ایتاءِ فقراءِ ذکر نه دے کړے او په اخفاء کښې کړیدے د دے حکمت دا دے چه عصام وئیلی دی چه په ښکاره ورکولو کښې فقیر معلومیږی خلق یے پیژنی نو ذکر ته حاجت نیشته او په پټ ورکولو کښې کله ورکوونکی ته د فقیر د فقر پته نه لګی نو په ذکر کښې اشاره ده چه په دغه وخت کښې پوره تفتیش پکار دے هسے نه چه غیر فقراء یے واخلی. بل دا چه خفاجی په شرح د تفسیر بیضاوی کښې وئیلی دی چه د اول سره یے ذکر نه کړو ځکه چه هلته فرض زکوٰة مراد دے او د زکوٰة د پاره د فقراؤ نه علاوه نور مصارف هم شته دے

لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ

نیشته په تا باندے حق ته رسول د ددی او لیکن الله تعالیٰ

يَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَمَا تُنْفِقُوْا

حق ته رسوی هغه چا لره چه او غواړی او هغه چه خرچ کوئ تاسو

او پټه صدقه خو صرف نفلی ده او هغه هم غیر فقراؤ له جائز ده لیکن فقراؤ ته ورکول افضل دی۔

فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ کښ ظاهر داده چه دا اسم تفضیل دے او مفضل علیه مخکښ ذکر شو یعنی مِنْ اِبْدَآءِهَا (ابوحیان)۔

وَيُكَفِّرُ عَنْكُمْ مِّنْ سَيِّاٰتِكُمْ ، دا قراءت په صیغه دَ غائب سره په رفع سره دے اګرچه په دے کښ نور قرائتونه هم شته دے - په دے قرائت سره واو دَ پاره دعطف دَ جملے دے په جمله باندے او دا جمله مستانفه ده او مبتداء ئے پټه ده یعنی وَاللّٰهُ يُكَفِّرُ آه - او ضمیر دَ یکفر الله تعالیٰ ته راجع دے یا هُوَ ضمیر پټ دے او راجع دے ابداء اخفاء او ایتاء ته - تکفیر پټولو ته وئیلے شی او مراد ترینه مغفرت دے۔

مِنْ سَيِّاٰتِكُمْ کښ مِنْ دَ تبعیض دَ پاره دے ځکه چه په صدقاتو سره ټول ګناهونه نه معاف کیږی۔ سَيِّاٰتِكُمْ جمع دَ سیئة ده تا کاره حالت ته وئیلے شی نو په هغے کښ ګناهونه، سختئ او مصیبتونه داخل دی ځکه چه په صدقاتو سره مصیبتونه هم دفع کیږی۔

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ، خَبِيْر دَ پټو څیزونو په علم کښ استعمالیږی - نو دلته هم اشاره ده چه نیت دَ اخلاص یا ریاء او سمعت کولو دَ صدقاتو په ښکاره یا پټ ورکولو کښ الله تعالیٰ ته معلوم دے - نو دَ اخلاص والو دَ پاره وعده دَ ثواب ده او دَ ریاء والو دَ پاره وعید دے - دا رنګ اشاره ده چه پټ ورکول دَ صدقاتو غوره دی ځکه چه الله تعالیٰ په پټ څیزونو باندے علم لری۔

مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ ؕ وَمَا تُنْفِقُوْنَ

څه حلال مال نو ستاسو د فائدې د پاره دے او تاسو خرچ نه کوئ

اِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ اللّٰهِ ؕ وَمَا تُنْفِقُوْا

مګر د پاره د لټولو د مخ د الله تعالی او هغه چه خرچ کوئ تاسو

مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ

څه حلال مال نو پوره به درکړے شی تاسو ته (ثواب د هغے) او په تاسو باندے

لَا تُظْلَمُوْنَ ﴿۲۷۲﴾

به ظلم نشی کیدلے.

۲۷۲ په دے آیت کښ د انفاق سره متعلق څلورمه خبره ده. د آیت په اول کښ دفع د یو سوال ده او روستو ترغیب دے د اخلاص پیدا کولو په صدقاتو کښ د پاره د حاصلولو د اجر.

ربط:- هر کله چه مخکښ آیتونو کښ ډیر قسمونو د خلقو ته اشاره اوشوه چه هغوی ګمراه دی، ریاکار، منّ او اذی ورکوونکی، د شیطان وسوسے قبلوونکی او غیر شرعی انفاق او ندر ورکوونکی دی. او د داسے خلقو وجود په نبی صلی الله علیه وسلم باندے بوج وو چه دوی ولے احکام شرعیه نه منی. او د اسباب نزول نه معلومیږی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم یا صحابه کرامو به په مشرکانو خپلوانو باندے انفاق نه کوو د دے د پاره چه اسلام را وړلو ته مجبوره شی نو په دے آیت کښ ئے نبی کریم صلی الله علیه وسلم او د هغه تابعدارانو ته تسلی ورکړه چه د دوی هدایت ستا په اختیار کښ نه دے. نو که دوی ایمان نه راوړی نو ته خفګان مه کوه لیکن صدقات ورله ورکوئ دے د پاره چه د هغوی زړونه دے طرف ته مائیله شی لیکن د دے نه مراد نفلیه صدقات دی او صدقات فرضیه عام مشرکانو ته نه شی ورکیدے. لیکن د تالیف قلب د پاره ئے ورکول جائز دی.

فائده:- په دے آیت کښ هغه چا ته تسلی ده چه مال په

دعوت کښ خرچ کوی لیکن هرکله چه ګمراه خلق بیا هم ایمان نه راوړی نو خرچ کوونکے پخپل خرچ کولو باندے پښیمانه شی نو حاصل دادے چه خرچ په نیت د اخلاص د دعوت سره کوئی که څوک په لاره راځی اوکه نه راځی ځکه چه هدایت د الله تعالیٰ په اختیار کښ دے۔

لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰهُمْ، د دینه مراد توفیق ورکول او په زور سره هدایت ته راوستل دی۔ نو دا د نبی صلی الله علیه وسلم او د نوړو بندګانو نه منتفی دے لکه چه په سورة قصص ۵۶ کښ دی۔ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۗءُ، د دے هدایت نه مراد هغه دے چه په مخکښ جمله کښ د نبی صلی الله علیه وسلم نه منتفی شوے دے۔ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ، هرکله چه اختیار د هدایت د خلقو نه نفی کړے شو نو اوس ترغیبات ورکوی انفاق ته یعنی کوم کار چه ستاسو په اختیار کښ دے چه انفاق د مال دے نو هغه مه پریږدئ۔ په دے جمله کښ اول ترغیب دے۔ یعنی ستاسو دا مال خرچ کول د خلقو د هدایت د پاره دا ستاسو د نفسونو فائده ده نو د چپلے فائدے کار مه پریږدئ۔ خَيْرٍ په معنی د مال سره دے په دے شرط چه حلال وی ځکه چه په مال کښ د دنیا او د آخرت فائدے شته دے۔

وَمَا تُنْفِقُوْنَ اِلَّا ابْتِغَاۗءَ وَجْهِ اللّٰهِ، دا دویم ترغیب دے۔ فراء بغوی وئیلی دی چه دا نفی په معنی د نهی سره ده او علت د پاره د مخکښ جملے دے چه د انفاق د خیر فائده تاسو ته د دے وجے در سیږی چه ستاسو مقصد ابتغاء وجه الله ده ریاء او سمعت نه دے۔ او هرکله چه دا صفت د یو کامل مؤمن د پاره هر وخت کښ وی د دے وجے نه ئے په صیغه د نفی (اخبار) سره ذکر کړے دے۔ د دے وجے نه قرطبی لیکلی دی چه په دے جمله کښ شهادت دے د الله تعالیٰ د طرف نه د صحابه کرامو د اخلاص د نیت په صدقاتو ورکولو کښ او دا د هغوی لوئے فضیلت دے۔ وَجْهِ اللّٰهِ، د متشابهاتو نه دے په اعتبار

لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ

(صدقات) د پاره د محتاجانو دی هغه کسان چه بند کړے شوے دی په

سَبِيْلِ اللهِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا

لار د الله تعالیٰ کښ طاقت نه لری د سفر کولو

فِي الْاَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ

په زمکه کښ ګمان کوی په دوی باندے ناخبره کس

اَغْنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ تَعْرِفُهُمْ

مالداران د وجے د ځان بچ کولو د حراموئه ته پیژنے دوی لره

دکیفیت سره او په اعتبار د حقیقی معنے سره ظاهر او محکم دے چه مراد د دیته مخ دے لیکن بغیر د تمثیل او تاویل نه۔ او دا د سلفو صالحینو مذهب دے۔

وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ، دا دریم ترغیب دے او په دیکښ جواب د وهم دے هر کله چه په انفاق سره هدایت حاصل نشی نو د ثواب د نقصان وهم پیدا کیږی۔ نو په دے جمله کښ ئے دا وهم دفع کړو۔ او دا جمله بنا ده په مخکښ جملو باندے یعنی چه تاسو انفاق د خپلے فائدے د پاره کړے وی او مقصد مو پکښ غوښتل د مخ د الله تعالیٰ وی نو د دے وجے نه د هغے ثواب به پوره درکیدیشی بغیر د څه نقصان نه۔

يُوَفَّ د وفا نه دے چه دا د ډیر والی سره منافی نه دے۔ او وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ د يوف د تاکید د پاره دے او ظلم په معنیٰ د نقص سره دے لکه چه په سورة کهف ۳۳ کښ دی۔

بِسِيمٰهُمْ ۚ لَا يَسْـَٔلُوْنَ النَّاسَ

پہ خاص نخو دَدوی سرہ سوال نہ کوی دَ خلقو نہ

اِلْحَافًا ۗ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ

بے ضرورتہ او هغه چه خرچ کوئ تاسو څه مال حلال

فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿٢٧٣﴾

نو یقیناً الله تعالیٰ پہ هغے باندے ښهٔ علم لری۔

۲۷۳:۔ پہ دے آیت کښ دَ انفاق سرہ متعلق پنځمه خبره دہ
چه هغه مصرف دے دَ انفاق فی سبیل الله۔ هر کله چه
مخکښ آیت انفاق پہ هغه ځا ذکر کړو چه هغوی تہ ئے
فائدہ او نہ رسیدلہ یعنی هدایت ئے حاصل نہ کړو نو
اوس انفاق ذکر کوی پہ پورہ هدایت والو باندے۔
لِلْفُقَرَآءِ، دا متعلق دے پہ پټ لفظ پورے یعنی النفقات
فی سبیل الله للفقراء۔
فائدہ :۔ دَ صدقات فرضیه مصارف ئے پہ سورۃ توبہ ښه
کښ ذکر کړی دی۔ او دا مصرف صرف دَ انفاق فی سبیل الله
(دعوت وجهاد) دَپارہ دے۔ دَ دے وجے نہ ئے دلته
صفتونہ دَ دعوت وجهاد والو ذکر کړی دی۔ پہ هغه زمانه
کښ اصحاب صفه پہ مسجد نبوی کښ دیرہ وو قرآن او سنت
ئے ایزدہ کولو او بیا بہ ئے دَ هغے دعوت کولو او چه وخت دَ
جهاد بہ راغے نو دوی بہ جهاد لہ هم تلل۔ دلته ئے دَ
هغوی دَ فقر سرہ شپږ صفات ذکر کړی دی۔ نو چه اوس
هم پہ چا کښ دا صفتونہ وی نو هغه مصرف دے دَ انفاق
فی سبیل الله۔ اول صفت ئے دَ فقر ذکر کړو چه دا اصل
سبب دے یعنی دوی پہ خوراک څښاک، لباس او دَ ژوند
پہ نورو ضروریاتو او پہ لار دَ دعوت وجهاد کښ مالونو
تہ محتاج دی لیکن مالونہ ورسرہ نیشته چه پہ هغے سرہ

دغه حاجات ضرور به حاصل شي۔
الَّذِينَ أُحۡصِرُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، دا يې دويم صفت دے۔ احصار دا دے چه انسان ته يو داسے عارض راپيښ شي چه د سفر کولو ته يې منع کړي لکه مرض، دُشمن، نيشتوالے د خرچې يا درس، دعوت وجهاد دلته دا روستنے عارض مراد دے په دليل د في سبيل الله سره۔
أُحۡصِرُوا صيغه د مجهول هم دلالت کوي چه په دے کار کښ دومره مشغول دي چه د هغې نه ورته فراغت او فرصت نه ملاويږي۔
لَا يَسۡتَطِيعُونَ ضَرۡبًا فِي الۡأَرۡضِ، دا دريم صفت دے۔ دا جمله حال دے يا استيناف دے او مخکښ جمله کښ ذکر د سبب وو او ديکښ ذکر د مسبب دے۔ ضرب في الارض کنايه ده د تجارت کولو ته او وجه د عدم استطاعت د سفر ته شغل دے په کارونو د في سبيل الله باندے۔ يا کثرت او غلبه د دُشمنانو مشرکانو ده۔ نو احصار د دوي صفت ثبوتيه دے او عدم استطاعت صفت سلبيه دے۔ او دا په اصل کښ سبب دے د دوي د فقر د پاره ځکه يې په دے باندے تصريح اوکړه۔
يَحۡسَبُهُمُ الۡجَاهِلُ أَغۡنِيَاءَ مِنَ التَّعَفُّفِ، دا يې څلورم صفت دے۔ الۡجَاهِلُ، دلته جهل مقابل د علم مراد نه دے بلکه مقابل د تجربے مراد دے يعني ناخبره د حال د دوي نه په سبب د تجربے نه لرلو سره۔ مِنَ التَّعَفُّفِ کښ مِنۡ اجليه دے يا د ابتداء د پاره دے۔ او دا متعلق دے په يَحۡسَبُهُمۡ پورے۔ التعفف د عفت نه اخستلے شوے دے۔ او عفت اعراض دے د يو څيز نه سره د قدرت نه په هغې باندے د وجے د نه کتلو نه۔ او مراد دا دے چه دوي د حرام خوراکونو او د بے ضرورته سوالونو نه ځان بچ ساتي۔ او صيغه د تفعُّل دلالت کوي په مبالغه باندے يعني د هر قسم حراموته د ځان ساتلو په وجے سره ناخبره خلق ګمان کوي چه دا مالداران دے ځکه د شرک د مالونو او خوراکونو او بدعاتو او د رسمونو د خوراکونو نه ځان بچ ساتي او هر کله چه خلق په دوي باندے د مالدارو ګمان کوي

تو دوی له زکوٰة او صدقات نه ورکوی - دا هم دلیل دے چه دوی په فقر باندے - تَعْرِفُهُمْ بِسِيمٰهُمْ، دا ئے پنځم صفت دے او دا جمله جواب د سوال دے چه هر کله دوی مالدار معلومیږی نو د مسلمانانو صدقات به دوی ته څرنګ رسیږی؟ حاصل جواب دا دے چه نیز دے مسلمانان خو د دوی د فقر نه خبر دی په سبب د خاص نښو د دوی سره - او په دیکښ اشاره ده چه هوښیار مسلمان له پکار دی چه په علاماتو سره فکر اوکړی او د دوی د حال نه (یا د داسے ملګرو د حال نه) ځان خبر کړی - او په دے سِیمٰا کښ اقوال دی - د مجاهد په نیز خشوع ده چه اثر د هغے په ظاهر کښ ښته دے چه تواضع ده - او د ربیع او سدی په نیز دا د لوږے آثار دی چه په دوی کښ ښکاری - او ضحاک وائی چه هغه زیړوالے د مخونو د دوی دے چه د خوراک د کموالی یا د لوږے د وجے نه دے - ابن عطیه وئیلی دی چه د دینه مراد آثار د ډیرو سجدو کولو دی - او امام رازی وئیلی دی چه د دینه مراد د دوی هیبت او رعب دے په زړونو د خلقو کښ چه خلق ئے په لیدلو سره متاثره شی - او دے وائی چه دلته ظاهری علامات مراد نه دی کنه بیا خو به تورو خلقو هم پیژندلے -

لَا يَسْـَٔلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا، دا ئے شپږم صفت دے - اِلْحَافًا مفعول مطلق دے د پټ فعل د یا ده - یا په موضع د حال کښ دے - او دا اخستلے شوے دے د لحف نه - لکه چه لحاف (برستن) په انسان پورے جوخته وی تو دا رنګ دغه انسان په سوال کولو کښ په خلقو پورے انختلے وی او د هرچا نه سوال کوی -

سوال :- دا دے نه معلومیږی چه سوال کوی خو کلکیږی نه یعنی الحاف نه کوی او د التعقق نه معلومه شویده چه دوی خو بالکل سوال نه کوی؟

جواب ۱ :- دلته نفی د مقید او د قید دواړو ده یعنی سوال او الحاف دواړه نه کوی -

جواب ۲ :- دلته الحاف په معنیٰ لازمی سره دے یعنی بے ضرورته

اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّيْلِ

هغه كسان چه خرچ كوي مالونه خپل د شپې

وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّ عَلَانِيَةً فَلَهُمْ

او د ورځې پټ او ښكاره نو دوي لره

اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ج وَلَا خَوْفٌ

ثواب د دوي دے په نيز د رب د دوي او نه به وي هيڅ ويره

سوال نه كوي - او د تحقق نه مراد ځان ساتل دي د حرام سوال كولو نه
او هغه سوال دے بے ضرورته - او دا معنیٰ په حديث كښ ذكر ده
چه مَنْ سَاَلَ وَلَهٗ اَرْبَعُوْنَ دِرْهَمًا فَقَدْ اَلْحَفَ (چا چه سوال كوو
او د ده سره څلويښت درهمه (روپئ) شته نو دے شخص الحاف
اوكړو) (نسائي او بيهقي) بل حديث دا دے چه مَنْ سَاَلَ مِنْكُمْ
وَلَهٗ اُوْقِيَةٌ اَوْ عِدْلُهَا فَقَدْ سَاَلَ اِلْحَافًا (چا چه سوال كوو او حال
دا چه د هغه سره اُوْقِيَة (څلويښت درهمه) يا د هغے برابر ماليت
شته دے نو دے شخص الحاف سوال اوكړو) او د عطاء نه د
الحاف په تفسير كښ نقل دي چه هر كله يو شخص سره د
د غداء (غرمے خوراك) طاقت وي نو د بيگائي د خوراك سوال
به نه كوي - دا رنگ برعكس هم - نو مقصد دا دے چه بے ضرورته
سوال به نه كوي (اللباب) - او قرطبي وئيلي دي چه چا سره
د څلويښت درهمو په مقدار ماليت شته دے او دے سوال
كوي نو دے ملحف دے - نو په دے توجيه سره نفئ قيد
ده لكه چه دا عامه طريقه د عربيت ده چه نفي په كلام مقيد
كښ متوجه وي فقط قيد ته - او امام رازي وئيلي دي چه تښے د
غريبئ او د فقر ښكاره كول دا الحاف دے - په دے معنیٰ سره
د مخكښ جملے سره هم مناسبت شته دے هغه دا چه دوي
خپل فقر او د هغے آثار ولے نه ښكاره كوي؟ ځكه چه دا الحاف
دے او دوي د الحاف نه ځان بچ ساتي -

عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ (٢٧٤)

په دوی باندے او نه به دوی غمژن کیږی.

وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ، دا جمله دا تاکید د ترغیب دانفاق د پاره ده. او فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ، هم ترغیب دے په په حصول د اجر او ثواب سره یعنی الله تعالیٰ ستاسو په انفاق باندے عالم دے نو هغه ثواب دچا نه ضائع کوی.

سـ٢٧٤:- په دے آیت کښ شپږمه خبره ده چه متعلق ده د انفاق فی سبیل الله سره او مراد د دیته تعمیم د اوقاتو او د احوالو د انفاق دے. او په آیت کښ بشارت أخرویه دے د پاره د انفاق فی سبیل الله.

اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ، آیت عام دے او ترغیب دے تعمیم د اوقاتو او احوالو ته د ضرورت او حاجت مناسب.
او ابن جریر او قرطبی وئیلی دی چه دا آیت د هغه کسانو په باره کښ دے چه د جهاد د پاره اسونه تیار ساتی او هغه د شپے او د ورځے سریکی او کله پټ او کله ښکاره وی. نو په حدیث د بخاری کښ راغلی دی چه د هغے اسونو مړیدل په ګیاه وغیره او په او بو سره او د هغے خشتره او واړه بول به په ورځ د قیامت په میزان د حسنا تو کښ اچول کیږی.

بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ، په دے تعمیم کښ اشاره ده چه تخصیص د بو شپے رلکه د جمعے شپه یا د مړی د خیرات د پاره اوله یا دویمه، دریمه شپه وغیره) خاص کول بدعت دے.
او د لفظ اللیل په مخکښ راوړلو کښ اشاره ده چه د شپے صدقه ورکول د ورځے د صدقے ورکولو نه افضل ده.

سِرًّا وَّعَلَانِيَةً، د حالاتو سره مناسب کله پټه صدقه او کړی او کله ښکاره چه ریاء، مَنّ او اذی پکښ نه وی. دلته ئے هم سِرًّا مخکښ راوړو دلیل دے چه پټه صدقه غوره ده د ښکاره نه ځکه چه په ښکاره صدقه ورکولو کښ احتمال د ریاء او سمعت زیات وی.

اَلَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوْمُوْنَ

هغه کسان چه خوری سود نه به پاسیږی د قبرونو نه

اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِىْ يَتَخَبَّطُهُ

مګر پشان د پاسیدلو د هغه چا چه ګډ وډ کړے وی

الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ؕ ذٰلِكَ

هغه شیطان (سرکش پیری) د وجے د لیونتوب نه دا په دے وجه سره

بِاَنَّهُمْ قَالُوْٓا اِنَّمَا الْبَيْعُ

چه یقینًا دوی وائی یقینًا خرڅول

مِثْلُ الرِّبٰوا ۘ وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ

پشان د سود دی او حلال کړے دی الله تعالیٰ خرڅول

وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ؕ فَمَنْ جَآءَهٗ

او حرام کړے ئے دے سود نو هغه څوک چه راغے هغه ته

مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ

وعظ د طرف د رب د هغه نه نو منع شو نو ده لره

مَا سَلَفَ ؕ وَاَمْرُهٗٓ اِلَى اللّٰهِ ؕ

هغه ده مخکښ تیر شوے ئے (رباورکړے دے) او معامله د ده سپارلے شوے ده الله تعالیٰ ته

فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ، دا جزاء ده د الذین حُکه چه هغه متضمن دے معنے د شرط او علتیت لره. یعنی دغه انفاق علت دے د پاره د اجر عند الله. او لفظ د عند الله دلالت کوی په عظمت د دے اجر باندے. او ذکر د اَجْرُهُمْ ثبوتی جزاء ده او لاخوف آه ئے سلبی جزاء ده.

وَمَنْ عَادَ فَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ

او څوک چې را وګرځیدلو حلال ګڼړلو د سود ته نو دغه کسان اور والا دي

هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿۲۷۵﴾

دوی به په هغې کښ همیشه وی۔

۲۷۵- خلاصه د دریم باب:- د دے آیت نه تر ۲۸۳ پورے دریم باب دے په دیکښ اول زجر او تخویف دے هغه ربا کوونکو ته چه هغوی ربا حلال ګڼړی۔ بیا بشارت دے په صفاتو د ایمان او د عبادت بن تیه او مالیه ځکه چه دغه صفات د اهل ربا (سود والو) نه دی۔ بیا منع ده د ربا نه مؤمنانو لره په آیت ۲۷۸ ۲۷۹ کښ۔ او ترغیب دے په قرضدارئ کښ نرمے معاملے کولو ته سره د تخویف نه په آیت ۲۸۰ ۲۸۱ کښ بیا په آیت د مدائینه کښ ذکر د آدابو دے د پاره د دفعے د اختلاف او فساد په مالی معاملاتو کښ۔ لکه چه سود سبب د فساد دے۔ دا رنګ د دغه آدابو نه خلاف کول هم سبب د فساد دے۔ دا په دوه آیتونو کښ ذکر دی ۲۸۲ ۲۸۳۔

ربط ۱ هر کله چه انفاق فی سبیل الله ته ترغیبات ذکر شول نو اوس منع ذکر کوی د حرام مال ګټلو نه په طریقه د ربا سره۔ دے د پاره چه انفاق کول د خبیث مال نه هیڅ فائده نه ورکوی ۲ انفاق سره مال کمیږی او په ربا سره زیاتیږی نو د دوی په مینځ کښ مناسبت د تضاد دے۔ نو اول سبب د برکاتو دے او دویم سبب د بے برکتئ دے په دُنیا او آخرت کښ۔ ۳ په مخکښ آیت کښ بشارت اُخرویه ذکر شو په عمل صالح باندے چه انفاق شرعی دے نو په دے آیت کښ تخویف اُخروی دے په ناکاره عمل چه هغه ربا ده۔

اَلَّذِيْنَ يَأْكُلُوْنَ الرِّبٰوا، دا مستقل کلام دے ځکه چه د مقابل نه مخالف دے۔ د دے وجے نه په ماقبل ئے نه دے عطف کړے۔ د اکل (خوراک) نه مراد حاصلول دی د حرام مال

دَربا په طریقې سره - لیکن خوراک دَ دُنیا دارو اهم او لوئې مقصد دَ
دَ دے وجے نه یئے اکل ذکر کړو - او اشاره ده قباحت دَ ربوا والو ته
چه دَ دوی کار صرف خپله خیټه ساتل دی او دا مقصد خود ځناور
هم وی - الرِّبٰوا، رِبا په لغت دَ عربو کښ اُوچتوالی او زیادت ته
وئیلے شی لکه رَبَتْ په سورۃ حج ۵ کښ - او په شرع کښ ربا
دوه قسمه ده - اول ربا دَ نسیئے (قرض) او دویم ربا زیادت دَ عوض
اول قسم خو په جاهلیت کښ ډیر مشهور وو چه چا له قرض مال
ورکړی او بیا هره میاشت یا دَ کال په تیریدلو سره په هغې
پسے مقدار زیاتوی لکه چا له سل روپئ قرض ورکړی او میاشت
پس ترینه څو روپئ دَ پاسه سل غواړی - دارنګ په دے زمانه
کښ دَ بینکونو سره معامله کول چه دَ هغوی سره نقد مبلغ کیږدی
او هغوی ورله بیا میاشت یا کال وغیره پس اضافه ورکوی - یا دَ
هغوی نه قرض مبلغ راواخلی نو بیا هغوی ورپاندے مبلغ زیاتی
کوی یعنی سود ترینه اخلی - دویم قسم (یعنی ربا دَ زیادت) مثلاً
دَ غنمو دانے یو من ورکوی او بیا دَ هغې په عوض کښ ترینه
دوه منه اخلی اګرچه په ردی او کره کښ فرق وی نو دا په
حدیث مشهور سره حرام دی چه په هغه حدیث کښ شپږ
اجناس ذکر کړی دی چه دا به برابر وی دَ یو بل سره او لاس
په لاس به وی - نور تفصیلی احکام دَ سود دَ احادیثو او فقهاؤ
په کتابونو کښ معلومیدے شی - او په حدیث دَ ابن عباس
رضی الله عنهما کښ شته دے چه دَ ربا آیت دَ قرآن په آیتونو
(یعنی دَ احکامو) کښ دَ نزول په لحاظ سره آخری دے - او قرآن
کریم دَ دے ذکر په سورۃ روم ۳۶ کښ کړیدے هلته مفسرینو
لیکلی دی چه څوک چا له هدیه (تحفه) ورکوی او نیت دَ
زیاتوالی کوی نو دا هم سود دے - دارنګه دائے صفت دَ یهودیانو
ذکر کړے دے په سورۃ نساء ۱۶۱ کښ - او مؤمنان یئے منع
کړی دی په سورۃ آل عمران ۱۳۰ کښ -
لَا یَقُوْمُوْنَ، ابن عباس رضی الله عنهما، سعید بن جبیر، قتاده

او دَ مجاهد نه نقل دی چه دَ دینه مراد قیام دے دَ قبرونو نه په ورځ دَ بعث بعد الموت کښ او تائید دَ دے دَ ابن مسعود رضی الله عنه قرائت دے چه په هغے کښ یوم القیامة ذکر دے۔ په دے معنیٰ سره دا تخویف دے۔ او دَ ابن عطیه نه نقل دی چه دلته قیام په معنیٰ مجازی سره مراد دے یعنی ژوند تیرول دَ دوی په ډیر حرص دَ مال سره. اوځان سترے کول او تریخ او سترے ژوند تیرول دَ دوی دَ لیونو پشان۔ یعنی دے دَ مال لیونے دے سروالے او بروالے گرځی۔ تو په دے معنیٰ سره دَ سود والو بدحالی مراد ده په دُنیا کښ۔ غوره په دیکښ اول تفسیر دے دویم یکښ صرف دَ تاویل په طور سره داخلیدلے شی۔
اِلَّا کَمَا یَقُوْمُ الَّذِیْ یَتَخَبَّطُهُ الشَّیْطَانُ، خبط په اصل کښ داسے وهلو ته وئیلے شی چه په هغے سره کږوږ شی۔ او په عرف کښ کږوږ کیدلو دَ تگ (رفتار) ته وئیلے شی۔ او دَ شیطان نه مراد سرکش جنی دے۔ او په دیکښ دوه احتمالات دی۔ اول دا چه الله تعالیٰ قدرت ورکړی شیطان جنی لره په یو انسان باندے تردے پورے چه دَ هغے انسان دماغ او خواس خراب شی نو هغه ته مجنون وئیلے شی۔ ابوحیان وئیلی دی چه دَ دے عقلی مانع نیشته۔ دویم دا چه الله تعالیٰ په انسان کښ کږوږ کیفیات پیدا کړی او نسبت ئے شیطان ته مجازاً یا تشبیهاً وی۔
مِنَ الْمَسِّ، په دیکښ دَ مفسرینو دوه اقوال دی۔ اول دا چه دا متعلق دے په یَتَخَبَّطُهُ پورے دَ پاره دَ دفع کولو دَ وهم۔ او وهم دا دے چه تخبط په معنیٰ مجازی سره وی یعنی اغواء گناهو ته خائسته کول دی۔ نو مِنَ الْمَسِّ سره دا وهم لرے شو او په دے معنیٰ سره مراد دَ مس نه تسلط دَ جنی شیطان دے په انسان باندے یعنی دَ انسان په بدن کښ داخل شی نو دَ هغه په حواسو او دماغو باندے

اثر اوکړی. قرطبی وائي چه دا آیت دلیل دے د هغه چا په ردکښ چه په انسان باندے د پیریانو د راتللو نه انکار کوی اوبل دلیل د دے صحیح حدیث دے چه الشیطان یجری من الانسان مجری الدم (شیطان د انسان په هغه رګونو کښ ګرځي چه په کوموکښ وینه چلیږي) (تاویلونه کول د معتزلو مسلك دے) زمخشری معتزلی هم وئیلی دی چه ما د دے پیریانو په باره کښ ډیر واقعات لیدلی دی چه د هغے نه انکار کول د مشاهداتو نه انکار کول دی. دویم قول دا دے چه دا متعلق دے په لایقومون پورے اومس نه مراد جنون دے نو بنا په تاویل د ابن عطیه باندے د جنون نه مراد تشبیهی جنون دے. لیکن بنا په اول تفسیر باندے ابوحیان په دے (تعلق په لایقومون پورے) باندے په دوه طریقو سره رد کړیدے. اوله طریقه دا ده چه په قیامت کښ جنون حقیقی په خلقو باندے نه راځي. او دویمه طریقه دا ده چه د اِلَّا استثنائیه نه روستو بولفظ د ما قبل د استثناء سره تعلق نه شی لرلے مګر هله چه د توابعو د استثناء نه وی او دلته خود اسے نه دے. ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْٓا اِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا، په ذٰلِكَ سره اشاره ده دغه قیام مخصوص ته چه عذاب دے یا قباحت د شان دے. یا ذٰلِكَ اشاره ده خوراک د ربٰوا ته. یعنی مال د ربٰوا د دے وجے نه خوری چه حلال ئے ګڼړی. او حاصل د قول د دوی دا دے چه بیع او ربٰوا یو شان دی په دواړو کښ زیاته فائده حاصلیږی. یعنی زیاتوالے په وخت د رارسیدلو د نیټے د قرض کښ رلکه چه دا عادت دے د سود والو پشان د زیات ثمن اخستلو په اول د عقد کښ. دلته مقصد د دوی تشبیه د ربٰوا ده په جواز کښ د بیع شرعی سره تو جمله ئے برعکس اووئیله د ډیرے مبالغے د پاره. او دا تشبیه صریح دلیل دے چه دوی ربٰوا حلال ګڼړی او ربٰوا چه څوک حلال ګڼړی نو هغه صریح کافر دے. د دے وجے نه معلومه شوه چه دغه

عذاب (لا یقومون آه) دَ کافرانو دَ پاره دے۔
وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَیْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا، دا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ هغوی دَ قول رد دے یعنی دَ تحلیل او تحریم اختیار الله تعالیٰ سره دے او هغه دَ دے دواړو فرق کړیدے۔ ابوحیان وئیلی دی چه دا دلیل دے چه دَ نص په مقابله کښ قیاس جائز نه دے۔ او فرق دَ دے په معنیٰ لغوی، اصطلاحی او آثار مرتبه کښ پوره واضح دے۔ بعضو وئیلی دی چه دا هم دَ کافرانو کلام دے چه دَ الله تعالیٰ په فرق باندے دوی تشنیع کوله۔ دائے بل کفر دے چه سره دَ علم نه په حکم دَ الله تعالیٰ باندے مسخرے کوی۔
فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ، موعظة تانیث حکمی دے دَ دے وجے نه ورسره فعل مذکر ذکر دے۔ او دلته دَ موعظه نه مراد قرآن دے او وعید او تحریم دَ ربوا دے. دا مختلف اقوال دی لیکن مقصد ئے یو دے۔ مِنْ رَّبِّهٖ متعلق دے په جاء پورے یا صفت دَ موعظة دے په تقدیر سره لیکن چه دواړه حالتونو کښ عظمت دَ دے وعظ ته اشاره ده او په لفظ دَ رب کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ دَ خپلو بندګانو اصلاح کوی په دے حکم سره نو قبلول ئے ضروری دی۔
فَانْتَهٰی، تابع شئ دَ نهی، توبه کړئ دَ معاملے دَ ربوا نه او دَ هر حرام کسب نه۔ او ابن کثیر دلته حدیث دَ زید بن ارقم رضی الله عنه ذکر کړیدے چه هغه دَ یو زنانه نه یو وینزه په قرض په اته سوه درهمه (روپئ) اخستلے وه۔ بیا ئے په هغه زنانه باندے دَ قرض دَ نیټے نه مخکښ په نقدو په شپږ سوه درهمه خرڅه کړه۔ نو عائشه رضی الله عنها هغه زنانه ته او وئیل چه تا کوم خرڅول اخستل کړیدی نو دا ډیر ناکاره کار دے او زید بن ارقم رضی الله عنه ته ئے خبر ورکړو چه که

توبه دے اُونکړه نو الله تعالیٰ به ستا جهاد باطل اوګرځوی.
نو بیا هغې زنانه زید بن ارقم رضی الله عنه ته هغه
دوه سوه درهمه معاف کړل. نو عائشه رضی الله عنها دا آیت
اُولوستلو. اشاره ده چه آیت هر فاسق عقد ته شامل دے.
فَلَهٗ مَا سَلَفَ، دَسلف نه مراد هغه عمل دَربوا دے چه مخکښ
دَتحریم نه یا دَنزول دَ دے آیت نه چاکړے وی نو دَ هغې ګناه
په هغه بانې نیشته. یا مراد دا دے چه کوم قرض په طور
دَربوا سره مخکښ دَ توبے نه یئے ورکړے وو نو روستو دَتوبے نه
به صرف هغه قرض واپس اخلی سود به ورپسے نه اخلی.
وَاَمْرُهٗٓ اِلَى اللّٰهِ، دَهٗ په ضمیرکښ څلور اقوال دی. اول دا چه دا
راجع دے منتهی ته (منع کیدونکی ته دَ سود نه) او امر نه مراد
ټول اُمور دَ هغه دی یا صرف امر دَ ربوا دَ هغه دے چه سپارلے
شوی دے الله تعالیٰ ته په جزاء او حساب کښ. یا په معافئ کولو
او سزا ورکولو کښ. یا دَ دهٔ اجر دَ وعظ دَ قبلولو دَ وجے نه په الله
تعالیٰ بانې دے (حسن). دویم قول دا چه دا راجع دے ماسلف
ته یعنی معامله دَ تیرشوی عمل دَ سود الله تعالیٰ ته راجع ده
په عفو کولو او تاوان زائیل کولو کښ. دریم قول دا چه ضمیر
راجع دے خاوند دَ ربوا ته چه پخوی هغه لره په منع کیدلو
بانې دے یا واپس کیدی ګناه ته. څلورم قول دا دے چه دا راجع
دے نفس ربوا ته په تحریم دَ الله تعالیٰ کښ ربوا لره.
وَمَنْ عَادَ، مراد دا چه واپس اُوګرځی دغه قول ته چه اِنَّمَا الْبَيْعُ
مِثْلُ الرِّبٰو یعنی ربوا حلال اُوګنړی. عود نه مراد صرف فعل
دَربوا نه دے ځکه چه صرف په عمل دَ ربو سره همیش والے
په جهنم کښ نه حاصلیږی په سبب دَ نورو نصوصو سره.
فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ، معتزله لکه زمخشری
وئیلی دی دا آیت دلالت کوی چه فاسق به همیشه په جهنم
کښ وی لیکن مخکښ جواب اُوشو چه دلته مراد دَ ربوا حلال
ګنړونکے دے او هغه کافر دے او دَ دے وجه دا ده چه عود

يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ

کموی الله تعالٰی مال دَ سود او زیاتی کوی مال دَ صدقاتو

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ ﴿۲۷۶﴾

او الله تعالٰی مینه نه کوی دَ هر ډیر کفر کوونکی ډیر ګنهګار سره

رجوع ده اول قول ته او دلته اول قول دا دے چه اِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا۔

۲۷۶:۔ په دیکښ تحذیر دے دَ ربٰوا نه په ذکر دَ فرق سره دَ ربٰوا او دَ صدقاتو په مینځ کښ۔ او وجه دَ تقابل دا ده چه ربٰوا کوونکے صدقات نه کوی دَ وجے دَ حرص دَ ډیر مال نه۔

يَمْحَقُ، محق په اصل کښ نقص او محو کولو (ورانولو) ته وئیلے شی۔ محق دَ ربٰوا په دُنیا کښ په څلورو وجوهو سره دے۔ اوله وجه دا ده چه عاقبت دَ هغے فقر او زوال دَ برکت دے۔ دویمه وجه دا ده چه عاقبت دَ هغے زوال دَ عدالت او امانت دَ هغه شخص دے۔ نو بیا هغه فاسق شی او زړهٔ ئے سخت شی۔ دریمه وجه دا ده چه هر هغه کس چه دهٔ ترینه سود اخستلے دے نو هغه ورته خیرے کوی نو ددهٔ دَ نفس او مال نه برکات ختم شی۔ څلورمه وجه دا ده کله چه دے په خلقو کښ مشهور شی چه دے مالدار شوید ے په سبب دَ حرام مالونو سره نو بدمعاشان، غلا کر او ډاکوان هم په دهٔ پسے دَ نقصان کولو کوشش کوی۔ او محق په آخرت کښ په درے وجوهو سره دے۔ اول قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما دے چه دَ دے سودګر عبادت نه قبلیږی۔ دویم دا چه په دهٔ باندے ګناه او عقوبت پاتے شی او مال یه ترینه زر زر هلاک شی۔ دریم دا چه نیکان مالدار به دَ فقراؤ نه درے سوه کاله روستو جنت ته داخلیږی نو

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

یقیناً هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے او عملونه نیک کړیدی (مطابق د وحی سره)

وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ لَهُمْ

او پابندی کوی د مانځه او ورکوی زکوٰة دوی لره

په حرام مال سره مالدار شوی کسان خو په ډیر روستو وی۔

وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ، ارباء زیاتی کولو ته وئیلے شی دا هم په دُنیا او آخرت دواړو کښ شته او دا په ضد د هغه اُمورو کښ دی چه په محق کښ ذکر شول (اللباب) او ابن کثیر وئیلی دی چه محق دا دے چه هغه مال د ده بالکل واخلی یا ئې د برکت د هغے نه محرومه کړی یا روك او غرق کړی دغه شخص لره په دُنیا کښ او عذاب ورله ورکړی په آخرت کښ۔ او د دے پشان په سورة روم ۳۹ کښ هم دی۔

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ، ابن کثیر وئیلی دی چه د دینه مراد کافر دے په زړه سره او هغه چه گناهګار وی په وینا او په عمل کښ۔ او وجه د مناسبت دا ده چه سود کؤونکے په تقسیم د الله تعالیٰ باندے رضا نه دے او په شرعی کسب باندے اکتفاء نه کوی او کوشش کوی چه په باطلے طریقے سره مالونه حاصل کړی نو دے منکر دے د نعمتونو د الله تعالیٰ نه او گنهگار دے په خوراک د مالونو د خلقو سره په باطلے طریقے سره۔ ابوحیان وئیلی دی چه په دیکښ اشاره ده چه ربٰوا کول عمل د کافرانو دے۔ او لفظ اثیم ئې د مبالغے او تاکید د پاره ذکر کړیدے۔ او صاحب اللباب وئیلی دی چه کفار او اثیم اوزان د مبالغے دی۔ معنیٰ دا ده چه کفر کول او گناه کول د ده عادت وی او دا لائق ده د هغه چا سره چه د ربٰوا د حرمت نه انکار کوی۔ او بله وجه دا ده چه وصف د کفار راجع دے

أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ

ثواب دَ دوی دے په نیز دَ رب دَ دوی او نه به وی هیڅ ویره

عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٧٧﴾

په دوی باندے او نه به دوی غمژن کیږی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ

اے ایمان والو اویریږئ دَ الله تعالیٰ نه

هغه چا ته چه ربٰوا کوی او حلال ئے گنړی۔ او وصف دَ اثیم راجع دے هغه چا ته چه حلال ئے نه گنړی لیکن کوی ئے۔

۲۷۷:۔ دَ تخویف نه روستو بشارت دے او ذکر دَ احسن صفاتو دے روستو دَ ذکر دَ قبیح صفاتو نه او دَ دے صفاتو تفسیر مخکښ تیر شوید ے۔

سوال :۔ هر کله چه یو شخص صحیح ایمان لری او په فرضیت دَ مونځ او زکوٰة باندے عقیده لری نو په نیز دَ اهل سنت والجماعت دے دَ اهل الثواب نه دے۔ نو معلومه شوه چه استحقاق دَ ثواب موقوف نه دے په عمل کولو باندے نو دا ئے ولے ذکر کړیدی؟

جواب :۔ دَ اعمالو ذکر دَ ثواب دَ استحقاق دَ پاره نه دے بلکه دَ دے وجے نه چه دَ هر عمل صالح دَ پاره څه اثر شته دے په حصول دَ ثواب کښ په خلاف دَ مذهب دَ مرجئه سره۔ نو په دے اعمالو سره زیادت دَ درجاتو حاصلیږی یا دخول اولاً دَ جنت حاصلیږی (اللباب)۔

او په دے آیت کښ ایتاء الزکوٰة خصوصاً دَ ربٰوا کوونکو په مقابله کښ دے چه ربٰوا والا زکوٰة نه ورکوی نو معلومه شوه چه ربٰوا دَ مؤمن صفت نشی کیدے۔

وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰوٓا اِنْ

او پرېږدئ هغه چه باقي دي دَ سود نه كه چرے

كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٢٧٨﴾

يئ تاسو مؤمنان

ف٢٧٨:- مخكښ آيتونو كښ رد وو په عقيده دَ كافرانو چه ربٰوا حلال گڼړي نو اوس خطاب كوي مؤمنانو ته. دارنګ فَلَهٗ مَا سَلَفَ كښ احتمال وو چه كوم مالونه دَ سود مخكښ دَ تحريم نه قبضه كړے شوي دي دَ هغے حساب نيشته دارنګ احتمال وو چه كوم مقدار قبض كړے شوے نه وي ليكن په ذمه دَ مقروض كښ پاتے شي نو هغه به هم جائز وو. نو په دے آيت كښ دويم احتمال ردكوي په دے قول سره چه وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰوٓا چه غير مقبوض مال دَ ربٰوا حلال نه دے هغه پرېږدئ. يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ، په خطاب سره تيزي ورکول مقصد دي په راتلونكي حكم متلوسره. او تقوٰى په امر سره ذكركولو كښ اشاره ده چه دَ ربٰوا دَ مال پرېښودل دَ ځان دَ پاره سبب دَ وقايت (بچكېدلو) اوكرځوئ دَ اور دَ جهنم نه. مَا بَقِيَ كښ دوه احتمالات دي اول هغه مال چه په ذمه دَ مقروض باندے دَ ربٰوا دَ مال نه باقي پاتے شوے وي. دويم دَ دينه مراد دَ ربٰوا هغه نورے طريقے دي چه په عام ملكونو كښ جاري دي. اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ، دا شرط دَ تاكيد دَ پاره دے. او دَ مقاتل نه روايت دے چه اِنْ په معنٰى دَ اِذْ سره دے يا په اول خطاب كښ ايمان دَ ژبے مراد دے او په لفظ مؤمنين كښ ايمان دَ زړه مراد دے.

فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ

نو که چرې او نکړو تاسو دا کار نو خبر شئ په جنګ سره

مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ۖ وَإِن تُبْتُمْ

دَ طرف د الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه نه او که چرې تاسو توبه او کړه

فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ

نو تاسو لره اصل دَ مالونو ستاسو دے تاسو به ظلم نه کوئ

وَلَا تُظْلَمُونَ ﴿٢٧٩﴾

او نه به په تاسو باندے ظلم کیں لے شي.

س۲۷۹: په دیکښ تخویف شدید دے هغه مسلمانانو ته چه دَ تحریم نه روستو ربٰوا کوی.

فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا، مراد دَ فعل نه ترک دے یعنی پرېخودل دَ مابقی دَ ربٰوا او دارنګ پرېخودل دَ نفس ربٰوا کولو ته هم شامل دے۔ او امام رازی وئیلی دی چه مراد دا دے چه تاسو اقرار نه کوئ په تحریم دَ ربٰوا باندے.

فَأْذَنُوا، دَ اذن نه مراد علم دے یا استماع ده یعنی غوږ کیخودل.

بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ، دا که په باره دَ کافرانو کښ وی چه ربٰوا حلال ګنړی نو مراد دا دے چه دَ دوی سره قتال کول پکار دی په حکم دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه سره۔ او که دا په باره دَ مؤمنانو کښ وی نو مراد دَ دینه مبالغه ده په زورنه ورکولو کښ۔ او مراد دا دے چه مسلمان بادشاه له پکار دی چه دَ هغوی سره جنګ اوکړی پشان دَ باغیانو۔ بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ، کښ لفظ دَ حرب نکره ده او نسبت الله تعالیٰ ته دَ مبالغے او دَ تاکید دے په دے جنګ کښ۔ اوحرب الله ئے نه دے وئیلے ځکه چه په هغے کښ احتمال وو دَ اضافت کولو مفعول ته او حال دا دے چه

وَاِنْ كَانَ ذُوْ عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ اِلٰى

اوکه چرے وی قرضدارے تنګسیا والا نولازم دے په تاسو باندے مهلت ورکول

مَيْسَرَةٍ ؕ وَاَنْ تَصَدَّقُوْا خَيْرٌ

وخت دمالدارئ ته او خیراتي کول (معاف کول) غوره دی

لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۸۰﴾

تاسو لره که چرے تاسو علم لرئ -

دلته حرب دے دَطرف دَ الله تعالیٰ نه اوپه دیکښ ډیر تاکید دے. وَرَسُوْلِهٖ ، حرب دَ رسول په ژوند دَ هغه کښ قتال کول دی. بخپله او روستو دَ وفات دَ هغه نه قتال کول دی په حکم دَ سنت دَ هغه سره - وَاِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوْسُ اَمْوَالِكُمْ ، دا ترغیب دے توبے کولو ته دَ هرقسم ربٰوا نه. تفصیل دَ توبے قرطبی لیکلے دے هغه دا دے چه دَ دهٔ په لاس کښ مال دَ ربٰوا موجود او معلوم وی او دَ چا نه ئے چه اخستلے وی تو هغه هم حاضر وی نو هغه ته دے واپس ورکړی اوکه حاضر نه وی نو هغه دے را اوغواړی - اوکه هغه دَ ژوند نه نا امیده شی نو تصدق دے اوکړی په هغه مال سره. دارنګ دا حکم دَ هر هغه مال دے چه په ظلم او حرامه طریقے سره حاصل کړے شوے وی - رُءُوْسُ جمع دَ راس ده اصل مال مراد دے چه دَ ربٰوا دَ پاره ئے ورکړے وی - لَا تَظْلِمُوْنَ وَلَا تُظْلَمُوْنَ ، اوله صیغه دَ معلوم ده او مفعول ئے پټ دے یعنی الغریم المقروض (تاسو به په قرضدارې باندے ظلم نه کوئی) یعنی دَ راس المال نه به زیات نه غواړئ - او وَلَا تُظْلَمُوْنَ ، صیغه دَ مجهول ده یعنی په تاسو به ظلم نه شی کیدے په نقصان دَ رأس المال سره یا په ټال متهول کولو سره - په اوله جمله کښ ظلم په معنیٰ دَ زیادت دے او په دویمه کښ په معنیٰ دَ نقصان باندے دلالت کوی - نو معلومه شوه چه

لفظ ظلم په اصل لغت کښ شریک دے په زیادت او نقصان
دواړو کښ۔

٢٨٠ په دے کښ د خاوندانو د قرض د پاره یو ادب دے او دا
معطوف دے پدے قول باندے چه فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ، یعنی
خاوند د قرض د پاره حق دے د طلب کولو د قرضداری نه فی
الحال په دے شرط چه د هغه د اداکولو وس رسیدلی اوکه
د هغه د ادایئ یے وس نه وی نو خاوند د قرض دے هغه له
څه وخت مهلت ورکړی۔ قرطبی د ابوهریره رضی الله عنه او
د حسن او د عامو فقهاؤ قول ذکر کړیدے چه دا آیت عام دے
هر تنګدست شخص ته که د ربوا په باره کښ وی او که نور قرضونه
وی۔ كَانَ، دا تامه دے او په معنی د وجد او وقع سره دے نو دا
صرف فاعل غواړی۔ او کوفیانو وئیلی دی چه دا کان ناقصه دے
او خبر یے پټ دے چه لفظ د غریمًا دے۔ او عُسْرَةٍ (تنګولے) د
حال دے په سبب د نیشتوالی د مال سره۔ فَنَظِرَةٌ، د دے مبتداء
پټه ده یعنی فَالْوَاجِبُ، یا خبر یے پټ دے یعنی فعلیکم نظرة،
او نظرة په معنی د انتظار او مهلت ورکولو دے۔ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ،
دا د یُسْر نه اخستلے شوے دے۔ او مراد د دینه وخت د یسار (مقابل
د اعسار) دے۔ او مراد ترینه حصول د دومره مال دے چه
په هغے سره هغه قرضه اداکولے شي۔ ډیره مالداری مراد نه ده۔
وَأَن تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَّكُمْ، أَن تَصَدَّقُوا په تاویل د مصدر سره
مبتداء ده او په دیکښ دوه اقوال دی۔ اول قول دا چه د دینه
مراد مهلت ورکول دی او تصدق یے ورته د ترغیب د پاره
وئیلے دے۔ دویم دا چه مراد د دینه قرض معاف کول دی
قرضداری ته او دا دلیل دے چه قرضه معاف کول قرضداری
ته صدقه ده۔ خَيْرٌ لَّكُمْ، نه مراد دا چه غوره دے په نسبت
د مهلت ورکولو۔ او وجه د خیریت (غوره والی) یے دا ده چه دا
سبب د ښه تعریف کولو دے په دُنیا کښ او سبب د لوئے
ثواب دے په آخرت کښ۔ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ، دا شرط قید دے

وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى

او ډیره اوکړئ د داسې ورځ نه چه اوبه گرځولې شئ تاسو په هغې کښې

اللَّهِ ۖ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا

الله تعالیٰ ته بیا به پوره ورکړې شي هر نفس ته بدله د هغه

كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٨١﴾

عمل چه دهٔ کړې وي او په دوی باندې هيڅ ظلم نشي کيدلې۔

دپاره د خیریت یعنی فرق د ښه او بد په علم سره معلومیږي۔ یا دا شرط صرف د ترغیب دپاره دے۔ او تعلمون نه مراد صرف معنیٰ مصدری ده یعنی که تاسو علم والا یئ۔ یا ئې مفعول پټ دے یعنی فَضْلَ التصدق علی الانظار، که پوهیږئ په غوره والی د تصدق سره په مهلت ورکولو باندے۔

س۲۸۱:۔ په دے آیت کښې تخویف اُخروی دے د پاره د رغبت د عمل کولو په تیر شوے احکامو باندے او خصوصًا د ربوا نه بچیدل او د تنګدست سره ګزاره کول په مهلت ورکولو یا په تصدق کولو سره۔

یَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ إِلَى اللّٰهِ، د یومًا نه مخکښې عذاب او حساب لفظ پټ مراد دے۔ او رجوع الی الله نه مراد پیش کیدل دي دپاره د سوال، حساب او میزان۔ الی الله لفظ دلیل دے چه په هغه ورځ د الله تعالیٰ نه سیوا بل څوک د پټا هئ نیشته او بادشاهي هم په هغه پورے خاص ده۔ او د اکثرو مفسرینو په نیز د دے یوم نه مراد د قیامت ورځ ده۔

ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ، د پیش کیدلو نه روستو جزا او سزا ده د دے وجے نه ئې ثم ذکر کړو۔ او تفصیل د توفي په سورة زلزال ۷، ۸ کښې دے۔ قرطبي وئيلي دي چه ماکسبت دلیل دے چه دارومدار د جزاء او سزا په عقیده او اعمالو باندے دے۔ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ،

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ

اے ایمان والو هر کله چه معامله کوئ تاسو

بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ ۚ

په قرض سره تر نیټې مقرر پورے نو او لیکئ هغه

وَلْيَكْتُبْ بَيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ ۚ

او لیکل دِ اوکړی په مینځ ستاسو کښې لیکونکے په انصاف سره

وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَكْتُبَ كَمَا

او انکار دِ نه کوی لیکونکے دَ لیکلو نه لکه چه

عَلَّمَهُ اللَّهُ ۚ فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ

خودنه کړے ده دَ ته الله تعالیٰ نو لیکل دِ کوی او اِملاء دِ کوی

الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ

هغه څوک چه په هغه باندے قرض دے او ویره دِ کوی دَ الله تعالیٰ نه

رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا ۚ فَإِنْ

چه رب دَ ده دے او کمے دِ نه کوی دَ هغې نه هیڅ خیز نو که چرے

كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا

دی هغه کس چه په هغه باندے قرض دے بے عقله

أَوْ ضَعِيفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُمِلَّ

یا کمزوری بدن والا یا طاقت نه لری چه اِملاء اوکړی

دلته لفظ دَ ظلم کمی او زیاتی کولو دواړو ته شامل دے.
او مناسبت دَ دے آیت دَ مخکښ سره دا دے که تاسو
غواړئ چه الله تعالیٰ دے مونږ سره په ورځ دَ حساب
باندے آسانه معامله اوکړی نو تاسو هم په دُنیا کښ دَ

هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهٗ بِالْعَدْلِ ؕ

هغه نو املاء دِ اوکړي مختيار دَ هغه په انصاف سره

وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ ۚ

او ګواهان طلب کړئ دوه ګواهان دَ نارينو ستاسو

فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ

نو که چرې نه وو سړي نو يو سړے

وَّامْرَاَتٰنِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ

او دوه زنانه (دِ شهادت او کړي) دَ هغه چا نه چه تاسو خوخوئ هغوی دَ

الشُّهَدَآءِ اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىهُمَا

ګواهئ کوونکی نه که هيره ل او کړي دَ يو دَ دے دواړه

فَتُذَكِّرَ اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰى ؕ وَ

نو ياداشت به ورکړي يو هغه بلے ته او

لَا يَاْبَ الشُّهَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا ؕ

انکار دِ نه کوی ګواهان کله چه او بللے شی دَ پاره دَ ګواهئ

وَلَا تَسْـَٔمُوْٓا اَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا

او ځان مه ستړے کوئ دَ ليکلو دَ هغے نه که لږ دی

الله تعالیٰ دَ بندګانو سره آسانه معامله او کړئ - دَ امام بخاری په روايت کښں دی چه دا په نزول کښں دَ قرآن کريم آخری آيت دے - او په بل روايت دَ ابن عباس رضی الله عنهما کښں دی چه دا آخری دَ ما انزال الله دے ليکن جبرئيل عليه السلام اُوئيل چه دا دَ دوه سوه اتيا آيت نه روستو کيږده - بيا اختلاف دے چه نبی صلی الله عليه وسلم دَ دے

أَوْ كَبِيرًا إِلَىٰ أَجَلِهِ ۚ ذَٰلِكُمْ أَقْسَطُ

یا ډیر دی تر نیټې د هغه پورې دا حکم ډیر انصاف دے

عِندَ اللَّهِ وَأَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ

په نیز د الله تعالیٰ او ډیر برابرونکے دے د پاره د ګواهۍ ورکولو

وَأَدْنَىٰ أَلَّا تَرْتَابُوا ۖ إِلَّا أَن تَكُونَ

او ښه نزدے دے دِ خبرے ته چه شک به نه کوئ لیکن که وی

تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا

تجارت لاس په لاس چه اړوئ تاسو هغے لره

بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ

په مینځ ستاسو کښ نو نیشته په تاسو باندے ګناه

أَلَّا تَكْتُبُوهَا ۗ وَأَشْهِدُوا إِذَا تَبَايَعْتُمْ ۚ

که نه لیکئ تاسو هغه او ګواهان اونیسئ کله چه تاسو خرڅول کوئ

وَلَا يُضَارَّ كَاتِبٌ وَلَا شَهِيدٌ ۚ

او ضرر دِ نه ورکوی لیکونکے او نه ګواه

وَإِن تَفْعَلُوا فَإِنَّهُ فُسُوقٌ بِكُمْ ۗ

او که چرے تاسو اوکړو دا کار نو یقیناً دا نافرمانی لګخته ده په تاسو پورے

وَاتَّقُوا اللَّهَ ۖ وَيُعَلِّمُكُمُ اللَّهُ ۗ

او ویره اوکړئ د الله تعالیٰ نه او تعلیم درکوی تاسو ته الله تعالیٰ

وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٨٢﴾

او الله تعالیٰ په هر څیز باندے ښه عالم دے.

آیت نه یو اتیا یا یو یشت یا اوو ورځے یا درے ورځے روستو وفات شوے دے۔ والله اعلم۔

۲۸۲ ربط له:- هر کله چه امر اوشو په انفاق فی سبیل الله او په ترک د ربٰوا سره نو په دواړو کښ وهم وو د کموالی د مال. نو اوس ذکر کوی حلاله طریقه د زیاتوالی د مال سره د طریقے د حفاظت نه ۲ له مخکښ منع اوشوه د ربٰوا نه چه هغه ذریعه د فساد ده- نو اوس فساد نه د بچکیدلو د پاره په معاملا تو کښ نورے طریقے ذکر کوی. ۳ له د ربٰوا او سلم (د یو څیز قیمت پیشگی ورکول) صورتونه یو بل ته نیز دے دی- په ربٰوا کښ مخکښ مال ورکوی او په سلم کښ هم لیکن ربٰوا حرامه طریقه ده نو اوس حلاله طریقه ذکر کوی-

د آیت خصوصیت :- دا آیت په ټول قرآن کریم کښ اوږد آیت دے او دیته آیت المداینه وائي- بعض مفسرینو وئیلی دی چه په دے آیت کښ سره د روستو آیت نه د معاملاتو پنځویشت احکام دی او موږ درے دیرش لیکلی دی- مفسرینو وئیلی دی چه په دے آیت کښ اوامر د ارشاد د پاره دی لیکن مقصد دا نه دے چه دا صرف مستحب دی بلکه هر کله چه گمان وی د فساد او اختلاف پیښ کولو په سبب د مخکښ قرض ورکولو سره نو په دغه وخت کښ دا اوامر د ایجاب د پاره دی او هر کله چه گمان د فساد او اختلاف لږ وی نو وړ پسے آیت د رهان ذکر کوی- او چه هیڅ یره د اختلاف نه وی نو بیا ئے مسئله د امانت ذکر کړیده-

یَآیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا، خطاب په دے لفظ سره دلالت کوی چه معاملات شرعیه جاری کول هم د ایمان مقتضٰی ده-

اِذَا تَدَایَنْتُمْ، هر کله چه د تجارتونو د پاره قرض معاملے لوئے سبب دے ځکه چه کله یو انسان فهم او فراست لری په تجارت او صنعت یا ندے لیکن مال ورسره نه وی او بل انسان سره مال وی لیکن پوهه نه لری د تجارت کولو نو د دے دواړو د تداین په معاملے سره د تجارت (مال زیاتی کیدلو) دروازه پراستلے کیږی. د دے وجے نه معامله د قرض پورے اول ذکر کړه- تداین باب تفاعل دے یعنی چه یو

دَبل سره معامله دَقرض اوکړی برابره خبره ده که ورکوونکے دَ
قرض وی اوکه اخستونکے دَ قرض وی- دا رنګ که روپئی پیسے
قرض وی او مبیعه (اخستلے شوے ) نقد وی نو دیته قرض
سودا وئیلے شی یا مبیعه قرض وی او قیمت ئے نقد وی نو
دیته سلم او سلف وئیلے شی- نو دا دواړه قسمونه دَ سودا
کولو جائز دی- او بیعه دَ قرض په قرض باندے جائز نه ده.
بِدَیْنٍ، دَ دے لفظ په ذکر کولو کښ دړے فائدے دی- اول
دا چه هر قسم ته شامل شی که لږ وی اوکه ډیر وی- قیمت
وی اوکه سودا وی- دویمه دا چه روستو ضمیر دَ فَاكْتُبُوْهُ دیته
راجع شی- دریمه دا چه تداین مجازًا جزاء او بدله ورکولو ته
هم وئیلے شی- نو په لفظ دَ دَیْنٍ سره معلومه شوه چه دغه
معنیٰ مجازی مراد نه ده- قرطبی وئیلی دی چه دین (قرض)
عبارت دے دَ هر هغه معاملے نه چه یو دَ عوضینو نه په هغے کښ
نقد وی او بل عوض پکښ قرض وی- او ابن عاشور وئیلی دی
چه دین مؤخر عوض ته وئیلے شی- اِلٰی اَجَلٍ، اجل په لغت
کښ هغه وخت ته وئیلے شی چه دَ یو څیز دَ انتهاء دَ پاره مقرر
شوے وی- نو اجل دَ قرض دا دے چه دَ هغے یو انتها په راتلونکے
زمانه کښ مقرر وی- مُسَمًّى، دا هغه دے چه معین کړے شی
په یو خاص نوم سره- نو دا دلیل دے چه نا معلومه نیټه
مقرر کول صحیح نه دی لکه لؤونه او غوبلے شروع کیدل
دَ فصل رارسیدل یا دَ حاجیانو واپس کیدل وغیره- لفظ
دَ تَدَایَنْتُمْ مستلزم دے نیټے لره لیکن دلته مقصد تعین دَ
هغے وو نو دَ دے وجے نه لفظ دَ اجل ئے صراحتًا ذکر کړو- او تعین
دَ نیټے په قرض سودا کښ شرط دے- او په سلم کښ دَ دینه
علاوه نور شرطونه هم شته- قرطبی وئیلی دی چه تهه شرطونه
دی او هغه په احادیثو کتلو سره معلومیږی- فَاكْتُبُوْهُ ،ضمیر
راجع دے دَیْنَ او اجل مسمی دواړو ته په دے امر کښ-
او دَ دینه روستو او امر وکښ دَ اهلِ علمو اختلاف دے چه

د وجوب د پاره دی او که د استحباب د پاره دی - لیکن غوره دا ده
(لکه چه مخکښ ذکر شوی دی) چه اکثر حالاتو کښ په یو بل
باندے اعتماد نه وی تو غالب گمان داوی چه په دا سے
معاملو سره جګړے او فساد پیدا کیږی او دفع د فساد واجب
ده - نو دا او امر د وجوب د پاره دی په دلیل د روستو قول
سره چه اَدْنٰى اَلَّا تَرْتَابُوْا دے او ابن عاشور هم دا سے تحقیق
ذکر کړیدے - تر دے لفظ (فَاكْتُبُوْهُ) پورے پنځه مسائیل
معلوم شول - اول جواز د بیع په قرض سره - دویم جواز د سلم
دریم اجل معین څلورم فساد د اجل مجهول، پنځم ایجاب د لیکلو
**فائده** :- ابن کثیر د سوال جواب په طریقے سره لیکلی دی چه
په حدیث د مسلم کښ راغلی دی چه اِنَّا اُمَّةٌ اُمِّيَّةٌ لَا نَكْتُبُ وَلَا
نَحْسِبُ، (موږ امی (ان پړه) اُمت یو حساب او لیکل نه شو
کولے) ؟ جواب :- دین په حیثیت د دین سره لیکلو ته محتاج
نه دے د دے وجے نه صحابه کرامو اکثر د قرآن او د احادیثو
نقل په حفظ سره کړیدے - او امر په کتابت سره د جزوی
مسائیلو په باره کښ دے - د دے نور جوابونه هم په خپل
مناسب محل کښ کیږی شی -
وَلْيَكْتُبْ بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌۢ بِالْعَدْلِ، په دے جمله کښ ایجاب دے
(واجب کیدل) د لیکلو په هغه چا باندے چه اهل وی د کتابت
نو دفع د وهم ده چه فَاكْتُبُوْهُ خو دلالت کوی چه دا این او مدیون
به پخپله کتابت کوی - حاصل د دفع د وهم دا دے چه حصول
د کتابت ضروری دے که د هر کاتب نه وی او لفظ د بینکم
دلالت کوی چه کتابت په حضور د فریقینو کښ ضروری دے
بِالْعَدْلِ متعلق دے په وَلْيَكْتُبْ پورے او عدل خو یو
صفت دے چه د هغے په سبب سره انسان ځان د ګناه کبیره
او د بیا بیا کولو د وړوکنا هو نو نه بچ ساتی - او دلته د دے لفظ
دلالت دے دا امور داخل دی چه زیاتے او کمے به نه کوی او
مجمل او محتمل الفاظ به نه لیکی او حق به لیکی او هیڅ یو

دَ جانبینو ته به په زړه او په قلم سره ګناه ته میلان نه کوی. او دا کتابت مبني دَ شهادت ده او په شهادت کښ صفت دَ عدالت شرط دے لکه روستو ذکر کیږی نو په کتابت کښ هم شرط دے.
وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَكْتُبَ، دا تاکید دَ ماقبل دے. امام شعبی وئیلی دی چه دا کتابت فرض کفائي دے کله چه نور عادلان کاتبان موجود وی. او چه نور کاتبان موجود نه وی نو بیا فرض عین دے.
كَمَا عَلَّمَهُ اللَّهُ فَلْيَكْتُبْ، په تعلق دَ دے کاف کښ درے اقوال دی اول قول دا دے چه دا متعلق دے په أَنْ يَكْتُبَ پورے او په عبارت کښ پټ والے دے. معنی دا ده چه دا دے لیکل چه په شان دَ هغے وی چه الله تعالیٰ ده ته دَ هغے علم ورکړے دے. دویم قول دا دے چه دا متعلق دے په روستو فَلْيَكْتُبْ پورے. او زمخشری وئیلی دی چه فرق په دواړو کښ دا دے چه په اول قول سره نهی (منع) ده دَ امتناع دَ کتابت مقیده یعنی دَ کتابت معلومه (په علم دَ الله تعالیٰ سره) نه دے انکار نه کوی. نو وروستو ئے اُوئیل چه فَلْيَكْتُبْ یعنی لیکل دے او کړی په دغه کتابت مقیده سره. او په دویم قول کښ نهی ده دَ امتناع دَ کتابت مطلقه نه نو په أَنْ يَكْتُبَ باندے کلام ختم شو او بیا ئے امر او کړو چه کتابت دے مطابق دَ علم سره او کړی نو زیات تاکید حاصل شو. دریم قول چه ابن عطیه غوره کړے دے دا دے چه دا متعلق دے په لَا يَأْبَ پورے او کاف دَ تعلیل دَ پاره دے یعنی دَ کتابت نه دِ انکار نه کوی ځکه چه الله تعالیٰ په دے کاتب باندے احسان کړے دے په تعلیم ورکولو دَ کتابت سره نو په ده باندے لازم دی چه دَ نورو محتاجو سره احسان او کړی. او په دے جمله کښ پنځه مسائیل دی. اوله مسئله دا چه په اهل کتابت باندے لیکل کول فرض دی (فرض کفائی یا عین) دویم دا چه په دے وخت کښ حاضریدل دَ دواړو طرفو شرط دے. دریم عدالت شرط دے او څلورمه دا چه انکار کول دَ کتابت نه ګناه دے دَ ضرورت په وخت کښ او پنځمه مسئله دا چه کتابت علم دے دَ علومو

شرعیو نه ځکه الله تعالیٰ ځان ته نسبت کړیدے په طور دَ احسان سره۔

وَلۡيُمۡلِلِ الَّذِي عَلَيۡهِ الۡحَقُّ، دا ذکر دَ طریقے دَ کتابت دے یعنی مکتوب (رسید یا اسټام) به دَچا دَ طرف نه لیکلے کیږی۔ دَ وَلۡيُمۡلِلِ فعل ماضی په اصل کښ اَمۡلَلَ ده او کله دغه لام په الف سره بدلیږی نو اَمۡلیٰ استعمالیږی لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ فَهِيَ تُمۡلَىٰ عَلَيۡهِ بُكۡرَةً وَّأَصِيلًا (فرقان۵) او دلته په اصل سره مستعمل دے او دَ دواړو معنیٰ اِلـقـاء (غورځول) دَ کلام ده آوریدونکی ته دَ لیکلو یا نقل کولو یا حفظ کولو دَ پاره۔ اَلۡحَقُّ کښ دَحق نه مراد دین (قرض) دے چه لازم دے په ذمه دَ قرضداری باندے۔ او دا املاء متضمن ده اقرار دَ قرض او دَجنس او دَ صفت او نیټے وغیره لره۔

وَلۡيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ، په یکښ ډیر تاکید دے په اقرار کوونکی باندے او دَ تاکید دَ پاره ئے لفظ الله او رب دواړه جمع کړی دی۔ دا اشاره ده علت دَ تقویٰ ته چه توحید دَ الوهیت دَ الله تعالیٰ او ربوبیت دَ هغه دا علت دے دَ پاره دَ تقویٰ دَ هغه نه۔ او مراد دا دے چه انکار دَ وجوب دَ قرض او دَ مقدار او جنس او صفت دَ هغے نه او نکړی۔

وَلَا يَبۡخَسۡ مِنۡهُ شَيۡـًٔا، دا هم طریقه دَ تقویٰ ده۔ منه ضمیر حق ته راجع دے۔ بخس مطلق نقصان ته وئیلے شی او خاصکر نقصان په طریقه دَ پټولو سره۔ او دلته مراد نقصان دے په حق کښ په طریقه دَ دهوکے او حیلے او انکار وغیره سره۔ او دا معنیٰ په سورة اعراف ۸۵ کښ ده چه هلته ئے فرمائیلی دی، وَلَا تَبۡخَسُوا النَّاسَ أَشۡيَآءَهُمۡ،

فَإِنۡ كَانَ الَّذِي عَلَيۡهِ الۡحَقُّ سَفِيهًا، په دے جمله کښ هغه عذرونه ذکر کوی چه دَ هغے سره اِملاء او اقرار نشی کیدلے یا نه قبلیږی۔ او په یکښ مسئله دَ نیابت ذکر کوی۔ دلته ئے درے عذرونه ذکر کړیدی او حرف دَ

اَوْ چه په مینځ دَ دوی کښې راغلې دے نو دلالت کوی په فرق دَ دوی باندے۔
اول عذر:۔ سفیهًا دے۔ دَ سفاهت تفسیر په آیت ۱۳ کښې تیر شویدے دلته دَ مفسرینو نه مختلف تعبیرات نقل دی مثلاً جاهل په امورو او په املاء کولو باندے، بنځه یا نابالغ تبذیر کوونکے دَ مال او فاسدوونکے دَ دین، کم عقل، (هغه کس چه دَ مال په قدر باندے نه پوهیږی نو تبذیر او اسراف کوی)، جاهل دَ دین اسلام نه۔ دا ابوحیان ذکر کړی دی۔
دویم عذر:۔ اَوْ ضَعِيفًا، چه بدن ئے کمزورے وی او په بدن سره معذوره وی یا ډیر بیمار وی، ډیر بوډا وی۔
دریم عذر:۔ اَوْ لَا يَسْتَطِيعُ اَنْ يُّمِلَّ هُوَ، عدم استطاعت دَ چاړه والی دَ وجے نه یا دَ غیبوبت دَ وجے نه یا داچه په لغت دَ کاتب باندے نه پوهیږی۔ او دا اَوْ دَ پاره دَ منع دَ خلو دے کله کله پکښې دا دوه یا درے حالات هم جمع شی۔ هُوَ ضمیر ئے دَ دوه وجو نه ذکر کړو۔ اول داچه دا تصریح ده په عدم استطاعت باندے پخپله۔
دویمه وجه داچه دفع دَ مجاز ده په نسبت کښې پټ ضمیر ته۔ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهٗ بِالْعَدْلِ، دَ وَلِيُّهٗ ضمیر راجع دے الذی علیه الحق ته چه موصوف وی په یو دَ دغه صفاتو سره۔ او ابن جریر وئیلی دی چه حق ته راجع دے۔ وَلی نه مراد هغه دے چه اختیار لری دَ کار چه هغه وصی (چه هغه ته وصیت کړے شوے وی) دَ سفیه او دَ وړوکی دے او ترجمان دے دَ چاړه او گونګا۔ او وکیل دے دَ لا یستطیع والا دَ پاره او دهٔ ته ولی دَ نیابت وئیلے شی۔ او ولی قائمول دَ سفیه په ځائے باندے دلالت کوی چه سفیه په شرع کښې محجور دے دَ تصرفاتو نه په خپل مال کښې لکه چه په سورة النساء ۵

کښې دي. بِالْعَدْلِ متعلق دے په فَلْيُمْلِلْ پورے. اقرار
دَطرف دَغیر نه په شان دَ شهادت دے نو په دیکښې هم
عدالت شرط دے. په دے جمله کښې شپږ احکام دي.
اول داچه په مکتوب کښې دَ قرضداری اقرار لیکل ضروري
دي. دویم داچه په اقرار کښې تقویٰ او احتیاط واجب دے.
دریم داچه په هغے کښې هر قسم خیانت حرام دے. څلورم
داچه په وخت دَ عذر دَ مدیون (قرضداری) کښې نیابت
جائز دے. پنځم داچه دَ نیابت اقسام وصی، وکیل او
ترجمان دي. شپږم داچه په سفیه باندے شرع کښې
دَ تصرفاتو دَ مال او دَ نفس بندیز لګول ضروري دي.
وَاسْتَشْهِدُوْا، دَ قرض پور دَ معاملے دَپاره دوه کارونه
ضروري دي یو کتابت (لیکل کول) هغه خو تردے ځائے
پورے ذکر شو. دویم شهادت (ګواهي) اوس هغه ذکر
کوي او دَ دے دواړو فائدے دا دي چه هر کله نیټه
روستو وي نو بعضے وخت په انسان باندے نسیان
راشي نو انکار اوکړي. نو په دے سره دَ جانبینو دَ
مال حفاظت اوشي. بل داچه قرض ورکوونکي ته معلوم
وي زما قرض لیکلے شویدے نو دَ زیادت مال طلب نشي
کولے. او دَ نیټے نه هم مخکښې غوښتنه نشي کولے. او
قرضداری ته معلومه وي چه لیکل شویدي نو هغه دَ
قرض نه انکار او روستوالے دَ نیټے نه نشي کولے. نو
دَ جګړے او فساد اسباب په لیکلو او ګواهئ سره دفع
کیږي. او په وَاسْتَشْهِدُوْا کښې سین دَ طلب دَپاره یا
دَ تاکید دَپاره دے. شَهِيْدَيْنِ، شهید کښې په نسبت
دَ شاهد سره مبالغه ده یعنې داسے ګواه اوګورئ چه دَ
شهادت عادت لري او دَ هغے مواقع او احکام پیژني او دَ
هغه شهادتونه رد کړے شوے نه وي. نو په دیکښې
صفت دَ عدالت ته اشاره شوه او عدد دَ شهادت هم ذکر شو

چه دوه دی.
مِنْ رِّجَالِكُمْ، دا متعلق دے په وَاسْتَشْهِدُوْا پورے یا په شَهِيْدَيْنِ پورے او صفت دے دَ هغه په اعتبار دَ لفظ پټ سره. لفظ رجال دلالت کوی په بلوغ باندے یعنی شهادت دَ نابالغه صحیح نه دے - او دا قول دَ اکثر اهل علمو دے - او لفظ دَ کُمْ دلالت کوی چه دَ مؤمن شهادت شرط دے یعنی دَ کافرانو شهادت قبول نه دے او دا مریانو (غلامانو) ته هم شامل دے لیکن دَ هغوی په شهادت کښ (په معاملاتو کښ) دَ علماؤ اختلافات دے.
فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ، په دے یکون کښ دوه اقوال دی. اول دا چه کان ناقصه دے او ضمیر تثنیه چه راجع دے شهیدین ته هغه اسم دے او رجلین خبر دے - نو حاصل معنیٰ دا ده که خاوند دَ حق یا کتابت والا دَ غفلت دَ وجے نه یا قصداً دَ یل څه غرض دَ وجے نه دوه سړی پریږدی نو دَ یو سړی او دوه ښځو شهادت پوره دے - یعنی دَ شهادت دَ ښځو دَ پاره عدم دَ سړو مطلقاً لازم نه دی. او دویم قول دادے چه کان تامه دے او رَجُلَيْنِ منصوب دے په حالیت باندے. حاصل دَ معنیٰ دا ده چه که دوه نارینه بالکل نه پیدا کیږی نو هله به دَ ښځو شهادت ته رجوع کیدے شی. ابن عطیه وئیلی دی چه دا قول ضعیف دے - او صاحب اللباب وئیلی دی چه دا دَ اجماع نه خلاف قول دے. ابن عاشور وئیلی دی چه اوله معنیٰ مراد ده په هغے کښ اشاره ده چه اسلام زنانه له دَ ګواهئ کولو مستقل حق ورکړیدے په خلاف دَ جاهلیت دَ قانون سره.
فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتَانِ، دا مبتداء ده او خبر ئے پټ دے یعنی یشهدون - یا ئے مبتداء پټه ده فالشاهد - او آیت ظاهر دے په دلالت کولو کښ چه دَ زنانو شهادت سره دَ سړی شاهد نه په مالیو معاملاتو کښ قبول دے ځکه

چه دا سے معاملات په انسانانوکښ ډیر واقع کیږی نو په شهادت کښ وسعت اوکړے شو۔ او د دینه علاوه په نورو کارونوکښ د زنانو په شهادت کولوکښ د علماؤ اختلاف دے۔ هاں په باره د هغه امورو کښ چه د زنانو د علم سره خصوصیت لری لکه ولادت، بکارت او نور عیوب د زنانو نو په هغے کښ اتفاق دے چه شهادت د یوازے ښځو قبول دے۔

مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ، غوره دا ده چه دا متعلق دے د وَاسْتَشْهِدُوْا سره نو دا قید به شامل شی ټولو شهادت کوونکو ته۔ د ترضون خطاب عام دے ټولو مسلمانانو ته او دا قید دلالت کوی چه په مسلمانانوکښ دا سے خلق هم شته چه د هغوی شهادت قبول نه دے۔ ابوحیان او صاحب اللباب وئیلی دی چه هغه کسان چه د شهادت د پاره د صحیح مسلمانانو په نیزخوخ وی نو هغه هغه څوک کیدیشی چه لاندے ذکر شوی لس صفات پکښ راجمع وی۔

۱ مسلمان ۲ آزاد چه غلام نه وی ۳ بالغ ۴ عادل ۵ عالم په هغه څه چه شهادت کوی په هغے پاندے ۶ چه په شهادت کولو سره ځان له نفع نه راکاږی ۷ او د ځان نه ئے ضرر دفع کول مقصد نه وی ۸ چه په ډیرے خطایئ سره مشهور نه وی ۹ او په خلاف د انسانیت او سړیتوب کارونو سره هم مشهور نه وی ۱۰ او د ده او د مشهود علیه په مینځ کښ کینه او دشمنی نه وی۔

اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰهُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدٰهُمَا الْاُخْرٰى، دا په تقدیر د لام اجلیه سره دے یعنی لِاَنْ تَضِلَّ، او دا علت دے د امرءتان د پاره یعنی اقامت د دوو ښځو د یو سړی په ځائے د علت د وجے نه دے یعنی که د یوے ښځے نه هیرشی نو بله یه ورته یا دوی راو په دیکښ ضلال علت دے د تذکر (یادولو) د پاره د دے وجے نه ئے فتذکر

کښې فاسببیه ذکر کړیده) او مجموعه بیا علت دے د امرء تان دَپاره - او ابن حاجب په امالی کښې ذکر کړیدی چه دَعربو دَ لغت قاعده داده چه هر کله دوی علت ذکر کوی لیکن دَ دغه علت دَپاره بل علت وی نو دوی علت العلت مخکښې ذکر کوی او روستو علت په فاسره ذکر کوی.
او صاحب کشاف وئیلی دی چه په دے ترتیب کښې اهتمام دے دَ شان دَ تذکیر - تَضِلَّ ، دَ ضلال معنے مخکښې په تفسیر دَ سورة فاتحه کښې ذکر شویدی دلته ضلال په معنیٰ دَ نسیان سره دے - او قرطبی دَ ابوعبید نه نقل کړیدی چه ضلال دَ شهادت نه دا دے چه یو جزء ترینه هیر شی او بل جزء ورته یاد وی نو انسان حیران (ضال) پاتے شی - او چه ټول شهادت ترینه هیر وی نو په هغے کښې ضَلَّ فِيهَا نشی وئیلے کیدے - نو په دیکښې اشاره ده چه ټول شهادت ترینه هیر وی نو په یادولو دَ بلے سره فائده نه کیږی - احداهما ئے دوه کرته اُوئیلو ځکه چه دَ اول مصداق ناسیه (هیرونکے) ده او دَ دویم مصداق یادوونکے ده نو په ضمیر باندے اکتفاء نه شوه کیدلے - ابوحیان وئیلی دی چه په طبیعت دَ زنانو کښې دَ ډیر برودت (یخوالی) او دَ رطوبت (لوندوالی) دَ وجے نه نسیان غالب وی لیکن په دوو باندے داوهم کول دَ عقل نه لرے ده - او په صحیح حدیث کښې ذکر دی چه دا دَ وجے دَ نقصان دَ عقل دَ دوی نه ده یعنی مجموعی یا اکثری طور سره دَ نارینه عقل دَ زنانه نه زیات وی - (او ما دَ بعضے مشائخو نه اوریدلی دی چه دَ نسیان وجه په اصل کښې گناهونه دی او په زنانو کښې نسبتًا گناهونه ډیر وی نو نسیان دَ هغوی ډیر وی لیکن حکم دَ الله تعالیٰ په علتونو باندے نه دے بنا)- دَ دے وجے نه په خپل عقل او رائے سره دَ الله تعالیٰ

داحکم بدلول او یوه ښځه د یو سړی سره په ګواهۍ کولو کښې برابرول د دے وخت د ګمراهانو لار ده.

وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا، لکه چه دکتابت د تاکید دپاره ئے وئیلی وو. وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ آه نو داسے د شهادت د تاکید دپاره داجمله ده - اِذَا مَا دُعُوْا کښې د قتاده او ربیع قول دادے چه د دینه مراد تحمل د شهادت دے (یعنی شاهد جوړیدل) او شهداء ئے مجازاً اُوئیلو په اعتبار د راتلونکی وخت سره - او په دیکښې اشاره ده چه تحمل د شهادت فرض کفائي دے - او د اکثر مفسرینو په نیز د دینه مراد د شهادت اداکول په وخت د دعوت کښې (راغوښتلو کښې) فرض عین ده - او قول د زجاج دادے چه مراد دواړه دی یعنی تحمل د شهادت او ادا د شهادت - په دے جملو کښې نهه احکام دی ع۱ استشهاد په کتابت کښې ضروری دے ع۲ عدد د دوه والی دګواهانو ضروری دے ع۳ د یو سړی په ځائے د دوو ښځو ګواهی صحیح ده ع۴ په ګواهانو کښې بلوغ شرط دے ع۵ دارنګ اسلام شرط دے ع۶ په ګواهانو کښې عدالت شرط دے ع۷ دګواهانو یو بل ته تذکیر ورکول (یادول) جائز دی ع۸ تحمل د شهادت فرض کفائي دے ع۹ او ادا دشهادت فرض عین ده -

وَلَا تَسْئَمُوْٓا اَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا اَوْ كَبِيْرًا اِلٰٓى اَجَلِهٖ، لکه چه نهی ئے اوکړه د امتناع د شهادت نه دپاره د دفع د جګړے اوحفاظت د مالونو د خلقو - نو اوس نهی ذکر کوی د امتناع د کتابت نه په عذر د لږ مال یا ډیر مال - داهم د جګړے د دفع کولو او د مالونو دحفاظت دپاره.

تَسْئَمُوْٓا ، سأمت په لغت کښې ستړے کیدل او خفه کیدل دی او مراد ترینه کسل (ناراستی) دے - لیکن کسل صفت د منافق دے د دے وجے نه ئے ذکر نه کړو -

اَنْ تَكْتُبُوْهُ، دا مفعول دَ تَسْئَمُوْا دے په حذف دَ حرف جر سره چه مِنْ دے یا متعدی دے بالذات او هُ ضمیر دَ دَیْن حق ته یا کتاب ته راجع دے - صَغِيْرًا اَوْ كَبِيْرًا، دا حال دے دَ ضمیر دَ تَكْتُبُوْهُ نه یعنی دغه دین (قرض) که په هرحال باندے وی که لږ وی اوکه ډیر وی - دا رنګ هغه لیکل (سند) مختصروی اوکه اوږد وی. او دا دواړه یٔ دَ دے وجے نه ذکرکړل چه بعضِ شخص وائی چه دالږ قرض دے تولیکلوته یٔ حاجت نیشته - او بعضِ وائی چه داخو ډیر قرض دے دَ دینه انکار نشی کیدے او نه هیریږی. نو دا دواړه عذرونه یٔ دفع کړل - صغیر اوکبیر یٔ ذکرکړل اوقلیل او کثیر یٔ نه دے وئیلے اشاره ده چه دلته اعتبار دَ قرض بوجه ته دے اودَ بوجه په باره کښ صغیر اوکبیر استعمالیږی.

اِلٰی اَجَلِهٖ کښ دوه اقوال دی - اول داچه دا متعلق دے په محذوف پورے اوحال دے یعنی مُسْتَقِرًّا فِی الذِّمَّةِ اِلٰی اَجَلِهٖ - دویم قول داچه دا متعلق دے په تَكْتُبُوْهُ پورے او اِلٰی په معنٰی دَ مع دے. اوذکر دَ اجل یٔ دَ دے وجے نه اوکړو چه په کتابت کښ دَ نیټے دَ لیکلو اهتمام ډیرضروری دے.

ذٰلِكُمْ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ، دَ کتابت او اشهاد درے فائدے ذکر کوی اودَ دے وجونه دا واجب دی - ذٰلِكُمْ اشاره ده مجموعه ماقبل ته - او اَقْسَطُ په معنٰی دَ اعدل دے یعنی دا ډیر اتصاف دے په حکم دَ الله تعالٰی کښ دَ باره دَ دفع کولو دَ ظلم او اختلاف - اقسط کښ درے اقوال دی - اول قول داچه دا دَ اَقْسَطَ نه په معنٰی دَ عدل سره دَ قَسَطَ (په معنٰی دَ ظلم) نه ماخوذ دے لیکن وزن دَ افعل دَ رباعی نه شاذ دے - دویم قول داچه دا دَ قُسْط نه ماخوذ دے (پیش دَ سین سره) په معنٰی دَ عدل او قَسَطَ (په زور سره) په معنٰی دَ جور اودَ ظلم دے - دریم داچه ابن قطاع او ابوعبید وئیلی دی چه دا مشترک دے په معنٰی دَ ظلم او عدل دواړو سره راځی -

وَاَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ، دا دویمه فائده ده یعنی ښه برابروونکے دَ پاره

دَ شهادت کولو دَ شاهدانو - یعنې دَ وجې دَ دے کتابت نه شاهدان په صحیح شهادت ورکوی او دَ هغې نه خلاف نشي کولے - اوله فائده دَ پاره دَ تحصیل دَ رضا دَ الله تعالیٰ ده - او دویمه فائده دَ پاره دَ دُنیوی مصلحت ده او دینی مصلحت مخکښ دے په دُنیوی مصلحت بانده دے دَ دے وجې نه اقسط ئې په اقوم بانده دے مخکښ ذکر کړو -

وَ اَدْنیٰ اَلَّا تَرْتَابُوْٓا ، ډیر نیزدے دے شک لرے کولو ته دَ زړونو دَ دائن او مدیون نه - او دا دریمه فائده راجع ده دفع دَ ضرر ته دَ نفسونو نه ځکه چه شک دَ نفس سبب دَ خفګان او پریشانئ دے او دفع دَ ضرر ده دَ غیر نه چه نور خوک به دویته نسبت دَ دروغو نه کوی او په ګناه دَ غیبت کښ به نه واقع کیږی - دا رنګ ارتیاب (شک کول) خو سبب دَ جنګ او دَ فساد دے دَ دائن ، مدیون او ګواهانو په مینځ کښ - شک په مدیون بانده دے دَ انکار کولو دَ قرض نه او په دائن بانده دے دَ زیات مال دعوی کولو او په ګواهانو بانده دے دَ طرف دارئ کولو - او دا رنګ حاکم او قاضی به هم شک نه کوی - او دا فائده اهم ده په باره دَ وجوب دَ کتابت کښ - په دے جمله کښ درے احکام دی اول انکار کول دَ کتابت نه په عذر دَ لرِ او ډیر سره منع دے - دویم په دغه کتابت بانده دے دَ شاهدانو عمل او موافقت ضروری دے - دریم دَ دغه کتابت په سبب به ټول کسان ځان دَ شکونو نه بچ اوساتی -

اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَهَا بَيْنَكُمْ ، په دے استثناء کښ دوه اقوال دی - اول دا چه دا استثناء متصل ده یعنې کتابت لازم دے په ټولو معاملاتو کښ مګر په حال دَ حضور دَ تجارت کښ - دویم قول دا چه دا استثناء منقطع ده یعنې تجارتِ حاضره کښ کتابت لازم نه دے - او دا قول اکثرو غوره کړیدے - او تکون دلته ناقصه دے او اسم دَ هغې پټ دے

یعنی تَکُوْنَ الْمُعَامِلَۃُ اَوِ التِّجَارَۃُ - حَاضِرَۃً نه مراد دا دے
چه په مبیعه یا په ثمن کښې نیټه نه وی دا رنګ هغه
مبیعه چه مشتری (اخستونکے) یې فی الحال قبض کوی.
تُدِیْرُوْنَهَا بَیْنَکُمْ نه مراد قبض کول دی لاس په لاس.
یا هر وخت کښې دا سے بیعه کول. نو په قید دَ حَاضِرَۃً سره
یې احتراز اوکړو دَ قرض سودا کولو او دَ سلم نه - او په
تُدِیْرُوْنَهَا سره یې احتراز اوکړو دَ بیع غیر منقول نه
یعنی دَ زمکو او کورونو (جائیداد) بیع کښې کتابت ضروری
دے اګرچه نقد سودا وی.

فَلَیْسَ عَلَیْکُمْ جُنَاحٌ اَلَّا تَکْتُبُوْهَا ، جُنَاحٌ په معنیٰ دَ مضرت
دے په نیز دَ هغه چاچه امر دَ کتابت دَ وجوب دَ پاره نه
وائی - او په معنیٰ دَ ګناه دے په نیز دَ هغه چاچه امر دَ
کتابت دَ وجوب دَ پاره وائی - او وجه دَ عدم جناح دا ده
چه نقد تجارتونه په منقولاتو کښې ډیر واقع کیږی نو
دَ دے کتابت واجب کول سبب دَ تکلیف او دَ مشقت دے
او یره دَ انکار هم نیشته.

وَاَشْهِدُوْٓا اِذَا تَبَایَعْتُمْ ، هر کله چه په نقد بیعه کښې یې
کتابت ساقط کړو نو دَ توثق (مضبوطوالی) دَ پاره حکم دَ
اشهاد یې باقی پریښودلو - او تَبَایَعْتُمْ عام دے که بیع په
نقد وی او که په نیټه سره وی او په دے امر کښې
اختلاف دے چه دا منسوخ دے په روستو سره یا
محکم دے. او په نیز دَ بعضو دا امر دَ استحباب دَ پاره
دے لیکن غوره قول دا دے چه په وخت دَ اعتبار او اعتماد
کښې امر دَ استحباب دَ پاره دے او په وخت دَ ګمان او
اختلاف پیدا کیدلو کښې امر دَ ایجاب دَ پاره دے. اِذَا
شرطیه دے نو په نیز دَ بعضو یې جزاء پټه ده او دَ
بعضو په نیز یې جزاء مقدم ده. یا اِذَا ظرفیه دے
او دا غوره دے.

وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ، دا دَ ادايو ذكر دے او متعلق دے دَ حكم دَ كتابت او دَ اشهاد سره - وَلَا يُضَآرَّ كښ دوه احتمالات دی - اول داچه دا صيغه دَ معلوم ده او كاتب او شهيد يَے فاعل دے او مفعول يَے پټ دے - دويم داچه دا صيغه دَ مجهول ده او كاتب آه - نائب فاعل دے او اصل فاعل يَے پټ دے - دَ مضاره معنىٰ داده چه يو بل ته ضرر او تكليف ورکوی يعنی دائن او مديون دا كاتب او ګواهان په تكليف او په تاوان كښ اچوی او هغوی له هيڅ اجرت او كرايه نه ورکوی او بے ضرورته يَے راغواړی يا په هغوی باندے دَ طرف دارئ كولو كوشش كوی - او دا شان كاتب او ګواه به دائن او مديون ته ضرر او تكليف نه ورکوی - يعنی كاتب به په ليكلو كښ زياتے كمے نه كوی او موقعے ته به حاضر يږی او شاهد به شهادت نه پټوی او نه به يَے بدلوی او نه به دَ شهادت نه انكار كوی. دا رنګ دَ اضرار نورے طريقے هم شته چه دَ هغے نه هر يوله ځان ساتل ضروری دی -

وَاِنْ تَفْعَلُوْا فَاِنَّهٗ فُسُوْقٌۢ بِكُمْ، دَ تَفْعَلُوْا مفعول پټ دے يعنی الاضرار - يا عام دے هغه او امر او نواهيو ته چه دَ طرف دَ الله تعالىٰ نه دی نو دَ هغے مخالفت اوكړی - فسوق نه مراد فسق عملی دے اشاره ده چه دغه مخالفت او تكليف او ضرر وركول ګناه كبيره دے - بِكُمْ كښ با دَ پاره دَ اِلصاق ده يعنی دا ګناه په تاسو پورے پيوست كيدونكے ده او سبب دے دَ يَد تاے دَ پاره چه بغير دَ توبے نه نه لرے كيږی - يا با په معنىٰ دَ فِیْ ده - او هر كله چه مخكښ ګناه دَ فسق يَے ذكر كړيدے نو اوس په وَاتَّقُوا اللهَ سره امر وركوی چه تقوىٰ كوئ دَ دے دَ پاره چه په فسق كښ اخته نه شئ -

وَيُعَلِّمُكُمُ اللهُ، په دے جمله كښ ترغيب دے ما قبل

وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ وَّلَمْ

او كه چرے يئ تاسو په سفر باندے او نه

تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ

مومئ تاسو ليكونكے نوجائز ده چه (داخلئ) نوګانړه قبض كړے شوے دى

فَاِنْ اَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ

نو كه چرے اعتماد اوكړى بعض ستاسو په بعض باندے نو ادا دِ كړى

الَّذِى اؤْتُمِنَ اَمَانَتَهٗ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ

هغه كس چه اعتماد پرے كړے شوے ګه امانت خپل او ويره دِ اوكړى دَ الله تعالىٰ نه

احكامو ته دَ پاره دَ عمل كولو اواشاره ده چه ما قبل احكام دَ معاملاتو په علومو شرعيو كښ داخل دى - او تردے ځائے پورے پنځه احكام ذكر شول - اول نقد يعنى لاس په لاس اغستل او خرڅول كول جائز دى - دويم په ديكښ اشها د ضرورى دے - دريم مضاره (يوبل ته تكليف وركول) حرام ده - څلورم دا ګناه كبيره او سبب دَ فسق دے - پنځم دا احكام دَ معاملاتو په علومو شرعيو كښ داخل دى - تردے ځائے پورے په دے آيت كښ مجموعه ظاهرى احكام اته ويشت (۲۸) معلوم شول -

وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيْمٌ ، دا هم ترغيب دے ما قبل احكامو باندے عمل كولو ته چه په دے احكامو كښ ستاسو دُنيوى او اُخروى مصالح دى ځكه چه علم دَ الله تعالىٰ په ټولو څيزونو باندے محيط دے په دے روستو دريو جملو كښ لفظ الله يئے درے كرته ذكر كړيدے - دا دَ پاره دَ تعظيم دَ دے احكامو -

رَبَّهٗ ؕ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ؕ وَمَنْ

چه رب د ده دے او مه پټوئ شهادت لره او څوک چه

يَّكْتُمْهَا فَاِنَّهٗۤ اٰثِمٌ قَلْبُهٗ ؕ وَ

پټ کړی شهادت لره نو یقیناً گناهګار دے زړه د هغه او

۳۹ ع ۲ ۷ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿۲۸۳﴾

الله تعالیٰ په هغه عملونو چه تاسو کوئ ښه علم لری

۲۸۳:- دا عطف دے په مضمون د ماقبل آیت باندے په هغے کښ ذکر د بیع مؤجل وو په کتابت او اشهاد سره نو اوس ذکر کوی بیع مؤجل په رهن ګانړه کولو) سره او بیع مؤجل په امانت سره - دا دوه اقسام د مخکښ نه بالکل جدا وو د دے وجے نه ئے مستقل آیت کښ ذکر کړیدی - دا رنګ (مخکښ آیت کښ وئیلے شویدی) چه هر کله د عقد کوونکو په یو بل باندے د جګړے ګمان وی نو د هغوی د پاره حکم د کتابت او د اشهاد وو. نو په دے آیت کښ ذکر کوی چه هر کله چه لږ اعتماد وی نو بیا حکم د رهن دے او چه ډیر اعتماد وی نو بیا حکم د امانت دے.

وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ ، لفظ د عَلٰی دلالت کوی چه دا سے وی چه هیڅ قسم اقامت پکښ نه وی نو ګواهانو پسے ګرځیدل ګران وی.

وَلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا ، دا عطف دے په فعل شرط باندے یعنی کنتم باندے - یا په لفظ د سفر باندے - یا حال دے د اسم د کنتم نه.

فَرِهٰنٌ ، دا خبر دے او مبتداء ئے پټه ده معنیٰ فَالْوَثِيْقَةُ رِهَانٌ یا مبتداء ده او خبر ئے پټ دے یعنی فَرِهَانٌ تَكْفِيْ - یا فعل پټ دے یعنی فَتَكْفِيْ عَنْ

ذٰلِكَ رِهَانٌ، او رِهَان مصدر په معنیٰ دَ مفعول دے یا جمع دَ رهن ده او هغه په معنیٰ دَ مفعول دے. او رهن په لغت کښ دوام او استمرار او ثبوت ته وئیلے شي- او دَ شریعت په اصطلاح کښ بندیدل دَ یو عین څیز دی دَ پاره دَ وثوق دَ حق (قرض) دَ دے دَ پاره چه په وخت دَ عدم ادا دَ حق (قرض) کښ دَ هغه عین څیز نه یا دَ هغے دَ منافعو نه خپل حق حاصل کړي - قرطبي وئیلي دي چه رهن دلالت کوي چه مرهون ته به لاس دَ مرتهن او دَ راهن ته به نه واپس کیږي تر ادا دَ حق پورے.

مَقۡبُوۡضَةٌ، دا صریح دے چه قبض دَ مرهون (گانړه شوي څیز) شرط دے دَ صحت دَ رهن دَ پاره یا دَ هغے دَ اتمام دَ پاره بنا بر اختلاف - او قبض مستلزم نه دے دَ انتفاع دَ پاره بلکه دا قبض صرف دَ وثوق دَ پاره دے - دَ دے وجے نه گانړه کوُنکي له جائز نه دي چه دَ گانړه شوي څیز نه به فائده اخلي - قرطبي وئیلي دي چه دَ امام مالك، امام شافعي او امام ابوحنیفه او دَ امام احمد او امام اسحاق (رحمهم الله علیهم) په نیز دَ سورلۍ دَ څیز نه په سورلۍ کولو سره او دَ پیو والا څاروي نه په پیو اخستلو فائده اخستل جائز دي - او دَ فائدے اخستلو دَ پاره دَ ایجارے حیله جوړول جائز نه ده مگر چه ایجاره معروفه وي.

فائده :- دَ مجاهد په نیز دَ رهن دَ جواز دَ پاره سفر او عدم وجود دَ کاتب شرط دے - او په نیز دَ جمهورو علماؤ باندے رهن په سفر او حضر او په وجود دَ کاتب او عدم وجود دواړو حالتونو کښ جائز دے - په دلیل دَ حدیث دَ صحیحینو سره چه نبي صلی الله علیه وسلم خپله زغره په مدینه کښ دَ یو یهودي سره رهن کړے وه - لیکن شرط دَ سفر او عدم وجود دَ کاتب په اعتبار دَ غالب اوقاتو سره دے ځکه چه په داسے حال

کښې اکثر ګواهان او اسباب دَ کتابت حاصلول مشکل شي.

فَإِنْ أَمِنَ بَعْضُكُم بَعْضًا، دا دریم قسم بیع ذکر کوي یعنی بیع مؤجل بغیر دَ کتابت او رهن ته او دا واقع کیږي په وخت دَ پوره اعتماد کولو کښې په یو بل باندې دَ دې وجې نه لفظ دَ أَمِنَ یې ذکر کړې یعنی أَمِنَ وَقْتَ الْبَيْعِ الْمُؤَجَّلِ بَعْضُكُم (اعتماد دې اوکړي په وخت دَ قرض سودا کښې په یو بل باندې). فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اؤْتُمِنَ أَمَانَتَهُ، الَّذِي اؤْتُمِنَ نه مراد مدیون دې که خرڅوونکې وي او که اخستونکې وي یا هسې مقروض وي. او په وصف دَ اؤْتُمِنَ سره ذکر کولو کښې ترغیب دې ادا ییځ ته. دَ أَمَانَتَهُ ضمیر راجع دې الَّذِي ته یا خاوند دَ قرض ته. امانت مصدر دې لیکن مراد دَ دینه قرض دې او دا ښکاره دلیل دې چه ادا دَ امانت او دَ قرض واجب ده.

وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ، مخکښې امر دَ تقوٰی وو په وخت دَ اقرار کولو دَ قرض کښې نو اوس امر دې په وخت دَ ادا کولو دَ قرض کښې. او په جمع کولو دَ لفظ دَ الله او دَ رب کښې ډیر تاکید دې په تقوٰی باندې او دلته مراد دَ هر قسم خیانت نه ځان ساتل دي په امانت او په ادا دَ هغې کښې.

وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ، دَ کتمان نه مراد پټول دي په نه ادا کولو سره. او په دیکښې اشاره ده چه حفظ (یادول) دَ شهادت دې استعمال کړي. او دا نهي دَ تحریم دَ پاره ده.

وَمَن يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ، دا دلیل دې چه ماقبل نهي دَ تحریم دَ پاره ده ځکه چه سبب دَ ګناه دې او هر کله چه شهادت علم دَ قلب دې او کتمان هم دَ زړه سره تعلق لري دَ دې وجې نه نسبت دَ آثِمٌ یې زړه ته اوکړو. او هر کله چه زړه ګناهګار شي نو ټول اندامونو کښې ګناه ورننوځي په دلیل دَ حدیث سره (إِذَا صَلُحَتْ صَلُحَ الْجَسَدُ كُلُّهُ وَإِذَا فَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ كُلُّهُ). زړه داسې ټکړه ده چه روغه وي نو ټول بدن روغ وي او چه کله فاسد شي نو ټول وجود فاسد شي).

لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی

خاص دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دی هغه خیزونه چه په آسمانونو کښ او هغه څه چه په

الْاَرْضِ ؕ وَ اِنْ تُبْدُوْا مَا فِیْۤ

زمکه کښ دی او که چرے ښکاره کوئ تاسو هغه څه چه په

اَنْفُسِكُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ یُحَاسِبْكُمْ

زړونو ستاسو کښ دی یا پټ ساتئ هغه حساب به او کړی تاسو سره

بِهِ اللّٰهُ ؕ فَیَغْفِرُ لِمَنْ یَّشَآءُ

په هغے بانده الله تعالیٰ نو بخنه کوی هغه چاته چه اوغواړی

وَ یُعَذِّبُ مَنْ یَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ

او عذاب ورکوی هغه چاته چه اوغواړی او الله تعالیٰ

عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۲۸۴﴾

په هر خیز بانده قدرت والا دے۔

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِیْمٌ، په دے جمله کښ تخویف دے او مَا تَعْمَلُوْنَ کښ کتمان دَ شهادت او ادا دَ هغے داخل دی - او علم دَ الله تعالیٰ کښ اشاره ده جزاء او سزا ورکولو ته- په دے آیت کښ شپږ احکام ذکر دی ١ جواز دَ تجارت په سفر کښ ٢ جواز دَ عقد دَ رهن کولو ٣ په رهن کښ دَ قبض شرط لګول ٤ قرض په حکم دَ امانت کښ دے۔ ٥ اداکول دَ امانت واجب دی ٦ شهادت پټول ګناه کبیره دے۔

۲۸۴ **خلاصه دَ څلورم باب**:- دَ دے آیت نه تر آخر دَ سورت پورے څلورم باب دے۔ په دیکښ دَ توحید دَ مسئلے ذکر دے او صدق دَ رسول دے او تاکید دَ مضمون دَ سورت دے په تصدیق دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او دَ صحابه کرامو سره په آیت ۲۸۵ کښ او بیا ترغیب دے په وسع (خپل طاقت) صرف کولو سره۔ وسع نفسی چه جهاد دے او وسع مالی چه هغه انفاق فی سبیل الله دے۔ دَ پاره

دَ نشرو اشاعت دَ مضمون دَ دے سورت - او اختتام دے په دُعا سره چه متعلق دے دَ عمل کولو سره په دے سورت باندے.
ربط ۱: هر کله چه مخکښ ئے ذکر کړل چه دَ شهادت پټول دَ زړه ګناه ده - نو اوس دَ هغے وعید ذکر کوی - او دَ قلب نه ئے په انفس سره تعبیر کړے دے - او شعبی او عکرمه وئیلی دی چه دا آیت دَ شهادت دَ کتمان په باره کښ نازل شوے دے.
ربط ۲: دَ مخکښ آیت اختتام ئے اوکړو په ذکر دَ علم دَ الله تعالیٰ سره نو په دیکښ دَ هغے علت ذکر کوی په ذکر دَ تصرف کلی دَ الله تعالیٰ سره په طریقه دَ اَلَا یَعۡلَمُ مَنۡ خَلَقَ چه متصرف او خالق دے - نو معلومه شوه چه عالم دے په ټولو څیزونو باندے - دا قول ابو مسلم ذکر کړے دے.
او ابوحیان وئیلی دی چه دَ دے آیت مناسبت دَ ټول سورت سره دا دے چه په سورت کښ دلائل دَ توحید دَ نبوت او دَ معاد ذکر شول - او مونځ، زکوٰة، روژه، حج، جهاد، قصاص، حیض، طلاق، عدت، ایلاء، خلع، رضاعت، ربوا، بیع او طریقے دَ مدائینے ئے ذکر کړے نو اوس اولاً دَ دے علت ذکر کوی چه مالك او متصرف دَ هر څه الله تعالیٰ دے نو دَ هغه خوښه ده چه په څرنګ احکامو سره خپل بنده ګان مکلف کوی په هغه باندے هیڅ اعتراض نشی کیدے - او ثانیاً تخویف ذکر کوی چه دَ دے تکالیفو محل دا اعتقاد زړونه دی نو په آخرت کښ دارومدار دَ ثواب او عذاب په نیت باندے دے چه هغه عمل دَ زړه دے.
په دے آیت کښ مسئله دَ توحید ده په رد دَ شرک فی التصرف او فی العلم سره - او دا په دے سورت کښ څلورم کرت دے دَ دعوے دَ توحید دَ ذکر کولو.

لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الۡاَرۡضِ، تفصیل دَ رد دَ شرک فی التصرف او تعبیرات دَ هغے دَ تفسیر دَ اول جلد په مقدمه کښ ذکر شویدی - لِلّٰهِ کښ لام دلالت کوی په مِلك او مُلك

او عبدیت باندے او ما فی السمٰوٰت وما فی الارض کښې ټول موجودات اعیان او اعراض داخل دی - او سمٰوات یې د هغې د عظمت شان د وجې نه مخکښې ذکر کړو او ظرف په حکم د مظروف کښې داخل دے.

وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِیْٓ اَنْفُسِكُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ ، لفظ د مَا عام دے ټولو افعالو د نفسونو (زړونو) ته که اختیاری وی او که غیر اختیاری وی لکه محبت، اراده، علم، جهل، د شهادت پټول، شک او یقین، وسوسے او خواطر وغیره - او مقصد دا دے چه حالت د اخفاء او ابداء (چه په نسبت د مخلوق سره دی) په نسبت د الله تعالیٰ کښې برابر دی - او ابداء د ما فی انفسکم په ژبه سره کیږی چه د قبیلے د اقوالو نه وی - او په اندامونو سره کیږی چه د قبیلے د اعمالو نه وی.

یُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ ، حساب عام دے کله په طریقه د عرض (پیش کیدلو) سره وی د صالحینو د پاره او کله په مناقشے (ډوبرے حساب کولو) سره وی - نو هر حساب مستلزم د عذاب نه دے - د دے وجے نه وروستو یې مغفرت او عذاب دواړه مرتب کړیدی - حساب کول صریح دلیل دے په علم د الله تعالیٰ سره په هر پټ او ښکاره باندے.

فائده: د دے آیت په باره کښې د مفسرینو دوه اقوال مشهور دی - اول قول د اکثر مفسرینو دے چه دا منسوخ دے بنا په دے چه لفظ د مَا عام دے غیر اختیاری وسوسو ته - او تفصیل یې په حدیث د مسند احمد کښې دے چه ابن کثیر ذکر کړیدے چه دا آیت سخت شو په صحابه کرامو باندے نو دوی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اُوئیل چه مونږ خو مکلف یو په داسے اعمالو چه د طاقت د لاندے وی لیکن د

دے آیت خو طاقت نه لرو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل آیا تاسو د مخکنو کتابیانو پشان سمعنا وعصینا وائی بلکه او وائی چه سمعنا و اطعنا غفرانك ربنا والیك المصیر۔ نو صحابه کرامو دغسے اوئیل نو ورپسے آیت نازل شو د هغوی د امتثال (عمل کولو) په باره کښ۔ نو هر کله چه په دغه آیت کښ د صحابه کرامو د اطاعت امتثال ذکر شو نو منسوخ کړو الله تعالیٰ مخکنے حکم په نزول د آخری آیت سره (او دا سے روایت مسلم ذکر کړیدے) دویم قول ابن جریر، قرطبی ابن عطیه او ابن کثیر ذکر کړیدے چه دا آیت محکم دے او د هغے درے وجوه دی۔ اوله وجه دا چه محاسبه د گناه او د معاقبے د پاره مستلزم نه ده بلکه حساب کله صرف په عرض سره وی نو نسخ ته حاجت نیشته۔ دویمه وجه دا ده چه ما فی انفسکم نه مراد هغه عقیدے او امور دی چه په زړه کښ متقرر شوے وی۔ لفظ د فی په دے باندے دلالت کوی۔ او دا رنګ نسبت د ابداء او اخفاء بندیګانو ته دلالت کوی په اختیار د دوی باندے نو وسوسے پکښ داخل نه دی۔

محاکمه:۔ د دواړو اقوالو په مینځ کښ محاکمه دا ده چه لفظ د ما فی انفسکم د بعض صحابه کرامو په فهم کښ عام وو غیر اختیاری وسوسو ته نو په هغوی باندے ځکه اشکال راغے نو په لا یکلف الله نفسا آه سره الله تعالیٰ تشریح اوکړه چه لفظ د ما غیر اختیاری امورو ته نه دے شامل ځکه چه هغه د انسان د طاقت نه بهر دی۔ نو دیته تشریح او تقیید وئیلے شی او د متقدمینو په اصطلاح کښ دا په نسخ کښ داخل دے۔

فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ، دلته مبتداء پټه ده یعنی فهو یغفر۔ دا تفریع ده په یحاسب باندے

اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ

ایمان راوړے دے رسول (صلی الله علیه وسلم) په هغه وحی چه نازل کړے شوې ده ته

مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ؕ كُلٌّ اٰمَنَ

دَ طرف دَ رب دَ ده نه او مؤمنانو هر یو ایمان لری

بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ۟ قف

په الله تعالیٰ او په ملائکو دَ هغه او په کتابونو دَ هغه او په رسولانو دَ هغه

لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۟ قف

فرق نه کوؤ مونږ په مینځ دَ هیچا کښ دَ رسولانو دَ هغه نه

وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ

او دوی وائی واوریدو مونږ او ومنل کوؤ مونږ غواړو بخنه ستا نه

رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ﴿٢٨٥﴾

اے ربه زمونږه او خاص تاته ګرځیدل دَ ټولو دی۔

او دلیل دے چه هرحساب دَعذاب دَ پاره مستلزم نه دے۔ او دا دلیل دے چه نیکانو ته ثواب ورکول او بدانو ته عذاب ورکول په الله تعالیٰ باندے واجب نه دی بلکه دَ هغه خوښه ده چه څهٔ رنګه غواړی۔

وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، هرکله چه مغفرت او عذاب سرهٔ دَ علم دَ الله تعالیٰ نه متعلق دی په صفت دَ قدرت دَ الله تعالیٰ پوره نو دَ دے وجے نه ئے دا صفت ذکر کړو۔ نو په آیت کښ عموم دَ علم دَ الله تعالیٰ او عموم دَ تصرف او قدرت دَ هغه دواړه ذکر دی۔

٢٨٥ - ربط له :- مخکښ آیت کښ په قول اول کښ ذکر شو چه صحابه کرامو دَ يُحَاسِبْكُمْ په باره کښ شکایت دَ تنقل اوکړو نو نبی صلی الله علیه وسلم دوی ته دَ ادب تعلیم ورکړو نو صحابه کرامو هغه ادب اداکړو نو په دے آیت کښ دَ هغوی مدح (تعریف) ذکر کړے شوه۔

ربط ۲ : ۔ قرطبی دَ زجاج نه نقل کړیدی چه په دے سورت کښې عقیده او ډیر احکام الٰهیه ذکر شول نو په آخر کښې ذکر کوی تصدیق دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ صحابه کرامو په هغه ټولو امورو کښ چه په دے سورت کښې ذکر دی (دَ پاره دَ تاکید) لکه چه یو حاکم حکمنامه جاری کړی نو دَ هغې دَ پوخوالی دَ پاره دستخط دَ نائب او دَ نورو ملګرو ضروری وی۔

ربط ۳ : ۔ ابوحیان وئیلی دی چه دَ قرآن کریم په لویو سورتونو کښې دا عادت الٰهیه دے چه آخر دَ اول سره موافق وی ۔ نو دا سے دَ دے سورت په اول کښې دَ مؤمنانو دَ ایمانیاتو ذکر اوشو نو اوس په آخر کښې هم دَ هغې بعضے تفصیل ذکر کوی او لفظ دَ بالغیب تفصیل کوی په دے آیت کښې په ذکر دَ مؤمَنٌ بِهٖ څیزونو سره۔

اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ ، الرسول کښې الف لام عهدی دی یعنی محمد رسول الله (صلی الله علیه وسلم) بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ کښې ټول مؤمَنٌ بِهٖ احکام داخل دی چه په قرآن او سنت کښې او خصوصًا په دے سورت کښې ذکر دی ۔ او دا دلیل دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هم مکلف دے په ایمان لرلو سره۔ او دَ دے بعضے تفصیل په سورة اعراف ۱۵۸ کښې دے او رسول الله صلی الله علیه وسلم یقین کوونکے وو چه دا کلام سحر، کهانت او القاء دَ شیاطینو نه دے بلکه نازل کړے شویدے دَ الله تعالٰی دَ طرف نه۔

وَالْمُؤْمِنُوْنَ ، دا په الرسول باندے عطف دے ۔ یا دا مبتداء ده او روستو جمله دَ دے خبر دے ۔ اول قول غوره دے ۔ ابن عاشور وئیلی دی چه دا دلته لقب دے دَ صحابه کرامو نو سوال نه راځی چه لفظ دَ اٰمَنَ سره المومنون ذکر کول خاص فائده نه لری۔

كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ، دا تفصيل دے دَ اجمال دَ اٰمَنَ دَ پاره. ايمان په الله تعالىٰ عبارت دے دَ تصديق نه په وجود دَ هغه او په توحيد دَ هغه دَ ټولو اقسامو سره او دا اوله مرتبه دَ ايمان ده.
وَمَلٰٓئِكَتِهٖ، ايمان په ملائكو عبارت دے دَ تصديق دَ وجود دَ هغوی نه او دَ صفاتو دَ هغوی نه چه په قرآن او احاديثو كښ ذكر دی خلاف دَ عقيدے دَ اهل جاهليت نه. او دا دَ ايمان دويمه مرتبه ده ځكه چه ملائك واسطے دی په مينځ دَ الله تعالىٰ او دَ بنديګانو دَ هغه كښ په باره دَ احكامو رارسولو كښ.
وَكُتُبِهٖ، دَ الله تعالىٰ په ټولو كتابونو باندے ايمان چه دَ هغے اجمالی يا تفصيلی تصديق په قرآن كريم كښ موجود دے. او دا دريمه مرتبه دَ ايمان ده. چه دَ ملائكو په ذريعه سره دا كتابونه رسولانو ته رارسيدلے دی.
وَرُسُلِهٖ، ايمان په هغه رسولانو چه دَ هغوی اجمالی يا تفصيلی ذكر په قرآن او په احاديثو كښ ثابت دے او دَ هغوی صفتونه دَ عبديت، بشريت او رسالت وغيره. او دا څلورمه مرتبه دَ ايمان ده چه دَ ملائكو او كتابونو الهيو په واسطے سره دوی ته احكام الهيه دَ دے دَ پاره رالیږلے شوی دی چه دوی ئے خپل امتونو ته اورسوی.
لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ، دا جمله حاليه ده په تقدير دَ يقولون سره. په دے كښ دفع دَ وهم ده چه فرق دَ رسولانو په مرتبو كښ په فضيلت او په فروعو كښ شته دے نو آيا په ايمان لرلو كښ په دوی باندے هم فرق شته. نو اُوئيلے شو چه دَ مراتبو او فروعو فرق مستلزم نه دے فرق لره په رسالت كښ. او دا صريح رد دے په ايمان دَ يهودو او نصاراؤ باندے چه

هغوی په بعضے رسولانو باندے ایمان راوړی او په بعضو ته راوړی۔ سوال :- لفظ دَ بَیْنَ مضاف کیږی متعدد ته او اَحَدٍ کښ تعدد نیشته؟۔
جواب له :- احد په معنیٰ دَ جمیع دے۔ (خو په دے باندے بعض مفسرینو رد کړیدے)۔
۲ه په عبارت کښ تقدیر دے یعنی بَیْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ وَبَیْنَ غَیْرِهٖ۔
۳ه :- په دے لفظ احد کښ عموم دے ځکه چه په نفی کښ مستعمل دے تو معنیٰ دَ جمیع ادا کوی تو اضافت دَ بین ورته صحیح دے۔
وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَ اَطَعْنَا، هرکله چه اکمال دَ ایمان بغیر دَ علم نه نیشته بلکه مقصد دَ ایمان قبولیت دے عقیدتًا او عملاً۔ او دا قول دَ صحابه کرامو (مخکښ په حدیث کښ ذکر شوے دے) په خلاف دَ قول دَ یهودیانو او دَ نصاراؤ دے چه هغوی وئیلی دی سمعنا وعصینا۔ او دَ دے مفعولو نه پټ دی یعنی سَمِعْنَا قولك وَاَطَعْنَا امرك۔ او امام رازی وئیلی دی چه عدم ذکر دَ مفعول دلالت کوی چه بل قول او امر دا سے نیشته دے چه دَ هغے سمع او اطاعت دے اوکړے شی۔ او مراد دَ سمع نه صرف آوریدل نه دی ځکه چه په هغے سره مدح تشی کیدے بلکه سمع دَ قبولیت ده تو معنیٰ یَے دا ده چه زمونږ علم او یقین راغلے دے چه هر هغه حکم چه په واسطه دَ ملائیکو او انبیاء علیهم السلام سره مونږ ته رارسیدلے دے تو هغه حق او صحیح او واجب القبول دے۔ او سمع په دے معنیٰ ذکر ده په سورة ق ک۳ کښ۔ او اَطَعْنَا هم دلالت کوی چه دَ قبولیت سره عمل کول ضروری دی او دیته پوره ایمان وئیلے شی غُفْرَانَكَ رَبَّنَا، هرکله چه په قبولیت او په طاعت کښ خامخا دَ بنده نه څه قسم قصور واقع کیږی او مخکښ اُوئیلے شو چه فَیَغْفِرُ لِمَنْ یَّشَاءُ تو دَ دے وجے نه یَے سوال دَ مغفرت ذکر کړو۔ او دَ دے نه مخکښ دَ سیبویه په نیز لفظ اِغْفِرْ پټ دے۔ او دَ مغفرت معنیٰ

لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ؕ

تکلیف نه ورکوی الله تعالی هیڅ نفس ته مګر په قدر د وس د هغه

لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ؕ

هرنفس لره بدله د هغه نیک عمل ده چه کړے دے او په هر نفس باندے سزا د هغه بد عمل ده چه کړے

رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا اِنْ نَّسِيْنَا

(وائی دوی) اے ربه زمونږه مه نیسه مونږ که چرے هیر ږ دو څه حکمونه ستا په قصد سره

اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا

یا خطائی اوکړو په ګناه کولو سره اے ربه زمونږه او مه راچوئ په مونږ باندے

اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ

درونډ بوج لکه چه تا اچولے دا سے بوج په هغه کسانو باندے

مِنْ قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا

چه زمونږ نه مخکښ وُو اے ربه زمونږه او مه اچوے په مونږ باندے

مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ وَاعْفُ عَنَّا ۫ وقفة

هغه څه چه نیشته طاقت مونږ لره د هغے او معافی اوکړے زمونږ نه

وَاغْفِرْ لَنَا ۫ وقفة وَارْحَمْنَا ۫ وقفة اَنْتَ مَوْلٰىنَا

او بخنه اوکړے مونږ ته او رحم اوکړے په مونږ باندے ته مولی زمونږ ئے

وسیع ده چه انبیاؤ علیهم السلام ته هم عام ده۔
وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ، هر کله چه طلب د مغفرت د قیامت
د خوف د وجے نه دے نو په دے جمله کښ ذکر شو
ایمان په قیامت باندے (یعنی ورکرځیدل الله تعالیٰ ته)
او ایمان په قیامت اګرچه د اصول ابتدائیه د ایمان نه
دے لیکن علت غایه دے د پاره د قبولیت په عقیدے او
عمل سره د دے وجے نه ئے ذکر کړو۔ (صاحب اللباب)۔

فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۸۶﴾ ع

| | | | |
|---|---|---|---|
| نو غلبه را کړے موږ له په | قوم | کافرانو | باندے۔ |

۲۸۶:- په دے آیت کښ ترغیب دے په خرچ کولو دَ وس او طاقت خپل سره دَ پاره دَ قبولیت او طاعت کولو۔ بیا ذکر دَ دُعا دے متعلق دَ عمل کولو په سورت باندے سره دَ عدم مواخذه په نسیان او خطا باندے او عدم حمل دَ اصر (چه کفر، شرک او عدم توبه کول دی) او دَ وس او طاقت نه زیات دَ دعوت وجهاد دَ مصیبتونو عدم تحمل۔ بیا درے دُعا ګانے دی۔ او څلورمه دُعا دَ نصرت په مقابله دَ هغه خلقو کښ ده چه انکار کوی دَ مقاصدو دَ دے سورت نه او مقابله کوی۔

ربط ۱:- دَ مخکښ نه یو وهم پیدا شو چه کیدے شی چه دُعا دَ مغفرت دَ دے وجے نه وی چه تکلیف دَ الله تعالیٰ دَ طرف دَ طاقت او وس نه زیات دے نو جواب او شو چه تکلیف الٰهیه دَ طاقت سره برابر دی (او بیا هم په هغے کښ په کوتاهئ سره الله تعالیٰ مغفرت کوی۔

ربط ۲:- لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا جمله دَ مؤمنانو په کلام کښ داخل وی نو دا علت دے دَ پاره دَ قول دَ هغوی چه سمعنا او اطعنا دے۔ او که کلام دَ الله تعالیٰ وی په طریقه دَ استیناف سره نو بیا تسلی ده دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه هغه چا ته چه سمعنا او اطعنا ئے وئیلے دی چه سمع او اطاعت همیشه کوئ ځکه چه تکلیف ستاسو دَ طاقت نه زیات نه دے۔ او تعلیم دَ دُعا دے په وخت دَ کوتاهئ کولو کښ۔

ربط ۳:- مخکښ دَ یحاسبکم بنا په اول قول کښ تیر شویدی چه هغه منسوخ دے په دے جمله سره چه لا یکلف الله الآیة نو دا ذکر دَ ناسخ دے (تخفیف دے) روستو دَ ذکر دَ منسوخ (تثقیل) نه۔

لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا، دا سے په آیت ۲۳۳ کښ تیر

شویدی او په سورة انعام ۱۵۲ اعراف ۴۲ او سورة مؤمنون ۶۲ کښ په صیغه دَ متکلم (لا نکلف) سره ذکر دے - یکلف متعدی دے په اصل کښ دوه مفعولونو ته.
دویم مفعول په اصل کښ پټ دے یعنی عبادةً او شیئاً.
دلته استثناء مفرغ په ځائے دَ دویم مفعول کښ قائم ده.
تکلیف په اصل کښ په چا باندے څه ذمه واری کیښودل دی.
او هغه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دوه قسمه دے - مصیبتونه کونیه لکه مرضونه او حوادث وغیره - او احکام شرعیه (قلبی، بدنی او مالی) دلته دَ دواړه قسمه احتمال شته دے.
لیکن دَ سورت دَ احکامو ذکر کولو په مناسبت سره دویمه معنیٰ غوره ده - وُسْعَهَا کښ معنیٰ دَ فراخئ موجود ده چه انسان ئے وس او طاقت لری بغیر دَ تنګسیا نه - او دا لفظ دَ مصدر دے مراد تر ینه مفعول دے - دَ قدرت، طاقت او جهد دَ الفاظو په نسبت دے لفظ کښ اسانتیا ډیره ده او دا دلیل دے چه تکلیف مالا یطاق یعنی تکلیف بالمحال واقع نه دے او دَ دے په وقوع او امکان کښ ډیر اختلاف دے - قرطبی، جصاص، صاحب اللباب او ابن عاشور وغیره په تفصیل سره لیکلے دی - او په لفظ الا وسعها سره غیر اختیاری کارونه لکه وسوسے وغیره خارج دی نو په ما فی انفسکم کښ نه دی داخل یائے دَ هغے نه تخصیص شوید ے چه هغے ته نسخ وئیلے شویده.

لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ، دا جمله حال دے دَ نفساً نه او تقسیم دَ کیفیت دَ وسع دے دوه قسمونو ته - یا به ئے حسنات (نیکئ) کړے وی نو هغه به دَ هغه نفس کسب کړونکی دَ پاره نفع او فائده وی - یا به ئے سیئات (بدئ) کړے وی نو دا به په هغه نفس باندے ضرر او نقصان وی - او کسب او اکتساب اختیاری امورو ته وئیلے شی نو خواطر او وسوسے تر ینه بهر دی - دَ

اهل لغت په نیز صحیح دا ده چه کسب او اکتسبت
یو شان دی په خیر او په شر کښ په دلیل د سورة البقره
۸۱ انعام ۱۶۴ او سورة مدثر ۳۸ سره - او دلته فرق
په سبب د لام او علی سره دے - او بعضو فرق کړیدے
چه اکتساب خاص دے د کسب نه - یعنی کسب تقسیم دے.
د ځان د پاره کسب او د غیر د پاره کسب - او اکتساب صرف
د ځان د پاره کسب کولو ته وئیلے شی -
سوال :- د خیر سره کسبت او د شر سره اکتسبت ذکر
کولو کښ څهٔ حکمت دے ؟
جواب :- ابن عطیه وئیلی دی چه د حسناتو کسب کښ
په اصل کښ تکلیف نیشته ځکه چه کارونه د دین آسان
دی نو د هغے سره کسبت ذکر شو او د سیئاتو په کسب
کښ په اصل کښ تکلیف دے ځکه اکثریئے د خلقو نه
په پټه کوی او مشقت پکښ برداشت کوی او په نسبت
د آخرت سره هم تکلیف دے د دے وجے نه د هغے
د پاره اکتساب ذکر شو - او په دے آیت کښ دلیل دے
چه بنده ته د فعل نسبت په لفظ د کسب سره پکار دے
په لفظ د قدرت سره موهم دے - او په دواړه جملو
کښ لها او علیها مخکښ راوړل د تخصیص د پاره دی.
په اول کښ رد دے په شفاعت شرکیه باندے او په
دویم کښ موافقت دے د لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰی
سره -

رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ ، په دیکښ دوه احتمالات دی اول
دا چه په دیکښ قالوا پټ دے او حکایت دے د مؤمنانو
د روستو قول نه چه قالوا سمعنا و اطعنا دے او په
مینځ کښ جملے معترضے دی - یعنی مؤمنان د ایمان د
اقرار او اطاعت نه روستو توجه کوی دُعا او تضرع کولو
الی الله ته - دویم احتمال دا دے چه دا تلقین دے د

الله تعالیٰ دَ طرف نه پشان دَ سورة فاتحه تو قولوا پټ یې.
مواخذه دَ اخذ نه ده په معنیٰ دَ عقوبت او عذاب ورکولو
لکه سورة عنکبوت ۴۰ کښ - او مفاعله په معنیٰ دَ مجرد
ده دَ مبالغې او تاکید دَ پاره په دُعا کښ - یا اخذ دَ الله تعالیٰ
دَ طرف نه په عقوبت سره دے او دَ بنده دَ طرف نه په
طلب دَ عفو سره دے -

إِنْ نَّسِينَآ أَوْ أَخْطَأْنَا ، نسیان مقابل دَ ذکر دے. هیرول
دَ هغه خیزچه په کولو دَ هغې سره امر شوے وی - یا کول
په هیره سره دَ هغه خیزچه دَ هغې دَ کولو نه منع ذکر
شوے وی - لکه دَ مونځ وخت ترینه هیر شی ، یا روژه
نیول ترینه هیر شی او خوراک اوکړی یا دَ یو خوراک نه
منع شوے وی او دَ دهٔ نه دغه نهی هیره شی - په قرآن
کریم کښ دَ دے ماده پنځه څلویښت (۴۵) کرته ذکر ده
او دَ هغې استعمال په مختلف طریقو سره شوے دے.
اول په معنیٰ دَ هیرولو دا په ډیرو آیاتونو کښ دے لکه
سورة طٰه ۱۱۵ کهف ۶۱ دویم دَ دے صفت نفی دَ الله
تعالیٰ نه په سورة مریم ۶۴ طٰه ۵۲ کښ ده - دریم
په معنیٰ دَ ترک عمدًا سره سورة اعراف ۱۴۵ جاثیه ۳۴
کښ څلورم ترک دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه اهانتًا او په طریقه
دَ مجازات سره لکه سورة توبه ۶۷ اعراف ۵۱ پنځم
نسبت دَ دے شیطان ته په طریقه دَ ګمراهئ سره سورة
مجادله ۱۹ شپږم نسبت شیطان ته په طریقه دَ تسلط
یا صرف په خوشحاله کیدلو دَ شیطان لکه سورة یوسف
۴۲ کهف ۶۳ اووم نسبت الله تعالیٰ ته تشریعًا سورة
بقره ۱۰۶ - امام راغب وئیلی دی چه هرهغه نسیان
چه الله تعالیٰ په طریقه دَ ذم (بدئ) سره ذکر
کړے دے نو هغه عمدًا پریښودل دی او کوم چه
عذر دے نو هغه هغهٔ دے چه په قصد سره نه وی-

أَوْ أَخْطَأْنَا، امام راغب وئیلی دی چه اراده دَ یو کار اوکړی او ناساپه ترینه بل کار اوشی نو دیته خطا وئیلے شی او په دیکښ درے قسمونه دی۔ اول دا چه یو شخص اراده اوکړی دَ هغه کار چه اراده ئے بښه کار نه وی او دے ئے اوکړی نو دیته خوخطاء تام وئیلے شی داخو ګناه دے۔ شرک اوکفر ته هم خطا وئیلے شی لکه وَأَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْئَتُهٗ، دویم دا چه اراده اوکړی دَ هغه کار چه کول ئے بښه کار وی لیکن اوشی خلاف دَ هغے نه او دا مراد دے په دے حدیث سره چه رُفِعَ عَنْ اُمَّتِیْ اَلْخَطَاءُ وَالنِّسْیَانُ۔ او وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَاً، دریم دا چه اراده اوکړی دَ ناجائز کار لیکن بښه کار ترینه صادر شی نو دے په اراده کښ مخطی دے او په عمل کښ مصیب دے نو دے هم قابل ذم دے۔
سوال:۔ دَ سنن ابن ماجه حدیث دے رُفِعَ عَنْ اُمَّتِیْ الْخَطَاءُ وَالنِّسْیَانُ وَمَا اسْتُکْرِهُوْا عَلَیْهِ، (معاف شویدے حُما دَ اُمت نه خطاء اوهیره اوهغه چه جبر (زور) پرے اوکړیشی) نو هر کله چه دا معاف دی نو دَ هغے دَ دُعا غوښتلو څه مطلب دے؟
جواب ۱:۔ دَ نسیان نه مراد پریښودل دَ فعل مامور بِهٖ دی په سبب دَ تاویل فاسد سره او مراد په خطا سره کول دَ یو فعل منهی عنه دی په تاویل فاسد سره (صاحب اللباب)۔
جواب ۲:۔ نسیان په دوه قسمه دے اول هغه دے چه صاحب دَ هغے معذور وی۔ لکه یو شخص پخپله جامه کښ پلیتی نه وی لیدلے او مونځ اوکړی۔ یا یو شخص همیشوالے کوی په تلاوت دَ قرآن باندے او سره دَ دینه دَ هغه نه قرآن لوستل هیر شی نو په دیکښ انسان معذوره دے۔ دویم قسم هغه دے چه په هغه کار

کښې معذوره نه وي لکه یو شخص په جامه یا بدن کښې پلیتي او ویني لیکن و ېنځل د هغې روستو کړي ترد ې پوره چه هیرشي تریته او مونځ په کښې اوکړي - یا د قرآن تلاوت او تکرار نه کوي تو هیرشي تریته په دے حال کښې دے قصور وار غیر معذور دے - تو د روستني شخص نه طلب د غفران (بخښنې غوښتلو) کیږے شي - دا رنګ د خطا اطلاق په عمداً ګناه یا ندے هم کیږے شي - دلته هغه مراد دے -

جواب ۳ :- دا دُعا د عفو د خطا او نسیان نه مخکښې ده نو دُعا قبوله شوه - نو د قبولیت د دُعا نه روستو په طریقه د ذکر د نعمت سره ذکر کیږي -

رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا ، اِصْر په اصل کښې ثقل او بوجهـ ته وئیلے شي او په معنیٰ د عهد او میثاق سره راځي لکه په سورة العمران ۸۱ کښې دي - ابوحیان نور اطلاقات هم ذکر کړيدي لکه هغه ګناه چه کفاره او توبه پکښې نه وي ، مسخ د شکلونو او د عذاب راتلل - دلته مراد هغه سخت اعمال او تکالیف او سزاګانې دي چه په ملت د بني اسرائیلو کښې مقرر وے - لکه پنځوس مونځونه په شپه او ورځ کښې ، زکوٰة کښې څلورمه حصه ورکول او د جامے نه پلیت ځائے لرے کول (پریکول) وغیره - قفال وئیلي دي چه د تورات په سفرخامس کښې د هغې تفصیلات موجود دي -

سوال :- دغه تکالیف خو الله تعالیٰ په دے اُمت باندے نه دي کیښودلي نو د دُعا کولو څه فائده ده ؟ -

جواب ۱ :- د دے دُعا نه روستو الله تعالیٰ هغه په دے اُمت کښې نه دي فرض کړي لکه په حدیث د مسلم کښې ذکر دي چه د دے دُعا په جواب کښې الله تعالیٰ اُوفرمائیل نعم - قد فعلت (ابن کثیر)

جواب ۲ :- د دے دُعا غوښتل په طریقه د ذکر د نعمت دي - یا د اصر نه مراد هغه ګناه دے چه توبے ترینه نه وي (توبه نه اُویاسي) یا بغیر د توبے نه نه معاف کیږي لکه شرک او کفر -

وَلَا تُحَمِّلْنَا نه مراد دا دے چه یا الله مونږ پے اُوساتے د دا سے

گناه کولو ته (سمعانی-اللباب)
كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا، بنا په اول احتمال د دیته مراد
یهودیان دی- او په دویم احتمال مخکښ مشران مشرکان مراد
دی که کتابی وی او که غیر کتابی وی-
رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَالَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ، غور ه داده چه د دیته مراد هغه
تکالیف او مصیبتونه دی چه په حق دعوت کولو کښ راځی لکه
چه په انبیاء علیهم السلام باندے راغلی دی- اگرچه هغه
د هغوی د طاقت سره مناسب وو لیکن د هر یو شخص د طاقت
او استطاعت اندازه جدا جدا وی د دے وجے نه یئے دلته د مخکښ
کسانو سره تشبیه ذکر نه کړه- او مالا طاقة لنا سخت
دے د اصر نه ځکه چه اصر د انسان په طاقت کښ کیدلے
شی د دے وجے نه اصر سره یئے حمل په تخفیف سره
ذکر کړو او دلته حمل په تشدید سره- یعنی د اصر حمل
ممکن دے او د مالا طاقة حمل امکان نه لری هغه
که راځی نو په تحمیل (حمل مجبوری) سره به راځی-
وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا، امام راغب او ابن کثیر
وئیلی دی چه انسان په باره د گناهونو کښ درے څیزونو
ته محتاج دے- اول عفو چه هغه د گناه عقوبت ساقط
کول دی- دویم مغفرت یعنی پرده اچول د دے د پاره
چه شرمندگی را نشی- دریم رحم یعنی نور احسانات
(نیکئ) کول او ځان د آئنده د پاره د گناه نه بچ ساتل-
او هر روستنے د مخکښ نه ابلغ دے-
سوال:- د دے سره یئے ربنا نه دے راوړے؟
جواب:- اوله وجه داده چه عرب په خپله محاوره کښ په
یو لفظ کښ تکرار د دریو ځلو نه زیات بد گنړی- بله
وجه داده چه هغه مخکښ درے فروع دی د پاره د
دے دریوارو-
عفو اصل دے د عدم مواخذے د پاره او مغفرت

اصل دے دَ مشقت لرے کولو دَ پاره - او رحم اصل دے
دَپاره دَ لرے کولو دَ عقوبات دُنیویه او اُخرویه۔
نو استجابت دَ مخکښ دریو مستلزم دے دَ دے دریواړو
استجابت لره -
اَنْتَ مَوْلٰىنَا ، دا په اصل کښ علت دے دَ ټولو دُعاګانو
دَپاره دَ دے وجے نه ئے بغیر دَ عطف نه ذکر کړو۔
یعنی موږ ستا نه دغه تیرے شوے دُعاګانے دَ دے
وجے نه غواړو چه ته زمونږ مولا ئے او مولا په خپلو
مریانو باندے رفق کوی - او دا رنګ دا یو خاص وسیله
ده دَ روستو جملے دَ پاره -
فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ، حرف دَ فَا دَ تاکید
دَپاره دے یعنی ولایت دَ الله تعالی مؤمنانو لره خامخا
مستلزم دے دَ نصرت کولو او دا جامعه او پوره دُعا ده
ځکه چه نصرت په کافرانو سبب دے دَ سلامتیا دَ فتنو
نه او دَ اشاعت دَ دین او دَ خائست دَ ژوند دُنیوی دَپاره۔
دا رنګ دا اشاره ده جهاد ته ځکه چه دَ اشاعت دَ احکامو
دَ دے سورت دَپاره دَ مخالفینو ( رکاوټ پیدا کؤونکو )
سره مناظرے کول او قتال کول ضروری دی او هغه په
نصرت دَ الله تعالی سره کیږی - او دَ نصرت نه مراد
دلته غلبه حاصلیدل دی - ابن کثیر دَ معاذ رضی الله
عنه نه دَ دے سورت په آخر کښ آمین لوستل نقل
کړی دی - ( آمین )
امتیازات دَ دے سورت :- ع۱ دا اول سورت دے
چه په مدینے طیبے کښ نازل شویدے او رد دے په
یهودیت باندے ۔ ع۲ دَ هجرت دَ نبی کریم صلی الله
علیه وسلم په اول وخت کښ چه کوم کسانو منافقت
کړے وو نو دَ هغوی اوصاف ئے ذکر کړی دی -
ع۳ ذکر دَ استخلاف دَ آدم علیه السلام او دَ تعلیم الاسماء

او سجود دَ ملائکو - ع۴ ذکر دَ خاص اوامرو او نواهیو دَ بنی اسرائیلو دَ خلافت دَ بقاء دَ پاره ع۵ ذکر دَ انعامات خاصوٌ په بنی اسرائیلو باندے په وخت دَ اتباع دَ موسیٰ علیه السلام کښ چه هغوی کړے وه. ع۶ دَ بنی اسرائیلو دَ هغه قبائحو ذکر چه سبب اوګرځیدو دَ پاره دَ نقل دَ نبوت او خلافت دَ هغوی نه بنی اسمٰعیلو ته - او دغه قبائح تقریباً پنځوس دی. ع۷ ذکر دَ امامت دَ ابراهیم علیه السلام او جوړول دَ هغه بیت الله لره. او دَ هغه دَ ملت خلاصه - ع۸ ذکر دَ تحویل قبله. ع۹ ذکر دَ امورو دَ تهذیب الاخلاق انفرادی، سیاسی او منزلی. ع۱۰ ذکر دَ اقسامو دَ طلاق، دَ عدت او دَ رضاع. ع۱۱ ذکر دَ واقعے دَ طالوت او جالوت. ع۱۲ ذکر دَ مثالونو دَ انفاق او دَ هغے شرطونه وغیره. ع۱۳ ذکر دَ حرمت دَ ربوا. ع۱۴ ذکر دَ عقد دَ مداینے او په هغے کښ تقریباً دیرش احکام. ع۱۵ ذکر دَ دلیلونو دَ توحید په کثرت سره (۵+۱۰+۱۰) هغه په درے انواعو سره دیو استدلال په اعیانو دَ موادو دَ تربیت - دویم استدلال په کیفیاتو دَ اعیانو او دریم استدلال په اسماؤ صفاتو دَ الله تعالیٰ سره. ع۱۶ اثبات دَ رسالتِ رسول په دفع دَ خاص شبهاتو سره. ع۱۷ ذکر دَ توحید دَ دعوے په څلورو تعبیراتو سره. اعبدوا ربکم، لا اله الا هو الرحمٰن الرحیم، الله لا اله الا هو او لله ما فی السمٰوات و ما فی الارض - ع۱۸ ذکر دَ اتو مثالونو درے په اول کښ یو په مینځ کښ او څلور په آخر کښ. ع۱۹ ذکر دَ حکم دَ خمر (شرابو)، جواری کول، نکاح او حیض - ع۲۰ رد په مظالمو او رسمونو دَ جاهلیت باندے.

---

الحمد لله دَ سورت بقره تفسیر (حما دَ کم علم مطابق) ختم شو دَ الله تعالیٰ نه دُعا ده چه حما ټولے خطایانے او ګناهونه معاف کړی - او الله تعالیٰ دا تفسیر پخپل دربار کښ قبول او ګرځوی (آمین)

سورة آل عمران مدنية | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | مِائَتَا اٰيَةٍ وعشرون رکوعا

خاص په نوم دَ الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښ چه رحمٰن او رحيم دے.

الٓمّٓ ﴿۱﴾ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الۡحَیُّ

الله تعالیٰ دَ دے په مراد پوهه دے - الله تعالیٰ نیشته حقدار دَ بندګئ سِوا دَ هغه نه هميشه ژوندے دے

الۡقَيُّوۡمُ ﴿۲﴾ نَزَّلَ عَلَيۡكَ الۡكِتٰبَ

دَ دنيا نظام چلوونکے دے - نازل کړے دے په تا باندے کتاب

بِالۡحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيۡنَ يَدَيۡهِ

په رشتيا سره تصديق کوونکے دے دَ هغه کتابونو چه مخکښ دَ ده نه دی

وَاَنۡزَلَ التَّوۡرٰىةَ وَالۡاِنۡجِيۡلَ ﴿۳﴾

او نازل کړے دے تورات او انجيل

## سورة آل عمران

### بسم الله الرحمٰن الرحيم

دَ دے سورت نور نومونه :- آلوسی او قرطبی ذکر کړی دی چه دے سورت ته طيبه، الزهرا، امان دَ مارانو نه، خزانه دَ مسکين دَ پاره، معينه، مجادله، سورة الاستغفار هم وائي - او وجوه دَ نوموتو المهائمی په تبصير الرحمن کښ ذکر کړی دی - او مشهور نوم ئے آل عمران دے ځکه چه په دے سورت کښ حال دَ عمران دے چه پلار دَ مريم عليها السلام وو - او آل دَ هغه چه بی بی او لورئے دی او خينه دَ هغه بی بی دَ زکريا عليه السلام وه او کفالت کوونکے دَ مريم عليها السلام چه زکريا عليه السلام وو - او ځوئے دَ زکريا عليه السلام چه يحيیٰ عليه السلام وو -

دَ دے ټولو حالات پکښ ذکر دی۔ او په دیکښ رد دے په شبه دَ نصاراؤ په باره دَ مریم علیها السلام او ځوئي دَ هغې کښ چه عیسیٰ علیه دے او دوی آل عمران وو۔
غوره قول دا دے چه دا سورت دَ سورۃ الانفال نه روستو نازل شوید ے ځکه چه په سورت انفال کښ واقعه دَ بدر ذکروه چه هغه په دویم کال دَ هجرت دَ رمضان په میاشت کښ واقع شوے وه او په دے سورت کښ واقعه دَ غزوه احد ذکر ده چه هغه په دریم کال دَ هجرت دَ شوال په میاشت کښ واقع شویوه۔ په دغه وخت کښ دوه لوے واقعات پیښ شوے وو۔ یو واقعه دَ وفد دَ نجران چه مدینے طیبے ته دَ مناظرے کولو دَ پاره راغلے وو۔ او دوی په هغه وخت کښ پاخه نصارا وو۔ په دوی کښ ډیر مشهور راهبان وو او دوی په نجران کښ دَ مسیحیت کعبه جوړه کړیوه۔ دوی شپیته کسان وو او دَ امیر نوم ئے عاقب وو۔ او دَ دوی منتظم ایهم نومید و۔ هر کله چه دوی دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره مناظره اوکړه او دَ عیسیٰ علیه السلام په باره کښ شبهات ذکر کړل نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم دویته جوابونه ورکړل ( دَ هغے تفصیلی ذکر مهاځمی په تبصیر الرحمان کښ کړیدے) لیکن دوی انکار کوو نو بیا ئے ورته دَ مباهلے دعوت ورکړو۔ دوی دَ هغے نه ځان په چل او طریقے سره بچ اوساتلو۔ نو دَ هغوی په باره کښ څه دَ پاسه اتیا آیتونه نازل شول۔ او دویمه واقعه دَ غزوه اُحد وه نو روستو حصه دَ هغے په باره کښ نازل شویده۔
ربط دَ سورۃ بقره سره :- هغه په ډیرو وجوهو سره دے۔ ع۱ سورۃ بقره کښ اقامت دَ حجت وو په توحید او رسالت باندے نو په دے سورت کښ ازاله دَ شبهاتو ده په باره دَ دغه دواړو کښ۔ ع۲ محکښ سورت کښ رد

وو په یهودیانو باندې او په دې سورت کښ رد دې په
نصاراؤ باندې ع۳ څلور مقاصد چه په سورت بقره کښ
وو (توحید، رسالت، جهاد او انفاق) په یو طریقے سره
نو په دې سورت کښ هغه په بل طریقے سره ذکر دی
ع۴ په دې سورت کښ تشریح ده دَ بعضے امورو اجمالیه
دَ سورة بقره - اول دا چه هلته ذکر وو (وقودها الناس)
نو په دې سورت کښ دے ان الذین کفروا تر اُولئِك
هم وقود النار پورے - دویم دا چه په هغه سورت
کښ کفر دَ کتابیانو بغیًا ذکر وو نو په دے سورت کښ
ئے اختلاف بغیًا ذکر دے په آیت ۱۹ کښ - دریم
دا چه په مخکښ سورت کښ زُیِّنَ لِلَّذِیْنَ کَفَرُوا الحیٰوة
الدنیا ذکر وو نو په دے سورت کښ ئے زُیِّنَ لِلنَّاسِ
حُبُّ الشَّهَوَاتِ ذکر کړو په ۱۴ کښ - څلورم دا چه په هغه
سورت کښ امامت دَ ابراهیم علیه السلام ذکر وو او په دے
سورت کښ اصطفاء دَ آدم، نوح او دَ آل ابراهیم او
آل عمران علیهم السلام ذکر ده - پنځم دا چه په هغه
سورت کښ دَ جهنم دَ اُور په باره کښ اُعِدَّتْ لِلْكَافِرِیْنَ
ذکر وو نو په دے سورت کښ دَ جنت په باره کښ اُعِدَّتْ
لِلْمُتَّقِیْنَ ذکر دے په ۱۳۳ کښ - شپږم دا چه په هغه
سورت کښ قولوا امنا بما انزل الینا ذکر وو نو په دے
سورت کښ قل امنا بما انزل الینا ذکر دے په آیت
۸۴ کښ - اووم دا چه په هغه سورت کښ دُعا دَ ابراهیم
علیه السلام ذکر وه په باره دَ آخری نبی کښ - رَبَّنَا
وَابْعَثْ فِیْهِمْ رَسُوْلًا آه - نو په دے سورت کښ دَ
هغه دَ رسالت احسان ذکر کوی په مؤمنانو باندے په
لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِیْنَ سره په ۱۶۴ کښ - اتم دا
چه هلته ربوا کول دَ کافرانو عمل او امر ذکر وو مؤمنانو
ته دَ ربوا په پریښودلو نو په دے سورت کښ ئے نهی

ذکر کړه دَ مؤمنانو دَ ربو کولو نه په ۱۳۰ کښې. نهم داچه
په هغه سورت کښې دَ منافقانو دَ صفاتو ذکر وو چه هغه
متعلق وو دَ هجرت دَ زمانے سره. نو په دے سورت
کښې دَ هغوی دَ هغه صفاتو ذکر دے چه متعلق وو دَ
غزوه اُحد سره. لسم داچه هلته په اول دَ سورت
کښې دَ متقیانو دَ صفاتو ذکر وو نو دلته ئے دَ سورت په
مینځ کښې دوه درجے دَ متقیانو ذکر کړیدی په ۱۳۴، ۱۳۵
کښې. یؤولسم داچه هلته ئے جوړول دَ بیت الله ذکر
کړیدی. نو په دے سورت کښې دَ هغے اولیت او حکم
دَ حج ذکر کړیدے په ۹۶، ۹۷ کښې. دولسم دا چه
په هغه سورت کښې دَ اهل کتابو قبائح ذکر شول نو په دے
سورت کښې منع ده دَ هغوی دَ طاعت کولو نه په آیت ۱۰۰
کښې. دیارلسم داچه دَ هغه سورت اختتام په دُعا سره
وو نو دَ دے سورت اختتام هم په دُعا سره دے.
دعوٰی دَ سورت :. په دیکښې اثبات دَ توحید دے او خصوصًا
رد دے په شرک دَ نصاراؤ باندے په لس وجوهو سره.
اوله وجه، مختلف تعبیرات دی دَ توحید دَ مسئلے په اته
آیاتونو کښې او ورسره درے کرته تفریع دَ توحید ده
(۲-۶ (تف) - ۱۸ (رد - تف) - ۲۶ - ۲۷ - ۵۱ - ۶۲ (تف) ۶۴ - ۱۰۹
۱۲۹ - ۱۸۹) دویمه وجه، دفع دَ شبهاتو دَ نصاراؤ ده
په باره دَ عمران، بی بی دَ عمران، لور دَ عمران چه
مریم علیها السلام وه او په باره دَ زکریا علیه السلام
کښې په ذکر دَ عجز او عبدیت دَ هغوی سره تو هغوی
آله نشی کیدے. او په باره دَ ابراهیم علیه السلام
کښې چه دَ هغه په ملت (دین) کښې شرک نه وو. دا
ټول شپږ شبهات وو او دَ هر یو دفعه او شوه. دریمه
وجه، ذکر دَ اقوالو دَ راسخینو (دلائل نقلیه په توحید
باندے) قول دَ ښځے دَ عمران په آیت ۳۵ کښې.

قول دَ مریم علیها السلام په ۳۷ کښې. قول دَ زکریا علیه السلام په ۳۸ کښې قول دَ عیسیٰ علیه السلام په ۵۰ کښې. او قول دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په ۶۴ کښې. او قول دَ صحابه کرامو په ۱۸۳ کښې.

څلورمه وجه، رد په بعضے اقسامو دَ شرک باندے. شرک فی العلم په ۵، ۲۹، ۴۴، ۱۱۹ او ۱۵۴ کښې. شرک فی التصرف په ۶، ۲۶، ۲۷، ۴۸، ۱۰۹، ۱۲۹، ۱۶۰ او ۱۸۹ کښې. شرک فی العبادات په ۵۱ او ۶۴ کښې.

پنځمه وجه، ذکر دَ قبائحو دَ منکرینو دَ توحید دَ اهل کتابو نه په ۶۹، ۷۰، ۷۱، ۷۲، ۷۳، ۷۵، ۷۷، ۷۸، ۸۶، ۹۴، ۹۸ او ۹۹ کښې.

شپږمه وجه، اثبات دَ صدق دَ رسول چه دعوت دَ توحید ئے کړیدے په جواب دَ درے شبهاتو سره. یو په باره دَ حل او حرمت کښې په ۹۳ کښې بل په ۹۶ کښې دَ بیت الله په باره کښې. او دریم دَ هزیمت اُحد په باره کښې. او جواب دَ دوستنئ شبهے په ذکر دَ دیار لس علتونو دَ هزیمت سره دے.

اوومه وجه، ذکر دَ عقلی، نقلی او وحی دلیلونو په اختصار سره په ۲، ۳، ۵، ۶، ۱۸، ۲۶ او ۲۷ کښې.

اتمه وجه، ذکر دَ لس صفاتو دَ مؤحدینو چه اولوالباب دی په آخر دَ سورت کښې.

نهمه وجه، منع کول دَ موالات (دوستانے) دَ منکرینو دَ توحید نه که ظاهرًا منکرین وی لکه په ۲۸ او ۱۰۰ کښې او که باطنًا منکرین وی لکه په ۱۱۸، ۱۴۹ او ۱۵۶ کښې.

لسمه وجه، ذکر دَ اسماء حسنیٰ دَ الله تعالیٰ دَ توحید دَ معرفت دَ پاره چه هغه پکښې شپږ ویشت ذکر دی بغیر دَ تکرار نه.

خلاصه دَ سورت:- (اجمالي خلاصه) اول اثبات دَ توحید او رد په شبهاتو دَ نصارٰؤ بیان دے (دَ باره دَ اثبات دَ الوهیت دَ عیسیٰ علیه السلام) او بیا دعوت دَ توحید په واسطه دَ آخری رسول صلی الله علیه وسلم اهل کتابو ته۔ او ذکر دَ قبا حتونو دَ هغوی۔ او په آخر کښې منع دَ دوستانے ده دَ هغوی نه۔ بیا خطاب په یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا سره او په هغې کښې ذکر دَ څلورو قوانینو دَ تاسیس دَ تنظیم دَ مؤحدینو او دَ جهاد دَ پاره۔ او تفریع دَ واقعے دَ بدر او اُحد په هغه قوانینو بیان دے۔ بیا ذکر دَ آدابو دَ تهذیب دَ نفوسو دے چه هغه یو دیرش دی۔ او جوابونه دَ هزیمت دَ شبهے په اُحد کښې۔ او په آخر کښې بیا زجرونه دی په قبا حتو دَ کتابیانو بیان دے۔ او اختتام په ذکر دَ اولوالالباب۔ او دَ هغوی صفات او دُعا گانے۔

تفصیلي خلاصه:۔ په دے سورت کښې څلور حصے دی اوله حصه تر آیت ۶۳ پورې ده هغه په باره دَ اثبات دَ توحید کښې ده په رد دَ شبهاتو سره۔ او په دے حصه کښې درے بابونه دی۔ اول باب تر آیت ۱۷ پورې دے۔ په دے باب کښې دعوٰی دَ توحید ده او په هغې بیان دے دلیلونه دی عقلی، وحی او نقلی۔ او تفریع دَ توحید ده تر آیت ۲۶ پورې۔ بیا جواب دے دَ هغه چا چه دلیل نیسی په متشابهاتو سره دَ پاره دَ اثبات دَ الوهیت دَ عیسیٰ علیه السلام دَ پاره (او نورو مشرکینو او مبتدعینو) بیا تعلیم دَ دُعا دَ تثبیت دے په دا سے وخت کښې تر آیت ۹ پورې۔ بیا تخویف اُخروی دے په ۱۰ کښې۔ او تخویف دُنیوی دے په ذکر دَ مخکنو مکذبینو سره په ۱۱ کښې۔ او تمثیل دے په ذکر دَ بدر والو سره دَ پاره دَ عبرت په ۱۲ کښې۔ بیا تذلیل دَ دُنیا او ترغیب دے آخرت ته په ذکر دَ بشارت اُخرویه سره۔ او هغه صفات ذکر دی چه په هغې سره جنت حاصلیږی په ۱۷ کښې۔

تفسير ۱: الٓمٓ، دَ دے تشریح دَ سورة بقره په ابتداء کښ تیره شویده - او په سورت بقره کښ دا دَ پاره دَ تحدی او دَ پاره دَ اظهار دَ اعجاز دَ قرآن دے په مقابله دَ یهودیانو کښ او دلته په مقابله دَ نصاراؤ کښ دے - او دا دلیل دے چه کلام په داسے مقطعاتو سره شروع کول مشهور عادت وو په تیز دَ کتابیانو او عوامو مشرکانو - دَ دے وجے نه هغوی په قرآن کریم کښ دَ دے مقطعاتو په باره کښ هیڅ اعتراض نه دے کړے.

۲: دا دعوی دَ توحید ده په مقابله دَ ټولو مشرکانو کښ خصوصًا په مقابله دَ نصاراؤ دَ نجران کښ - چه هغوی دَ عیسیٰ او مریم علیهما السلام دَ الوهیت عقیده لرله - اَللّٰهُ، یو قول دا دے چه دا مبتداء ده او نَزَّلَ عَلَیْكَ الْكِتَابَ خبر دے - او په میځ کښ جمله معترضه یا حالیه ده - او دویم قول دا چه دا مبتداء ده او لا اله الا هو خبر دے - لفظ دَ عَلَمْ (الله) ئے ذکر کړو دَ زیادت تخصیص دَ پاره او دَ هیبت پیدا کولو دَ پاره په زړونو دَ اوریدونکو کښ -

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ، یعنی داسے الٰه چه پاک دے دَ حلول او اتحاد نه او وجود دَ هغه بالذات دے په خپل وجود کښ هیچا ته محتاج نه دے - نو هغه صرف الله تعالیٰ دے عیسیٰ او مریم علیهما السلام ورسره شریک نشی کیدلے.

اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ، دا بدل دے دَ هُوَ نه - یا خبر دے دَ مبتداء محذوف - یا دویم خبر دے دَ لفظ الله دَ پاره. او دَ دے تفسیر په آیت الکرسی کښ تیر شویدے - او دَ دے دواړو صفتونو تخصیص ئے په دے وجے سره او کړو چه الوهیت (حقه) مقتضی دَ صفاتو دَ کمال دے او اول او جامع دَ دے صفتونو حیات دے - چه علم، اراده، سمع، بصر، قدرت او کلام په حیات بانددے

موقوف دی او دویم دا چه ټول کمالات د مخلوق د الله تعالیٰ د طرف نه دی - او دا معنیٰ د قیومیت ده - او عیسیٰ او مریم علیهما السلام کښ دا صفات نیشته - ځکه چه مخکښ پیدا نه وو بیا پیدا شو د مور نه او بیا ور باندے مرګ راغے په قول د نصاراؤ سره - یا به ور باندے مرګ روستو راځی په نیز د اهل حق - او ټول کمالات پکښ بالذات نه وو ځکه هغه قائم بالذات نه وو بلکه پخپل وجود کښ الله تعالیٰ ته محتاج وو -

۳ :- دا دلیل وحی دے د پاره د دعوے د توحید یعنی نبی صلی الله علیه وسلم دا د ځان نه نۀ ده جوړه کړے بلکه د الله تعالیٰ د طرف نه نازل شوی ده - او نَزَّلَ په باب تفعیل سره دلالت کوی په قوت د فعل باندے په اعتبار د کیفیت یا کمیت (مقدار) سره - او باب افعال صرف د تعدیب د پاره دے - دلته د قرآن په باره کښ نَزَّلَ او د تورات او انجیل په کښ اَنْزَلَ دلالت کوی په تقویت د نزول د قرآن باندے د پاره د عظمت د شان د قرآن او کوم فرق د تنزیل او انزال چه زمخشری کړے دے چه اول دلالت کوی په لږ لږ نازلولو او دویم دلالت کوی په یو کرت نازلولو باندے نو په هغے باندے ابوحیان او ابن عاشور رد کړے دے -

اَلْکِتَابَ ، دلته الف لام عهدی دی - یا الف لام جنسی دی - لیکن مراد په جنس سره فرد کامل دے چه قرآن دے - اشاره ده کمال د قرآن کریم ته -

بِالْحَقِّ ، باء د ملابست د پاره ده یعنی قرآن په اعتبار د الفاظو او معانو سره مشتمل دے په حق باندے - قرطبی وثیلی دی چه بالحق د نزل سره نه دے متعلق بلکه حال دے د الکتاب نه - او حق په معنیٰ د صدق یا په معنیٰ د حجت غالبه سره دے -

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ، د دے تفسیر مخکښ تیر شویدے او دا دویم حال دے د الکتاب نه - مهائمی وئیلی دی چه د تصدیق نه مراد تعریف او اخبار دے د صدق د مخکنو کتابونو- او ابو مسلم وئیلی دی چه د تصدیق نه مراد موافقت دے یعنی مخکنو انبیاؤ دعوت کړیدے توحید او ایمان ته او منع یئے کړیده د شرک نه. او قرآن هم په دے باندے مشتمل دے-

وَأَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْإِنْجِيْلَ، دا دلیل نقلی دے د اثبات د دعوے د توحید د پاره او دا هم تصدیق د قرآن دے مخکنو کتابونو لره. التَّوْرٰىةَ کښ دوه قولونه دی- اول قول دا دے چه دا د عبرانی لغت کښ طورا دے په معنی د هدایت باندے او یهودیان دیته سِفر طورا وائي- نو عربي لغت ته د نقل په وخت کښ الف لام پکښ داخل شول او طاء یئے په تاسره بدل کړه- دویم قول دا دے چه دا عبرانی موافقت دے د عربئ ژبے سره- او دا اخستلے شویدے د وَرْی نه (اُور راویستل د کټو مرلونه په بوبل پورے) نو دلالت کوی په معنی د رڼرا باندے- او د دے وجے نه تورات ته ضیاء وئیلے شویده په سورة انبیاء کښ-

الْإِنْجِيْلَ کښ هم دوه قولونه دی- اول قول دا دے چه دا لفظ یونانی دے (سریانی لفظ چه چا وئیلے دے نو غلط شویدے) او هغه په یونانی لغت کښ انکلیون (اثانجیلیوم) په معنی د خبر طیب وو- یا د (انیلیون) په معنی د لفظ فصیح دے او دا نوم د هغه وحی دے چه عیسیٰ علیه السلام ته شوے وه- او د هغه اصحابو را جمع کړیده (او روستو پکښ تحریف شوے دے) دویم قول دا دے چه دا اخستلے شویدے د نجل نه اصل ته وئیلے شی یا هغه اُوبه چه را اُوځی د زمکے نه- یا وسعت ته وئیلے شی. قرطبی د دے تحقیق کړیدے- او قاسمی وئیلی دی چه تورات په عبرانئ ژبه کښ شریعت ته وئیلے شی او انجیل په یونانی لغت کښ زیری او خائسته خبر ته وئیلے شی- او هغه وئیلی دی چه دا حق قول دے او نقل دے د علماؤ د کتابیانو نه-

مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ

مخکښ د دے قرآن نه هدایت (د توحید) د پاره د خلقو او نازل کړے دے

الْفُرْقَانَ ؕ اِنَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا

جدا کوونکی د حق او باطل (نور صحیفے او وحی) یقیناً هغه کسان چه کفر ئے کړے دے

بِاٰیٰتِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِیْدٌ ؕ

په آیاتونو د الله تعالیٰ دوی لره عذاب سخت دے

وَاللّٰهُ عَزِیْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ④

او الله تعالیٰ زورآور بدله اخستونکے دے.

سے ۴:۔ مِنْ قَبْلُ، دا متعلق دے په انزال پورے یا حال دے د التوراة والانجیل نه۔ او مراد تری نه مخکښ د دے زمانے نه یا مخکښ د قرآن نه۔ او په دے لفظ راوړلو کښ دوه فائدے دی۔ اوله فائده دا ده چه معلومه شی چه د تورات او انجیل هدایت د قرآن کریم نه روستو باقی پاتے نه دے هغه په مخکښ زمانے پورے خاص وو۔ دویمه فائده دا ده چه نازلیدل د تورات او انجیل په اصل کښ مقدمه ده د قرآن د نزول د پاره او په قرآن کښ اصل مقصد دے۔

هُدًى لِّلنَّاسِ، دا دویم حال دے د التوراة والانجیل نه۔

سوال:۔ په سورة الاسراء سے ۲ کښ دی چه تورات صرف د بنی اسرائیلو د پاره هدایت دے او دلته ئے لِلنَّاس وئیلی دی؟

جواب ۱:۔ په دے کښ الف لام عهدی دی یعنی صرف یهود او نصارٰی۔

جواب ۲:۔ دلته استغراق عرفی مراد دے یعنی غیر د بنی اسرائیلو نه که چا اراده کړیده د هدایت حاصلولو د

تورات او انجیل نه نو هغوی ته هم هدایت حاصل شویو.
هاں په دے لفظ کښې اهل قرآن نه دی داخل په قرینه د هغه نصوصو سره چه دلالت کوی په ناسخیت د مخکنو کتابونو سره.

جواب ۳ه :- د هدایت نه مراد هدایت د اصولو د ایمان دے او په هغې کښې ټول کتابونه الهیه متفق دی.

وَ اَنْزَلَ الْفُرْقَانَ، دا هم دلیل نقلی دے د مخکښې کتابونو او صحیفونه چه سیوا د تورات او انجیل نه وو. د دے لفظ تحقیق د سورة بقره آیت ۵۳ په تفسیر کښې تیر شوید ے. دلته په مراد د فرقان کښې ډیر اقوال دی. امام رازی په دیکښې څلور اقوال ذکر کړیدی. اول قول دا چه مراد په دے سره زبور کتاب دے. دویم قول دا دے چه مراد په دے سره قرآن دے. د تعظیم د شان د دهٔ او د مدح د پاره ئې په دے صفت سره دوباره ذکر کړو. بل د دے د پاره چه د تورات او انجیل نه ئې روستو ذکر کړو چه یهود او نصاراؤ هر کله اختلاف کړیدے نو د هغوی د فیصلے د حق او باطل د پاره قرآن کریم دے. دریم دا چه مراد په دے سره دغه درے کتابونه دی لکه چه هغه هدایت دے نو دا رنګ فرق راوستونکی دی په مینځ د حق او باطل کښې. بیا امام رازی دا درے واړه اقوال ضعیف کړی دی او څلورم قول ئې ذکر کړیدے او هغه ئې غوره کړیدے چه مراد په دے سره معجزات دی چه هغه دغه انبیاء علیهم السلام ته سرهٔ د کتابونو نه ورکړے شوی دی او هغه معجزات تائید دے د دغه کتابونو د پاره. ابن جریر پنځم قول ذکر کړیدے چه مراد په دے سره فصل دے په مینځ د حق او د باطل کښې په هغه خبرو کښې چه ډلو د نصاراؤ په هغې کښې اختلاف کړیدے په باره د عیسیٰ علیه السلام او نورو څیزونو کښې. ابن کثیر

شپږم قول (عام) ذکر کړیدے چه مراد هغه حجتونه، بینات، واضح دلیلونه او یقیني براهین دي چه الله تعالی ئے بیانوي دپاره د فرق په مینځ د حق او باطل او هدایت او ضلال کښ. او قاسمي اووم قول ذکر کړیدے چه په دے سره مراد میزان دے لکه چه په سورة حدید ۲۵ کښ ذکر دی. او مهائمي اتم قول ذکر کړیدے چه دے سره مراد اقامت د دلیلونو او رفع د شبهاتو ده چه په مخکنو کتابونو او په دے کتاب کښ ذکر دی. او نیشاپوری نهم قول ذکر کړیدے چه مراد په دے سره جنس آسماني کتابونه دي ځکه چه هغه ټول فرق راولي په مینځ د حق او باطل کښ او دا قول زمخشري هم ذکر کړیدے. او سمعاني لسم قول ذکر کړیدے چه هر هغه خیز (کتاب، صحیفه، معجزه) چه الله تعالی نازل کړیدے نو هغه فرق راولي په مینځ د حلال او حرام کښ او هغه فرقان دے.

تنبیه:- په دے ټولو اقوالو کښ منافات نیشته ټول مراد کیدے شي د وجے د تعمیم د لفظ نه لیکن ځما په نیز غوره دا ده چه تصریح او کړے شي په ذکر د صحیفو د انبیاؤ مخکنو باندے د درے وجو نه. اوله وجه دا ده چه قول د نیشاپوری، زمخشري او سمعاني دیته شامل دے. دویمه وجه دا ده درے کتابونه قرآن، تورات او انجیل مخکښ ذکر شو نو دا لفظ نورو صحیفو ته اشاره کیدے شي. او د زبور د اراده په باره کښ امام رازي تردید کړیدے چه په هغے کښ احکام نه وو چه فرق راولي د حق او باطل او په صحیفو مخکنو کښ معلومیږي چه احکام او دلیلونه موجود وو د پاره د فرق د حق او باطل په قرینه د سورة نجم ۳۶، ۳۷ او سورة اعلی ۱۸ سره.

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَخْفٰى عَلَيْهِ شَيْءٌ

يقيناً الله تعالىٰ نه شي پټ كيدے په هغه باندے هيڅ څيز

فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ﴿۵﴾

په زمكه كښ او نه په آسمان كښ

دريمه وجه دا ده چه لفظ فرقان په لغت كښ هغے ته شامل دے۔ او تخصيص د اقوالو مخكښو د پاره نص صريح او حديث صحيح مرفوع نيشته۔

إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ، دا جمله مستانفه ده په ذكر د تخويف سره د پاره د مخالفت كوونكو د نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ، او په الذين كفروا كښ مشركين او يهودو نصارٰى او خاص كر نصارٰى د نجران داخل دى۔ او په آيات الله سره مراد دلته قرآن كريم دے۔ يا هغه آيات چه په تورات او انجيل كښ وو مخكښ د تحريف نه نو كفر تحريف كولو ته هم شامل دے۔

لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ، جزاء د جنس د عمل نه وى يعنى هر كله چه كفر د كتابيانو شديد دے نو د هغوى عذاب هم شديد دے۔

وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُوانْتِقَامٍ، اشاره ده چه دغه مشركان په شرك د الله تعالىٰ كښ په صفت د عزت پورے استهزاء كوى ځكه ورله سخته سزا وركوى۔ انتقام عذاب دے په اعتداء كولو باندے سره د غضب نه او په نقمت كښ معنىٰ د كراهيت هم وى او معنىٰ د بدل اخستلو هم وى۔ يعنى دغه مشركانو د الله تعالىٰ د بے عزتئ ارادے سره سره د هغه توحيد او اصحاب توحيد هم بدګنړلى دى د دے وجے نه الله تعالىٰ دوى له انتقامى سزا وركوى۔ او لفظ د ذو دلالت كوى په ملكيت باندے نو دا انتقام د الله په مِلك او اختيار كښ دے د هغه نه د دے

هُوَ الَّذِیۡ یُصَوِّرُکُمۡ فِی الۡاَرۡحَامِ

خاص هغه داسے ذات دے چه شکل جوړوی ستاسو په بچه دانے د مائندو کښ

کَیۡفَ یَشَآءُ ؕ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

چه څه رنګ او غواړی نیشته حقدار د الوهیت سوا د هغه نه

الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ ﴿۶﴾

زورآور حکمتونو والا دے۔

صفت زوال نه کیږی۔

۵ :. دا دلیل عقلی علمی دے د پاره د دعوے د توحید او ورسره رد د شرک فی العلم دے۔ او دا صفت د علم ئے په طریقه د نفی سره راوړے دے لکه په سورة ابراهیم ۳۸ کښ۔ ځکه دا صفت په دے تعبیر سره نصارٰی په عیسٰی علیه السلام کښ نه شی ثابتولے۔ لکه چه مفسرینو لیکلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم د هغوی نه داسے تپوس کړے وو په باره د عیسٰی علیه السلام کښ او هغوی چپ شول۔ او شیءٌ نکره په سیاق د نفی کښ د عموم د پاره ده او فی الارض ولا فی السماء کښ نور عموم د مکانونو ذکر دے او مراد د ارض نه عالم سفلی دے چه په هغے کښ دریابونه داخل دی۔ او مراد د سماء نه جنس آسمانونه دی یعنی عالم علوی۔ او ارض ئے د دے وجے نه مخکښ ذکر کړو چه انسان ته د زمکے د بعضے څیزونو علم ورکړے شوے دے۔ او د آسمانونو سره د انسان علم په هیڅ طریقه سره تعلق نه لری۔

۶ :. مخکښ آیت کښ بیان وو د وصف د اَلۡحَیُّ نو په دے آیت کښ بیان دے د معنٰی د قیومیت۔ او دا بل دلیل عقلی دے د اثبات د توحید د پاره۔ او دلته د قیومیت نه ئے تصویر فی الارحام خاص کړو په ذکر سره ځکه چه

هُوَ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتٰبَ

خاص الله تعالیٰ دا سے ذات دے چه نازل کړیدے په تا باندے کتاب

مِنْهُ اٰیٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ هُنَّ اُمُّ

چه بعضِ دَ هغے نه آیاتونه ښکاره معنیٰ والا دی دغه اصل دے

الْكِتٰبِ وَ اُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ؕ فَاَمَّا

دَ ټول کتاب او نور ایاتونه پټے معنے والا دے توهر چه

الَّذِیْنَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ زَیْغٌ

هغه کسان دی چه په زړونو دَ هغوی کښ کوږ والے دے

فَیَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ

نو تابعداری کوی دَ هغه (آیاتونو) چه پټے معنے والا دی دَ دے نه

ابْتِغَآءَ الْفِتْنَةِ وَ ابْتِغَآءَ تَاْوِیْلِهٖ ۚ

دَ پاره دَ طلب کولو دَ فتنے او دَ پاره دَ طلب دَ حقیقت دَ هغے

وَ مَا یَعْلَمُ تَاْوِیْلَهٗۤ اِلَّا اللّٰهُ ؔۘ وَ

او نه پوهیږی په حقیقت دَ هغے باندے مگر الله تعالیٰ او

دا ډیره عجیبه نښه (دلیل) دَ الله تعالیٰ دَ قدرت ده - او رد دے
په نصاراؤ باندے چه دَ عیسیٰ علیه السلام دَ شکل
تصویر په رحم (بچه دانئ) دَ مور کښ الله تعالیٰ دَ خپل
مشیت موافق جوړ کړیدے نو هغه خو اِله نشی کیدے.
او هر کله چه دَ عیسیٰ علیه السلام پلار نه وو دَ دے وجے
نه تصویر فی الصلب ئے نه ذکر کړے - او تفسیر دَ تصویر
فی الارحام په سورة حج ۵ او په سورة مؤمنون کښ
دَ آیت ۱۳ نه او سورت زمر ۶ کښ دے - کَیْفَ یَشَآءُ،
یعنی خائسته شکل او قبیح او بد شکل، تور او سپین،

الرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ يَقُوْلُوْنَ

پاخه خلق په علم (دَدین) کښ دائی دوی

اٰمَنَّا بِهٖ ۙ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا ۚ

ایمان راوړے مونږ په هغې باندې داټول دَ نیز دَ الله تعالیٰ نه دی

وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ⑦

او نصیحت نه اخلی مګر صفا عقل والا۔

اوږد او لنډ، پوره اندامونو والا او نیمګړے اندامونو والا وغیره۔

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ، دا نتیجه ده دَ مخکښ دلیلونو دَ پاره۔ مراد په مقام دَدعوی کښ الوهیت په معنیٰ دَ حقدار دے دَ هر قسم بندګۍ۔ او مراد په دے نتیجه کښ الوهیت په معنیٰ دَ متصف دے په صفت دَ حیات او قیومیت باندے۔ او انزال دَ کتابونو او علم په هر څیز او تصویر ورکول او نور صفات دَ تصرف دی۔

اَلْعَزِيْزُ، اشاره ده ټولو صفاتو دَ تصرف ته او اَلْحَكِيْمُ کښ اشاره ده ټولو صفتونو دَ علم ته او دا خلاصه ده دَ عقلی دلیلونو۔

ک :۔ ربط :۔ دَ مخکښ آیت سره په دریو طریقو سره دے۔ اوله طریقه دا ده چه دَ نجران نصاراؤ دَ خپلے عقیدے دَ ابن الله او دَ الوهیت دَ عیسیٰ علیه السلام دَ پاره دَ قرآن کریم په بعضے الفاظو باندے دلیل نیولو چه په قرآن کریم کښ دَ عیسیٰ علیه السلام په صفت کښ کلمة الله، وروح منه او داسے دَ الله تعالیٰ په باره کښ صیغه دَ جمع او دَ نحن الفاظ راغلی دی نو روح منه دلالت کوی چه دَ دهٔ روح جزء دے دَ الله تعالیٰ نو دَ دے وجے نه ابن الله دے او جمع دلالت کوی چه اله درے دی (الله، عیسیٰ، مریم)، او یحی الموت لفظ دلالت

کوی چه عیسیٰ علیه السلام متصرف الله وو۔ نو د دے شبهے په جواب کښ دا آیت نازل شو۔ حاصل د جواب دا دے چه په کتاب د الله تعالیٰ کښ دوه قسمه آیاتونه دی۔ نو محکمات پریښودل او په متشابهاتو پسے عمل کول د اهلِ زیغو کار دے۔ دویمه طریقه دا ده چه مخکښ صفت د قیومیت ذکر شو چه قیام دے په مصالحو د بندګانو پسے او مصالح دوه قسمه دی۔ اول قسم جسمانی مصالح هغه په یصورکم سره ذکر شول۔ دویم قسم روحانی مصالح دی نو هغه په دے آیت کښ ذکر کوی۔ دریمه طریقه دا ده چه دا تاکید او تفصیل دے د اَنۡزَلَ عَلَیۡكَ الۡكِتٰبَ، په طریقه د تقسیم او د استدلال سره او بیان کیږی لوړ د دوه قسمه علماؤ سره۔

هُوَ الَّذِیۡۤ اَنۡزَلَ عَلَیۡكَ الۡكِتٰبَ، دا حصر دلالت کوی چه دا کتاب تعلیم د بشر نه دے او کهانت او سحر نه دے۔ او لفظ د اَنۡزَلَ هم دلالت کوی چه دا خاص دے په الله تعالیٰ پورے ځکه چه انزال دلته مرادف د وحی دے او د دے وجے نه اتاك یا اعطاك یے نه دے وئیلے۔

مِنۡهُ اٰیٰتٌ، ضمیر د مِنۡهُ الکتاب ته راجع دے او دا لفظ دلالت کوی په تقسیم پسے۔

مُحۡكَمٰتٌ، اِحکام په اصل لغت کښ دلالت کوی په منع پسے او په معنیٰ د پوخوالی سره راځی او دلته په مراد شوے معنیٰ کښ ډیر اقوال دی ۱۔ امام راغب وئیلی دی چه محکم هغه ته وئیلے شی چه په هغے کښ په اعتبار د لفظ او د معنیٰ سره هیڅ شبهه پیش نه راځی۔ ۲۔ شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله فرمائیلی دی چه اِحکام په قرآن کښ په درے قسمه دی۔ اول اِحکام په تنزیل کښ په مقابله د القاء د شیطانانو کښ نو په دے معنیٰ سره فصل تمیز او فرق او تحدید د الفاظو او د معانی او د شیطانی شبهاتو نه۔ یے سا تلو ته وئیلے شی۔ دا په سورة حج ۵۲ کښ ذکر دی۔ دویم اِحکام په مقابل د نسخ شرعی کښ کې

یعنی غیر منسوخ ته محکم وئیلے شی - الکتاب الحکیم په معنیٰ کړ محکم کښ دا معنی واضح ده چه روستو د قرآن نه بل کتاب ناسخ نشی راتلے - دریم احکام په تاویل او معنیٰ کښ دے - او هغه تمیز د حقیقتِ مقصوده دے په داسے طریقے سره چه اشتباه پکښ پاتے نشی - او دا په مقابله د متشابه کښ دلته مراد دے (قاسمی) -

۳ه د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه محکمات د سورة انعام په دريے آیتونو کښ دی ۱۵۱ ۱۵۲ ۱۵۳ او په سورة اسراء کښ د آیت ۲۳ نه تر ۳۷ پورے -

ه د مجاهد او عکرمه ته نقل دی چه محکم هغه آیتونه دی چه هغے کښ حلال او حرام ذکر دی - ه قتاده او ضحاک وغیره نه نقل دی چه محکم هغه ناسخ ته وئیلے شی چه په هغے باندے عمل کیږی ه د ابن عباس رضی الله عنهما نه بل روایت دے چه محکمات د قرآن ناسخ او حلال او حرام او حدود او فرائض دی ه د محمد بن جعفر نه نقل دی چه محکم هغه دے چه د یو وجے نه علاوه نور احتمال د تاویل نه لری -

ه او اصول الفقه کښ وئیلی دی چه محکم هغه دے چه هیڅ اخفاء او احتمال او اجمال پکښ نه وی او په اعلیٰ مرتبه د ظهور کښ وی د ظاهر او نص او مقسر نه اوچت وی - دا ټول اقوال یو بل ته قریب دی او اقسامو د محکم ته پکښ اشاره ده - او د اکثر مفسرینو په نیز دلته مراد هغه لفظ دے چه دلالت ئے په معنیٰ او مراد خپل باندے شکاره وی - نو ظاهر، نص، مفسر او محکم ټولو ته شامل دے -

هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ، دا صفت د مخکښ دے - سوال :- هُنَّ جمع ده او اُمُّ مفرد دے ؟ -

جواب :- د دیته مراد هر یو دے یا مجموعه په ځائے د یو آیت دے یا مفرد په ځائے د جمع باندے واقع دے - یا دا چه دلته اُمُّ په معنیٰ د اصل دے او اصل خو یو وی - اُمُّ د څیز اصل او مرجع او مجمع ته وئیلے شی -

الکِتٰبِ نه مراد قرآن دے او دا غیر دے دَ ام الکتاب نه (چه لوح محفوظ ته وئیلے شی) - او دیته ام محکه وئیلے شی چه دیته دَ اعتقاد او تشریح، آداب او مواعظو رجوع کیدیشی. دارنګ رجح دَ متشابه (چه تشریح او تفسیر او تاویل ئے ممکن وی) دغه محکما تو ته کیدیشی -

وَ اُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ، دا دویم قسم دے - او هرکله چه محکمات ډیروی په نسبت دَ متشابهاتو سره نو دَ دے وجے نه هغه ئے په منهٔ سره ذکر کړو او دا ئے په اُخَرُ سره ذکر کړے دے - متشابهات دَ تشابه نه اخستلے شوے دے. په لغت کښ مماثلت دَ دوه څیزونو ته وئیلے شی په اعتبار دَ کیفیت سره - او دَ هغے دَ وجے نه تمیز دَ یو بل نه ګران شی او سبب شی دَ اشتباه دَ پاره - او دا تشابه په مشابهت من بعض الوجوه کښ ډیر استعمال شوے دے لکه په سورة بقره ۷۰ کښ ان البقرة تشابه علینا - او په ۱۱۸ کښ تشابهت قلوبهم - او په ۲۵ کښ اوتوا به متشابها. او په سورة انعام ۹۹ کښ مشتبها وغیر متشابه - او په ۱۴۱ کښ متشابها وغیر متشابه - او په سورت زمر ۲۳ کښ کتابا متشابها - په دے ټولو کښ تشابه په بعضے صفاتو کښ مراد ده - او کله په معنیٰ دَ اشتباه سره راځی لکه سورة نساء ۱۵۷ کښ ولکن شبه لهم - او سورة رعد ۱۶ کښ فتشابه الخلق علیهم -

او دلته دَ متشابهات په معنیٰ کښ ډیر اقوال دی.

اول قول دا چه متشابهات مجملات دی لکه مقطعات په اول دَ سورت کښ (ابن عاشور) -

دویم قول دَ ابن مسعود او ابن عباس رضی الله عنهم نه نقل دی چه متشابه منسوخ ته وئیلے شی -

دریم دَ اصم رحمه الله نه نقل دے چه متشابه هغه دی چه تدبر او تفکر ته محتاج وی -

خلورم د امام مالك رحمه الله نه د اشهب روایت دے چه متشابه هغه دے چه علم ئے په الله تعالیٰ پورے خاص دے. او خفاجی د دے نسبت احنافو ته کړیدے - او شاطبی په موافقات کښ دیته میلان کړیدے -
پنځم قول د امام رازی دے چه متشابه هغه دے چه دلالت ئے په معنیٰ (مراد) باندے پټ وی - او په دے معنیٰ سره مجمل او مؤول هم په متشابه کښ داخل دی - او دا طریقه شوافعو ته منسوب ده (ابن عاشور) -
شپږم متشابهات هغه دی چه ما سیوا دی د حلال او حرام نه نو د یو بل سره په حق او په تصدیق کښ متشابه دی. دا قول د عکرمه او مجاهد نه نقل دے -
اووم قول دا چه متشابه هغه دی چه د هغے په معنیٰ کښ اشتباه او التباس وی -
اتم متشابهات هغه دی چه په افاده د معنیٰ کښ مستقل نه وی مګر استدلال ته محتاج وی او رد کیدے شی محکمات طرف ته (سمعانی) -
نهم شاطبی وئیلی دی چه تشابه دوه قسمه ده اول حقیقی چه د هغے د فهم معنے ته هیڅ لار نه وی - دویم اضافی ده چه د هغے په معنیٰ کښ اشتباه وی د وجے د احتیاج نه دلیل او قرینے ته -
لسم ابن جریر اول دا قول ذکر کړیدے چه متشابهات دی په تلاوت کښ او مختلفات دی په معنیٰ کښ.
یوولسم ابن جریر د جابر بن عبد الله نه نقل کړیدی او دا ئے غوره کړیدے چه متشابه هغه دی چه د هغے علم ته د هیچا لار نه وی لکه د عیسیٰ علیه السلام د راتللو د وخت خبر - او وخت د طلوع د نمر د مغرب نه - او وخت د قیامت د راتللو - او فنا د دُنیا. او حروف مقطعات هم په دیکښ داخل دی - او دا قول امور یقینیه دی ایمان

په هغې بانده فرض دے لیکن دَ هغې دَ وخت تحدید او تعین ته دَ بنده کانو حاجت دُنیویه یا دینیه نیشته - نو دَ هغې علم په الله تعالیٰ پورے خاص دے - او په دے معنیٰ سره دا متشابه هغه دے چه علماء دَ اصول فقه دَ خفی مشکل او مجمل نه روستو مرتبه په دے سره مسمّٰی کړیده چه دَ هغې دَ خفاء دَ زائل کولو دَ پاره هیڅ لار نیشته.

دولسم قول، ماوردی وئیلی دی چه محکم هغه دی چه معقول المعنیٰ وی یعنی عقل ئے ادراک کولے شي او متشابه هغه دی چه عقل ئے ادراك نشی کولے لکه شمار دَ رکعتونو دَ مونځونو او اختصاص دَ روژے په رمضان میاشت پورے وغیره.

دیارلسم، مراد دَ متشابهات نه هغه آیاتونه دی چه دَ هغوی په مینځ کښ په ظاهر کښ تعارض وی.

څوارلسم قول، داچه دَ متشابهات نه مراد هغه آیاتونه دی چه په عبارت او مضمون کښ یو بل سره مشابهت لری او په مینځ کښ لږ فرق وی. په دے اقوالو کښ غوره قول (دَ امام رازی) پنځم او اتم قول (دَ سمعانی) او لسم او یوولسم دَ ابن جریر دی.

**فائده :-** امام راغب دَ متشابه تعریف او اقسام ذکر کړیدی تعریف ئے دا دے چه متشابه دَ قرآن هغه دی چه دَ هغې تفسیر مشکل وی دَ وجے دَ مشابهت نه دَ غیر سره او تقسیم ئے داسے دے - محکم مطلق، متشابه مطلق، محکم من وجه، او متشابه من وجه - او دریم بیا دره قسمه دے - متشابه په جهت دَ لفظ سره فقط، متشابه په جهت دَ معنیٰ سره فقط، او متشابه په دواړه جهتونو سره - او بیا متشابه په جهت دَ لفظ سره دوه قسمه دے - اول په الفاظ مفرده کښ دَ وجے دَ غرابت (نا اشنا والی) نه یا دَ وجے دَ اشتراك نه - دویم قسم په جملو (کلام مرکب) کښ - او دا روستنے هم دره قسمه دے - اول دَ وجے دَ اختصار دَ کلام نه دویم دَ وجے دَ زیادت نه په کلام کښ - دریم دَ وجے دَ تقدیم تاخیر نه په کلام کښ - (دا څو اقسام وو دَ متشابه په جهت دَ لفظ سره) -

او د دے مثالونه امام راغب ذکر کړی دی. او مثال د متشابه په جهت د معنیٰ سره اوصاف د الله تعالیٰ او احوال د قیامت دی. او متشابه په جهت د معنیٰ او لفظ دواړو سره پنځه قسمه دے.
(۱) په اعتبار د مقدار یعنی عموم او خصوص سره (۲) په اعتبار د کیفیت یعنی وجوب او استحباب سره (۳) په اعتبار د زمانے سره لکه ناسخ او منسوخ (۴) په اعتبار د مکان او اسباب نزول سره چه هغه متعلق وی د جاهلیت والو د عاداتو سره او څوک یے علم نه لری. (۵) په اعتبار د شرطونو د صحت او د فساد سره. بیا یے وئیلی دی چه اقوال د مفسرینو (چه مخکښ ذکر شول) هغه د دے تقسیماتو نه بهر نه ؤځی. بیا یے وئیلی دی چه متشابهات درے قسمه دی اول قسم هغه دی چه هیڅ طریقه د علم د هغے د بنده د پاره نه وی لکه وخت د قیام د قیامت او راتلل د دابة الارض او د هغے کیفیات وغیره. دویم قسم هغه دی چه د انسان د پاره د هغے د علم لاره وی لکه غریب او نا آشنا الفاظ او گران احکام وی چه په تفتیش یا اجتهاد او تدبر سره معلومیږی. دریم قسم مترددد دے دواړو مخکنو په مینځ کښ یعنی چه راسخین فی العلم پورے د هغے علم خاص وی او نورو خلقو باندے پټ وی.
فائده ۲: د امام راغب په قول کښ د تشابه بعضے اسباب معلوم شول. او نور اسباب یے سره د تقسیم نه دا دی.
۱ سبب اشتراک د لفظ په مختلف معانیو کښ په اعتبار د وضع د لغت سره لکه لفظ د العین، الوجه، معیت او دُعا وغیره.
۲ سبب د احتمال د معنیٰ حقیقی او معنیٰ مجازی په یو لفظ کښ لکه ید حقیقتاً په معنیٰ د لاس سره دے او مجازاً په معنیٰ د قدرت سره دے. او عین په معنیٰ د سترگے او مجازاً په معنیٰ د حفاظت سره وغیره.
۳ سبب خفاء د معنیٰ په وضع د لغت کښ لکه مقطعات

دَ سورتونو چه دَ هغې معانې وصفیه لغویه نیشته دے.
ع۴ خفاء دَ مراد (کیفیت) سره دَ ظهور دَ معنیٰ لغوی حقیقی
نه لکه استواء دَ الله تعالیٰ په عرش باندے یا صفت دَ انسان
دَحیات په قبر کښ او عذاب او تنعیم په قبر کښ - او مسئله
دَ قدر او قضاءَ دَ دے معانے لغوی حقیقی ښکاره دی لیکن
کیفیات ئے معلوم نه دی دَ دے نه دَ تشابه څلور
قسمونه هم معلوم شول - دغسے ابن عاشور لس اسباب
او اقسام ذکر کړیدی (التحریر والتنویر ص ع۱۵۸ ج ۳) -
فائده ۳ :- اسماء وصفات الٰهیه په متشابهات کښ
داخل دی او که نه دی ؟ په دے کښ دَ سلفو صالحینو
صحیح قول دا دے چه دَ دے معنیٰ ظاهری حقیقی معلوے
دی دَ هغې نه انکار کول جهل دے لکه رحمانیت دَ الله تعالیٰ،
علم او قدرت دَ هغه عین، ید، وجهه او استوا په عرش
باندے فوقیت وغیره نو په اعتبار دَ دے دَ معانیو سره
دا محکمات دی بغیر دَ تحریف او تاویل نه لیکن کیفیات
دَ دے معلوم نه دی او دَ هغې نه بحث او سوالونه کول بدعت
دے - او په لحاظ دَ کیفیاتو سره دا متشابهات دی تمثیل
او تشبیه ئے نشی کیدے لکه چه مخکښ ذکر شول په باره
دَ حیات او عذاب او تنعیم دَ قبر او مسئله دَ قدر وغیره
کښ - او دا قول آلوسی په خپل تفسیر کښ ذکر کړیدے.
او دا مذهب دَ سلفو صالحینو شیخ الاسلام ابن تیمیه
رحمه الله په مجموعة الفتاویٰ جلد پنځم صفحه ع۲۶،
ع۵۰ کښ او امام ذهبی په کتاب مختصر العلو کښ او ابن قیم
الجوزیه په الصواعق المرسله او ملا علی قاری په شرح
فقه اکبر صفحه ع۴۲ کښ او تفسیر دَ سورة زمر کښ ابن
کثیر او نورو هم ډیرو مفسرینو او محدثینو دا قول ذکر
کړیدے - چه دَ هغې موتیٰ ځائے پځائے دَ آیات الصفات
په تفسیر کښ بیان کړیدے - نو په دے اسماؤ صفاتو کښ

تاویل کول دَ زائغینو عمل دے۔
فائدہ ۹۸: سوال:- په متشابهاتو بانديے چه دَ بندګانو
علم نه حاصليږي يا دَ بعضو په علم کښې ډير تکليف راځي
او غلطو عقيدو والا او مبتدعين دَ هغے نه دَځان دَپاره
دليلونه نيسي - نو دَ دے څه فائدے دي؟
جواب:- علماؤ دَ متشابهاتو ډير فوائد ذکر کړي دي بعضے
دَ هغے نه دا دي - اوله فائده دا ده چه الله تعالیٰ په دُنيا
کښې پخپلو بندګانو باندے ابتلا کانے او ازميښتونه کوي۔
نو په متشابهاتو کښې دَ اهل باطل دَپاره دا ابتلاء ده
چه دَ باطل دَ اثبات دَپاره دَ هغے نه دليل نيسي۔ او په
اهل حق (راسخينو) باندے ابتلاء دا ده چه دَ باطل
پرستو مقابل کښې به جوابونه کوي او دَ اثبات او اظهار
دَحق دَپاره به په قرآن کښې فکرونه کوي۔ دويمه فائده
دا ده چه قرآن کريم کښې چه هر کله محکم او متشابه
دواړه شته نو انسان به محتاج وي تحقيق او استدلال
ته او دَ تقليد دَ تيرونه به خلاص شي۔ (امام رازي)۔
دريمه فائده دا ده چه هر کله په قرآن کښې محکم او
متشابه دواړه شته نو دَ متشابه دَ صحيح تاويل دَپاره
به محکماتو ته رجوع کوي او علومو دَ لغت او عربيت
او اصولي علمونو ته ضرورت پريوځي نو ډير علمونه
به حاصلوي۔ څلورمه فائده دا ده چه په وخت دَ وجود
دَ متشابهاتو کښې حق ته په رسيدلو کښې مشقت راځي
او زيادت دَ مشقت سره زيات ثواب حاصليږي۔
پنځمه فائده دا ده چه هر کله بعضے متشابهاتو ته دَ
انسان علم نه رسيږي نو دے به دَ تکبر دَ صفت نه
خلاص شي او پوهه به شي چه واقعي (فوق کل ذي علم
عليم) حق دے۔ او هيڅوک به دَ علم بکل شئ دعوی
نه کوي سيوا دَ الله تعالیٰ نه۔

فائده: سوال :- په دے آیت کښې د قرآن د آیتونو تقسیم کړیدے چه بعضے محکم دی او بعضے متشابه دی او حال دا دے چه په سورة هود اول آیت کښې ټولو آیتونو ته محکم ویلی دی - او په سورة یونس اول آیت کښې د قرآن کریم په صفت کښې الحکیم راغلے دے چه هغه په معنیٰ د محکم دے - او په سورة زمر ۲۳ کښې ټول قرآن ته ئے متشابهًا ویلی دی ؟

جواب :- کله د یو لفظ د پاره ډیرے معنے وی نو په یو ځائے کښې یو معنیٰ مراد وی او په بل ځائے کښې بله معنیٰ نو تعارض نه راځی - دلته هم د محکم معنیٰ د (ښکاره دلالت په معنیٰ او مراد خیل باندے) دے - او د حکیم او احکمت معنیٰ دا ده چه د حکمتونو نه ډک دے - یا معنیٰ دا ده چه په دهٔ کښې تغیر او تبدیل څوک نشی کولے او د دهٔ نه روستو نسخ کؤونکے نشی راتلے نو په دے معنیٰ سره ټول قرآن محکم دے - او سورة زمر کښې د متشابه معنیٰ دا ده چه ټول آیاتونه د قرآن د یو بل سره په فصاحت بلاغت او صدق کښې مشابه دی - او د یو بل تصدیق کوی - نو په دے معنیٰ سره ټول قرآن متشابه دے.

فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ، هر کله چه د آیتونو دوه قسمونه ذکر شول (محکمات او متشابهات) نو اوس تفصیل کوی د متعلقینو د هغوی - د محکماتو حکم خو په هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ کښې ذکر شو یعنی د هغے د فهم د پاره خو یو وجه وی هر خاوند د لغت عربیٔ په هغے باندے پوهیږی برابره خبره ده که ایمان په هغے باندے لری او که نه لری - نو اوس د متشابهاتو سره متعلق حکم ذکر کوی - د هغے متعلق دوه قسم خلق دی یو راسخین بل اهل زیغ - دلته د هغوی ذکر کوی - هر کله چه اهم مقصد دلته رد دوه په نصاراؤ باندے چه هغه اهل

زیغ دی نو دَ هغوی ذکر یٔ مخکښ اوکړو - زیغ په اصل کښ میلان او اوړیدل دی دَ مقصد نه لکه چه مَازَاغَ الْبَصَرُ کښ دا معنیٰ مراد ده او دَ شریعت په اصطلاح کښ کږیدل دی دَ استقامت نه بل جانب ته یعنی دَحق نه باطل ته او دا په اصل کښ مرض دے دَ زړونو دَ دے وجے نه یٔ فی قلوبهم ذکر کړو۔ او اهلِ زیغ کښ نصاریٰ، یهود، خوارج، منافقون، مشرکان، زنادقه، باطنیه او ټول مبتدعین داخل دی ځکه چه هره یو طائفه اوړیدلے ده دَحق نه۔ او دا لفظ دے ټولو ته شامل دے (ابوحیان)۔ او په دے عموم باندے دلیل حدیث دے دَ صحیحین چه عائشه رضی الله عنها ته رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی وو چه هر کله او وینے هغه خلق چه په ماتشابه پسے روان وی نو دا هغه دی چه الله تعالیٰ دَ هغوی نوم اهل زیغ سره ذکر کړیدے او ځان تری نه بچ سا ته۔

فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ، دَ اتباع نه مراد همیشه شغل، بحث او کرځیدل دی په متشابه پسے لکه چه په آیت دَ قصاص کښ فاتباع بالمعروف راغلے دے۔ ماتشابه لفظ دلالت کوی چه دغه اتباع دَ وصف دَ تشابه دَ وجے نه کوی دَ قرآنی آیت دَ وجے نه یٔ نه کوی۔

ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ ، په اتباع دَ تشابه کښ دَ دوی دوه غرضونه دی اول ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ ، لفظ دَ ابتغاء دلالت کوی په زیات کوشش کولو باندے لکه چه انسان دَ یو مقصد په لټولو کښ ډیر کړاؤ کوی نو فتنه دَ دوی اصل مقصد دے۔ دا دلیل دے چه بحث کول په متشابه کښ په طریقه دَ تدبر او تفکر سره چه موافقت یٔ کوی دَ ام الکتاب سره نو دا منع دے۔ الْفِتْنَةِ ، ربیع وئیلی دی چه دَ دینه مراد شرک دے۔ مجاهد وئیلی دی چه مراد یٔ تلبیس او شبهات پیدا کول دی

په جاهلانو باندے - اصم وئیلی دی چه فساد، جګړے او قتل وقتال مراد دے ځکه چه په دے سره په دین کښ اختلاف او تفریق پیدا شی او هغه سبب وی د پاره د فساد - او بعضو وئیلی دی چه فتنه پخول د بدعت او ګمراهئ دی په زړونو کښ (صاحب اللباب).
او زجاج وئیلی دی چه مراد ترینه فساد د ذکورنئ دے.
دویم غرض د دوی دا دے چه وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ،
دا مستقل مقصد دے د دے وجے نه ئے لفظ د ابتغاء دوباره ذکر کړیدے - او لفظ تاویل کښ دوه قولونه دی.
اول دا چه د آل یؤول نه اخستلے شویدے په معنیٰ د رجع سره دے - بیا دا مصدر په معنیٰ د مفعول یا ظرف سره دے یعنی مرجع او عاقبت - دویم قول دا چه دا د اِیَالَة نه اخستلے شویدے په معنیٰ د سیاست (چل ول) نو مراد په تاویل سره چلول د کلام دی او استعمالول په یو مقصد کښ - او د تفسیر او تاویل تفصیلی فرق ما په کتاب تنشیط الاذهان کښ ذکر کړیدے - امام رازی وئیلی دی چه دلته مراد د تاویل نه هغه معنیٰ او مقصد دے چه په کتاب (او سنت) کښ په هغے باندے دلیل نه وی لکه وخت د قیامت - او چا وئیلی دی چه تاویل نه مراد حقیقت د معانیو دے (ابوحیان).
او ابن کثیر وئیلی دی چه مراد د دینه د دوی تحریف دے په موافق د خواهش د دوی سره.
فائده له: شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله په مجموعه الفتاوی کښ ذکر کړیدی او دلته قاسمی هم نقل کړیدی چه د تاویل درے قسمونه دی.
اول قسم دا چه تاویل په معنیٰ د حقیقت د خبر او مصداق د هغے دے - لکه تاویل د اوامرو د الله تعالیٰ عمل کول دی په هغے باندے لکه په حدیث د بخاری

کښې راغلي چه نبي صلى الله عليه وسلم به رکوع او سجده کښې سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي وئيل (يتاول) عمل يې کوو په دې آيت باندې چه فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ - او تاويل د اخباراتو وقوع د عين مخبر به وي لکه په يَوْمَ يَأْتِي تَاوِيلُهُ کښې مراد راتلل د هغه أمورو دي چه د قيامت سره او د هغې د علاماتو سره تعلق لري - او ديته مرجع او عاقبت هم وئيلے شي او په دے معنی سره سورة يوسف ۶، ۳۶، ۳۷، ۴۴، ۴۵، ۱۰۰ کښې او سورة کهف ۷۸، ۸۲ کښې هم دے -

دويم قسم دا چه تاويل په معنی د تفسير د کلام دے که د ظاهر سره موافق وي او که نه وي په دے شرط چه په صحيح قول سره ثابت وي او دا مراد دے په قول د ابن جرير (په تفسير د هغه کښې) لفظ تاويل الآيات او دے دواړو ته تاويل محمود وئيلے شي - او دريم قسم په عرف د متاخرينو، متکلمينو، متصوفينو، اصوليانو وغيره کښې چه اړول دي د لفظ د معنیٰ راجح نه (حقيقي نه) معنیٰ مرجوح (مجازي) ته بغير د قرينے او دليل صحيح نه يعنی چل ول کول - او په دے تاويل کښې دوه خبرو ته ضرورت دے - اول بيان د احتمال د لفظ د غه معنیٰ (مرجوح) لره - او دويم ذکر د دليل يا قرينے چه په سبب د هغې سره ظاهر پريږدي - او دا معنیٰ مراد ده په مسئله د صفاتو الهيو کښې په نيز د متأخرينو او جهميو - او دے قسم ته تاويل مذموم وئيلے شي - ځکه چه دا مستلزم کيږي تحريف لره - او په دے آيت کښې ابتغاء تاويله بنا په قول د ابن کثير او اکثرو مفسرينو دا معنیٰ مراد ده -

فائده ۲ : په متشابهاتو کښې د فتنے پيدا کولو د پاره د اهل زيغو مثالونه دادي - ۱ استدلال د

نجران دَ نصاراؤ په لفظ دَ روح منه او اُحيِ المَوتىٰ
سره او دَ الله تعالیٰ په باره کښ صيغے دَ جمع دا متشابهات
دی۔ تو دوی دَ دینه دَ عیسیٰ علیه السلام ولديت او
جزئيت دَ الله تعالیٰ نه او تصرف دَ الوهيت او تثليث
ثابتوی۔ او راسخين خلق دا راجع کوی محکما تو ته
چه لم يلد ولم يولد، وَقَال الله لا تتخذوا الٰهين اثنين
او مالا يملك لكم ضراً ولا نفعاً، دا په باره دَ عیسیٰ علیه السلام
کښ دی۔ او نور هم ډیر آیاتونه دی نو دَ دے په وجه سره
تاویل محمود دا دے چه روح نه مراد خاوند دَ روح دے او
منه نه مراد دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه۔ او احي الموتیٰ په معنیٰ دَ
دے قول دے مړی ته چه ژوندی شه په حکم دَ الله تعالیٰ
سره۔ او صيغه دَ جمع دَ تعظيم دَ پاره ده۔ ع۲ جاهلان وائی چه
دَ محمد صلی الله عليه وسلم نُور دَ الله تعالیٰ دَ نُور نه جزء دے
او استدلال کوی په آيت قد جاء كم من الله نور سورة مائده
۱۵ سره۔ دوی وائی چه مِن دَ تبعيض دَ پاره دے۔ دَ دوی په
رد کښ هم دا محکمات پوره دی چه لم يلد ولم يولد، ما اتخذ
صاحبه ولا ولدا (سورة جن ۳)، انی يكون له ولد ولم
تكن له صاحبه (سورة انعام ۱۰۱)۔ او جواب دا دے چه مِنَ الله
ئے متعلق کړیں دے په نور پورے تو دلیل دے چه مِن
په معنیٰ دَ جهت سره دے۔ ع۳ جاهلان وائی چه آواز کول
مړو ته جائز دی په دلیل دَ دے قول سره چه ابراهیم علیه
السلام ته او وئیلے شو چه مړو مرغو ته آواز اُوکړه چه ادعهن
هر کله چه دُعا لفظ مشترك وو په مينځ دَ آواز کولو او دَ رامد دشه
وئیلو کښ تو دوی دویمه معنیٰ مراد کړه لیکن محکما تو آیاتونو
کښ بلنے دَ غير الله ته (په عقیده دَ اُلوهيت سره) شرك او
ضلال وئیلے شوی دے لکه سورة احقاف ۵، سورة حج
۱۲ او سورة فاطر ۱۴ کښ۔ تو په دے لفظ (ادعهن) کښ
دُعا په معنیٰ دَ صرف آواز ده او دا خو معجزه ده دَ دینه دَ نورو

دپاره عموم نشي ثابتيدلے - څلورم مثال دادے چه قول دَ مجسموٌ او مشبهوٌ دے چه الله تعالی لره جسم ثابتوی په دليل دَ يد الله ، بل يداه ، استوی علی العرش وغيره - ليکن دَ دوی په رد کښې محکمات آيتونه دا دی چه ليس کمثله شئ ، لا تضربوا لِلّٰهِ الامثال ، اولم يکن له کفواً احد - نو عقيده صحيحه دا ده چه دا امور الله تعالی لره ثابت دی په معنی حقيقی سره ليکن بغير دَ تشبيه ، تجسيم او تمثيل نه -

پنځم مثال جهميه دَ دے آيتونو دَ حقيقی معنونه انکار کوی او دَ دے ارتکاب کوی په مجازی او کنائی معنی سره په دغه آيتونو کښې - ليکن دا آيتونه محکمات دی په اعتبار دَ معنی حقيقی ظاهری سره - او هيڅ دليل نيشته چه دلالت اوکړی په پريښودلو دَ حقيقی معنی او اخستلو دَ مجازی معنی سره - نو دَ دوی تاويلات تحريفات دی او دوی اهل زيغ دی -

شپږم مثال خوارج استدلال کوی په اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ سره په اثبات دَ کفر دَ علی رضی الله عنه چه هغه حکمين منلے وو - او اثبات دَ کفر دَ هغه چا چه حکم بما انزل الله نه کوی (او دا حکم ئے مطلق دے) او استدلال کوی په من لم يحکم بما انزل الله فاولئك هم الکافرون سره - او حال دا چه حکم لفظ مشترک دے په مينځ دَ حکم دَ الله تعالی اودَ حکم دَ حکمينو کښې - او دا رنګ ترک دَ حکم بما انزل الله مشترک دے په انکار او توهين او هسے پريښودلو کښې (يعنی يو شخص دَ الله تعالی دَ حکم نه انکار نه کوی بلکه اقرار کوی خو په ځائے ئے نه راوړی) - او محکمات آيتونه موجود دی په جواز دَ حکم دَ بندګانو او حکمينو جوړولو کښې - او دا رنګ محکمات موجود دی چه بغير دَ انکار او لوازمو دَ انکار نه کفر نه لازميږی - نو دوی په مشترک باندے استدلال کوی -

اوولم شیعګان استدلال کوی چه علی رضی الله عنه او نورو اماماتو ته علم بکل شئ ورکړے شوی دے او دارنګ امامت افضل دے د نبوت نه - د اول د پاره دلیل پیش کوی وکل شئ احصیناه فی امام مبین - او دویم د پاره دلیل پیش کوی چه انی جاعلك للناس اماما - حال دا چه لفظ د امام مشترک دے لوح محفوظ او تورات ته هم وئیلے شوی دے - او دارنګ امامت نبوت ته هم وئیلے شی - لیکن دوی د اول تاویل کوی په علی رضی الله عنه او نورو اماماتو سره - او د دویم تاویل کوی په امامت غیر د نبوت نه - او حال دا چه محکمات آیتونه دلالت کوی چه علم غیب سیوا د الله تعالیٰ نه بل هیچا د پاره ثابت نه دے - او دارنګ نبوت اعلیٰ دے د صفت د امامت نه - اتم مثال دا دے چه مقلدین د تقلید شخصی په اثبات کښ استدلال کوی د فاسئلوا اهل الذکر ان کنتم لا تعلمون نه - تپوس خاص کوی په تپوس د صرف حکم سره بغیر د تپوس د دلیل نه - او اهل الذکر خاص کوی په یو امام پورے - او عدم علم خاص کوی په عدم علم د حکم پورے - او حال دا چه دا دریواړه عام دی - نو تخصیص ئے په یو پورے بغیر د دلیل شرعی نه زیغ دے او بل جانب ته محکمات شته دے چه هغه ښکاره دلیلونه دی په اطاعت د الله تعالیٰ او اطاعت د رسول کریم صلی الله علیه وسلم او ګرځول د حکم د تنازع په وخت کښ کتاب الله او سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم ته - نهم مثال مبتدعین د انبیاؤ، شهداؤ او اولیاو د پاره دُنیوی ژوند ثابتوی او ورسره لوازم د دغه ژوند ثابتوی یعنی اوریدل، لیدل، خوراک څښکاک، امداد کول وغیره - دا ثابتوی د لفظ د احیاء نه په سورة بقره س ۱۵۴ کښ او آلعمران س ۱۶۹ کښ - او حال دا چه لفظ د حیات عام دے

حیات دُنیویه، برزخیه او اُخرویه ټولو ته. نو دَدے تخصیص په دُنیوی ژوند پورے بغیر دَ دلیل شرعی نه دا زیغ دے.
او حال دا چه محکمات آیتونه په نفی دَ حیات دُنیویه کښ شته په باره دَ ټولو اموات (مړو) کښ. لسم مثال دا دے چه عام مبتدعین دَ بدعاتو دَ عباداتو دَ اثبات دَ پاره دَ مطلق آیتونو نه استدلال کوی. دَ مونځ دَ قضاء عمرئ دَ پاره دَ اقیموا الصلوٰة نه او دُعا په هیئت اجتماعی سره پس دَ فرض یا سنت مونځونو او پس دَ جنازے دَ مونځ نه په ادعوا ربکم سره وغیره. او حال دا دے چه دا مطلق شرعی دی. مطلق لغوی نه دی او مطلق شرعی په افراد شرعیه باندے حمل کیږی. او بل جانب ته محکمات موجود دی چه ښکاره دلالت کوی چه په عبادات شرعیه کښ اتباع رسول شرط ده. لکه قل ان کنتم تحبون الله فاتبعونی یحببکم الله الآیة. او دغسے نور آیاتونه هم دی.
تنبیه :- دا مثالونه اکثر بنا دی په دے خبره چه متشابه مشترک او محتمل دَ حقیقت او مجاز ته شامل دے لکه چه مخکښ تیر شویدی نو په دیکښ هغه معنیٰ اخستل چه دَ محکماتو نه خلاف ده دَ اهل زیغو کار دے.
وَمَا يَعْلَمُ تَاْوِيلَهٗ اِلَّا اللّٰهُ، دا رد دے په اهل زیغو باندے چه هغوی دَ علم دعویٰ کوی او بحثونه کوی په هغه علم کښ چه خاص دے په الله تعالیٰ پورے. او دلته دَ تاویل معنیٰ حقیقت یا تفسیر دے. دَ دے وجے نه ئے مخکښ تاویل ته ضمیر راجع نه کړو بلکه لفظ دَ تاویله ئے مستقل ذکر کړو.
وَالرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ، په دیکښ دوه اقوال دی. اول قول دا چه عطف دے په الله باندے نو په دے وجے سره وقف نیشته په لفظ الله باندے. او یقولون خبر دے دَ مبتداء محذوف یا دا جمله حالیه ده.

دویم قول دا دے چه والراسخون مبتداء دے او یقولون خبر دے او عطف د جملے دے په جمله باندے لیکن په اوله جمله کښ په لفظ الله باندے وقف لازم دے. اول قول نقل دے د ابن مسعود، اُبیّ بن کعب، ابن عباس او عائشه رضی الله عنهم او حسن بصری، عروة، عمر بن عبد العزیز، امام مالک، کسائي او ابو عبید رحمهم الله وغیرهم نه. او مراد د تاویل نه حقیقت دے او د متشابه نه مراد صرف هغه دے چه خاص دے علم د هغے په الله تعالیٰ پورے لکه وخت د قیامت او تفصیلی حالات د قیامت، تفصیل د تقدیر او تفصیلی حالات د قبر وغیره. دا حقیقتو نه د الله تعالیٰ نه سیوا هیچا ته نه دی معلوم اگر چه راسخین وی. او دویم قول نقل دے د ابن عباس رضی الله عنهما، مجاهد، ربیع، محمد بن جعفر رحمهم الله او اکثر متکلمینو نه او د تاویل نه مراد حقیقت یا تفسیر دے (د تاویل اوله معنیٰ یا دویمه معنیٰ). او متشابه نه مراد هغه نور اقسام دی چه مخکښ تیر شوی دی یعنی مشترک، محتمل د حقیقت او مجاز- روح منه، د الله تعالیٰ د پاره صیغے د جمع، او معانی حقیقتاً د اسماؤ صفاتو بغیر د تکییف نه، او تعارض د آیاتونو او منسوخ وغیرها. ابوحیان د اول قول د ترجیح د پاره ډیر دلیلونه ذکر کړی دی او بیا ئے د ترجیح د پاره هم بعض وجوه ذکر کړی دی. او ابن عطیه وئیلی دی چه د محکم په علم کښ خو راسخ او غیر راسخ برابر دی لیکن متشابه کښ یو قسم هغه دے چه علم ئے په الله تعالیٰ پورے خاص دے لکه حقیقت د روح او احوال د قیامت وغیره. او بل قسم هغه دی چه په دلیلونو او قرینو سره او په رد الی ام الکتاب سره راسخین د هغے علم لری تو معلومه شوه چه اختلاف کښ ډیر بُعد (لرے والے) نیشته.

رَاسِخُوْنَ د رسوخ نه دے پوخوالی ته وئیلے شی یعنی د دوی

رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ

(اے ربه زموږه مه کږه وئ زړونه زموږ روستو د دے نه چه راوائ دوی)

هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ

(تا هدایت راکړے دے موږ ته او را او بخه موږ خاص ستا د طرف نه)

علم په شبها تو سره نه زائله کیږی - او امام مالک رحمه الله وئیلی دی چه عالم سره د عمل او اتباع نه راسخ دے - او بل قول دا دے چه راسخ کښ څلور صفتونه پکار دی. ۱ع تقوی فیما بینه وبین الله ۲ع تواضع بین الخلق ۳ع زهد فی الدنیا ۴ع او مجاهده کول د نفس سره۔

يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ كُلٌّ مِّنْ عِندِ رَبِّنَا ، دلته قول په معنیٰ د اعتقاد دے او ایمان نه مراد ایمان اجمالی دے ربنا په اول قول بانده ے) یعنی ایمان په متشابه او په صفت د متشابه سره - او بنا په دویم قول مراد ایمان تفصیلی دے په هغے بانده ے چه د دوی علم هغے ته وررسیږی - او احتمال دا دے چه دا قول د دوی هغه عامو مسلمانانو ته وی چه مرتبے د رسوخ ته نه وی رسیدلی - بیا هر کله چه د متشابه د پوره علم نه حاصیدلو په وجه چه شبه پیدا کیږی چه دا به د الله تعالیٰ د طرف نه وی او که نه وی ؟ نو د هغے شبهے د دفع کولو د پاره وائی چه کل من عند ربنا - او مراد كُلٌّ نه محکم او متشابه دواړه دی -

وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُوا الْأَلْبَابِ ، دا جمله د الله تعالیٰ د طرف نه ده د راسخینو د مدح په بیان کښ چه دا مقام دوی ته د دے وجے نه حاصل شوے دے چه د دوی عقلونه صفا دی د وهمونو او وسوسو نه۔

رَحْمَةً ۚ إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ ﴿٨﴾

بوخ والے (په ایمان بانده) یقینًا ته خاص ته بخشش ورکوونکے یې۔

ش :- دا په قول د راسخین کښ داخل دے. یا تعلیم د دُعا دے د الله تعالیٰ د طرف نه مونږ ته (قرطبی)۔ هر کله چه د مخکښ آیت نه معلومه شوه چه اهل زیغ خلق تور و خلقولره په فتنه کښ اچوی نو د زیغ او د فتنو دفع کولو د پاره دا دُعا ده۔
لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا، ازاغه نه مراد گمراه کول دی۔ او زجاج وئیلی دی چه معنیٰ دا ده چه په مونږ باندے دا سے دروند تکلیف او عبادت مه راولے چه زمونږ د زیغ سبب اُوگرځی۔ بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا، هدایت مقابل د ضلال مراد دے. یا مراد د دینه هدایت دے محکم او متشابه ته مناسب د دواړو سره۔ دا آیت صریح دلیل دے چه زیغ (گمراهی) او هدایت دواړه خلق (پیدائش) د الله تعالیٰ دے. او دا مذهب د اهل سنت دے۔ دوی وائی چه زړه الله تعالیٰ داسے پیدا کړے دے چه په هغه کښ صلاحیت دے د ایمان او میلان کفر ته. لیکن هیڅ یو جانب ته د دهٔ میلان نشی کیدے څو پورے چه الله تعالیٰ یو باعث او سبب نه وی پیدا کړے نو چه هغه سبب د کفر وی نو هغے ته خذلان، ازاغه، صدف، ختم، رین او قسوت وغیره وئیلے شی۔ او چه دغه سبب او باعث د ایمان وی نو دیته توفیق، ارشاد، هدایت، تسدید، تثبیت او عصمت وغیره وئیلے شی۔ وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً، مخکښ دُعا سلبی وه (د فاسد و عقائدو نه د بچ کیدلو د پاره) او دا دُعا ثبوتی ده. هِبه: عطیه او بخشش ته وئیلے شی چه بغیر د بدل او عوض نه وی۔ مِن لَّدُنكَ کښ اشاره ده چه زمونږ د جانب نه هیڅ سبب یا بدل نیشته۔ د رَحْمَةً نه دلته مراد تثبیت او توفیق دے لکه چه په سورة کهف سا کښ دی۔ إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ، دا وسیله د دغه دُعا ده په نوم د الله تعالیٰ سره او پشان د علت دے د ماقبل د پاره۔

رَبَّنَآ اِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ

اے ربه زمونږ یقیناً ته راجمع کوونکے د ټولو خلقو یې داسے ورځ کښ

لَّا رَيْبَ فِيهِ ۚ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ

چه شک نیشته په هغے کښ یقیناً الله تعالی خلاف نه کوه

الْمِيعَادَ ⑨ ع

د وعدے نه۔

ف ۹ :- دا دُعا تتمه ده د مخکښ دُعا د پاره۔ اشاره ده چه بچکیدل د زیغ نه او تثبیت په هدایت باندے د دُنیا د څه مصلحت د پاره نه دے بلکه لوئے مقصد خوف د آخرت دے۔ او زجاج وئیلی دی چه اقرار کول په ورځ د قیامت داسے تاویل دے چه راسخون د هغے علم لری او مخالف دے د متابعت د متشابهاتو نه۔

جَامِعُ النَّاسِ ، روستو د تفرق د انسانانو نه ( د زمکے په مخ په دُنیا کښ) دوی به جمع کوی په میدان حشر کښ۔

لِيَوْمٍ ، دا د پاره د جزاء د دغے ورځے دے یا لام په معنٰی د فی سره دے۔

لَا رَيْبَ فِيهِ ، د دے تحقیق د سورة بقره په دویم آیت کښ تیر شویدے۔ دلته اشاره ده لکه چه قرآن کریم بیشکه کتاب دے تو دارنګ دوباره ژوندن هم بیشکه دے۔

اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ ، دا کلام د الله تعالی دے د پاره د تاکید د ورځے ( یوم) د جمع کولو۔ یا دا کلام د دُعا کوونکو دے په طریقه د التفات د خطاب نه غائب ته۔ او مراد د دیته طلب د وعدے د جنت دے د ځان د پاره۔ لکه چه د دے سورت په آخر آیت ۱۹۴ کښ دی۔

سوال :- دلته یې اِنَّ اللّٰهَ ذکر کړو او په ۱۹۴ کښ اِنَّكَ ذکر کړے دے؟

ع ۵ ۔

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن تُغْنِيَ

يقيناً هغه كسان چه كفر ئې كړيدے هيچرے به دفع نه كړي

عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُم

دَ دوی نه مالونه دَ دوی او نه اولاد دَ دوی

مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمْ

دَ (عذاب) دَ الله تعالىٰ هيڅ څيز او دغه كسان دوی

وَقُودُ النَّارِ ﴿١٠﴾

خشاك دَ اور دی۔

جواب ۱:۔ په اول احتمال خو دا كلام دَ الله تعالىٰ دے او هغه كلام دے دَ دُعا كوونكو۔
جواب ۲:۔ په دويم احتمال سره دا مقام دَ عظمت او دَ جلال دَ الله تعالىٰ دے په راجمع كولو او حساب كولو دَ انسانانو سره۔ نو دَ دے سره لفظ دَ الله مناسب دے او په ۱۹۴ كښې مقام دَ تضرع او طلب دے نو دَ هغے سره خطاب مناسب دے۔
سوال:۔ په دے دُعا كښې خو طلب دَ څه څيز نيشته نو دا څه رنګ دُعا ده؟
جواب:۔ په دے كښې دُعا پټه ده يعني مونږ دَ زيغ نه بچ كړے او رحمت را كړے (سمعانی)۔ يا جمله دَ لا يخلف ۲ه قائم ده په ځائے دَ طلب دَ وعدے دَ جنت كښې۔ ميعاد عام دے وعد او وعيد دواړو ته شامل دے۔ ليكن وعيد دَ فاسقانو مشروط دے په عدم دَ عفو سره په دليل دَ نورو نصوصو سره۔ يا دلته مراد ميعاد دَ مؤمنانو دے ځكه چه خلاف دَ وعدے نه قابل دَ ملامتيا او قبيح دے۔ او خلاف دَ وعيد نه كرم او سبب دَ مدح دے۔

سن ا :- په دیکښې تخویف او ذکر دَ حال دَ اهل زیغو دے روستو دَ حال دَ راسخینو نه- او هر کله چه دا دَ هغے ضد دے دَ دے وجے نه ئے عطف کړے نه دے۔

اِنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا ، په دیکښې درے اقوال دی- اول قول دا چه دا هغه وفد دَ نصاراؤ دَ نجران دے چه په دوی کښې یو تن وو هغه وئیل چه څه پوهیږم چه دا رسول حق دے لیکن دَ روم بادشاه موتږ له مالونه راکوی نو که څه دَ حق اعلان او کړم نو هغه مالونه به راباندے بند کړی.
دویم قول دا چه مراد دَ دینه بنو نضیر او بنو قریظه دی چه په پخپلو مالونو او ځامنو باندے ئے فخر کوو۔
دریم قول دا چه دا آیت عام دے ټولو کافرانو ته- او داسے آیت په دے سورت سن ۱۱۶ کښې او سورة مجادله سن ۱۷ او سورة تبت سن ۲ کښې هم راغلے دے۔

لَنْ تُغْنِیَ عَنْهُمْ ، اِغْنَاء په معنیٰ دَ کافی کیدلو او دفع کولو سره راځی او دا متعدی دے یو مفعول ته لیکن هر کله چه په دهٔ کښې معنیٰ دَ دفعے هم شته نو دَ دے وجے نه دَ دهٔ سره دویم متعلق ذکر کیږی ۔ چه دَ هغے مقصد دفع کول دَ ضرروی او فعل هغه ته په مِنْ سره متعدی کیږی۔

اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ ، هر کله چه دَ مال فائدے دَ اولاد نه په باره دَ مدافعت او حفاظت کښې ډیرے دی دَ دے وجے نه اموال ئے مخکښې ذکر کړو- او په مالونو سره فدیه ورکیدیشی دَ عذاب دَ دفع کولو دَ پاره او په اولاد سره نصرت او امداد کیږی دَ دے وجے نه دَ دے دواړو تخصیص ئے اوکړو

مِنَ اللّٰهِ ، دَ کشاف په نیز دا مِنْ دَ بدل دَ پاره دے نو تقدیر دَ عبارت دے یعنی من رحمت اللّٰه او من طاعت اللّٰه -او په نیز دَ ابن عطیه دا مِنْ دَ ابتداء دَ پاره دے

كَدَأْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ

حال د دوی پشان د حال د فرعونیانو دے او د هغه کسانو چه

مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ

د دوی نه مخکښ تیر شوی دی دروغژن یې گڼړل ایاتونه زمونږ

فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ؕ

نو اونیول دوی لره الله تعالیٰ په سبب د گناهونو د دوی

وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿١١﴾

او الله تعالیٰ سخت عذاب ورکوونکے دے

نو تقدیر د عبارت دا دے چه من عذاب الله او من غضب الله - او د ابوعبید په نیز په معنیٰ د عند دے او په نیز د بعضو د تبعیض د پاره دے۔

وَاُولٰٓئِكَ هُمْ وَقُوْدُ النَّارِ ، هر کله چه ماقبل جمله کښ د دُنیا عذاب ته اشاره وه نو د دے وجے نه یې دا جمله په هغے باندے عطف کړه - او دا تخویف دے په عذاب اُخروی سره - او د دے تفسیر په آیت ۲۴ د سورة بقره کښ تیر شویدے - او قرطبی او ابن کثیر حدیث د ابن مبارک نه نقل کړیدے چه د هغے په آخر کښ راغلی دی چه روستو خلق به راشی قرآن به لولی - او وائی به چه څوک زمونږ نه زیات قاری او زیات عالم دے (بیا یې اووئیل) چه دغه خلق د دے اُمت نه دی او خشاک د اور دی۔

۱۱ :- دا مثال د تخویف دُنیوی دے په مخکنو اقوامو مکذبو سره۔

كَدَأْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ، د دے مبتدا پټه ده یعنی دَابُهُمْ - نور اقوال هم په دیکښ شته دے لیکن دا قول غوره دے - دَاْب په اصل کښ په عمل کښ کړاؤ کول

او بار بار کول دی - او په عرف کښې حال، شان، امر او عادت وغیره ته ویلے شي - او حاصل دَ تشبیه دا دے چه دَ دے موجوده کافرانو هلاکت او دَ مال او لاد فائده نه ورکول پشان دَ حال دَ آل فرعون (کافرانو) دے - دَ آل فرعون ته ئے شروع په دوه وجو سره کړے ده -
اول دا چه مخکښې ذکر دَ نصاراؤ تیر شو او هغوی بنی اسرائیل وو دَ فرعون دَ حال نه پوره خبر وو -
دویم دا چه استیصالی عذابونه (چه ټول قوم او امت په یوځل هلاک شي) دا په فرعون باندے ختم شویدی دَ فرعون دَ عذاب غرق نه روستو داسے استیصالی عذاب نه دے راغلے لکه چه په تفسیر دَ سورة قصص ۴۳ کښې دیته اشاره شویده -
وَالَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ، دا عطف دے په آل فرعون باندے - یا دا مبتداء ده او روستو ئے خبر دے - او دَ هغوی ذکر په سورة حج ۴۲، ۴۳، ۴۴ توبه ۷۰ او سورة قٓ ۱۲، ۱۳، ۱۴ کښې شوید ے -
كَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَا، په اول توجیه باندے (کذبوا) حال دے یا استیناف دے - او په دویمه توجیه باندے خبر دے دَ والذین دَ پاره - او دا تفسیر دے دَ دَاب دَ پاره - آیات هغه دی چه په کتابونو دَ الله تعالیٰ کښې وو - یا معجزات مراد دی -
فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوۡبِهِمۡ، اخذ کنایه ده دَ راګیرولو نه په عذاب کښې - او په بذنوبهم کښې باء سببیه ده - یا باء دَ ملابست ده او حال دے - یعنی دوی متلبس وو په ګناهونو سره توبه ئے نه وه کړے - او تقسیم دَ اخذ (عذابونو) په سورة عنکبوت ۴۰ کښې ذکر دے - ذنوب ئے جمع ذکر کړیده ځکه چه دَ کفر او شرک سره نور ګناهونه هم یوځائے شوي چه هغه دَ تفصیل دَ بعضے

قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا سَتُغْلَبُونَ

ته اوایه هغه کسانو ته چه کفر ئې کړے دے زر دے کمزورۍ په کړیشی تاسو

وَتُحْشَرُونَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ ۚ وَبِئْسَ

او جمع به کړے شئ تاسو جهنم ته او بد ځائے

الْمِهَادُ ﴿۱۲﴾

تیار کړیشویدے (دا جهنم)

اقوامو سره په بعضے سورتونو کښ ذکر شوی دی۔ وَاللّٰهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ، په دیکښ اشاره ده شدت د گناهونو د هغوی ته۔ دا رنګ په سورة انفال ۵۲ کښ کفر ذکر وو نو ور پسے آیت ۵۴ کښ تکذیب ذکر دے۔ کفر مرض د زړه دے او تکذیب مرض د ژبے دے۔ د دے وجه نه ئې کفر مخکښ کړیدے په تکذیب باندے۔

۱۲: دا متعلق دے د ان الذین کفروا سره۔ او جواب د وهم د دغه کافرانو دے۔ وهم دا وو چه مخکنی قومونه ځکه هلاک شویدی چه هغوی کمزوری وو او مونږ خو طاقت والا یو په ډیر مالونو او ځامنو سره۔ بل وهم دا دے چه دغه کافرانو (یهودو او نصاراؤ د نجران) وئیل چه هغوی (مخکنی قومونه) ځکه هلاک شوی دی چه دین سماوی ئې نه منلو او مونږ خو دین د موسیٰ علیه السلام یا عیسیٰ علیه السلام منلے دے۔ نو مونږ غالب یو۔ نو د دواړو وهمونو جواب په دے ایت کښ اوشو۔

قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا، غوره دا ده چه مراد د دے نه کافران یهود او نصاریٰ دی چه د سورة آلعمران د نزول د وخت پورے دوی په ظاهرکښ طاقتور وو۔ سَتُغْلَبُونَ، دا پیشنګوئی رشتینے ده په طریقے د معجز

قَدْ كَانَ لَكُمْ اٰيَةٌ فِيْ فِئَتَيْنِ

یقیناً شته دے ستاسو د پاره عبرت په دوه ډلو کښ

الْتَقَتَا ۭ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

چه مخامخ شول دواړه. یو ډلے جنګ کولو په لارے د الله تعالیٰ کښ

وَاُخْرٰى كَافِرَةٌ يَّرَوْنَهُمْ مِّثْلَيْهِمْ

او بله ډله وه چه کفر ئے کولو لیدل دوی هغوی لره دوچنده خپل

رَاْيَ الْعَيْنِ ۭ وَاللّٰهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهٖ

په لیدلو د سترګو سره او الله تعالیٰ کلکوی په مدد خپل سره

مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً

هغه چاله چه اوغواړی یقیناً په دیکښ ضرور عبرت دے

لِّاُولِي الْاَبْصَارِ ﴿۱۳﴾

خاوندانو د پوهے لره.

سره او هم دا سے واقع شوه - ځکه چه بنو نضیر اوشړلے
شول خیبر ته او بیا روستو د خیبر نه هم اُوشړلے شول -
او بنو قریظه او وژلے شول - او په دیکښ مصداق دے د
دے قول چه لن تغني عنهم اموالهم ولا اولادهم من الله
شيئًا - وَ تُحْشَرُوْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ ، دا مصداق دے د اُولئك هم
وقود النار - اِلٰى پخپله معنیٰ سره دے - یا په معنیٰ د فِي دے -
او د دے دواړو په ذکر کښ اشاره ده عذاب د دُنیا او د آخرت دواړو
ته - وَبِئْسَ الْمِهَادُ ، مهاد هغه بستره ده چه تیاره کړے شوے
وی د آرام د پاره - تو جهنم ته ئے مهاد په طریقه د تهکم (مسخرے)
سره وئیلے دے - او د مجاهد نه قرطبی نقل کړی دی چه مهاد
هغه عملونه دی چه دوی د ځان د پاره تیار کړی دی -
۱۳ دا متعلق دے د سَتُغْلَبُوْنَ سره په طریقه د دلیل د هغے

دپاره - نو خطاب دے الذین کفروا ته -
قد کان لکم اٰیة، دا اسم دے دکان دپاره - کانت ئے ځکه نه دے وجه دا ده
او نه وئیلو له دا مؤنث مجازی دے لکه دا په معنیٰ د دلیل او برهان
دے ځکه په لکم سره فصل راغلے دے دکان او د اسم په مینځ کښ
او اٰیة نه مراد نښه، دلیل او لوئے قدرت الٰهیه دے -
فی فئتین التقتا، لکم خبر دے دکان او فی فئتین په محل د صفت
کښ دے د اٰیة دپاره - یا فئتین خبر دے او لکم متعلق دے
په کان پورے - فئتین تثنیه ده د فئة دپاره او فئة هغه جماعت
ته وئیلے شی چه هغے ته په سختئ کښ رجوع کیږے شی - او د
دینه مراد بالاتفاق ډلے وے د مؤمنانو او کافرانو په غزوه
د بدر کښ - التقتا په محل د خبر کښ صفت دے د فئتین
دپاره - التقاء نه مراد مخامخ کیدل دی د جنګ کولو دپاره -
فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَ اُخْرٰی کَافِرَةٌ ، فئة خبر
دے د مبتداء محذوف اِحداهُمَا (یو د دواړو نه) دپاره.
یا خبر پټ دے یعنی منهما - او په دے جملو کښ اکتفا ده.
یعنی هره جمله کښ ئے هغه څیز حذف کړیدے چه
په مقابل کښ ئے ثابت کړیدے - نو په اوله جمله کښ
مؤمنة پټ دے او په بله جمله کښ فی سبیل الشیطان
پټ دے لکه چه په سورة نساء ۷۶ کښ دی -
یَرَوْنَهُمْ مِّثْلَیْهِمْ رَاْیَ الْعَیْنِ ، په دیکښ درے توجیهات
دی - ۱ یرون ضمیر د فاعل راجع دے مؤمنانو ته او ضمیر مفعول په
یرونهم او مثلیهم کښ کافرانو ته راجع دے - معنیٰ دا ده
چه ولیدل مؤمنانو کافرانو لره دو چند د هغوی) - او په
دیکښ لوئے قدرت د الله تعالیٰ ته اشاره ده چه سرهٔ د
دومره ډیر عدد د هغوی نه مؤمنان ورباندے غالب شول
په طریقه د کم من فئة قلیله غلبت فئة کثیرة باذن الله
سره -
سوال :- په سورة انفال ۴۴ کښ دی و اذ یریکموهم

اذ التقیتم فی اعینکم قلیلاً دا خو دلالت کوی چه کافران مؤمنانو ته لږ ښکاره کیدل ؟

جواب :- دا حمل دے په جدا جدا حالاتو باندے.
اول ئے ورته ډیر ښکاره کړل د مؤمنانو د ازمیښت دپاره.
بیا ئے ورته لږ ښکاره کړل په قتال باندے د تشجیع دپاره.

ع۲ - دویمه توجیه دا ده چه یرون ضمیر د فاعل مؤمنانو او هُمْ ضمیر کافرانو ته راجع دے او مِثْلَيْهِمْ ضمیر مؤمنانو ته راجع دے معنیٰ دا ده چه رلیدل مؤمنانو کافرانو لره دوچند خپل ) ځکه کافران په اصل کښ تقریباً (۹۰۰) نهه سوه وو او مؤمنان درے سوه دیارلس وو (۳۱۳)- نو دالیدل په حالت اصلیه کښ دی په اول وخت کښ ع۳ ضمیر د یرون کافرانو ته راجع دے او هُمْ ضمیر مؤمنانو ته راجع دے.
او مِثْلَيْهِمْ ضمیر کافرانو ته راجع دے نو معنیٰ دا شوه چه رلیدل کافرانو مؤمنانو لره دوچند خپل )- دا دے دپاره چه په کافرانو باندے رعب پریوځی- یا دا چه د مؤمنانو سره ملائیک ملګری وو او کافرانو ته یه د مؤمنانو په شکل ښکاره کیدل- او دا یو حال دے او سورة انفال ع۴۴ کښ تقلیل بل حال وو نو تعارض نه راځی او په دے مقام کښ صاحب اللباب وغیره نور توجیهات هم لیکلی دی لیکن دغه درے واضح دی - او غوره توجیه په دیکښ کموالے د مؤمنانو او ډیروالے د کافرانو واله ده- چه هغه په اوله توجیه کښ ډیر دی په نسبت د دویمے توجیه سره- ځکه چه دلته مقصود ذکر د لوئے قدرت د الله تعالیٰ دے چه مؤمنان د کافرانو په تعداد کښ ډیر لږ وو لیکن په مدد د الله تعالیٰ غالب شول او کافران اګرچه ډیر وو لیکن د الله تعالیٰ په قدرت سره مغلوب او ذلیل شول-

رَأْيَ الْعَيْنِ، هر کله چه رائ مشترک دے په مینځ د لیدلو د سترګو او د پوهے د زړه کښ نو العین ئے د دے دپاره ذکر کړو چه اوله معنیٰ مراد ده- بیا په اوله توجیه او دویمه توجیه صرف لیدل

زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ

ډولی کړے شویدے انسانانو ته مینه کول دَ هغه څیزونو چه نفس یې غواړی دَ

النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ

زنانو ته او دَ ځامنو ته او دَ خزانو

الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ

جمع کړے شوؤ ته دَ سرو زرو او دَ سپینو زرو ته

وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ط

او دَ اسونو خائسته (نخاربه) ته او څاروؤ او دَ فصلونو ته

دَ ستر‌ګو وو اګرچه په اصل کښں لږ وو او په دریمه توجیه کښں لیدل دَ ستر‌ګو دَ اصل سره برابر وو۔ لیکن په دے لفظ ذکرکولو کښں فائده داده چه سرهٔ دَ ډیروالی نه الله تعالیٰ دا کافران مغلوب کړل نو معلومه شوه چه دَ الله تعالیٰ په نیز ظاهری کثرت ته هیڅ اعتبار نیشته۔

وَاللّٰهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ، دا دلیل دے چه الله تعالیٰ په بدر کښں دَ مؤمنانو سره غیبی امداد اُوکړو۔ اګرچه په ظاهر کښں هغوی لږ وو لکه په آلعمران ۱۲۳ او سورة انفال ۲۶ کښں دی۔ يُؤَيِّدُ، دَ ایید نه اخستے شوے دے قوت ته وئیلے شی۔ او دَ مَنْ يَّشَآءُ نه صرف مؤمنان مراددی دا مشیت مرادف دَ رضا دے۔

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِي الْاَبْصَارِ، ذٰلِكَ اشاره ده نصرت یا ښکاره کولو لږولره ډیر۔ عبرت په اهل کښں دلالت کوی چه تجاوز اُوشی دَ یو څیز دَ یو ځائے نه بل ځائے ته۔ او دا رنګ وئیلے شی استدلال دَ یو څیز نه په بل داسے څیز چه دَ هغے سره مشابه وی او دینه اتعاظ (وعظ اخستل) هم وئیلے شی۔ الْاَبْصَار دَ بصر نه دے په معنیٰ دَ لیدلو په ستر‌ګو سره دے۔ یعنی چا چه دغه دواړه ډلے په ستر‌ګو لیدلی وے۔ یا په معنیٰ دَ رویت قلبی دے او دینه بصیرت وئیلے شی یعنی خاوندان دَ زړونو او سالم عقل۔

ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ج

دا ټول لګه نفع ده د ژوند دنيوي

وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ﴿١٤﴾

او د الله تعالیٰ خاص د هغه سره ښائسته ځائے د ورتللو دے۔

ف: دا تزهيد (بے رغبتي ورکول) دے په دُنيا کښ او ترغيب دے آخرت ته۔ او متعلق دے د لَنْ تُغْنِيَ اَمْوَالُهُمْ وَلَا اَوْلَادُهُمْ سره۔ او جواب د سوال دے چه هر کله دغه مالونه او اولاد دے کافرانو ته هيڅ فائده نه ورکوی نو دوئ يې د څه د پاره جمع کوی نو دے آيت کښ د هغې جواب ته اشاره ده۔

زُيِّنَ لِلنَّاسِ، تزيين وئيلے شي يو څيز لره ښائسته ښکاره کول چه د هغې قباحت او ناکاره والے يا بد شکلي د زړه او سترګو نه لرې شي او صرف ښائست او فائده يې ښکاريږي۔ لِلنَّاسِ نه مراد کافران دي په قرينه د آيت ۲۱۲ سورة بقره سره۔ يا مراد عام دے که کافران وي او که فاسقان دُنيا پرست وي۔ زُيِّنَ صيغه د مجهول ده ليکن قرآن کريم کښ د دے نسبت په درے طريقو سره دے اول دا چه نسبت يې اوشي الله تعالیٰ ته لکه په سورة انعام ۱۰۸ او سورة نمل ۴ کښ۔ دويم دا چه نسبت يې اُوشي شيطان انسي او جني ته لکه په سورة انعام ۴۳، ۱۳۷، سورة انفال ۴۸ سورة نحل ۶۳ او سورة عنکبوت ۳۸ کښ۔ دريم دا چه مجهول ذکر شي لکه په دے آيت کښ او سورة بقره ۲۱۲ سورة انعام ۱۲۲ سورة توبه ۳۷ سورة يونس ۱۲ سورة رعد ۳۳ سورة فاطر ۸ سورة غافر ۳۷ سورة محمد ۱۴ او سورة فتح ۱۲ کښ۔ هر کله چه نسبت يې الله تعالیٰ ته اُوشي نو معنیٰ د هغې دا ده چه الله تعالیٰ دغه څيزونه پيدا کړي دي او په هغې کښ يې د مخلوق د ازميښت د پاره لذتونه پيدا کړيدي او د هر څيز پيدا کوونکے الله تعالیٰ دے او شيطان ته نسبت په اعتبار د وسوسه اچولو سره دے۔

حُبُّ الشَّهَوٰتِ، شهوات جمع دَ شهوت ده - مصدر دے او
مراد په دے سره مفعول دے یعنی مشتهیات نو دا حمل
مبالغتاً دے او هغه خیزته وئیلے شی چه نفس ورته میلان کوی
او دا کله خیر وی لکه مشتهیات دَ جنت په سورۃ حم سجده
۳۱ او سورۃ زخرف ۷۱ کښ - او دلته امور دُنیویه مراد دی
او دا شهوت دَ شر دے - او په دے لفظ ذکر کولو کښ اشاره
ده نفرت ورکولو ته دَ هغے نه - او حُبُّ ئے ورته مضاف
کړے دے اشاره ده چه محبت غیر دے دَ مشتهٰی نه - نو
شهوت غیر اختیاری وی او حب دلته اختیاری دے چه
هغه ترجیح ورکول دی یو خیز لره په نورو خیزونو باندے.
یعنی دَ انسان کله دَ یو خیز سره محبت وی لیکن غواړی
چه دا محبت ځما نه وے او دا محبت غیر اختیاری وی.
او کله دَ یو خیز سره محبت کوی او غواړی چه دا محبت ے
همیشه وے - نو دا چه په جانب دَ خیر کښ وی نو سعادت
دے او چه په جانب دَ شر کښ وی نو بیا شقاوت او بدبختی
ده - نو معلومه شوه چه دلته درے رتبے دی اول اشتهاء دَ مشتهیاتو.
دویم محبت او ترجیح ورکول دغه مشتهیاتو ته په مقابل
دَ هغے کښ - دریم زینت، یعنی عقیده ساتی چه دا محبت
ښه کار دے او دَ هغے قباحت او بدی ورته نه ښکاریږی.
نو دا درے درجے چه په چا کښ جمع شی نو هغه دَ آخرت
نه بالکل غافل شی.

مِنَ النِّسَآءِ، په دیکښ دَ شهواتو دَ اصولو بیان دے چه
هغه جامع دَ ټولو شهواتو دی - او دا رنګ په دے کښ
اختلاف دَ اُمتونو او زمانو او اطرافو نیشته دے - نو اول
ئے نساء ذکر کړے ځکه چه دَ هغوی سره شهوت دَ نارینه
په طبیعت کښ کیښودلے شوے دے - تر دے پورے چه
دغه شوق او شهوت په نارینه باندے چرته نه بوج کیږی.
او دَ دوی فتنه په نارینه باندے دَ هرے فتنے نه زیاته ضرری

او نقصانی ده لکه چه په حدیث کښ هم راغلی دی او ذکر دے وجے نه هغه سبب ګرځی د پاره د قطع کولو د خپلولئ او د جمع کولو د حرام مال. او دویم ئے ذکر کړے دے وَ الْبَنِيْنَ، د دوی محبت هم امر طبعی دے لیکن په دوی کښ یوه فتنه ده یعنی حرام جمع کول د هغوی د پاره. او دا محبت د نارینه اولاد سره زیات وی په نسبت د ښځینه اولاد سره.

وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ، (دا دریم دے) قناطیر جمع د قنطار ده. او دا وزن د سلو رطلونو دے. او دا لفظ په اصل کښ رومی لاتینی دے یا سریانی دے چه په هغه ژبه کښ کینتال وو او په عربئ کښ قنطار شو. او د زجاج په نیز دا اخستلے شویدے د قَنْطَر نه په معنیٰ د تړلو او محکم کولو سره دے. یا د قطر نه دے (په زیادت د نون سره) او په معنیٰ د بهیدلو سره دے. او په مقدار د قنطار کښ ډیر اختلاف دے. د ابی بن کعب رضی الله عنه په روایت کښ زر او دوه سوه (دولس سوه) اوقیه ته وئیلے شی (اوقیه څلویښت درهم دی). او د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه دولس زره درهمه یا زر اشرفئ. او په بل روایت کښ زر او دوه مثقالونه دی. او د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دے (مرفوع) چه مراد دولس زره اوقیه دی. او په روایت د انس رضی الله عنه زر دیناره دی. او په روایت د ابن المسیب او قتاده کښ اتیا زره. نور اقوال هم شته دے. ابوعبید او امام رازی وئیلی دی چه قنطار دا سے وزن دے چه حد ئے معلوم نه دے. الْمُقَنْطَرَةِ، هر وصف چه د موصوف سره په ماده کښ شریک وی نو دلالت کوی په تاکید باندے لکه ظِلٌّ ظَلِيْلٌ نو دا دلالت کوی په ډیر والی باندے بغیر د تحدید نه. او په دے لفظ کښ اشاره ده چه مال نه خرڅ کوی په مصارفو د خیر کښ

بلکه جمع کوی یې او خزانه کوی یې۔

مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، دا بیان دَ القناطیر دے۔ او دا یې ځکه ذکر کړو چه دَ دینه کالی (زیورات) جوړیږی او کَ دینه نقود (روپۍ) جوړیږی۔ او دا چه هره زمانه او هر ملک کښ قیمت دَ نورو مالونو وی۔ ذهب دلالت کوی په تللو (زوال) باندے۔ او فضة دلالت کوی په تفرق باندے نو دا دواړه دلالت کوی په زوال او عدم استقلال باندے.

فائده:۔ په مقام دَ محبت کښ یې اولاد مخکښ کړیدے په مالونو باندے او دا واضح دے۔ ځکه چه محبت کښ اولاد مخکښ دے په مال باندے۔ او په مقام دَ فتنه او دَ اِغناء (دفع کولو) کښ یې مال مخکښ کړیدے ځکه چه فتنه دَ مال ډیره ده دَ اولاد نه او دا رنګ دفاع اول په مال سره کیږی۔ (فتنه په سورة انفال ۲۸ تغابن ۱۵ او اغناء په دے سورت ۱۰، ۱۱۶ او سورة مجادله ۱۷ کښ ذکر دے)۔

وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ، دا ځلورم څیز دے۔ او دا عطف دے په النساء باندے لیکن په ترتیب دَ محبت کښ دَ ذهب او فضة (سرو سپینو) نه روستو دے نو دَ دے وجے نه یې په هغے پسے ذکر کړو۔ او دَ دے په محبت طبیعه باندے دلیل دا دے چه په نن زمانه کښ دَ سورلۍ هر قسم اعلیٰ اسباب شته لیکن بادشاهان او مالداران بیا هم اسونه ساتی۔ سورلۍ او مسابقے (مقابلے) پرے کوی او ګاډی او بګۍ او ټانګے ورباندے راکاږی۔

او لفظ دَ خَيْل دَ سیبویه په نیز اسم جمع ده او دَ اخفش په نیز جمع تکسیر ده او دَ واحدی په نیز دا جمع ده لیکن واحد یې نیشته لکه چه لفظ دَ قوم، نساء او رهط دے۔ الْمُسَوَّمَةِ، په دیکښ اختلاف دے دَ بعضو په نیز دَ تسویم نه دے په معنیٰ دَ تعلیم یعنی

هغه اسونه چه تعلیم ورکړے شوے وی - او د بعضو په نیز اخستلے شوی یے د سیما او سیمة نه په معنیٰ د علامت سره. او داسپین والے دے د هغے اسو په تندو باندے یا برګ والے د څرمن دے - او د بعضو په نیز دا آخستلے شوی یے د سوم نه په معنیٰ د رعی (سَرَولو) سره - اشاره ده چه د دوی د مالکانو لوئے لوئے پټی او چراګاهونه دی چه په هغے کښ یے دا آسونه آزاد پریښودلی وی او په هغے کښ سریږی - او آسونه په داسے سریدلو سره ډیره ترقی کوی - او د بعضو په نیز د سیمیاء نه اخستلے شوی یے په معنیٰ د حسن یعنی خائسته او ښاریه دی -

وَالْاَنْعَامِ، دا پنځم څیز دے - انعام جمع د نعم ده - اوښانو، غوانو اوګډو بیزو وغیره ته وئیلے شی - په دیکښ ډیرے فائدے دی چه هغه په سورة نحل ۵ تا ۶۶ کښ ذکر دی - او د دے سره د بانړو والو زمینداړو ډیر محبت وی او مالداړ خلق یے صرف د خائست او د تماشو یا د بعض ضرورت په بنیاد ساتی او ډیره مینه ورسره کوی -

وَالْحَرْثِ، دا مصدر په معنیٰ د مفعول دے د دے وجے نه یے جمع نه ده ذکر کړے - او دا شپږم څیز دے - او دا شامل د باغاتو فصلوتو او سرسبزو شاداب صحراګانو او چمنونو ته چه د بعضو سره د ښار والو محبت وی او د بعضو سره د بانړو والو محبت وی - قرطبی وئیلی دی چه د نساء او بنون نه روستو یے څلور قسمه مالونه ذکر کړی دی - او دا هر قسم په یو قسم د خلقو پورے خاص دی - اول قسم ذهب او فضه (سرۂ او سپین زر) مال دے د تاجرانو، دویم قسم اسونه چه هغه مال دے د پادشاهانو او امیرانو، دریم قسم څاروی دی چه هغه د بانړ چیانو مال دے څلورم قسم زمکے او جائیدادونه دی چه د زمینداړو او باغبانانو مال دے -

ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا، ذٰلِكَ اشاره ده دغه ټولو ته په تاویل د مجموع سره - متاع د دے معنیٰ مخکښ ذکر شوے ده

قُلْ أَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ط

ته اوایه آیا خبر درکړم تاسو لره په غوره سره د دغه څیزونو نه

لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ

شته دے د پاره د هغه کسانو چه تقوٰی ئې کړیده په نیز د رب د دوی

جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

باغونه چه بهیږی به لاندے د هغے نه نهرونه

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَ اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ

همیشه به وی دوی په هغے کښ او بیبیانے پاکے ساتلے شوے

او په دیکښ قلت (کموالی) او فنا د هغے ته اشاره ده۔ او په دے سره فائده اخستل څلور قسمه ده۔ اول هغه چه په دے سره ځان له فائده اخلی او د بخل د وجے نه بل چاله نه ورکوی۔ دویم په دے سره انتفاع پریږدی د ضرورت په وخت کښ۔ او بے ضرورته ئې خرچ کوی۔ دریم انتفاع په مباح طریقے سره اخلی لیکن د آخرت د مصالحو د پاره ئې ذریعه نه ګرځوی۔ دا دریواړه شرعًا او عرفًا مذموم دی۔ او څلورم قسم انتفاع اخلی په داسے طریقے سره چه هغه ذریعه او ګرځی د آخرت د فائدو د پاره او دا قسم ممدوح دے۔

وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ، دا ترغیب دے آخرت ته په مقابل د امورو د دُنیا کښ۔ اَلْمَاٰبِ ځائے د رجوع (واپسی) ته وئیلے شی۔ دلته په معنیٰ د ظرف سره دے یا په معنیٰ د مصدر سره دے۔ مآب دوه قسمه دے۔ یو ناکاره چه جهنم دے لکه په سورة نباء ۲۲ کښ۔ دویم قسم خائسته چه جنت دے۔ د دے وجے نه دلته حسن مآب نه مراد جنت دے او حسن د هغے د دے وجے دے چه همیشه دے نه فنا کیږی او نه کمیږی۔ او سبب دے د ایدی خوشحالو د پاره۔

وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ

او رضامندی د الله تعالیٰ د طرف نه او الله تعالیٰ

بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۱۵﴾ۚ

لیدونکے دے بندګانو لره۔

س۱۵: دَ تزهید فی الدنیا نه روستو اوس ترغیب ورکوی آخرت ته۔ دا رنګ مخکښ حسن المآب ذکر شو نو اوس دَ هغے تفصیل او دَ هغے دَ مستحقینو ذکر کوی۔

قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ، لفظ دَ قل یے دَ اهتمام او ترغیب الی الآخرت دَ پاره ذکر کړو۔ اَؤُنَبِّئُكُمْ کښ همزه دَ استفهام داخل دے په فعل مضارع صیغه دَ متکلم مفرد باندے او دا استفهام تقریری دے دَ پاره دَ شوق ورکولو مخاطبینو ته دَ اوریدلو دَ روستو کلام۔ كُمْ مفعول اول دے او بخیر مفعول ثانی دے۔ او دا معنیٰ اعلام لره متضمن نه ده ځکه بیا به یے درے مفعولونه غوختل۔ مِنْ ذٰلِكُمْ کښ اشاره ده چه خیر اسم تفضیل دے۔ او ذٰلِكُمْ اشاره ده متاع الدنیا ته چه مخکښ ذکر شوی دے۔ او مِنْ ذٰلِكُمْ صله ده دَ پاره دَ خیر۔ نو تفضیل دا دے چه تیر شوے څیزونو دَ متاع کښ څه بعض خیریت شته لیکن په نعمتونو دَ جنت کښ ډیر خیریت دے۔ یا خیر اسم تفضیل نه دے صرف صفت دے بنا په دے سره په متاع دَ دُنیا کښ هیڅ خیر نیشته۔ (دا قول ابوحیان غوره کړیدے)۔

لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا، په دیکښ یو احتمال دا دے چه دا متعلق دے په خیر پورے۔ عِنْدَ رَبِّهِمْ او جَنّٰتٌ استیناف دَ بیان دے دَ پاره دَ خیر۔ دویم احتمال دا دے چه دا خبر مخکښ دے او جنّٰتٌ مبتداء ده۔ دلته مراد دَ تقوٰی نه دَ شرک او کفر نه ځان بچ کول دی چه هغه اوله مرتبه دَ تقوٰی ده۔

عِنْدَ رَبِّهِمْ، دا حال مقدم دے دَ جنّٰتٌ نه۔ یا متعلق دے په

# اَلَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اِنَّنَآ

هغه کسان چه وائی دوی اے ربه زمونږ یقینًا مونږ

# اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا

ایمان راوړے دے نو بخنه اوکړے مونږ ته د ګناهونو زمونږ

خیرپوړے او دَ عِنْدَ نه مراد عندیت دَ تقرب دے۔

جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا، جمع کښ اشاره ده کثرت دَ باغونو ته او نکره کښ اشاره ده چه دَ هغے حالات او نعمتونه ډیرنا اشنادی۔ نور تفسیر سورة بقره کښ تیرشوے دے. په دیکښ ډیر بشارات دی. اول خیر، دویم عِنْدَ رَبِّهِمْ، دریم جنات، څلورم تجری او پنځم خٰلِدِيْنَ فِيْهَا، شپږم وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ردے تفسیر هم مخکښ تیرشوے دے)۔

وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ، دا اووم بشارت دے۔ او مخکښ مادی نعمتونه وو او دا روحانی نعمت دے۔ دَ دینه مخکښ لفظ دَ لهم پټ دے یا داعطف دے په جَنّٰتٌ باندے۔ او دا لوئے نعمت دے دَ مخکنو نعمتونو په نسبت سره۔ ځکه چه په حدیث دَ بخاری او مسلم کښ راغلی دی چه الله تعالیٰ به جنت والو ته اوفرمائی چه آیا تاسو ته دَ ټولو نعمتونو نه غوره نعمت نه درکوم. نو دوی به اووائی اے ربه دَ دینه لاغوره نعمت کوم یو دے. نو الله تعالیٰ به اُوفرمائی چه نازلووم په تاسو باندے رضا خپله او نه به غصه کیږم په تاسو باندے هیڅرے، او دا زیرے په سورة توبه ۲۱ ۷۲ او سورة حدید ۲۰ کښ دے. او دائے په صیغه مصدر سره نکره ذکر کړیده دَ پاره دَ ډیر عظمت دَ دے نعمت. او مِنَ اللّٰهِ سره نور تاکید دے۔

وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِالْعِبَادِ، بصیر متضمن دے معنیٰ دَ علیم لره دَ دے وجے نه ئے په صله کښ باء ذکر کړیده. او دَ الْعِبَادِ نه مراد الذین اتقوا دی۔ او الف لام عهدی دی یعنی هغه خلق چه عبدیت ئے الله تعالیٰ لره خاص کړیدے۔

وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۶﴾ اَلصّٰبِرِيْنَ

او بچ اوساتے مونږ د عذاب د اور نه - چه صبر کوونکی دی

وَالصّٰدِقِيْنَ وَالْقٰنِتِيْنَ وَالْمُنْفِقِيْنَ

او رشتیا ویونکی دی او تابعداری کوونکی دی او خرچ کوونکی دی

وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴿۱۷﴾

او بخنه طلب کوونکی دی په وخت د پیشمنی کښ -

سـ۱۶ :- په دے آیت کښ د العباد عبدیت ذکر کوی د هغوی په خاص دُعا کولو سره -

اَلَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ ، په دیکښ رفع ، نصب ، او جر دریواړه احتمالات دی - خبر د مبتداء پټ د پاره دے یعنی هُمْ - یا مبتداء ده او خبر ئے پټ دے یعنی الذین آه یستجاب لهم - یا لفظ د اعنی او امدح پټ دے - یا صفت دے او یا بدل دے د العباد د پاره -

رَبَّنَآ اِنَّنَآ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا ، په دیکښ اول ذکر د توسل (وسیله نیولو) دے په صرف ایمان سره - او دا دلالت کوی چه صرف صحیح ایمان د مغفرت د پاره سبب کیدیشی - لکه د دے سورت په آیت سـ۱۹۳ کښ دی او دا دلیل دے چه غوره وسیله د مؤمن د پاره ایمان د هغه دے - او په دیکښ اشاره ده چه انسان اول مغفرت د گناهونو ته ډیر محتاج دے -

وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ، دا دویم مقصد دے او مراد د بچکیدلو نه دا دے چه هیڅ وخت په عذاب د اور کښ داخل نشی بلکه د ابتداء نه جنت ته لاړشی - دا هم دلیل دے چه صرف ایمان هم جنت ته د دخول اولی د پاره سبب کیدیشی - نو معلومه شوه چه اعمال صالحه جزء (په طریقه د رکنیت مستقله سره) د ایمان نه ندے لکه چه معتزله او خوارج دا سے وائی -

سـ۱۷ :- دا د کمال ایمان د پاره صفات دی په دُنیا کښ - او

دَحصول دَلویو درجاتو دَپارہ په جنت کښ۔ په دے آیتونو کښ
ښائسته ترتیب دے۔ اول ئے تقوٰی ذکرکړه چه هغه دَهرقسم
کفراو شرک نه بچکیدل دی۔ دویم ئے په ایمان خالص سره
عبدیت ذکرکړو۔ دریم ئے دغه ایمان وسیله اوګرځوله په
دُعا اوتضرع په مغفرت دَګناهونو سره۔ څلورم اوس نور
صفات ذکر کوی دَکمال دَایمان دَپاره۔

اَلصّٰبِرِیْنَ، دَ دے دَ اعراب محل دَ الذین یقولون پشان
دے۔ اول صفت صبر دے په ادا دَ طاعاتو او په اجتناب
دَ محرماتو او په تکالیفو دَدین باندے۔ نو په دے صفت کښ
اقامت (پابندی) دَ مونځ او ادا دَ روژے داخل ده۔

وَالصّٰدِقِیْنَ، دا دویم صفت دے۔ صدق په قول فعل او
نیت دریواړو کښ دے یعنی په ژبه دروغ نه وائی۔ او دَ
عقیدے خبره دَ زړه سره موافق کوی او اعمال پوره کوی۔
او په نیت کښ ئے اخلاص وی ریاء او دَ دُنیا طلب ئے
مقصد نه وی۔ نو په دیکښ اشاره ده چه دَ منافقانو دَ
صفاتو نه اجتناب کوی۔

وَالْقٰنِتِیْنَ، دا دریم صفت دے دَ دے تفسیر په سورة
بقره کښ تیر شویدے۔ او دلته دَ قنوت نه مراد دوام او
همیشوالے دے په ټولو طاعاتو باندے۔ او په دیکښ دَ
ښځے عبادت کول داخل دی په قرینه دَ سورة زمرسره۔

وَالْمُنْفِقِیْنَ، دا څلورم صفت دے۔ مخکښ صفات
عبادات بدنیه وو او دا صفت عبادت مالیه دے۔ فرض
نفل وغیره ټولو ته شامل دے۔ دَ انفاق تفسیر هم په
سورة بقره کښ تیر شوید ے۔

وَالْمُسْتَغْفِرِیْنَ بِالْاَسْحَارِ، دا پنځم صفت دے۔ او دا
صفت دَ مخکنو صفاتو دَ تکمیل دَپاره دے یعنی په تیر
شوی صفاتو باندے دا سے اعتماد نیشته چه استغفار ته
حاجت پاتے نشی بلکه دَ ټولو عباداتو سره سره استغفار

ضروری دے دَپاره دَ قصور دفع کولو په دغه عباداتو کښې
او اسحار جمع دَ سحر ده زجاج وئیلی دی چه دَ طلوع دَ
فجر (صبا) نه مخکښې وخت دَ سحر دے یعنی دَ پیشمنی
وخت - او دا آخری شپږمه حصه دَ شپے ده - او امام
راغب وئیلی دی چه سحر کړه والے (ریوځائے والے) دَ تیارې
دَ شپے دے دَ رنړا دَ صبا سره - او بعضو وئیلی دی چه دَ
دے اطلاق دَ شپے دَ آخرے حصے نه تر رنړا دَ صبا
پورے باندے کیدیشی - دَ دے وخت تخصیص یئے دَ
دے وجے نه اوکړو چه اشاره اوشی چه دوی دَ شپے
عبادت کوی تر سحر پورے او په آخر کښې استغفار غواړی.
او بله وجه دا ده چه دا وخت دَ اجابت دَ دُعا گانو دے
په سبب دَ حدیث دَ بخاری او مسلم سره چه دَ شپے په
روستنئ دریمه حصه کښې الله تعالیٰ راکوزیږی آسمان
دَ دُنیا ته - او وائي چه څوک دے چه ځما نه دُعا او غواړی
چه قبول یئے کړم او څوک سوال کوی چه ورکړم او څوک
بخنه غواړی چه ورته اوکړم -
فائده ۱ :(سوال) دَ دے صفتونو په مینځ کښې یئے
واو دَ عطف ولے ذکر کړیدے ؟
جواب ۱ :- دا دخول دَ واو دَ تفخیم (عظمت) دَ هر
صفت دَپاره دے.
جواب ۲ :- دا صفتونه متفرق دی په انسانانو کښې سره
دَ جمع دَ اصل صفاتو نه یعنی په کامل صالح بنده کښې دا
ټول راجمع وی لیکن په بعضے کسانو کښې یو صفت غالب
وی او په بعضے کښې بل غالب وی -
فائده ۲ :- په دے صفاتو کښې دَ ایمان نه روستو
عبادات بدنیه (دَ زړه صبر، دَ ژبے صدق او دَ نورو
اندامونو قنوت) او عبادات مالیه ذکر شویدی -
فائده ۳ :- سوال دا دے چه په سورة احزاب ۳۵

شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۙ

گواهي کړے ده الله تعالىٰ په دے خبره چه نيشته حق دار د بندګۍ سِوا د هغه نه

وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَاُولُوا الْعِلْمِ قَآئِمًا

او ملائکو او علم والو (پدااسے حال) چه او لاړ وی

بِالْقِسْطِ ؕ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ

په انصاف سره نيشته حقدار د بندګۍ سِوا د هغه نه چه زور آور

الْحَكِيْمُ ؕ ﴿١٨﴾

حکمتونو والا دے۔

النصف

کښې ئے خو لس صفات ذکر کړيدی ؟
جواب :- دا مقام د نصاراؤ دے چه په هغوی کښې د صالحينو دا ينځه صفات وی روستو د تقویٰ او د ايمان نه - او سورتِ احزاب کښې مقام د صحابه کرامو او صحابياتو دے يعنی په هغوی کښې لس صفات موجود دی - د هغوی شان د نورو اُمتونو او خلقو نه اوچت دے۔
١٨ - د دويم باب خلاصه :- د دے ځائے نه دويم باب دے تر آيت ٢٥ پورے - په دے باب کښې اول دعوىٰ د توحيد ده سره د دليل وحی ، نقلی او عقلی او نتيجے نه په آيت ١٨ کښې - بيا جواب دے د هغه چاچه دليل نيسی په اقوالو د باغيانو خلاف د دين اسلام نه - بيا دعوت دے هغوی ته په محاجه کولو سره - بيا ذکر د اسبابو د عذاب دے سره د تخويف اخروی نه او دا اسباب په باغيانو کښې دی په آيت ٢٢ کښې - بيا محال دے د باغيانو د مقلدينو - او اعراض د هغوی د کتاب الله نه په دوه اسبابو سره په ٢٣ ، ٢۴ کښې - بيا تخويف اُخروی دے دوی ته په ٢٥ کښې۔

ربط :- هر کله چه مخکښې ئې صفات دَ اولو العلم ذکر کړل۔
نو اوس په توحید باندے دَ هغوی شهادت ذکر کوی ځکه
چه دَ قبول دَ شهادت دَ پاره دَ صفاتو دَ عدل ضرورت
دے او دغه صفتونه دَ عدالت دی نو دَ هغوی شهادت
ځکه قبول دے۔ بیا دَ تاکید دَ شهادت دَ اولوالعلم دَ پاره اول شهادت دَ الله تعالیٰ او
دَ ملائیکو ذکر کوی۔ اشاره ده چه دَ دوی شهادت مطابق دے دَ شهادت دَ الله تعالیٰ او دَ ملائکو سره۔

تفسیر :- شَهِدَ اللّٰهُ ، مفسرینو دلته دَ شَهِدَ معنے ډیرے
لیکلی دی۔ اوله معنیٰ قال (وئیلی ئې دی) دویمه معنیٰ بَیَّنَ
(بیان کړیدے) دریمه معنیٰ حَکَمَ (حکم ئې کړیدے)
څلورمه معنیٰ اعلم (خبرئې ورکړیدے)۔ پنځمه معنیٰ
قضٰی (فیصله ئې کړیده) شپږمه معنیٰ ذکر دَ مسئلے دَ
توحید په ډیرو سورتونو کښې سره دَ دلیلونو نه دا
شهادت دَ الله تعالیٰ دے۔

اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ، الوهیت په معنیٰ دَ معبودیت، واکدارئ
او تصرف کولو دے چه هغے ته صفات الالوهیت وئیلے شی۔
او رد دے په نصاراؤ باندے چه دا سے صفات په عیسٰی
علیه السلام کښې نیشته۔

وَالْمَلٰٓئِكَةُ ، دَ ملائکو شهادت راوړل دَ وحی دَ توحید دی
په انبیاء علیهم السلام باندے په هره زمانه کښې۔ او
دا په سورة صافات څلورم آیت کښې هم ذکر دے۔
او دَ دے نه مراد ټول ملائک دی په دلیل دَ سورتِ
صافات سره۔ او وَالْمَلٰٓئِكَةُ عطف دے په لفظ الله باندے
یا دا جمله ده او لفظ دَ شهد پکښې پټ دے۔

اُولُوا الْعِلْمِ ، دَ دینه مراد علماء دَ توحید دی چه په هره
زمانه کښې ئې دَ توحید دعوت کړیدے او کوی۔ انبیاء
علیهم السلام، صحابه کرام او علماء دَ مؤمنانو اهلِ کتابو
او ټول مؤمنان چه شهادت دَ توحید کوی په دیکښې داخل دی
سوال :- الله تعالیٰ خو مدعی دَ توحید دے نو هغه ته دَ شهادت

نسبت په څه وجه سره اُوشو؟
جواب ۱ :- محکیں دَ شهد معنے ذکر شوے چه قال - بَیَّنَ، حکم، قضٰی او اعلم دی په هغے کښ دَ شهادت معروفه معنیٰ نیشته
جواب ۲ :- شهادت په معنیٰ دَ اثبات کؤونکی دے په دلیلونو دَ توحید سره - نو دا معنیٰ دَ دعوے سره منافی نه ده -
سوال :- دَ الله تعالیٰ شهادت جدا دے او دَ ملائکو او اولوالعلم شهادت جدا دے نو په یو لفظ (شهد) سره دواړه معنے څنګه مراد کړے شوی دی؟
جواب :- څوک چه دَ عموم مشترك قائیل دی نو دَ هغوی په نیز هیڅ اشکال نیشته - لیکن هر کله چه معنیٰ دَ شهد عام ده قال او اعلم وغیره ته نو دا اقرار او دعوت کول دَ ملائیکو او اولوالعلم ته حقیقتاً شامل دے -
فائده ۱ :- قرطبی او صاحب اللباب وئیلی دی چه دا آیت بنکاره دلیل دے په شرافت دَ علم باندے ځکه چه الله تعالیٰ دَ دوی شهادت دَ خپل ځان او دَ ملائیکو دَ شهادت سره یو ځائے ذکر کړے دے - ۲ :- دلته شهادت دَ الله تعالیٰ په توحید باندے ذکر کړیں دے او دا رنګ په سورة انعام ۱۹ کښ هم دے - او په سورة نساء ۱۶۶ کښ شهادت دے په قرآن باندے او په سورة منافقون اول آیت کښ شهادت دے دَ الله تعالیٰ دَ منافقانو په کذب باندے - او په سورة نساء ۷۹ کښ شهادت دَ الله تعالیٰ دے په رسالت دَ آخری رسول باندے او دا رنګ په سورة اسراء ۹۶ کښ -
قَآئِمًا بِالْقِسْطِ، دا منصوب دے بنا په حالیت او حال دے دَ لفظ الله نه یا دَ لفظ دَ هُوَ نه یا حال دے دَ دریواړو نه او دَ قیام بالقسط نه مراد قیام دے په تدبیر دَ خلقو باندے په عدل او انصاف سره - خو دا په هغه وخت کښ چه حال شی دَ لفظ الله یا هُوَ نه او که دَ دریواړو نه حال شی نو معنیٰ دا ده چه دریواړه پاسه دی په خبره دَ قسط باندے چه

توحید دے، په دیکښ هیڅ تیریلي نه راولي - آلوسي وئیلي دي چه دا ذکر د کمال دے د الله تعالیٰ په افعالو او تصرفاتو کښ روستو د کمال ذاتي د هغه نه - او قسط لفظ په قرآن کښ پنځلس کرته راغلے دے - هر ځائے کښ په معنیٰ د عدل او په معنیٰ د ورکولو د حق دے حاوس د حق ته -

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ، د دے د تکرار ډیر وجوه دي - اوله وجه دا چه اوله کلمه کښ صرف اختصاص د الله تعالیٰ په الوهیت سره مراد وو او په دے کلمه کښ اختصاص په دوؤ صفتونو سره مراد دے یعني الوهیت او عدل کول (کشاف) - دویمه وجه دا چه اوله کلمه په شهادت د الله تعالیٰ سره ذکر ده - او دویمه په شهادت د ملائیکو او اولوالعلم سره ذکر ده - لیکن دا وجه بنا ده چه د وَالْمَلٰٓئِکَةُ نه وړاندے لفظ د شهادت پټ دے او دا وجه مرجوح ده - دریمه وجه دا چه د دے په تکرار کښ اشاره ده کثرتِ ذکر د دے کلمے ته ځکه چه دا لوئے عبادت دے - څلورمه وجه دا چه په اوله کلمه کښ اشاره ده توحید ته په صفاتو د تنزیه سره او په دویمه کښ اشاره ده صفاتو د تمجید ته په سبب د ذکر کولو د الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ - پنځمه وجه دا چه اوله په طور د دعوے سره وه او روستو د شهادت ذکر کولو نه په طور د نتیجے سره ذکر شوه -

الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ، دا صفات هم په طریقه د دلیل سره دي د پاره د توحید د الوهیت ځکه چه اول صفت کښ اشاره ده ټولو صفاتو د قدرت او تصرف ته په دویم صفت کښ اشاره ده صفت د علم د الله تعالیٰ ته (ابوحیان) -

فائده:- په دے آیت کښ لفظ د شَهِدَ کښ اشاره ده دلیل وحي ته - او وَالْمَلٰٓئِکَةُ او اُولُوا الْعِلْمِ کښ اشاره ده دلیل نقلي ته - او په قَآئِمًا بِالْقِسْطِ کښ اشاره ده دلیل عقلي ته - او اول لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ دعویٰ ده او دویم نتیجه ده -

إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ ۗ قف

یقیناً دین (قبول کړیشوے) په نیز دَ الله تعالیٰ اسلام دے

وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ

او اختلاف نه دے کړے هغه کسانو چه ورکړے شوے دے هغوی ته کتاب

إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ

مګر روستو دَ هغے نه چه راغلے دے دوی ته علم

بَغْيًا بَيْنَهُمْ ۗ وَمَن يَكْفُرْ بِآيَاتِ

دَ وجے دَ ضد کولو نه په مینځ دَ دوی کښ او چا چه کفر اوکړو په آیاتونو دَ

اللَّهِ فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿١٩﴾

الله تعالیٰ نو یقیناً الله تعالیٰ زر حساب کوؤنکے دے۔

س۱۹۔ ربط لہ :۔ هر کله چه مخکښ آیت کښ لا اله الا هو. ثابت کړے شو په شهادت خاصه سره نو په دے آیت کښ دَ هغے نوم ذکر کوی چه اسلام دے۔

ربط ۲ه :۔ دا رنګ مخکښ دَ نصاراؤ دَ شبهے جواب اوکړے شو (شبهه دَ هغوی دلیل نیول وو په متشابهاتو سره) نو اوس هغوی ته دَ اصل مقصد دعوت ورکوی چه اسلام دے۔

إِنَّ الدِّينَ، دَ لفظ دَ دین تفسیر په سورة فاتحه کښ تیر شوے دے۔ دین په عرف کښ مجموعه دَ هغه عقائدو او اعمالو وی چه یو قوم په هغے باندے تلل کوی دے دَ پاره چه جزاء ورته ملاؤ شی۔ برابره خبره ده که دا دین صحیح وی او که خطا وی۔ دَ دے وجے نه دَ مشرکانو دین ته هم دین وئیلے شوے دے په سورة الکافرون کښ (لَكُمْ دِينُكُمْ وَلِيَ دِينِ) او دَ شریعت په اصطلاح کښ دین مقرر کول دَ عقائدو

او اعمالو دی دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دَ ذوی العقولو دَ پاره
چه هغوی ئې په خپل اختیار سره غوره کړی دَ خپل ځان
دَ پاره - دلته الذین کښې الف لام جنسی دی۔
عِنْدَ اللّٰهِ، دلته عند دَ اعتبار او قبولیت دَ پاره دے۔ دَ
علم دَ پاره نه دے۔
الْاِسْلَامُ، قتاده وئیلی دی چه اسلام شهادت دَ لا اله الا الله
دے او اقرار په هغه څیزونو دے چه دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه
په وحی سره راغلے وی - او دا هغه دین دَ الله تعالیٰ دے
چه دَ هغے تشریع ئې کړیده او په هغے سره ئې رسولان
رالیږلی دی - او دَ هغه دوستانو هغے ته دعوت کړیدے
او دَ هغے نه سیوا بل هیڅ دین نه قبلوی - او بغیر دَ هغے نه
په بل دین باندے جزاء (ثواب) نه ورکوی (ابن جریر)۔
اسلام په لغت کښې انقیاد، طاعت، تسلیم او متابعت ته وئیلے
شی او دَ شریعت په اصطلاح کښې ایمان دے سره دَ
انقیاد نه ظاهراً او باطناً - ایمان او اسلام په اعتبار دَ
شرعے سره یو شان دی لکه چه په سورة ذاریات ۳۵،
۳۶ کښې دی - او کله اسلام صرف اعمال ظاهریه ته وئیلے
شی لکه په سورة حجرات ۱۴ کښې - دا رنګ ایمان کله
صرف تصدیق دَ زړه ته وئیلے شی او دَ هغے اظهار کول
په ژبے سره - او کله کله ئې اطلاق په اعمالو باندے هم
کیږی۔
دلته حصر دَ مسند الیه شویدے په مسند کښې - نو لازم
دَ حصر سره دا ده چه نیشته هیڅ دین مګر اسلام دے۔
لیکن دینونه خو ډیر دی په دُنیا کښې په معنیٰ عرفی سره
نو لفظ دَ عند الله دلالت کوی چه دلته معنیٰ دا ده چه
یقیناً هغه دین چه مقبول او مرضی او معتبر دے په نیز
دَ الله تعالیٰ نو هغه صرف اسلام دے - او دَ مخکښې معنے دَ
اسلام نه معلومه شوه چه دَ ټولو انبیاء علیهم السلام

دین ته اسلام وئیلے شی - لکه چه دین دَ ابراهیم علیه السلام ته ډیرو آیتونو کښ اسلام وئیلے شوے دے لکه بقرة ۱۳۲ او آلعمران ۶۷ - او دین دَ یعقوب علیه السلام او دَ ځامنو دَ هغه هم اسلام دے بقرة ۱۳۳ - دین دَ حوارئیتو دَ عیسیٰ علیه السلام هم اسلام دے مائده ۱۱۱ - دَ تابعدارو دَ موسیٰ علیه السلام دین هم اسلام دے اعراف ۱۲۶ - دین دَ سلیمان علیه السلام اسلام دے نمل ۳۱، دین دَ حق پرستو اهل کتابو مخکنو اسلام دے سورة قصص ۵۳ - دین دَ تابعدارو دَ لوط علیه السلام هم اسلام دے سورة ذاریات ۳۶ نو دلته دَ اسلام نه دا مراد دے - بیا په وخت دَ نزول دَ قرآن کښ دا نوم په دین دَ محمد صلی الله علیه وسلم پورے خاص شو - او په دے جمله کښ رد دے په نصاراؤ دَ نجران باندے چه هغوی دَ نصرانیت (محرف) دین ته مقبول دین وئیلو -

وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْکِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْیًا بَیْنَهُمْ، دا جواب دَ یو پټے شبهے دے - شبه دا ده چه یهودیانو خو عزیر علیه السلام ته ابن الله وئیلے دے او نصاراؤ عیسیٰ علیه السلام ته ابن الله وئیلے دے او نور هم دَ شرک کارونه پکښ شته بلکه هغه دوی پخپل کتابونو کښ هم لیکلی دی - او دَ آخری نبی او قرآن نه هم انکار کوی. او دَ دے دَ پاره ئے پخپلو کتابونو کښ تحریفونه کړیدی او محرف کلمات ئے لیکلی دی - نو که غوره دین صرف اسلام وے نو دغه علماؤ او پیرانو وغیره به منلے وے او دَ دینه به ئے مخالفت نه کولے - نو په دے جمله کښ دَ دے جواب دے چه دَ دغه احبارو او رهبانو دا مخالفت په ضد او عناد او بغی باندے بنا دے دَ دوی دا تحریفات او مخالف کیدل دَ دین اسلام په خلاف کښ هیڅ دلیل نشی کیدے - او س هم بعضے جاهلان داسے وائی چه دَ توحید وسنت خلاف خو لوئے لوئے عالمان کوی او هغوی دَ شرک او بدعاتو په

اثبات کښ ډیر کتابونه او رسالے لیکلی دی. یا ئے په صحیح کتابونو کښ دَځان نه باطلے خبرے داخل کړی دی (دَښ ئے کړے دے) نوکه توحید وسنت حق وے نو دغه علماؤ ولے مخالفت کړے دے نو دَ هغے هم دغه جواب دے چه دَ دوی دا مخالفت په دلیل بانډے نه دے بنا بلکه دَ ضد اوحسد دَ وجے نه دے. او دا سے آیت په سورة بقره ۲۱۳، سورة شورٰی ۱۴ اوسورة جاثیه ۱۷ کښ هم دے.

اَلْعِلْمُ نه مراد ښکاره دلیلونه دَ حقانیت دَ اسلام دی او هغه په تورات او انجیل کښ او په قرآن کښ هم شته.

بَغْيًا مفعول له دے دَ اِخْتَلَفَ دَ پاره یا حال دے دَ الذین نه. بَيْنَهُمْ، دَ دے بل جانب حذف دے یعنی وَبَيْنَ اَهْلِ الْحَقِّ. لیکن دَ حق والو دَ طرف نه حسد نیشته دَ دے وجے نه ئے دَ هغوی ذکر اونکړو. یا دلته یو لفظ پټ دے (نشأ وباض بینهم) پیدا شو او اچولے ئے واچولے دَ دوی په مینځ کښ. اوابن عاشور په التحریر والتنویر کښ ډیر تفصیلی لیکلی دی چه دلته دَ اختلف متعلق ئے ځکه نه دے ذکر کړے چه دَ اختلاف ډیر اقسام دی دا هغه ټولوته شامل دے. اول قسم، اختلاف دَ هر امت دے دَ بل سره په صحت دَ دین کښ لکه وقالت الیهود لیست النصارٰی علی شیءٍ وقالت النصارٰی لیست الیهود علی شیءٍ. دویم قسم، افتراق دَ هر اُمت دے په اُمت کښ ډیرو ډلو ته. لکه چه په حدیث کښ راغلی دی چه په یهودو کښ یواویا فرقے وے او په نصاراؤ کښ دوه اویا فرقے وے. دریم قسم، دوی اختلاف کړیدے په کومے کښ په مخالفت دَ اسلام بانډے په بغی اوحسد سره دَ علم دَ حقانیت دَ هغے نه. نو دلته دا ټول اقسام مراد دی خصوصًا دریم قسم.

وَمَنْ يَكْفُرْ بِاٰيٰتِ اللهِ، په دیکښ اشاره ده چه دغه اختلاف په اصولو دَ اسلام کښ دے او دا کفر دے یعنی دَ دوی

فَإِنۡ حَآجُّوكَ فَقُلۡ أَسۡلَمۡتُ

نو که دوی جګړه کوی تاسره نو ته اُوایه چه تابع کړخولے دے ما

وَجۡهِيَ لِلَّهِ وَمَنِ ٱتَّبَعَنِۗ وَقُل

مخ خپل الله تعالیٰ ته او هغه څوک چه زما تابعداری کریږه او ته اُوایه

لِّلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡأُمِّيِّـۧنَ

هغه کسانو ته چه کتاب ورکړے شوے دے او امیانو ته

ءَأَسۡلَمۡتُمۡۚ فَإِنۡ أَسۡلَمُواْ

آیا تاسو تابعداری کوی نو که چرے دوی تابعداری اوکړله

فَقَدِ ٱهۡتَدَواْۖ وَّإِن تَوَلَّوۡاْ فَإِنَّمَا

نو یقیناً هدایت یې اوموندلو او که چرے دوی مخ اوګرځوۀ نو یقیناً

عَلَيۡكَ ٱلۡبَلَٰغُۗ وَٱللَّهُ بَصِيرُۢ

په تا باندے (لازم دی) رسول او الله تعالیٰ وینی

بِٱلۡعِبَادِ ﴿٢٠﴾ ع ١٠/٢

خپلو بندګانو لره۔

دغه اختلاف مستلزم دے کفر لره په آیاتو نو دَ الله تعالیٰ باندے چه تورات، انجیل او قرآن کښې دی۔ فَإِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلۡحِسَابِ، حساب په معنیٰ دَ مناقشے دے یا کنایه ده دَ جزاء ورکولو نه۔

ف۲۰ :- په دیکښې دَ اختلاف دَ نتیجے ذکر دے او محاجه کول او دَ هغے ادب خودل دی مسلمانانو ته یعنی هر کله چه دوی دَ دین اسلام نه مخالفت کوی نو ځامخا به دوی دَ خپل مخالفت سره څه حجتونه پیش کوی۔ او حجتونه دَ باطل دَ پاره نشی کیدے نو معلومه شوه چه مراد دَ

دینه صرف جګړه کول دي او دا صفت دَ ضدیانو او حاسدانو دے.

فَإِنْ حَآجُّوكَ کښ ضمیر راجع دے اختلف الذین ته چه هغه یهود او نصارٰی دَ نجران دي اګر چه حکم عام دے.

فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلّٰهِ، دَ دے جملے اوله توجیه دا ده چه په دیکښ مقصد تصریح کول دي پخپله دعوی باندے یعنی هغه اسلام چه دین حق دے نو ځه په هغے باندے پوخ یم - دَ الله تعالیٰ سره هیڅ قسم شرک نه کوم - او تاسو راسے کتابیانو) شرک او کفر کوئ. یعنی زمونږ محاجه په فرعی مسائلو کښ نه ده بلکه په اصولو دَ اسلام کښ ده - دویمه توجیه دا ده چه دا قول دَ محاجے دَ ختمولو دَ پاره دے یعنی هر کله چه په توحید باندے دلیلونه ذکر شول او دَ شبهاتو جوابونه اوشول او شهادتونه قائم شول او روستو حکم اوشو چه دَ دوی مخالفت کول په ضد او حسد باندے بنا دے. نو په آخر کښ ئے اُوئیل چه هر چه ځه یم نو ځه خود حق منقاد او تابع یم اوس ستاسو خوښه ده که موافقت کوئ او که مخالفت کوئ - او دا طریقه دَ حق پرستو ده په مقابله دَ باطل پرستو کښ - وَجْهِيَ دَ وَجْهَ نه دے او مراد تری نه مخ دے لیکن تابع کول دَ مخ کنایه ده دَ تابع کولو دَ ذات نه - یا وجه په معنیٰ دَ عمل ده رفراء بغوی).

وَمَنِ اتَّبَعَنِ، دا عطف دے په تاء دَ متکلم باندے په أَسْلَمْتُ کښ - یا مبتداء ده او خبر ئے پټ دے یعنی کذالك - دَ دے لفظ اول مصداق صحابه کرام دي او دا تصریح ده په اسلام دَ صحابه کرامو باندے - هاں روستو تهولو تابعدارانو ته شامل دے - او لفظ دَ أَسْلَمْتُ ټولو اصولو او فروعو دَ اسلام ته شامل دے

چه هغه کمال اسلام دے۔
وَقُل لِّلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ ءَأَسْلَمْتُمْ، دا هغه دعوے ته دعوت دے چه په اسلمت کښ ذکر شوه۔ یعنی روستو د دعوے ته دعوت ورکول پکار دی۔ هر کله چه په مخکښ آیاتونو کښ خطابات وو اهلِ کتابو ته او د هغوی اختلاف یې ذکر کړو نو د دے وجے نه د هغوی ذکر یې اول اوکړو۔ او وروسته د عموم د دعوت د پاره یې امیین ذکر کړل۔ او د امیین نه مراد مشرکین عرب دی ځکه چه د هغوی سره سماوی کتاب نیشته۔ او نه هغوی دعوٰی کوی۔ نو د دیته مراد بے کتابه کافر دی لکه چه په دے زمانه کښ هندوان، سکهان او بُدمذهب والا دی وغیره۔ یا دوی اکثر اهل د کتابت (لیکونکی) او قراءت والا (لوستونکی) نه وو د دے وجے نه ورته امیین او ویلے شو۔ نو په دے وجه امیا نو د دے اُمت ته هم شامل دے۔
ءَأَسْلَمْتُمْ، استفهام په معنیٰ د طلب دے یعنی اسلام قبول کړئ
فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوا، روستو د دعوت د اسلام نه دوه لارے دی یا اسلام قبلول دی یا د هغے نه مخ اړول دی نو دواړه حکمونه یې ذکر کړل۔
اهْتَدَوا، کښ اشاره ده چه د هر قسم کفر گمراهئ نه هر یو شخص په اسلام قبلولو سره بچ کیږی۔
وَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ، اصل جواب پټ دے یعنی فَلَا تَحْزَنْ (مه خفه کیږه) وَلَا تَبِعَةَ عَلَيْكَ (په تا باندے هیڅ تاوان نیشته) او فَإِنَّمَا علت دے د پټ جواب د پاره۔
وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ، دلته عباد عام دے مؤمن او غیر مؤمن دواړو ته۔ او علم د الله تعالیٰ کنایه ده د جزاء او سزا ورکولو نه هر چا ته په مناسب طریقے سره۔

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ

یقیناً هغه کسان چه کفر کوی هغوی په آیاتونو دَ الله تعالیٰ باندے

وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ

او وژنی پیغمبران په غیر دَ جرم شرعی نه

وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ

او وژنی دوی هغه کسان چه حکم کوی

بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُمْ

په انصاف سره دَ خلقو نه نو زیرے ورکړه دوی ته

بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿۲۱﴾

په عذاب دردناک سره

۲۱ په دے آیت کښ دَ اِنَّ تَوَلَّوْا تفصیل دے۔ یعنی دغه اهلِ کتابو (یهودو نصاراؤ) دَ اسلام نه مخ ګرځولے دے په دلیل دَ دے درے کارونو دَ هغوی۔ او هغوی ته تخویف اُخروی ذکر کوی۔ اول کار یے دا دے چه اِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ، دَ آیات الله نه مراد تورات، انجیل او قرآن دے چه دوی دغه آیاتونو دَ توحید او دَ رسالت دَ آخری رسول نه مخالفت کریدے۔ دا صفت دَ دوی په مشرانو کښ وو او دا رنګ په کشرانو کښ یے هم دے۔ دَ دے وجے نه یے په صیغه دَ فعل مضارع سره ذکر کړے۔ او دویم کار یے دا دے چه وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ، دَ دے تفسیر په سورتِ بقره کښ تیر شوے دے۔ او دا صفت صرف دَ دوی دَ مشرانو وو لیکن کشرانو تعریف کوو دَ دغه کار دَ خپلو مشرانو او حق یے ګڼړلو نو ګویا چه کشران هم په دغه کار کښ شریک شول دَ مشرانو سره۔ دَ دے وجے نه یے په صیغه دَ فعل مضارع سره ذکر کړو۔

سوال:۔ دلته حَقٍّ یے نکره ذکر کړیدہ او په سورة بقره کښ

الحق معرفه ذکر ده - جواب :- هر کله چه دلته په ان الذين
آه موصول سره ذکر شوه چه متضمن دے معنیٰ دَ شرط
لره نو تعميم فائده کوی نو نکره ذکر شوه دَ تعميم دَ پاره.
او په سورتِ بقره کښ آيت دَ معهود کسانو په باره کښ
دے .او هغه حق شرعی چه په هغے سره دَ انسان قتل
کول جائز کيږی هغه هم هغه کسانو ته معلوم وو دَ دے
وجے نه ئے په الف لام سره معرفه ذکر کړو- او دريم
کار دَ دوی دا دے چه وَيَقْتُلُوْنَ الَّذِيْنَ يَاْمُرُوْنَ بِالْقِسْطِ
مِنَ النَّاسِ ، لفظ دَ من الناس کښ اشاره ده چه
دا غير وو دَ انبياء عليهم السلام نه - يعنی نورعلماء وو
چه دعوت به ئے کولو حق ته - او قسط نه مراد دعوی
دَ توحيد او اسلام دے او هر کله چه په ديکښ يأمرون
بالقسط ذکر کړو او هغه دلالت کوی چه دَ دوی دَ قتل
کولو دَ پاره دليل نيشته نو بغير الحق ذکر کولو ته حاجت
نيشته - په دے کارونو کښ وجه دَ ترتيب دا ده چه
اول دَ دويم دَ پاره سبب دے او دويم دَ دريم دَ پاره
سبب دے نو سبب ئے مقدم کړيدے په مسبب باندے.
دَ حسن بصری نه روايت دے چه دَ امر بالمعروف او
نهی عن المنکر کوونکی مرتبه په عظمت کښ دَ انبياؤ
مرتبے ته نيزدے ده -
سوال :- النبيّن نه معلوميږی چه دے خلقو ټول انبياء
قتل کړيدی - او دا خو صحيح نه ده ؟
جواب :- په النبيّن کښ الف لام عهدی دی - او بعضے
دَ هغوی نه مفسرينو نومونه ذکر کړيدی - ابن عاشور
وئيلی دی چه دوی زکريا عليه السلام قتل کړو ځکه چه
هغه دَ يحيیٰ عليه السلام (خپل ځوئے) دَ قتل نه دَ بچ
کولو کوشش کولو - او يحيیٰ عليه السلام ئے قتل کړو ځکه
چه هغه دَ عيسیٰ عليه السلام تصديق کوو - او ارمياء

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ
دا هغه خلق دي چه برباد شوي دي عملونه ددوی

فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۚ وَمَا لَهُمْ
په دنیا او آخرت کښ او نشته دوی لره

مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٢٢﴾
هیڅوک مددګاران .

اوحزقیل علیهما السلام ئې قتل کړی وو ځکه چه هغوی به ددوی د ناکاره عملونو رد کوو - او اشعیاء علیه السلام ئې په اره باندے دوه ټکړے کړے وو - او ابن جریر او ابن کثیر په سند سره د ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه نقل کړیدی چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو چه د چا عذاب ډیر سخت دے د قیامت په ورځ - نو هغه او فرمائیل چه هغه سړے چه قتل کړی نبی لره یا هغه چا لره چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوی - بیا ئې دا آیت اولوستو او اوفرمائیل ئې اے ابوعبیده بنی اسرائیلو د ورځے په اول کښ درے څلویښت انبیاء علیهم السلام په یو ساعت کښ قتل کړل - نو بیا یو سل او بیا کسان راپاسیدل او نهی عن المنکر ئې کوله نو د ورځے په آخر کښ ئې هغوی هم په یو ځل قتل کړل - د دے وجے نه الله تعالیٰ اوفرمائیل چه فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ، هر کله چه مبتداء موصول متضمن ده معنیٰ د شرط لره نو په خبر کښ فاء راوړه -

سوال :- بشارت خو د خوشحالئ خبر ته وئیلے شی او دلته ئې د عذاب سره ذکر کړو ؟

جواب :- دیته په عربئ کښ تهکم وئیلے شی یا تلمیح - او اطلاق د یو ضد دے په بل ضد باندے -

۲۲ پہ دے کښ دَ مخکښ تخویف اخروی تاکید دے او جواب
دَ یو وهم دے۔ هغه دا چه دَ دوی دَ پاره نیک اعمال شته دے
یا دوی ځان دَ پاره شفعاء (شرکاء) نیولی دی۔ او دَ دوی تابعدار ان
مریدان او مقتدیان شته دے هغوی به ئې بچ کوی دَ عذاب
نه۔ تو حاصل دَ جواب دا دے چه دَ دوی نیک اعمال په
سبب دَ کفر بالآیات او په قتل کولو دَ انبیاؤ سره باطل شوی
دی۔ او دَ دوی شفعاء او مریدان وغیره دَ دوی سره امداد
نه شی کولے۔

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، أُولَٰئِكَ
سره اشاره ده مخکښ صفتونو ته یعنی دَ دغسے صفتونو دَ
وجے نه دَ دوی اعمال برباد شویدی۔ حَبط په اصل کښ
دَ اُوښانو مرض دے چه په ډیر خوراک سره ئې خیټه اُوپرسیږی
او دَ دے وجے نه مرشی۔ نو دَ دوی دَ اعمالو دَ حبط تشبیه ئې
دَ اُوښانو دَ دغه حالت سره ورکړیده۔ په دُنیا کښ حبط دا دے
چه دَ دوی مدح بدله شوه په ذم سره۔ او ثناء ئې په لعنت
سره او امن ئې په قتل یا په قید کولو سره بدل شول۔ او حبط
په آخرت کښ دا دے چه دغه کارونه سبب دَ نجات دَ اُور دَ جهنم نه
نه جوړیږی۔

وَمَا لَهُمْ مِّن نَّاصِرِينَ، او هر کله چه ډیر کسان نصرت نه شی
نو یو کس به څه رنګه مدد او کړی دَ دے وجے نه ئې
جمع ذکر کړه۔

فائده:۔ ابوحیان وئیلی دی چه هر کله دَ دوی درے صفات
قبیحه ئې ذکر کړل نو په هغې باندے درے عذابونه په
ترتیب سره مرتب کړل۔ یعنی په کفر بالآیات باندے بشارت
دَ عذاب الیم۔ او په قتل دَ انبیاؤ باندے بربادیدل دَ عملونو
او په قتل دَ نورو حق پرستو باندے عدم نصرت دَ ناصرینو
مرتب کړیدے۔

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا

آیا نه گورے ته هغه کسانو ته چه ورکړے شوے ده هغوی ته

نَصِيبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُدْعَوْنَ

یو برخه دَ کتاب دَ الله تعالیٰ بللے کیدلیشی دوی

إِلَى كِتٰبِ اللهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ

کتاب دَ الله تعالیٰ ته دَ پاره دَدے چه فیصله اوکړی په مینځ دَ دوی کښ

ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيقٌ مِّنْهُمْ

بیا مخ اوگرځوی یو ډله دَ دوی نه

وَهُمْ مُّعْرِضُونَ ﴿٢٣﴾

او دوی همیشه مخ گرځوونکی دی ۔

س۲۳ :۔ مخکښ دَ دوی دَ لویو علماؤ حال ذکر شو چه هغوی اختلاف بغیًا کړیوو ۔ او څه کتابونه ئے هم په ضد او عناد سره دَ دین اسلام نه مخالف لیکلی وو ۔ او هغوی مقلدین دی ۔ نو اوس دَ دوی دَ نیمگړی علماؤ حال ذکر کوی چه دَ کتاب په بعضے حصه باندے علم لری او دا دَ مخکښنو مقلدین دی ۔ دارنگ مخکښ آیاتونو کښ دَ دوی بغی او او عناد ذکر شو نو اوس دَ دوی دَ عناد غایه او دلیل ذکر کوی ۔

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتٰبِ ، أَلَمْ استفهام دَ ډیر تعجیب دَ پاره دے ۔ أُوتُوا نَصِيبًا کښ دوه احتمالات دی ۔ اول داچه دَ دینه مراد صرف یهود او نصارٰی دی چه دَ جنس کتابونو الهیو نه هغوی ته یو کتاب ورکړے شوید ے ۔ دویم احتمال داچه دَ دینه مراد هغه کتابیان دی چه دَ یهودو او نصارائو او دَ دے اُمت نه چه هغوی دَ کتاب په الفاظو پوهیږی

او په معنیٰ ئې ته پوهیږی، یا په لږه حصه پوهیږی چه هغوی ته نیمګړی مُلیان وئیلے شی - او دا غوره قول دے ځکه چه دَ اوتوا الکتاب او دَ اوتوا نصیبًا من الکتاب په مینځ کښ فرق پکار دے - بل دا چه قرآن کښ دوی اکثر په یو بل پسے ذکر کوی لکه په سورة نساء ۴۴، ۴۶، ۴۹، ۵۱ کښ. او په سورة شوری ۱۴ کښ دَ دواړو قسمونو ذکر دے - او ابوحیان هم دیته اشاره کړیده چه نصیبًا په معنیٰ دَ طرف او ظاهر دَ بعضے کتاب دے ځکه چه دوی په ټول کتاب باندے علم نه لری -

يُدْعَوْنَ إِلَىٰ كِتَابِ اللَّهِ، دَ دینه مراد تورات دے چه مشتمل دے په دین دَ ابراهیم علیه السلام چه ملت اسلامیه دے - او په هغے کښ رجم دَ زانی، مسئله دَ توحید اوصفات دَ آخری نبی کریم صلی الله علیه وسلم هم ذکر دی - یا دَ دینه مراد قرآن کریم دے چه تصدیق کوونکے دے دَ تورات او انجیل په دغه تیر شوو خبرو کښ -

لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ، دا سے په سورة نور ۴۸ کښ هم دی - ضمیر دَ یحکم راجع دے کتاب الله ته او دا دلیل دے چه مقصد دَ کتاب الله فیصلے کول دی -

ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ، نسبت یو فریق ته دَ دے وجے نه او شو چه بعضے کسانو دَ دوی نه اسلام قبول کړیدے لکه ابن سلام رضی الله عنه - یا په دے زمانه کښ هم بعضے ایمان راوړی -

وَهُمْ مُّعْرِضُونَ، دا جمله حالیه ده او تاکید دے دَ اولے جملے دَ پاره که دَ تولی او اعراض معنیٰ یوه وی - یا دَ بیان دَ حال دَ پاره دے که مراد دَ تولی نه مخ اړول شی دَ داعی نه - او مراد دَ اعراض نه مخ ګرځول دی دَ هغه مسئلے نه چه دَ دوی ورته دعوت کړے شویدے - او که مراد دَ تولّی نه تولّی په اعتبار دَ ظاهر بدن سره

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا

دا دَدے وجے نه چه دوی وائی هیچرے به او نه رسیږی مونږ ته

النَّارُ اِلَّآ اَیَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ ص وَّغَرَّهُمْ

اور دَ جهنم مګر يو څو ورځے شمارلے شوے او دهوکه ورکړے ده

فِیْ دِیْنِهِمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۲۴﴾

دوی ته په باره دَ دین دَ دوی کښ هغه خبرو چه دَ دوی (مشرانو) ئے دَ ځان نه جوړے کړے دی

شي او مراد دَ اعراض نه ګرځيدل شي په زړه سره. يا مراد دَ تولی نه تولی وی په وخت دَ دعوت کښ. او مراد دَ اعراض نه استمرار او هميشه اعراض کول وی. قرطبي وئيلی دی چه دا دليل دے چه څوک کتاب الله ته دَ فيصلے دَ پاره را اوبللے شي او مخالفت اوکړی نو هغه له په مناسب زجر ورکړی. او هغه په حکم دَ دے آيت کښ داخل دے.

سـ۲۴ :. په دے آيت کښ دَ تولی او اعراض کولو دَ پاره دوه علتونه ذکر کوی. اول علت دا دے چه ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَیَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ، په ذالك کښ اشاره ده تولی او اعراض ته. يعنی دا عقيده ساتل چه مونږ جنتيان يو او دَ جهنم دَ اور نه بچ يو دا سبب دے دَ دے خبرے چه دوی ځان په حقه باندے ګنړی په خلاف دَ کتاب الله کښ او څوک چه ځان په حقه ګنړی نو هغه فيصلے دَ کتاب الله ته نه راځی. زمخشري وئيلی دی لکه چه جبريه او حشويه دا سے دی. او ځه وايم چه دا سے دَ مقلد ينو حال دے په تقليد شخصی جامد سره. او دَ دے جملے تفسير په سورة بقرة سـ۸۰ کښ تير شوے دے. او دويم علت ئے دا دے چه وَغَرَّهُمْ فِیْ دِیْنِهِمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ، غرور دهوکے ته وئيلے شي.

فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنٰهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ

نو څه رنګ به وي حال د دوي په هغه وخت کښ چه راجمع به مونږ دوي په داسې ورځ کښ چه شک نيشته

فِيهِ ۗ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ

په هغې کښ او پوره به ورکړے شي هر نفس ته بدله د هغه عمل چه هغه کړے وي

وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٥﴾

او په دوي باندے هيڅ ظلم نشي کيدلے .

د كَانُوا يَفْتَرُونَ ضمير فاعل د دوي لويو ملايانو ته راجع دے چه هغوي بغي ضد او عناد کړے وو - او د ځان ته ئې مسئلے د جواز د شرك او بدعت او نور باطلو جوړے کړے وے . او دغه چه روستو وړو ملايانو اوريدلے نو د هغوي تقليد ئې کړو او هغے ته ئې دين وئيلو. يا ضمير د فاعل وړو ملايانو ته راجع دے چه هغوي لَن تَمَسَّنَا النَّارُ خبره او نورے داسے غلطے خبرے کولے - او فِي دِينِهِمْ اشاره ده چه افتراء په ديني احکامو کښ سبب د هلاکت او غرور دے . د دينه معلومه شوه چه د کومو کسانو عقيده وي چه مونږ جنتيان او بخلے شوي يو يا زمونږ د پاره عذاب ابدي نيشته او د باطل خبرو تقليد کوي - نو داسے خلق د قرآن او سنت اتباع والا نه دي .

٢٥ په دے آيت کښ منکرينو ته تخويف أخروي دے - فَكَيْفَ دا لفظ د تعجيب د دوي د حال د پاره دے . او دا استفهام جواب نه غواړي او حالهم لفظ پټ دے - إِذَا جَمَعْنٰهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ هر کله چه په دغه ورځ کښ جمع د ټولو خلقو ده نو ځکه ورته يوم الجمع وئيلے شي - د يوم نه مراد مطلق وخت دے او د لَا رَيْبَ نه مراد نفي د ريب ده په حقيقت د وقوع د دغه ورځ اګرچه شک کوونکي ډير خلق دي - وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ، دلته د مَا كَسَبَتْ نه مخکښ لفظ جزاء پټ دے . او مَا كَسَبَتْ عام دے خير او شر ته او د هر يو سره په سبب د تورو نصوصو سره

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي

ته اوایه اے الله اختیارمند د بادشاهی ورکوے ته

الْمُلْكَ مَنْ تَشَاءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ

بادشاهی هغه چاته چه اوغواړے او راکاږے ته بادشاهی

مِمَّنْ تَشَاءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ

د هغه چانه چه ته اوغواړے او عزت ورکوے هغه چاته چه ته اوغواړے

وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ ۭ بِيَدِكَ الْخَيْرُ ۭ

او ذلت ورکوے ته هغه چاته چه ته اوغواړے په لاس ستاکښ ټول خیر دے

اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۶﴾

یقیناً ته په هر څیز باندے قدرت والا ئے.

جدا جدا شرط دے یعنی جزاء د خیر به پوره ورکیدیشی په دے شرط چه په شرک اوکفر سره برباد شوے نه وی. او جزاء د شر به ورکیږے شی په دے شرط چه په توبه یا په فضل د الله تعالیٰ سره معاف شوے نه وی.

وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ، ظلم په معنیٰ د نقصان دے په ثواب د نیک عمل کښ او په معنیٰ د زیادت دے په سیئاتو کښ دواړه ته شامل دے.

سن۲۶ د دریم باب خلاصه:- د دے آیت نه دریم باب دے تر آیت سن۶۳ پورے. په دیکښ اول اثبات د توحید دے په ذکر د دولس صفاتو د الوهیت سره په سن۲۶، سن۲۷ کښ۔ دویم منع کول دی د دوستانے د کافرانو نه او په هغے باندے تخویف دے تر آیت سن۳۰ پورے. دریم ترغیب دے اتباع د رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چه په هغے سره دوستانه د الله تعالیٰ حاصلیږی. څلورم دفع د شبهاتو د نصارا ؤ ده په ذکر د عیبیت د آباؤ د انبیاؤ سره په سن۳۳ کښ او خصوصاً د مریم علیها السلام

دَ مور په باره کښې شبه او په باره دَ زکریا علیه السلام کښې ـ او
شبه په باره دَ مریم او عیسیٰ علیهما السلام کښې په اثبات دَ
عبدیت دَ هغوی سره تفصیلًا او خصوصًا عبدیت دَ عیسیٰ
علیه السلام په ذکر دَ پنځویشت صفاتو دَ عبدیت دَ هغه
سره ـ او رد دے په هغه نصاراؤ باندے چه دلیل نیسی
دَ الوهیت دَ عیسیٰ علیه السلام دَ پاره ـ او دَ ابنیت دَ هغه
امور خارقه للعادت سره تر ۵۹ پورے ـ پنځم اعلان دَ
مباهلے نصاراؤ ته او دَ هغوی ځګر ځول ـ او اختتام دے
په ذکر دَ دعوے دَ توحید سره ـ
ربط ۱ :ـ هرکله چه دوی دَ قرآن نه اعراض کړو په سبب
دَ دے چه دلالت کوی په انتقال دَ نبوت او بادشاهئ دَ
بنی اسرائیلو نه عرب اُمیینو ته ـ نو په دے آیاتونو کښې
اظهار کوی چه دا تصرف او اختیار دَ الله تعالیٰ دے ـ په دے
باندے اعتراض نشی کیدے ـ
ربط ۲ :ـ هرکله چه مخکښې ئے دَ عناد یانو حال او تخویف ذکر
کړو نو اوس امر ورکوی رسول الله صلی الله علیه وسلم
ته په ذکر دَ خاص دُعا سره او دا صفت دَ اثابت کوونکو دے ـ
ربط ۳ :ـ تیر شوی تولو آیتونو کښې ردوو په نصاراؤ دَ
نجران باندے په رد دَ بعضے شبهاتو دَ هغوی سره ـ نو
اوس رد دے دَ هغوی په باطله عقیده باندے په باره دَ
عیسیٰ علیه السلام کښې په ذکر دَ صفاتو دَ الوهیت سره
چه دا صفتونه په عیسیٰ علیه السلام کښې نیشته تو څرنګ
تاسو هغه لره الوهیت ثابتوئ ـ
تفسیر : اَللّٰهُمَّ ، خلیل او سیبویه وائی چه دا په اصل
کښې یا الله دے ـ هرکله چه یا حذف شوه نو دَ هغے په
بدل کښې په آخر کښې ئے میم مشدد راوړو ـ میم مشدد
په اصل کښې دوه میمونه دی نو دا عوض دی په بدل
دَ یا او الف کښې چه هغه هم دوه دی ـ او په لفظ قل کښې

اشاره ده چه الله تعالیٰ په دے طریقے سره یا دول پکار دی. دَ دے دَپاره چه رد اوشی په نصاراؤ باندے او په نورو مشرکانو باندے. او دَ دے وجے نه ئے مقصود بالنداء نه دے ذکر کړے دَپاره دَ تعمیم هر مقصد شرعی ته. دَ نضر بن شمیل رحمه الله نه روایت کړے چه چا په دُعا کښ اللهم اُوئیلو نو داسے شوه په ټولو اسماء حسنیٰ سره ئے دُعا اوغوښتله.

مٰلِكَ الْمُلْكِ، سیبویه وئیلی دی چه دلته یل حرفِ نداء پټ دے ځکه چه دا دَ اللهم دَپاره صفت نحویه نشی کیدے. او زجاج وئیلی دی چه دا دَ اللهم دَپاره صفت کیدیشی. مٰلِكَ، متصرف په ټولو څیزونو کښ په هغه طریقه چه غواړی ئے په ذواتو، منافعو او ثمراتو کښ. الْمُلْكِ دا یو قسم دے دَ مِلْك نه او دا اعلیٰ قسم دے ځکه چه دا تصرف کول دی په ډیر جماعت کښ په طریقه دَ تنظیم او اقامت دَ حقوقو او په رعایت دَ مصالحو سره. او الملك کښ الف لام دَپاره دَ جنس دی او په دیکښ مضاف پټ دے یعنی ورکول، تقسیمول، فراخول او تنګول دَ مُلك. او مجاهد وئیلی دی چه دَ مُلك نه مراد نبوت دے لیکن تخصیص ته ضرورت نیشته.

تُؤْتِی الْمُلْكَ مَنْ تَشَاءُ، ابوحیان وئیلی دی چه دَ دے مُلك نه مراد سلطان او غلبه ده او دا تفسیر دَ مالکیت دے یعنی مالکیت صفت فعلیه دے په طریقه دَ ایتاء او نزع سره. او ایتاء ئے ذکر کړه او تملیك ئے نه دے ذکر کړے ځکه چه تملیك اختیار ته وئیلے شی او مُلك کښ اختیار حقیقی ته ورکوی.

وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَاءُ، نزع په اصل کښ لرے کول دَ یو جسم دی دَ خپل ځائے نه. او استعمالیږی په لرے کولو دَ صفاتو او دَ معانیو کښ. نو دلته مراد دا دے چه

را کاږی صفت دَ مُلک دَ هغه چا نه چه اوغواړی۔ په دے کښ بعضے مفسرینو تخصیص کړیدے چه محمد صلی الله علیه وسلم او دَ هغه اُمت په اول من تشاء کښ مراد دے او فارس، روم او غتمان دَ قریشو او یهود او نصاری په دویم من تشاء کښ مراد دی لیکن غوره دا ده چه دا عام دے او دغه پکښ داخل دی۔ په تنزع تعبیر کښ اشاره ده چه مُلک اکثر خلق په خپل اختیار او خوښے سره نه پریږدی بلکه په زور سره دَ هغه نه اخستلے کیږی او په مجبورئ سره ئے پریږدی لکه په حدیث کښ دی نعمت المرضعه و بِئست الفاطمه (امارت ښهٔ پئ ورکوونکے دے او ناکاره دَ پیو نه پریکوونکے دے)۔

وَتُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ، دا دَ مُلک نه عام دے ځکه چه اعزاز (عزت) په دُنیا کښ مال، هیبت او رعب او دبدبه ورکول دی۔ او په دُشمنانو باندے غلبه ورکول دی۔ او نشر و اشاعت دَ دین دے۔ او ذلت دَ دے مقابل دی۔ او په آخرت کښ اعزاز جنت ته دَ اول وخت نه داخلول دی۔ او لوے لوے درجات او مرتبے ورکول دی۔ او ذلت په آخرت کښ په جهنم کښ، میدان حشر کښ شرمنده کول او دَ هغه دَپاره شفاعت نه قبلول دی۔

بِيَدِكَ الْخَيْرُ، په دیکښ دَ اعزاز نه هم زیات تعمیم دے۔ هر قسم خیر (منافع او فوائد او امن ورکول او ټول حاجات پوره کولو) ته شامل دے۔ او اصل تصرف دا وی چه پخپل لاس سره او کړیشی دَ دے وجے نه دلته ئے لفظ ید ذکر کړو۔ دَ ید معنیٰ حقیقی ظاهری مراد ده بغیر دَ تمثیل، تشبیه، تاویل او تحریف نه۔

سوال:- الخیر ئے ذکر کړو او الشر ئے نه دے ذکر کړے؟

جواب ئے:- دیته اکتفاء وئیلے شی چه یو څیز ذکر شی او

تُوْلِجُ الَّيْلَ فِى النَّهَارِ وَتُوْلِجُ

ننه باسے ته شپه په ورځ کښ او ننه باسے ته

النَّهَارَ فِى الَّيْلِ ز وَتُخْرِجُ الْحَىَّ

ورځ په شپه کښ او راوباسے ته ژوندے

مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ

د مړ نه او راوباسے ته مړ کړه

مِنَ الْحَىِّ ز وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَآءُ

د ژوندی نه او روزی ورکوے ته هغه چاته چه ته اوغواړے

بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢٧﴾

په غیر د حساب نه۔

مقابل ئے حذف شی۔

جواب ۲ه:۔ قضا او تقدیر د خیر اصالتًا دے او د شر بالواسطه عارضی دے۔

جواب ۳ه:۔ نسبت د شر په داسے مقام کښ بے ادبی ده په دُنیا کښ شر محض نیشته بلکه خیر مطلق دے یا مخلوط دے د خیر او شر نه په داسے طریقے سره چه شر پکښ مغلوب دے۔

اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ، دا د مخکښ نه هم عام دے. مخکښ ته هم شامل دے او د هر خیر او شر او د هغے جزئیاتو او اجزاؤ ته شامل دے۔ او دا علت او دلیل د ماقبل دے۔ د دے وجے نه واو د عطف ئے نه دے ذکر کړے۔

س۲۷:۔ په دیکښ د تصرفات الٰهیه نور صفات فعلیه ذکر کوی۔ په تیر شوی آیت کښ امور معقوله معنویه ذکر وو او په دے آیت کښ امور محسوسه ذکر دی۔

تُولِجُ الَّيۡلَ فِي النَّهَارِ وَتُولِجُ النَّهَارَ فِي الَّيۡلِ، يعنې د شپې نه څه ساعات (وخت) کم کړې شي او دغه ساعات په ورځ کښ داخل کړې شي نو ورځ اوږده شي او دغه شان برعکس.
او په دیکښ اشاره ده چه کله تیارې د کفر او شرك په رڼړا د ایمان او توحید سره بدلې کړې شي او کله رڼړا د ایمان او توحید بدله کړې شي په تیارو د شرك او کفر سره- د نبي صلی الله علیه وسلم په بعثت سره اول حالت پیدا شو یعنې رڼړا راغله او تیارۀ ختمه شوه نو د دې وجې نه هغه یئ مخکښ ذکر کړې دې.
وَتُخۡرِجُ الۡحَيَّ مِنَ الۡمَيِّتِ وَتُخۡرِجُ الۡمَيِّتَ مِنَ الۡحَيِّ، د ولوج (ننویستلو) مقابل اخراج دې نو په دیکښ ربط د تقابل دې. او دا عام دې ډیرو حالاتو ته شامل دې. اول دا چه حیوان را اُوباسي د نطفې نه او دغسې په عکس سره لکه په دې قول کښ چه کنتم امواتًا فاحیاکم. دویمه دا چه مرغۍ را اُوباسي د آګۍ نه او په عکس سره- دریم دا چه مؤمن د کافر نه لکه دا قول چه اومن کان میتًا فاحییناه، او کافر د مؤمن نه- څلورم بوټې د اوچ زمکې یا د اوچ تخم نه- او اوچ تخم او اډوکی د شتو بوټو نه او میوو نه- او پنځم دا چه عالم د جاهل نه او جاهل د عالم نه-
وَتَرۡزُقُ مَنۡ تَشَآءُ بِغَیۡرِ حِسَابٍ، مخکښ حالات د ایجاد سره متعلق وو او دا د تربیت سره متعلق دې ځکه چه تربیت بنا دې په رزق بانډې دا رنګ اخراج په څلورم معنې سره سبب دې د پاره د رزق ورکولو د دې تفسیر په سورة بقره ۲۱۲ کښ ذکر شویدې.
فائده:- په اول آیت کښ د الله تعالی اووه صفات فعلیه ذکر کړیدی او په دویم آیت کښ پنځه ذکر دی اشاره ده چه د دې صفتونو نه یو هم په عیسی علیه السلام کښ موجود نه دې نو څرنګه اله کیدیشي-

لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ

نه دِ نیسي مؤمنان کافرانو لره

اَوْلِيَاۤءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ

دوستان سِوا دَ مؤمنانو

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ

او چاچه اوکړو دا کار نو نه دے

مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ اِلَّاۤ اَنْ تَتَّقُوْا

دَ الله تعالیٰ (دَ دین) نه په هیڅ څیز کښ مګر په هغه وخت چه ځان بچ کوئ تاسو

مِنْهُمْ تُقٰىةً ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ

دَ دوی نه ځان بچ کول او ویره درکوی تاسو ته الله تعالیٰ

نَفْسَهٗ ۗ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿٢٨﴾

دَ خپل ځان نه او خاص الله تعالیٰ طرف ته مرځیدل

۲۸ : ربط ۱ :- هر کله چه مخکښ آیتونو کښ تعظیم دَ الله تعالیٰ ذکر شو (چه هغه په مؤمن باندے واجب دے) او هغه معامله ده دَ الله تعالیٰ سره - نو اوس معامله دَ مخلوق سره ذکر کوی هغه چه هغه دشمنان دَ الله تعالیٰ دی او منکر دی دَ تعظیم دَ الله تعالیٰ نه -

ربط ۲ :- هر کله چه مخکښ رد وو په عقیده دَ نصاراؤ مشرکینو باندے - نو اوس دَ هغوی سره دَ دوستانے لرلو نه منع کوی -

لَا يَتَّخِذِ ، دا نهی ده او متعدی دے دوه مفعولونو ته.
الْكٰفِرِيْنَ مفعول اول دے او اولیاء مفعول ثانی دے.
مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ، حال دے دَ فاعل نه او دون په معنیٰ دَ تجاوز سره دے یعنی مُتَجَاوِزِيْنَ مِنْ وِلَايَةِ

اَلْمُؤْمِنِيْنَ اِلَى الْكَافِرِيْنَ اِسْتِقْلَالًا وَ اِشْتِرَاكًا، (يعنى
ورتيريدونكى دى دَ مؤمنانو دَ دوستانے نه دَ كافرانو
دوستانے ته نو پريږدى دوستانه دَ مؤمنانو يا دَ دواړو
سره دوستانه ساتى) او لفظ دَ من دون المومنين كښ
اشاره ده چه مؤمنان شته نو دَ كافرانو سره دوستانے
ته هيڅ حاجت نيشته - او دَ كافرانو سره موالات درے
قسمه دے - اول قسم دا چه رضا شى په كفر دَ هغه بانديے
او هغه ښه كار ګڼړى او دَ كفر په كارونو كښ ورسره
شركت كوى - او دَ كفر دَ وجے نه ورسره دوستانه ساتى
نو دا خو يقينى كفر دے - او يو مؤمن شخص چه دا سے
كار او كړى نو هغه ته مرتد وئيلے كيږى - دويم قسم
دا چه دَ كفر په كارونو او شرك كښ ورسره امداد كوى
او اسباب ورله مهيا كوى او عقيده لرى چه دغه دين
(كفر او شرك) باطل دے - نو دا كار كفر خو نه دے
ليكن حرام دے او كله كله كفر ته رسول كوى - دريم قسم
دا چه دَ كافرانو او مشركانو عزت او احترام كوى او هغوى
ته سلام او قيام كوى نو دا هم ګناه او ممنوع كار دے.
آلوسى وئيلى دى چه هر كار چه په عرف كښ تعظيم ګڼړلے
شى او مسلمانان ورته دوستانه او موالات وائى - او دَ
كمزورى مؤمنانو په زړونو كښ شك پيدا كوى (يعنى
هغوى كفر او بے دينئ ته مائله كوى) نو دا منع دے.
ملا على قارى په مرقات كښ وئيلى دى چه اهل ذمه
(كافرانو) ته دَ ادب دَ پاره او درېدل او هغوى له په
مجلس كښ مشرى وركول ګناه ده - نو په دے آيت كښ
دغه دريواړه قسمونه داخل دى سره دَ اختلاف دَ حكم
دَ هغوى نه - او ابن عاشور اته اقسام ذكر كړيدى - او
دَ دے آيت مضمون په سورة آل عمران ۱۱۸ مائده ۵۱
مجادله ۲۲ او سورت ممتحنه اول آيت كښ هم شته دے

سوال :- من دون المؤمنين دلالت کوی چه دَ مؤمنانو او کافرانو دواړو سره تعلق ساتل جائز دی؟
جواب :- هر کله چه دون په معنیٰ دَ تجاوز سره دے نو دا احتمال ساقط دے۔

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ ، په دے کښې تاکید دے په ترک دَ موالات کښې او په کلام کښې حذف دے یعنی من ولایة الله او من دینه او من حزبه۔ فِيْ شَيْءٍ خبر دے دَ لَيْسَ دَ پاره او مِنَ اللّٰهِ په موضع دَ حال کښې دے۔ او په دے جمله کښې نفي دَ ولایت دَ الله تعالیٰ ده دَ هغه چانه چه دَ الله تعالیٰ دَ دُشمنانو سره دوستانه کوی۔

اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً ، دا استثناء مفرغ ده دَ مفعول له پښ نه یعنی دَ کافرانو سره دَ هیڅ سبب دَ وجے نه دوستانه مهٔ کوئ مګر دَ وجے دَ تقاة نه جائز ده خو صرف په قول او عمل سره نه په زړه سره۔ په تقاة کښې درے اقوال دی۔ اول قول دا چه دا مصدر مفعول مطلق دے په معنیٰ اتقاءً۔ دویم دا مفعول بهٖ دے او تتقوا په معنیٰ دَ تخافوا دے او تقاة مصدر دے په معنیٰ دَ هغه څیز چه دَ هغے نه یره کیدیشي۔ دریم قول دا دے چه دا منصوب دے بنا په حال موکده سره او دا جمع ده یعنی په دے حال کښې چه تاسو یره کوُونکی یئ۔ دلته غوره معنیٰ دا ده چه یره کوئ تاسو دَ دوی (کافرانو) نه یره کول۔ یا ځان ساتئ دَ دوی نه ځان ساتل۔ یعنی هر کله چه یو مؤمن یواځے وی او کافران ئے راګیر کړی او ورته وائي چه دَ کفر کلمه اووایه یا عمل دَ کفر اوکړه ګني نو مونږ دے وژنو۔ نو په داسے وخت کښې په قول یا فعل سره دَ هغوی موافقت کول جائز دے۔ او دا په طریقه دَ رخصت سره اګرچه عزیمت نه دے۔ او دا پښتان دَ دے قول دَ الله تعالیٰ دے چه اِلَّا مَنْ اُكْرِهَ وَقَلْبُهٗ

مُطْمَئِنٌّ بِالْاِیْمَانِ، (سورة نحل ۱۰۶)
فَائده له :- تقیه وئیلی شی محافظت دَ نفس یا دَ عزت یا دَ
مال ته دَ شر دَ دُشمنانو نه - او دا دوه قسمه دے یو ځان
ساتل دی دَ دینی دُشمنانو نه - بل دا چه دُشمنی وی ورسره
په دُنیوی اغراضو باندے لکه مال جائیداد او دَ دُنیا
مشری وغیره - دَ اول قسم حکم شرعی دا دے چه مؤمن
په داسے ځائے کښ وی چه خپل دین عملاً او قولاً نشی
ښکاره کولے - دَ مخالفینو دَ یرے دَ وجے نه نو په دهٔ
باندے دَ خپل دین دَ حفاظت دَ پاره هجرت کول فرض
دی - اوکه چرے دَ دهٔ دَ پاره عذر شرعی موجود وی
لکه زنانه، ضعیفان، په سترګو معذور وغیره او هجرت
نشی کولے او دَ دُشمنانو دَ طرف نه غالب ګمان دا وی چه
دَ دین په اظهار سره ئے هغوی قتلوی یا ترینه روزی بندوی
یا ورله اولاد قتلوی نو بیا ورله پټے کیدل جائز دی
او خپل دین به پټ ساتی - خو کوشش دَ هجرت کولو به
کوی اګرچه په څه حیلے سره وی - او که دَ دُشمنانو نه
صرف دَ وهلو یا دَ لږے مودے دَ پاره جیل وغیره کښ دَ
بندولو یره وی نو بیا دَ هغوی سره موافقت جائز نه دے
او په حالت دَ جواز کښ صرف رخصت دے - او عزیمت دا
دے چه خپل دین به نه پریږدی که قتل کړے شو نو
شهید دے - او دَ دویم قسم حکم شرعی کښ اختلاف دے
دَ علماؤ - بعضو وئیلی دی چه هجرت واجب دے په دلیل
دَ لا تلقوا بایدیکم الی التهلکة سره - او بعضو وئیلی
چه هر کله دینی نقصان نه جوړیږی نو هجرت پرے لازم
نه دے - او بعضو وئیلی دی چه دَ خپل نفس یا دَ اولاد
دَ هلاکیدو یره وی نو هجرت پرے لازم دے ځکه چه
حفاظت دَ نفس اوشی - او دا څه عبادت او قربت نه دے
ځکه چه په دیکښ صرف دُنیوی غرض دے - او حالت

دَجواز کښې مدارات کول په نرم کلام سره او هغوی ته خوشحالی ښکاره کول او ښه هدیې او تحفې ورکول جائز دی. دا موالات نه دے بلکه مدارات دے په طریقه دَتقیه سره. او آلوسی دَدے جواز دَپاره ډیر روایات او احادیث ذکر کړی دی.

فائده ۲: دَتقیه په باره کښې دَخوارجو او شیعه ګانو متضاد مذهبونه دی. دَخوارجو په نیز تقیه په هیڅ حال کښې جائز نه ده. دَدین په مقابل کښې دَنفس، مال او عزت رعایت نشی کیدے. دوی وئیلی دی که یو شخص مونځ کوی او یو غلا کر دَده تول مال پټوی یا غصب کوی نو جائز نه دی چه دے مونځ پریږدی. نو رهم داسے مثالونه دی. او دَشیعه ګانو په نیز دَتقیه واجب ده په وخت دَخوف دَخپل نفس کښې بلکه په مال باندے هم. نو دَدوی په نیز یو شیعه شخص دَاهل سنت سره په مونځونو، روژه او حج کولو وغیره کښې دَتقیې دَوجے نه موافقت کوی اګرچه دَدوی په نیز سنی عبادت باطل دے. دَدوی په روایاتو کښې شته دے چه چا په یو سنی پسے مونځ په طریقه دَتقیه سره ادا کړو نو داسے دے لکه چه په نبی پسے مونځ ادا کړی. بلکه دَمعمولی خوف په وخت کښې دَدوی په نیز اظهار دَکفر واجب دے. او دَدوی لوے مقصد ابطال دے دَخلافت دَصدیق، فاروق او عثمان رضی الله عنهم. دَدوی په کتابونو کښې دَهغے تفصیل موجود دے. او حاصل دَتقیه منافقت کول دی. او دَدوی په کتاب نهج البلاغه او شرح دَراوندی کښې دَتقیې دَجواز په رد کښې نصوص موجود دی. او دَدے تفصیل مفسر آلوسی په دے مقام کښې کړیدے.

وَيُحَذِّرُكُمُ اللهُ نَفْسَهٗ، دلته مضاف پټ دے یعنی

قُلْ اِنْ تُخْفُوْا مَا فِیْ صُدُوْرِكُمْ

ته او وایه که چرې تاسو پټ ساتئ هغه خبرې چه ستاسو په سینو کښ دي

اَوْ تُبْدُوْهُ یَعْلَمْهُ اللّٰهُ ؕ وَیَعْلَمُ

یا ښکاره کوئ هغه عالم دے په هغې باندې الله تعالیٰ (ځکه چه) الله تعالیٰ عالم دے

مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ

په هر هغه څیز باندې چه په آسمانونو او په هر هغه څیز باندے چه په زمکه کښ دي

وَاللّٰهُ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۲۹﴾

او الله تعالیٰ په هر څیز باندے قدرت لرونکے دے.

عقاب نفسه. یعنی که چرے موالات د کافرانو سره کوئ او تور منهیات کوئ نو الله تعالیٰ تاسو لره په هغې د خپل عذاب نه یره درکوی. او په لفظ د نفس کښ اشاره د سخت عذاب ته د الله تعالیٰ د طرف نه. او دا فائده په صرف یحذركم الله سره نه حاصلیږی او لفظ د نفس اطلاق په الله تعالیٰ باندے حقیقی دے بغیر د تشبیه او تاویل نه. آلوسی هم داسے ذکر کړیدی.

وَاِلَی اللّٰهِ الْمَصِیْرُ، په مخکښ جمله کښ تخویف دنیوی ذکر وو او په دیکښ تخویف اُخروی مراد دے.

۲۹: په دے آیت کښ زجر دے په موالات کولو د کافرانو سره پټ وی او که ښکاره وی.

مَا فِیْ صُدُوْرِكُمْ، مَا عام دے او موالات په هغې کښ داخل دے. صُدُوْرِ نه مراد زړونه دی. ذکر د محل او مراد ترینه حال دے یعنی زړه په سینه کښ دے لکه په سورة الناس ۵ کښ دی.

اَوْ تُبْدُوْهُ، حالت د تقیه او غیر تقیه دواړو ته شامل دے. اِخفاء ئې د دے وجے نه مخکښ ذکر کړه چه موالات د کافرانو سره پټه (یعنی په زړه کښ) په هر حال سره

يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا

په هغه ورځ چه او به موندی هر یو نفس هغه چه

عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا ۚ

څه عمل يې کړے دی د خير نه حاضر

وَمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوٓءٍ ۚ تَوَدُّ لَوْ

او هغه چه عمل يې کړے وی د بدے نه غواړی به چه ارمان دے

أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهٗٓ أَمَدًۢا

دے په مينځ د دے نفس او په مينځ د دے ورځ کښ مزل

بَعِيدًا ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۗ

لرے او ويره درکوی تاسو ته الله تعالیٰ د خپل ځان نه

حرام دے۔ او ابداء په تقيه سره جائز ده۔
يَعْلَمْهُ اللّٰهُ، علم کنايه ده په هغے بانددے د جزاء ورکولو نه او اشاره ده چه اخفاء هيڅ فائده نه ورکوی ځکه چه د الله تعالیٰ نه اخفاء (پټول) نشی کيدے۔
وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ، دا مستقل کلام دے په يعلمه بانددے عطف نه دے۔ او دا دليل دے د ماقبل د پاره۔ او ذکر د عام دے روستو د خاص نه۔
وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، دا هم د تحذير د پاره دے او کمال د قدرت د الله تعالیٰ د کمال او عموم علم سره ډير آيتونو کښ ذکر دے۔ اشاره ده چه د الله تعالیٰ علم د قدرت نه جدا نه دے نو په دے سره وهم دفع کوی۔ که څوک وهم اوکړی چه الله تعالیٰ عالم خو دے په هر څيز بانددے (چه يو د هغے نه موالات دے) ليکن کيدے شی چه قدرت نه لری په سزا ورکولو سره۔ نو جواب اوشو په ذکر د عموم د قدرت د هغه سره۔

وَاللّٰهُ رَءُوْفٌ بِالْعِبَادِ ﴿۳۰﴾ ع۳ ۱۱

او الله تعالیٰ ډیر شفقت کوونکے دے په بندګانو باندے۔

ت ۳:۔ دا تخویف اُخروی دے موالات کوونکو ته۔ یَوْمَ، په دیکښ اقوال دی۔ اول داچه دا متعلق دے دَ قدیر سره۔ دویم داچه دا متعلق دے دَ مخکښ یحذرکم الله سره او مضاف پټ دے یعنی عذاب یوم۔ دریم داچه دا متعلق دے دَ روستو تودُّ سره۔ هرکله چه حضور دَ اعمالو په دغه ورځ اهتمامی خبره ده۔ دَ دے وجے نه هغه ئے مخکښ ذکر کړے دے۔ او دا قول زمخشری وغیره غوره کړے دے۔ تَجِدُ، دَ وجدان نه دے۔ متعدی دے یو مفعول ته چه ماعملت دے او محضرًا حال دے۔ یا تجد په معنیٰ دَ علم دے دوه مفعولو ته غواړی نو محضرًا ئے دویم مفعول دے لیکن اوله توجیه غوره ده۔

مَا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ، په دیکښ دوه احتمالات دی۔ اول دا چه نفس عمل مراد دے۔ دویم داچه دَ هغے جزاء مراد ده۔

مُحْضَرًا، دَ دے دوه معنے دی۔ اوله داچه حاضر به وی لیکلے شوے په عملنامه دَ دوی کښ۔ دویمه معنیٰ داچه پوره به وی هیڅ کمے به پکښ نه وی۔

وَمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوْٓءٍ، په دیکښ هم دوه احتمالات دی۔ اول داچه دا عطف دے په مخکښ ماعملت من خیر باندے او محضرًا دلته پټ دے۔ او دا موافق دے دَ سورت زلزال فمن یعمل مثقال ذرة خیرا یره و من یعمل مثقال ذرة شرًا یره، سره۔ دویم احتمال داچه دا دَ سر نه کلام دے یعنی دا مبتداء ده۔ او سوء عام دے دَ کافرانو سره موالات کولو ته شامل دے۔

تَوَدُّ لَوْ اَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهٗٓ اَمَدًا ۢ بَعِيْدًا، په دیکښ هم دوه احتمالونه دی۔ اول داچه دا خبر دے دَ ماعملت دپاره۔

قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ

ته اُوايه كه چرے يئ چه محبت كوے دَ الله تعالىٰ سره

فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ

نو تابعدارى اوكړئ زما نو مينه به اوكړى تاسو سره الله تعالىٰ او بخنه به اوكړى تاسو ته

دويم دا چه دا دَ سر نه كلام دے۔ تَوَدُّ په معنىٰ دَ تمنا كولو دے۔ او لَوْ هم دَ تمنا دَ پاره دے۔ بيتها كښ ضمير دَ ها نفس ته راجع دے۔ او بينه ضمير كښ دوه احتمالونه دى۔ اول دا چه دا راجع دے ما عملت من سوءٍ ته او هغه مبتداء ده۔ دويم دا چه دا يوم ته راجع دے او ما عملت من سوءٍ په مخكښ بانديے عطف دے نو ضمير ته حاجت نه لرى۔ اَمَدًا، امام راغب وئيلى دى چه اَمَدْ او اَبَدْ يو بل ته په معنىٰ كښ نيزدے دى ليكن ابد هغه مدت دَ زمانے دے چه دَ هغے دَ پاره حد مقرر نه دى۔ او امد داسے مدت دے چه دَ هغے دَ پاره حد مجهول وى۔ بَعِيدًا په معنىٰ دَ طويل دے يعنى اوږده موده۔

وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ، اول تحذير دَ عمل دَ كافرانو سره دَ موالات نه وو او دا تحذير دَ عمل سوء نه دے۔ يا مخكښ تحذير دَ عمل دَ موالات نه وو او دا دَ يوم دَ قيامت نه دے۔

وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ، دَ العباد نه مراد ټول عباد دى۔ او رآفت دَ الله تعالىٰ عام دے چه مؤمنانو لره دَ بد عملونو او دَ هغے دَ سزا نه بچ كوى او كافرانو لره په دُنيا كښ مهلت وركوى دَ توبے كولو دَ پاره۔ يا العباد نه مراد خاص بندګان دى چه هغه مؤمنان دى او په هغوى بانديے رآفت دا دے چه په دُنيا كښ تحذير او تخويف وركوى دَ دے دَ پاره چه دَ ګناهونو نه بچ شى او په آخرت كښ دَ دوى په نيک

ذُنُوبَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣١﴾

دَ گناهونو ستاسو او الله تعالیٰ بخنه کوؤنکے رحم کوؤنکے دے۔

عمل یاندے ډیره بدله ورکوی۔

ربط ۳۱ : ربط ۱ :- هرکله چه مخکښ دَ دُشمنانو دَ الله تعالیٰ سره دَ موالات نه تحذیر ذکر شو نو اوس ترغیب ذکرکوی موالات او محبت دَ الله تعالیٰ او دَ هغے ذریعه ذکرکوی۔ ۲ مخکښ ئے رؤف بالعباد ذکرکړو نو اوس دَ رآفت (او محبت) الٰهی دَ حصول دَ پاره ذریعه ذکرکوی۔ ۳ مخکښ تردید وو په نصارا او دَ نجران یاندے نو هغوی اُوئیل چه موږ کومه عقیده دَ عیسیٰ علیه السلام په باره کښ لرو نو دا محبت دَ الله تعالیٰ دے نو په دے آیت کښ دَ هغوی دَ دے قول تردید کوی۔

قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ ، امام غزالی وئیلی دی چه حب عبارت دے دَ میلان دَ طبیعت نه یو داسے څیز ته چه لذت او خوند ورکوی نو دا میلان چه کله پوخ شی نو هغے ته عشق وئیلے شی نو حب په محسوساتو پورے خاص نه دے بلکه هغه معانی او صفات چه په عقل معلومیږی او دَ هغے په علم او ذکر سره دَ زړه میلان او لذت حاصلیږی نو هغے ته هم حب عام دے. نو دَ محبت حقیقی دَ بنده نه دَ الله تعالیٰ سره انکار نشی کیدے او تاویل ته حاجت نه راځئ۔ او بعضے علماؤ وئیلی دی چه محبت دَ الله تعالیٰ سره کنایه ده دَ ارادے کولو دَ بنده نه تخصیص دَ عبادت دَ الله تعالیٰ لره نو معنیٰ په حذف دَ مضاف سره ده یعنی طاعت دَ الله تعالیٰ یا ثواب دَ الله تعالیٰ. او ازهری وئیلی دی چه محبت دَ بنده دَ الله تعالیٰ سره او دَ رسول دَ هغه سره په معنیٰ دَ طاعت دَ هغوی سره دے۔ ابوحیان وئیلی دی چه محبت دَ بنده دَ الله تعالیٰ سره میلان دَ زړه دَ هغه دے هغه څیز ته چه هغه ته ئے خوښ دے او امر ئے ورته کړیدے او عمل په هغے کوی او بندګی خاص کوی هغه لره۔ حاصل دا دے چه محبت

دینه ده د الله تعالیٰ سره مینه د زړه ده د الله تعالیٰ سره لیکن دا مینه مستلزم ده طاعت لره لکه چه وراق وئیلی دی۔

تَعۡصِی الۡاِلٰهَ وَاَنۡتَ تُظۡهِرُ حُبَّهٗ ۔۔۔ هٰذَا الۡعُمۡرِیۡ فِی الۡقِیَاسِ بَدِیۡعٌ
لَوۡکَانَ حُبُّکَ صَادِقًا لَاَطَعۡتَهٗ ۔۔۔ اِنَّ الۡمُحِبَّ لِمَنۡ یُحِبُّ مُطِیۡعٌ

**ترجمه**:- نافرمانی د الله تعالیٰ کوئ او حال دا چه محبت ورسره ښکاره کوئ۔ قسم دے چه دا خو په عقل کښ ډیره لرے خبره ده۔ که چرے ستا مینه رشتینے وے نو تا به د هغه اطاعت کولے۔ یقینًا مینه کوونکے خو اطاعت کوی د هغه چا چه محبت ورسره کوی۔ فَاتَّبِعُوۡنِیۡ، هر کله چه طریقه د محبت د الله تعالیٰ او د هغه د رضا حاصلولو عبادت او طاعت کول د هغه دی۔ او طریقے د عبادت او د هغے احکام په عقل سره نه معلومیږی بغیر د اتباع د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نو د دے وجے نه محبت د الله تعالیٰ سره یے حصر کړو په اتباع د رسول الله صلی الله علیه وسلم کښ او اتباع په عمل کښ په هغه پسے ورتلل دی نو رد دے په ډیرو ګمراه فرقو باندے چه هغوی بغیر د رسول د اتباع نه د الله تعالیٰ د محبت دعوے کوی۔ اوله فرقه مشرکین دی هغوی وائی چه مَا نَعۡبُدُهُمۡ اِلَّا لِیُقَرِّبُوۡنَا اِلَی اللّٰهِ زُلۡفٰی۔ یعنی شرک فی العبادت کوی او وائی چه دا معبودان زمونږ وسیلے دی الله تعالیٰ ته۔ نو رد دے په هغوی باندے چه وسیله شرعیه خو اتباع ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم۔ دویمه فرقه منکرین د حدیث دی هغوی وائی چه مونږ صرف په اطاعت د قرآن سره مکلف یو۔ حاصل د رد دا دے چه قرآن کریم اتباع د نبی صلی الله علیه وسلم شرط کړیده د حب الهی د پاره۔ او اتباع په اعمالو کښ وی او اعمال د احادیثو نه معلومیږی۔ دریمه فرقه د ګمراه صوفیاؤ او پیرانو ده هغوی وائی چه الله تعالیٰ ته رسیدل په شریعت سره نشی کیدے بلکه په طریقت سره کیږی حاصل د رد دا دے چه شریعت اتباع د نبی صلی الله علیه وسلم ته وئیلے شی بغیر د اتباع د هغه نه محبت الهی نه حاصلیږی

اونه طریقت - څلورمه فرقه د مبتدعینو پیرانو او ملایانو ده چه هغوی عبادات د بدعاتو په طریقے سره کوی لکه پیران د ذکر د پاره حلقات جوړوی او په ځان جذبے راولی او رقص وسرودونه کوی او وائي چه په دے طریقے سره تقرب الی الله حاصلیږی - او ناکاره ملایان په عباداتو کښ عملی بدعات کوی لکه قضاءعمری اوحیله اسقاط او په لزوم سره په هیئت اجتماعی سره دُعا ګانے کول روستو د فرض ، سنتو اوجنازو مونځونو نه او وائي چه دا ثواب دے او ښه کارونه دی - اوحال دا چه ذریعه د ثواب هغه عبادات دی چه په اتباع د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وی -

**فائده** :- د دے آیت په ذیل کښ مفسرینو د اتباع رسول (صلی الله علیه وسلم) په باره کښ ډیر ښه کلمات لیکلی دی -

ع۱ څوک چه د الله تعالیٰ د محبت دعوی کوی او بیا خلاف کوی د سنت د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نو دغه شخص سخت دروغژن دے او د الله تعالیٰ کتاب د هغه تکذیب کوی (مدارک ، کشاف) -

ع۲ ابن کثیر وئیلی دی چه دا آیت کریمه حاکم دے په هر هغه چا بانْدے چه د الله تعالیٰ د محبت دعوی کوی او نه وی روان په طریقه د محمّد صلی الله علیه وسلم بانْدے نو دے دروغژن دے په دغه خپله دعوی کښ تر دے پورے چه اتباع اوکړی د شرع محمدی او دین نبوی (صلی الله علیه وسلم) په ټولو اقوالو او افعالو د هغه کښ -

ع۳ خطیب شربینی وئیلی دی چه هر کله تهٔ اووینے هغه څوک چه ذکر کوی محبت د الله تعالیٰ او لاس ټپ وهی او چغے وهی نو شک نیشته چه دا شخص نه پیژنی چه الله تعالیٰ څوک دے او نه پوهیږی چه محبت د الله تعالیٰ څه دے۔ يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ، دا تصریح ده چه په اتباع د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دوه فائدے

قُلۡ اَطِيۡعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوۡلَ ۚ فَاِنۡ

ته اوايه تابع کوے دَ الله تعالیٰ او دَ رسول نو كه چرے

تَوَلَّوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الۡكٰفِرِيۡنَ ﴿۳۲﴾

تاسو مخ واړوٴ نو يقيناً الله تعالیٰ مينه نه کوی دَ کافرانو سره۔

حاصليږی۔ اول محبت او مينه دَ الله تعالیٰ دويم مغفرت او بخنه دَ گناهونو نه۔ يعنی چه محب شی سره دَ اتباع رسول نه نو محبوب دَ الله تعالیٰ او گرځی او محبوبيت لويه مرتبه ده۔ او دۀ ته حبيب الله ويلے شی۔ او محبت صفت دَ الله تعالیٰ حقيقتاً دے بغير دَ تشبيه وتمثيل او تحريف و تاويل نه۔ او ذنوب لفظ عام دے ټولو گناهونو ته که لوے وی او که واړه وی۔ نو دَ اتباع رسول (صلی الله عليه وسلم) په بعضے اقسامو سره لوے گناهونه معاف کيږی او په بعضے سره واړه گناهونه معاف کيږی۔

وَاللّٰهُ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ، دا علت او تاکيد دے دَ مخکښ جملو دَپاره په طريقه دَ لف نشر غير مرتب سره۔ يعنی دَ غفوريت دَ صفت په وجے سره گناهونه معاف کوی او دَ رحيميت په وجے سره محبت کوی۔

۳۲ :۔ مفسرينو ليکلے دی چه دا جواب دے دَ سوال دَ منافقانو۔ دوی وئيل چه دا نبی زمونږ نه غواړی چه دَ عيسیٰ عليه السلام پشان ئے معبود اوگڼړو۔ حاصل جواب دا دے چه اطاعت دَ دۀ فرض دے په ضمن دَ اطاعت دَ الله تعالیٰ کښ۔ او فرض دے په حيثيت دَ رسالت دَ دۀ سره نه په حيثيت دَ الوهيت سره۔

سوال :۔ په اتباع کښ صرف دَ نبی کريم صلی الله عليه وسلم ذکر اوکړے شو او په اطاعت کښ الله تعالیٰ او رسول دواړه ذکر وو؟

جواب :۔ اتباع په عمل کښ اقتداء کول دی او عملی

إِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىٓ اٰدَمَ وَنُوْحًا

يقيناً الله تعالى غوره كړے دے آدم عليه السلام او نوح عليه السلام

وَّاٰلَ اِبْرٰهِيْمَ وَاٰلَ عِمْرٰنَ

او اولاد دَ ابراهيم عليه السلام او اولاد دَ عمران عليه السلام

عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۳۳﴾

ټولو خلقو باندے۔

اقتداء دَ الله تعالىٰ نشي كيدے هغه په رسول پورے خاص ده او اطاعت اكثر په قول كښ وي او قول دَ الله تعالىٰ قرآن كريم دے۔ او قول دَ رسول دَ هغه احاديث دي۔ او دا دواړه ذكر دي په سورة طٰهٰ ۹ كښ۔
فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ، تَوَلَّوْا فعل ماضي ده يا فعل مضارع ده په حذف دَ تا سره - او دَ تولي نه مراد اعراض دے دَ اتباع او اطاعت دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه بالكليه او دا حقيقي كفر دے۔ فَاِنَّ اللّٰهَ كښ دَ فَاِنَّهٗ په ځائے او الكافرين كښ دَ ضمير دَ هم په ځائے باندے ذكر كړيدي دَ ډير تاكيد دَپاره - او كه تولي او اعراض په فرعي احكامو كښ وي بغير دَ انكار نه نو دا حقيقي كفر نه دے نو دلته په لفظ دَ كافرين كښ اشاره ده ردته په نصاراؤ دَ نجران باندے ځكه چه هغوي كافر وو۔
۳۳ : ربط له :- هر كله چه مخكښ آيا تو نو كښ رد وؤ په نصاراؤ باندے چه دعوىٰ دَ محبت الٰهيه ئے كوله بغير دَ اتباع رسول نه او هغه باطل ده نو اوس رد كوي دَ هغوي په عقيده باندے تفصيلاً عقيده ئے داده چه عيسىٰ الله دے او ابن الله دے۔ او تفصيل دَ رد دا دے چه عيسىٰ عليه السلام دَ اولاد دَ بشر نه دے چه دَ آدم عليه السلام نه شروع شويدي او دغه وخت تر

آل عمران پورے رسیدلی دی او مور دَ دۀ دَ عمران نه پیداوه او عیسیٰ دَ خپلے مور (مریم علیها السلام نه پیدا وۀ او دا ټول عاجز او محتاج بندګان وو نو عیسیٰ علیه السلام څرنګ اله یا ابن الله کیدیشی.

ربط ۷ :- هرکله چه مخکښې فرضیت دَ اتباع او اطاعت رسول ذکر شو نو اوس دَ هغه نه وړاندے مصطفین ذکر کوی چه دَ هغوی اتباع او اطاعت دَ هغوی په زمانه کښې فرض وو نو اتباع دَ دے رسول فرض کیدل څۀ نوے مسئله نه دہ.

تفسیر :- اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى، دا دَ صَفْوَة نه اخستلے شویدے دخیری نه خالی کولو ته وئیلی شی. دَ اصطفاء معنیٰ صفا کول دَ خیر دی او دَ اختیار معنیٰ غوره کول او دَ اجتباء معنیٰ منتخب کول دی. او اصطفاء دَ الله تعالیٰ بندګانو لره یا په ایجاد دَ الله تعالیٰ سره داسے شخص لره وی چه صفا وی دَ هغه خیرو نه چه په نورو کښې وی او کله په حکم دَ الله تعالیٰ سره وی اګرچه دَ ابتداء نه نه وی. او اصطفاء په قرآن کښې په اوو طریقو سره دیارلس کرته ذکر دہ.

اوله طریقه اصطفاء دَ دین اسلام بقره ۱۳۲ دویمه طریقه اصطفاء دَ انبیاء علیهم السلام په دے آیت کښې او سورة نمل ۵۹ اعراف ۱۴۴ بقره ۱۳۰ ص ۴۷ دریمه طریقه اصطفاء دَ مریم علیها السلام سورة آلعمران ۴۲.

څلورمه طریقه اصطفاء دَ طالوت بقره ۲۴۷ پنځمه طریقه اصطفاء دَ قرآن والو فاطر ۳۲ شپږمه طریقه اصطفاء دَ ملائکو حج ۷۵ اوومه طریقه په طریقه دَ زجر سره اصطفاء دَ بنا تو صافات ۱۵۳ هرځائے کښې اصطفاء دَ هغه ځائے مناسب مراد دہ دلته اصطفاء دَ نبوت او دَ هر نبی یو جدا جدا خصوصیات مراد دی (وَ آدَمَ وَ نُوحًا وَّ آلَ اِبْرَاهِيْمَ وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِيْنَ) دا څلور واړه

په اصطفاء دَ نبوت کښ شریک دی او قرطبی لیکلی دی
چه اصطفاء دَ هر یو دَ دوی نه په پنځه پنځه طریقو
سره ده دَ آدم علیه السلام اصطفاء په پنځه طریقو سره
داسے ده اول دا چه الله تعالیٰ دهٔ لره په خپل لاس سره
جوړ کړیدے دویم دهٔ ته تعلیم دَ اسماؤ ورکړیدے
دریم ملائکو دهٔ ته سجده کړیده څلورم په جنت کښ
ئے اوسولے دے۔ پنځم دا چه دَ انسانانو پلار ئے ګرځولے
دے۔ او دَ نوح علیه السلام پنځه طریقے دَ اصطفاء دا
دی چه دَ ټول بشر دویم پلار ګرځولے شویدے ځکه چه
روستو دَ غرق دَ قوم دَ دهٔ نه صرف دَ دهٔ دَ ځامنو اولاد
ئے باقی ګرځولی دی دویم عمر ئے اوږد ورکړیدے
دریم دَ هغه دعاء شرئے په کافرانو باندے او دُعاء خیر
دَ مؤمنانو دَ پاره قبول کړیده۔ څلورم دے ئے په کشتۍ
کښ سره دَ اهل نه بچ کړیدے۔ پنځم دهٔ اول نسخ
دَ بعضے شرائعو کړیده لکه نکاح کول دَ خویندو او ترورانو
او ماسیګانو سره دَ دهٔ په شریعت کښ حرام کړے شو۔
او دَ ابراهیم علیه السلام پنځه طریقے دَ اصطفاء دا دی
اول دا چه دے ئے پلار دَ انبیاء علیهم السلام ګرځولے
دے ځکه دَ دهٔ نه روستو انبیاء علیهم السلام ټول دَ دهٔ
په اولاد کښ راغلی دی۔ دویم دے ئے خلیل جوړ کړے
دے۔ دریم دَ اور دَ دُشمنانو نه ئے بچ ساتلے دے۔
څلورم امام دَ خلقو ئے جوړ کړیدے۔ پنځم دَ کلماتو
په امتحان کښ کامیاب شویدے۔ او دَ آل عمران اصطفاء
دا ده چه دَ دهٔ ښځے نذر دَ یحیٰ کړے وو دَ پاره دَ خدمت
دَ دین۔ دویم مریم علیها السلام لور ئے هغه ته ورکړله
چه دَ نارینه نه ئے غوره کړے وه۔ دریم عیسیٰ علیه
السلام ئے مریم علیها السلام ته ورکړو بغیر دَ مسح کولو
دَ نارینه نه۔ څلورم عیسیٰ علیه السلام له ئے لوے معجزات

ذُرِّيَّةً بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ ط

نسل دے بعض د هغوی پیدا شوے دی د بعضو نه

وَاللّٰهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۳۴﴾

او الله تعالیٰ هرڅه آوری او په هرڅه پوهه دے۔

ورکړی وو۔ نجم هغه ئے ترا وسه پورے په آسمان کښ ژوندے ساتلے دے۔ اٰلَ اِبْرٰهِيْمَ، مراد د دینه د دهٔ اولاد اسماعیل او اسحاق او یعقوب علیهم السلام او اسباط د هغوی او آخری نبی صلی الله علیه وسلم دے۔ وَاٰلَ عِمْرٰنَ مراد د دینه مریم او عیسیٰ علیه السلام دی او د عمران په نوم دوه اشخاص دی یو پلار د موسیٰ او هارون علیهما السلام او دویم عمران پلار د مریم علیهما السلام او نیکه د عیسیٰ علیه السلام دے دلته دا روستنے مراد دے او بعضو مفسرینو وئیلی دی چه د دوی په مینځ کښ اتلس سوه کاله فاصله وه۔ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ، مراد د دینه ټول جن او انس دی سره د نور مخلوق نه۔ او د ملائیکو نه د فضیلت په باره کښ اختلاف دے۔

۳۴ په ذُرِّيَّةً، کښ دوه احتمالونه دی۔ اول دا بدل دے د آدم او د هغے د معطوفاتو نه او د ذُرِّيَّةً اطلاق په آباؤ باندے هم کیدے شی۔ دا قول د یو جماعت د مفسرینو دے۔ یا بدل دے د نوح او روستو معطوفاتو نه دا قول د ابوالبقاء دے۔ یا بدل دے د آل نه او دا قول د زمخشری دے۔ دویم احتمال دا دے چه دا حال دے د آدم نه۔ او امام راغب وئیلی دی چه د ذریة اطلاق په واحد او جمعے او اصل او نسل ټولو باندے کیدے شی او زنانه نه ذراری وئیلے شی۔ او جرجانی وئیلی دی چه دا د ذرءَ نه اخستلے شوے دے تو پلار ته ذرءَ وئیلے شی ځکه چه اولاد خور شوید دے د هغه نه۔ بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ، په دیکښ مِنْ د پاره د اتصال دے یعنی بعض پیوست دی په بعضو پورے په قرابت کښ او په نبوت او توحید او اخلاص کښ نو معلومه شوه چه عیسیٰ علیه السلام

إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرَانَ رَبِّ

هرکله چه اُویل ښځې دَ عمران علیه السلام اے ربه زما

إِنِّي نَذَرْتُ لَكَ مَا فِي بَطْنِي

یقیناً ما منخته کړے ده خاص تا لره دَهغه ولډ چه زما په خیټه کښ دے

مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّي ج إِنَّكَ

آزاد کړے شوے (دَدین دَپاره) نو قبول کړے زما نه یقیناً ته

أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٣٥﴾

خاص ته هرڅه آورے او په هرڅه باندے عالم ئے۔

هم ذریت دے اوقرابت لری دَانسانانو (انبیاؤ) سره نوهغه هم انسان دے اله او ابن دَالله تعالیٰ نه دے۔ وَاللّٰهُ سَمِيعٌ، آوریدونکے دے اقوالو دَبندګانو لره خصوصًا متضاد اقوال دَیهودواونصاراؤ په باره دَعیسیٰ علیه السلام کښ۔ عَلِيمٌ، عالم دے په نیتونو دَخلقو خصوصًا په مختلف عقیدے دَیهودو اونصاراؤ په باره دَعیسیٰ علیه السلام کښ۔

۳۵ هرکله چه مخکښ اصطفاء دَالعمران اجمالی ذکر شویده اوتصارُی دَآلعمران (مریم اوعیسیٰ علیهما السلام) عبادت کؤونو اوس دَآلعمران عبدیت ذکرکوی اول حالات دَ مریم علیها السلام تفصیلاً بیا حالات دَعیسیٰ علیه السلام تفصیلاً ذکرکوی چه هغه دلالت کوی چه دوی اِلٰه نشی کیدے۔

إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرَانَ، اخفش اومبرد وئیلی دی چه دَإِذْ نه مخکښ لفظ دَاُذْکُرْ ترینه دے اوهغه عامل دے په إِذْ کښ۔ مراد دَعمران نه عمران بن ماتان دے چه پلار دَمریم علیها السلام دے اوښځه دَهغه مشهوروه په حنه سره حته لور دَ فاقوذا وه اوزکریا علیه السلام دَهغې خورسره نکاح کړے وه چه نوم ئې ایشاع لور دَ فاقوذا وه۔ نو یحیٰی او مریم علیهما السلام دَماسی اولاد شول او دا روایت دَ حاکم دے دَابوهریره نه۔

سوال:۔ په حدیث صحیح دَ معراج کښ راغلی دی چه په دویم آسمان کښ عیسیٰ او یحییٰ علیهما السلام اولیدلے شول او دوی دواړه دَ ماسی اولادوؤ نو مخکښ تاریخ خو دَ دے حدیث نه خلاف دے؟
جواب ۱:۔ اعتبار حدیث ته دے تاریخ دَ حدیث په مقابله کښ قبول نه وی۔
جواب ۲:۔ حدیث په مجاز باندے حمل دے یعنی مریم علیها السلام لور دَ ترور (خاله) دَ یحییٰ علیه السلام ده او عیسیٰ علیه السلام ځوئے دَ لور دَ ترور دَ هغه وو لیکن ځوئے دَ لور دَ ترور ته هم ځوئے دَ ترور مجازًا وئیلے شی۔
جواب ۳:۔ آلوسی وئیلی دی چه ایشاع دَ حنه اخیا فی خور وه یعنی صرف په مور کښ ئے شریکه وه او دَ مریم علیها السلام علاتی خور وه یعنی صرف دَ پلار نه یعنی عمران اول نکاح اوکړو دَ مور دَ حنه سره نو ایشاع ترینه پیدا شوه بیا ئے نکاح دَ حنه سره اوکړو او په هغه زمانه کښ دَ پرکنئ سره نکاح کول جائز وؤ او دَ هغے نه مریم علیها السلام پیدا شوه په دے طریقے سره دَ دواړه روایاتو تطبیق کیدیشی۔
رَبِّ اِنِّیْ نَذَرْتُ لَكَ مَا فِیْ بَطْنِیْ مُحَرَّرًا، دا واقعه دلیل دے په عبدیت دَ آل عمران باندے دَ پاره دَ الله تعالیٰ دَ دے وجے نه لفظ رب ئے ذکر کړو او تلفظ په نذر سره دَ الله تعالیٰ دَ پاره دا دلیل دے چه نذر دَ غیر الله دَ پاره دَ هغوی په دین کښ هم ناجائز وو۔ دا هم رد دے په نصاراؤ باندے چه نذرونه په نوم دَ عیسیٰ علیه السلام باندے کوی۔ معنیٰ دَ نذر داده چه لازم اوګرځوی انسان په ځان باندے هغه عمل چه په دهٔ باندے شرعًا لازم نه وی لیکن دَ قبیلے دَ اعمال صالحه نه وی که په شرط سره وی او که بغیر دَ شرط نه

وی۔ مَا فِیْ بَطْنِیْ، دلیل دے چه داپه دغه وخت کښ حامله شوے وه دَ عمران نه او عمران وفات شوے وؤ۔

مُحَرَّرًا، دا مذکر لفظ په اعتبار دَ ارادے دَ هغے سره دے یعنی هغے طلب دَ هلک کوؤ ځکه چه هغه وخت کښ دَ خدمت دَ بیت المقدس دَ پاره نارینه اولاد نذر کیدل او زنانه دَ مسجد دَ خدمت دَ پاره مناسب نه وے۔ او دا لفظ دلیل دے چه دغه ځوئے ئے دَ خپل سکون قلب او اطمینانِ انسانی دَ پاره نه طلب کوؤ بلکه دَ دین دَ خدمت دَ پاره ځکه چه دَ عمران دَ وفات نه روستو دَ دین دَ خدمت دَ پاره دَ دوی په کورنئ کښ هیڅوک نه وؤ نو دے نارینه اولاد دَ دین دَ خدمت دَ پاره طلب کوؤ۔

سوال :- دَ دے اولاد خو دَ دے ملکیت نه دے په ملکیت رقبی سره او نذر خو په غیر مملوک کښ صحیح نه وی لکه چه په حدیث کښ وارد دی لَا نَذْرَ فِیْمَا لَا یَمْلِكُ ابْنَ آدَمَ ؟

جواب ۱ :- دا سے نذر په شریعت دَ هغوی کښ جائز وؤ چه نارینه اولاد به ئے دَ دین او بیت المقدس دَ خدمت دَ پاره نذر کول په هغے کښ ملکیت رقبی شرط نه وؤ۔

جواب ۲ :- یا دا نذر حکماً دے لکه چه په دے زمانه کښ یو مسلمان لازم اوګنړی چه ځه به خپل اولاد دَ دین دَ علم دَ پاره وقف کوم دَ دُنیا هیڅ کاروبار تر ینه نه اخلم او هغه اولاد چه بالغ شی نو هم دَ پلار په دغه اراده باندے روان وی۔

مُحَرَّرًا، مراد دَ دینه آزاد دَ مشاغلو دَ دُنیا نه۔ یا خالص دَ خدمت دَ بیت المقدس دَ پاره۔ یعنی علم دَ دین به ایزده کړی او دَ مدرسینو دَ بیت المقدس خدمت به کوی ځکه چه بیت المقدس درسګاه دَ دین وؤ۔ فَتَقَبَّلْ مِنِّیْ، تقبل اخستل دَ یو څیز دی په

فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ إِنِّي

نو هركله چه هغې او زېږوله هغه اُويل ئې يا ربه يقيناً ما

وَضَعْتُهَا أُنْثَىٰ ط وَاللَّهُ أَعْلَمُ

او زېږوله هغه جينۍ او الله تعالىٰ ښه پوهه دے

بِمَا وَضَعَتْ ط وَلَيْسَ الذَّكَرُ

په هغه چه هغې زېږولے ده او نه دے هغه نارينه (چه دې طلب کړے وُو)

كَالْأُنْثَىٰ ج وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ

پشان دَ هغه زنانه (چه ورکړے شوه) او يقيناً ما نوم ايخودلے دَ هغې مريم

وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا

او يقيناً زه پناهي غواړم هغې لره په تا سره او اولاد دَ هغې لره

مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴿۳۶﴾

دَ شيطان رټلي شوي نه۔

طريقې دَ رضا سره اشاره ده چه بندګان سره دَ نيک عمل كولو نه دُعا دَ قبوليت ته هم محتاج دي۔
إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ، آوريدونكے دے تضرع ځما او دُعا او آواز ځما لره او عليم دے په زړه او په نيت ځما او دا صفات په آخر كښې ذكر كول وسيله شرعيه ده دَ پاره دَ دُعا۔
۳۶ :۔ فَلَمَّا وَضَعَتْهَا، ضمير دَ ها راجع دے لفظ دَ ما ته په اعتبار دَ معنیٰ سره يا په اعتبار دَ نسمت يا نفس سره يا په اعتبار دَ مولوديت سره دا دَ مفسرينو اقوال دي۔
قَالَتْ رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَا أُنْثَىٰ، دا جمله خبريه دَ پاره دَ اخبار نه ده بلكه دَ پاره دَ اظهار دَ حسرت او افسوس ده دَ مقصد په نه حاصليدو باندے يا په طور دَ عذر

کولو د ولادت د دا سے ولد چه د خدمت د بيت المقدس د پاره صلاحيت نه لري.

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ، په دے قراءت کښ دا صيغه د مؤنث غائب ده نو دا جمله معترضه ده د طرف د الله تعالیٰ نه او په يکښ تنبيه ده په لوئے والی د قدر د دے بچي باندے او اشاره ده چه د دے شان په نيز د الله تعالیٰ ډير اُوچت دے چه دا او د دے ولد (عيسیٰ) به آية (نخه) گرځي د پاره د عالميتو ليکن د هغې مور ته دا حال معلوم نه وُو۔ نو په دے کښ د هغې تسلي وه.

وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْاُنْثٰى، دا هم د مخکښ جملے پشان جمله معترضه ده او دليل دے د پاره د هغې د لوئے والی د قدر چه په مخکښ جمله کښ معلوم شو او الف لام په الذکر او په کالانثیٰ کښ د پاره د عهد دی يعني هغه نارينه اولاد چه دغه ښځے طلب کوۀ، نۀ وُو په شان د هغه جينۍ چه هغې ته ورکړے شوه بلکه دغه جينۍ د هغه نه په لوئے والی د شان کښ زيا ته وه. او بعض مفسرينو وئيلي دی چه دا کلام د هغه ښځے دے او مراد د دينه تحسر او افسوس کول دی په ولادت د جينۍ باندے يعني جينۍ خو د هلك پشان نشي کيدے ځکه چه هلك خدمت د مسجد په کمال سره کولے شي او جينۍ ئے په کمال طريقے سره نشي کولے ليکن په دے توجيه باندے په دے جملے کښ قلب لازميږي يعني لَيْسَتِ الْاُنْثٰى كَالذَّكَرِ، خو دا قول ضعيف دے.

وَاِنِّيْ سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ، دا عطف دے په اِنِّيْ وَضَعْتُهَا باندے او په مينځ کښ دوه جملے معترضے دی. صاحب اللباب وئيلي دی چه دا دليل دے چه عمران په دغه وخت کښ وفات شوے وُو ځکه چه عادتاً اختيار د نوم کيښودلو د پلار د پاره وی. قرطبي او نورو مفسرينو وئيلي دی چه مريم په لغت د دوی کښ عابده نه وئيلے شي. ابن کثير وئيلي دی چه دا دليل دے چه نوم کيښودل په ورځ د ولادت د بچي کښ پکار دی او د اووے ورځ نه خو روستو کول پکار نه دی.

وَاِنِّیۡۤ اُعِیۡذُهَا بِكَ وَذُرِّیَّتَهَا مِنَ الشَّیۡطٰنِ الرَّجِیۡمِ، دا جمله
شکاره دلیل دے چه آلعمران په تعوذ کښې الله تعالیٰ ته
محتاج دی خصوصاً اولاد د هغې چه عیسیٰ علیه السلام
دے هم په تعوذ کښې الله تعالیٰ ته محتاج دے او دا تول
رد دے په نصاراؤ باندے او په دے دُعا کښې ضِمۡنًا
طلب دے د اوږد والی د عمر د مریم علیها السلام او د
پیدائش د اولاد د هغې - اَلرَّجِیۡمِ، رجم په کاڼو سره
ویشتل دی او شامل دے په سب ویشتم او په لعنت
کولو سره او دا روستو معنیٰ مراد ده په باره د شیطان
کښې او مراد د دیته ابلیس او د هغه ټول سرکشان اولاد
دی - او په حدیث د صحیحین کښې په روایت د ابوهریره
رضی الله عنه سره ثابت ده چه هر بچے چه پیدا کیږی نو
شیطان د هغه نخس او طعن اوکړی نو هغه آواز اوچت
کړی په چغه وهلو سره ماسیوا د مریم علیها السلام او
د ځوئے د هغې نه بیا ابوهریره رضی الله عنه دا آیت
اولوستلو۔

سوال :- دا دلالت کوی په افضلیت د عیسیٰ او مریم علیهما
السلام په نبی صلی الله علیه وسلم باندے ؟

جواب ۱ :- دے ته فضیلت جزئیه وئیلی شی او فضیلت
کلی خوزمونږ د نبی صلی الله علیه وسلم د ټولو پیغمبرانو
نه زیات دے۔

جواب ۲ :- عام نصوص د فضیلت د نبی صلی الله علیه
وسلم متضمن دی دے فضیلت لره هم۔

سوال :- معتزله وائی چه دا په مجاز باندے حمل دے مراد
د مَسَّ الشَّیۡطٰنِ نه قدرت دے په اغواء د هغه باندے ؟

جواب :- هر کله چه حقیقت ممکن وی نو مجاز ته تلل جائز
نه دی دلته حقیقت ممکن دے او قرطبی وئیلی دی چه نخس او
طعن نه اضلال او اغوا د مسه کړے شوی نه لازمیږی۔

فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ

نو قبوله هغه رب دَ هغې په قبلولو خائسته سره

وَّ اَنۡۢبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا ۙ وَّ كَفَّلَهَا

او زرغُن يې كړه هغه په زرغونولو خائسته سره او اوسپارله هغه

زَكَرِيَّا ۚ كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيۡهَا

زكريا عليه السلام هر وخت چه داخل به شو په هغې بانډې

زَكَرِيَّا الۡمِحۡرَابَ ۙ وَجَدَ عِنۡدَهَا

زكريا عليه السلام عبادت خانې ته او موندلو دَ هغې په خوا كښ

رِزۡقًا ۚ قَالَ يٰمَرۡيَمُ اَنّٰى لَكِ

روزي اُويل هغه اے مريم دَ كوم ځائے نه تا لره

هٰذَا ؕ قَالَتۡ هُوَ مِنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ ؕ

دا دے هغې اُويل دا دَ نيز دَ الله تعالىٰ نه دے

سوال :- دغه دَ حديث نه معلومه شوه چه نخس او طعن دَ شيطان متصل دَ ولادت سره وي ليكن مريم او عيسىٰ عليهما السلام بچ شوي دي دَ دے دُعا دَ وجے نه او دَ آيت نه معلوميږي چه مريم عليها السلام پيدا شوه او توم يې ورله كيخودلو نو روستو دا دُعا اوشوه نو بچ كيدل دَ مريم عليها السلام دَ مَسُ دَ شيطان نه په سبب دَ دے دُعا سره نشي كيدلے ځكه چه مسبب روستو وي دَ سبب نه ؟

جواب ۱ :- آلوسي وائي چه اعيذ دَ پاره دَ استقبال نه دے بلكه دَ استمرار دَ پاره دے زمان ماضي ته هم شامل دے.

جواب ۲ :- مسببات شرعيۀ كښ جائز ده چه دَ اسباب شرعيه نه مخكښ موجود شي. نور جوابونه هم محد ثينو كړے دي.

إِنَّ اللَّهَ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ

یقینًا الله تعالیٰ روزی ورکوی چا له چه اوغواړی

بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۳۷﴾

په غیر د حساب نه۔

۳۷:۔ دا تفریع ده په مخکښې دُعا باندې اشاره ده چه هغه دُعا زر قبوله شوه او دا کرامت دے۔

فَتَقَبَّلَهَا، تقبل په معنیٰ د مجرد (قَبِلَ) سره دے لیکن صیغه د تفعل دلالت کوی چه فاعل ډیر اهتمام کوی په اظهار د دغه فعل باندې نو اشاره ده اظهار د دے قبولیت ته په نیز د نورو خلقو او معنیٰ د قبولیت رضا کیدل د الله تعالیٰ دی په قبولیت د هغه مؤنث سره په ځائے د مذکر باندې (صاحب اللباب)۔ په لار د نیک بختانو یئے روانه کړه (قرطبی)۔ او حسن بصری وئیلی دی چه هغې له یئے په هیڅ ساعت د شپے او ورځے کښ عذاب نه دے ورکړے۔

سوال:۔ د قبول حسن په ځائے باندې بتقبل حسن ولے او نه وئیلو

جواب:۔ هر کله چه تقبل کښې بو معنیٰ د مبالغے ده او بله معنیٰ د تکلف ده نو قبول حسن یئے د دے د پاره ذکر کړو چه په دیکښې معنیٰ د تکلف نیشته ځکه الله تعالیٰ باندې هیڅ کار گران نه وی۔

بِقَبُولٍ حَسَنٍ، باء زیاتی ده یعنی قبولًا یا باء په خپل ځائے اصلی ده او قبول اسم دے د پاره د هغه څیز چه قبلولے شی په هغے سره یو څیز۔

وَأَنْبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا، او په دیکښې ډیر اقوال دی اول دا چه په یوه ورځ کښې په دا سے لوئیدله لکه نور بچی چه په کال کښې لوئیږی دویم قول دا چه د هغې بدن یئے برابر کړو بغیر د زیادت او نقصان نه۔ دریم قول دا چه په خَلق او په خُلق (خوئی) کښې ښه لویه کړه یعنی په صلاح او عفت او طاعت کښې لویه کړه۔ او دا قبولیت او انبات په تا اشنا طریقے سره اشاره ده چه د دے راتلونکی

احوال به هم دَ عادت نه په خلاف سره وي لکه پیدائیدل دَ عیسیٰ علیه السلام۔

وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا، کفاله په اصل کښ ضامن کیدلو ته وئیلے شی او استعمالیږی په معنیٰ دَ پیوست کولو او اخستلو او په دے کفالت کښ هم اشاره ده فضیلت دَ مریم علیها السلام ته ځکه چه دَ نبی په کفالت کښ دینی ترقی ده او طریقه دَ کفالت دَ هغه په آیت ۴۴ کښ ذکر کیږی۔ او واو دَ پاره دَ ترتیب نه دے ځکه چه اثبات او کفالت په یو وخت کښ وُو۔ او زکریا علیه السلام په هغه وخت کښ نبی وو او دَ هغه ښځه دَ مریم علیها السلام ترور وه یا خور دَ هغے وه۔ لکه چه مخکښ ذکر شویدی لیکن اول قول غوره دے۔

كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ، الْمِحْرَابَ، مفعول فیه دے یا مفعول به دے۔ په محراب کښ مختلف اقوال دی۔ ابوعبید وئیلی دی چه اشرف دَ مجالسو ته وئیلے شی او ابن العلاء وئیلی دی چه قصر (ما نړئ) ته وئیلے شی او اصمعی وئیلی دی چه بالاخانے ته وئیلی شی مبرد وئیلی دی چه محراب نه وی مګر هغه ځائے چه په پاونړو ورته ختل کیږی۔ ابن عاشور وئیلی دی چه هغه آبادی چه جوړه شی دَ پاره دَ خلوت دَ عبادت او اکثر دا په اوچت ځائے باندے وی او غیر وی دَ مسجد نه۔ دا سے په سورة سبا کښ دی۔ بعضو وئیلی دی چه دا مشتق دَے دَ حرب نه ګویا که دغه عبادت خانه الله دَ جنګ کولو ده دَ شیطان سره۔ او مراد په دے سره دغه محراب نه دے کوم چه مشهور دے په نن زمانه کښ۔ ځکه دا خو په مسجد نبوی کښ په خلافت دَ ولید بن عبد الملك او په وخت دَ امارت دَ عمر بن عبد العزیز کښ په مدینه منوره کښ اول ځل جوړ شویدے۔ مفسر آلوسی لیکلی دی چه مونږ کول په هغه محرابونو کښ چه زمونږ په زمانه کښ په مساجدو کښ جوړیږی یو جماعت دَ ائمه کرامو دا مکروه

کنړلې دي اودا قول دَعلي رضي الله عنه او ابراهیم نخعي دَ مصنف ابن ابي شیبه کښ دَ دوی نه روایت دے۔ او دا دَهغه بدعاتو نه دي چه په اوله زمانه (زمانه دَ صحابه کرامو) کښ نه وو۔ او دَ ابو موسی جهني نه مرفوع روایت دے چه همیشه به ځما امت په خیر سره وي ترڅو پورے چه خیلو مساجدو کښ مذابح جوړ نه کړي پشان دَ مذابحو دَ نصاری۔ او دَ ابن ابي الجعد نه روایت دے هغه وئیلي دي چه اصحابو دَ نبي صلی الله علیه وسلم به وئیل چه دَ قیامت دَ بعضے علاماتو نه دا ده چه په مساجدو کښ به مذابح جوړ شي۔ او دَ ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دے چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي ځان اوساتئ دَ دے مذابحو نه (او مراد دَ مذابحو نه په دے روایاتو کښ محاریب دي) او روایات په دے باب کښ ډیر دي امام سیوطي په دے مسئله کښ مستقله رساله لیکلې ده (انتهٰی)۔ دَ دے روایاتو اسانید او دَ هغے حالت ما ته معلوم نه دے لیکن ځما په نیز غوره خبره دا ده چه دا محاریب جوړول بدعت للدین (بدعت في الوسائل) دے او حرام په نصوصو سره بدعت في الدین دَ للدین نه دے۔ دَ هغے دواړو فرق په خپل ځائے کښ پیژندلے کیږي یعنی محراب په دین کښ داخل عمل نه دے لیکن دَ دے په وسیلے سره دَ مسجد قبله او دَ صف وسط معلومیږي او علم دَ قبلے او دَ وسط دَ صف دین دے نو په مسجد کښ محراب جوړول بدعت للدین شو هاں چه څوک محراب جوړول دین کنړي او دَ هغے په جوړولو باندے خرچه په طریقه دَ اسراف سره کوي لکه په دے زمانه کښ په اکثر مساجدو کښ داسے کړے شوي دي نو دا ګناه دے۔ دا رنګ التزام په موخ کولو دَ امام په محراب کښ بدعت سیئه دے۔ او دَ دے آیت

نه استدلال کول په جوړولو د معروف محراب باندے جهل دے
وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ، رزق نکره ده او د تنکیر دوه وجے دی
اوله وجه دا چه رزق د اوړی په ورسره وۀ په وخت د
ژمی کښ او رزق د ژمی په ورسره وۀ په وخت د اوړی
کښ- دویمه وجه دا ده چه د هغے کمرے ته دروازے
بندے وے بل چا ته د دننه تللو اجازت نه وۀ نو د زکریا
علیه السلام د ذریعے نه علاوه رزق (که هر قسم وی)
راتلل تا اشنا کار وۀ ځکه چه بل سبب معلوم نه وۀ دا
قول ابوحیان ذکر کړے دے۔
قَالَ يٰمَرْيَمُ اَنّٰى لَكِ هٰذَا ، اَنّٰى یعنی د کوم ځائے نه یا
په کوم کیفیت سره تا له دا رزق راغلے دے او دا دلیل
دے چه انبیاء علیهم السلام علم د غیب نه لری ځکه دلته
زکریا علیه السلام په ظاهری سبب د رزق باندے علم
نه لرلو۔
قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ، یعنی هغے اُووئیل چه ما ته د دے
سبب معلوم نه دے او د کوم څیز سبب ظاهری چه معلومه
نه وی نو نیکان خلق د هغے نسبت الله تعالیٰ ته کوی او دا
غوره قول دے۔
سوال :- زکریا علیه السلام خو په هر صورت د مریم
علیها السلام نه په مرتبه او علم کښ لوئے دے نو ولے
هغه ته دا جواب معلوم نه وۀ؟
جواب :- تعجب د زکریا علیه السلام او تپوس د هغه
په اعتبار د عدم د سبب ظاهری وو او جواب د مریم
علیها السلام په عدم علم د هغے دے په سبب ظاهری
باندے او چا ته چه سبب ظاهری معلوم نه وی نو هغه
حواله په الله تعالیٰ باندے ورکوی دا دلیل د دے نه
دے چه د هغے علم زیات وو د زکریا علیه السلام نه
اِنَّ اللّٰهَ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ، په دیکښ دوه

احتمالونه دی اول احتمال داچه دا قول دَ مریم علیها السلام دے او دا تاکید دے دَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ دَ پاره.
دویم احتمال داچه دا قول دَ الله تعالیٰ دے په عموم سره او دلته بِغَيْرِ حِسَابٍ نه مراد يَرْزُقُهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ دے یعنی چاله په داسے طریقه رزق ورکوی چه دَ هغه گمان کښ نه وی او سبب ورته معلوم نه وی.
فائده ۱: دَ دے آیت په ذیل کښ ابوحیان او آلوسی او صاحب اللباب او ابن کثیر او خطیب شربینی او نورو مفسرینو لیکلی دی چه په دیکښ دلیل دے په ثبوت دَ کرامات الاولیاء باندے چه حصول دَ رزق په طریقه دَ خرق عادت سره کړیده او وجود دَ یو څیز په خلاف عادت طریقے سره دَ اولیاؤ کرامو دَپاره په اصطلاح دَ شریعت کښ کرامت دے. او صاحب اللباب په طریقه دَ استدلال سره پنځه طریقے لیکلی دی مشهوره طریقه دا ده چه هر کله داخرق عادت کار وؤ نو یا به معجزه دَ زکریا علیه السلام وی یا به کرامت دَ مریم علیها السلام وی لیکن معجزه دَ هغه خو نشی کیدے ځکه چه هغه په دے علم نه لرلو په قرینه دَ دے جملے سره أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا، نو معلومه شوه چه داکرامت دَ مریم علیها السلام دے او مقدمه ده دَپاره دَ پیدائش دَ یحییٰ علیه السلام او عیسیٰ علیه السلام په خرق عادت طریقے سره. او معتزله انکار کوی دَ کرامت الاولیاء نه او دَ هغوی دَ شبهاتو صاحب اللباب په تفسیر دَ دے آیت کښ جوابونه ذکر کړی دی.
فائده ۲: کرامات دَ اولیاء الله دَ اهل سنت په نیز حق او ثابت دی په نصوصو دَ قرآن او احادیث صحیحه سره. او معنیٰ دَ هغے دا ده چه یو خلاف عادت کار دَ داسے شخص نه ښکاره شی چه هغه ولی الله وی (په هغه معنیٰ سره چه سورة یونس ۶۳ کښ ذکر ده) او حکمت دَ هغے په

شرح فقه اکبر ص۹۶ کښې د شیخ سهروردي نه نقل دے چه په داسے کارونو سره د هغه یقین په الله تعالیٰ باندے زیات شي او د هغے یقین د وجے نه زهد في الدنیا او رغبت د آخرت او ترک د خواهشاتو په هغه کښې پیدا شي.
او د دے کرامت په باره کښې د عقیدے په طور سره لاندے امور شرط دي - اول دا چه په دغه شخص باندے د ایمان او تقوی په باره کښې هیڅ شرعي اعتراض نه وي ځکه چه د غیر متشرع شخص نه داسے امور په طریقه د استدراج یا سحر سره ښکاره کیږي هغے ته کرامت نشي وئیلے داسے خطیب شربیني په تفسیر د سورت یونس کښې لیکلي دي چه فَكُلُّ مَنْ كَانَ لِلشَّرْعِ عَلَيْهِ اِعْتِرَاضٌ فَهُوَ مَغْرُوْرٌ مُخَادِعٌ (هر هغه څوک چه د شرعے په هغه باندے اعتراض وي نو هغه مغرور او دهوکه باز دے) - دویم شرط دا دے چه په کرامت کښې قدرت او اختیار د ولي نه وي بلکه هغه فعل د الله تعالیٰ وي او الله تعالیٰ ئے ظاهروي د اکرام د دغه شخص د پاره - دا فتوح الغیب د شیخ عبد القادر جیلاني او فتاویٰ رشیدیه او نورو کتابونو لیکلي دي او د قرآن نصوص هم په دے دلیل دے بلکه کله ورته علم هم نه وي حاصل په دغه کرامت باندے لکه امام نووي په شرح د حدیث د زیادت د طعام د ابوبکر رضی الله عنه کښې لیکلي دي - او د دے مثال داسے دے لکه چه خط د قلم نه صادریږي لیکن فاعل د هغے کاتب وي د قلم په دغه خط کښې اختیار نه وي - دریم شرط دا دے چه ولي به د هغے د پټ ساتلو کوشش کوي دے د پاره چه عوام خلق په دهوکه کښې نه پریوزي لکه چه ابن قیم په مدارج السالکین جلد ۳ ص۴۰۵ او ملا علی قاري په مرقات شرح مشکوٰة ص۲۷ کښې لیکلي دي

هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهُ ج قَالَ

دَ دغه وجې نه دعا اوغوښتله زکریا علیه السلام د رب خپل نه اُویل هغه

رَبِّ هَبْ لِي مِن لَّدُنكَ ذُرِّيَّةً

اې ربه زما اوبخښه ماته د خپل نيز نه اولاد (بچي)

طَيِّبَةً ج إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ (۳۸)

پاک يقيناً ته آوريدونکې د دُعا ئې۔

يُجِبُ عَلَى الْوَلِيِّ إِخْفَاءُ كَرَامَتِهِ (لازم دی په ولی باندې پټ ساتل د کرامت خپل) څلورم شرط دا دې چه د الوهيت کار ته کرامت د ولی ويئل جائز نه دی د دې وجې نه شيخ عبدالقادر جيلانی ويئلی دی لاكَرَامَةً لِي أَنْ أَكُونَ مَعَهُ فِي شَيْءٍ مِنْ تَدْبِيرِهِ وَتَصَارِيفِهِ الفتح الربانی ص۱۵۸ (ما له داسې کرامت نېشته چه څه شريک شم د الله تعالی سره په يو څيز کښ د تدبير او تصرفاتو د الله تعالی نه) پنځم شرط دا دې چه کوم امور خلاف عادت چه روستو د مرګ د ولی نه ښکاره شی هغه ټول د قبيلې د حفاظت الهيه نه دی لکه چه ساتل د بدن د عاصم رضی الله عنه د مشرکانو نه او ښکاره کول د رڼا په قبر د نجاشی کښ ديته مجازاً کرامت ويئلې شی۔ د دې مسئلې بعضې بحث ما په کتاب التبيان کښ ذکر کړيدې هلته ئې اوګورئ۔ ف۳۸:- د دې آيت نه واقعه د زکريا عليه السلام ذکر کوی او لوئې مقصد پکښ دا دې چه دې اګرچه نبی وؤ ليکن الله تعالی ته محتاج وو په طلب د ولد کښ نو دې إله نشی کيدې او په ديکښ رد دې په زعم د نصاراؤ باندې هغه دا دې چه زکريا عليه السلام د مريم کفالت کوؤ نو کيدې شی چه د دې عمل د وجې نه په هغه کښ څه صفت د الوهيت پيدا شوې وی لکه چه

دَ نورو مشرکانو باطله عقیده ده چه په عبادت او محنت سره صفات دَ الوهیت حاصلیږی او هغې ته مرتبه دَ فَنَا فِي الله او وحدت وجود وئیلے شی - او دا باطله عقیده ده.
هُنَالِكَ ، دا لفظ کله دَ مکان دَ پاره استعمالیږی لکه فَقُتِلُوْا هُنَالِكَ - دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُوْرًا ، او کله دَ زمان دَ پاره استعمالیږی لکه په هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُوْنَ کښ دلته دواړه صحیح دی یعنی په هغه مکان کښ چه محراب وؤ دَ زکریا علیه السلام او دَ مریم تربیت ئے پکښ کولو او دَ دے دَ پاره دلیل روستو آیت دے وَهُوَ قَائِمٌ يُّصَلِّي فِي الْمِحْرَابِ، یا په هغه وخت کښ چه رزق دَ مریم علیها السلام ئے اولیدلو.
او سیوطی اتقان کښ وئیلی دی چه هنالك دلته په معنیٰ دَ ثَمَّ (دَ دغه وجے نه) سره دے او ابوحیان او بعضے مفسرینو لیکلی دی چه دا دلیل دے چه بنده له په وخت دَ دُعا کښ دَ مبارک مکان او مبارک وخت رعایت پکار دے لکه مسجد او ملتزم او مقام ابراهیم او لاندے دَ میزابِ رحمت نه (پرناله دَ کعبے شریفے) او نور هم ډیر مواضع دی او په اوقاتو کښ دَ شپے آخری حصه او فرض مونځونو پسے او په وخت دَ روژه ماتی کښ وغیره. لیکن تخصیص دَ مکان او زمان دَ پاره دلیل شرعی ضروری دے.
سوال :- قبر پرستو دَ دے زمانے دَ دے آیت نه استدلال کړیدے چه زکریا علیه السلام په دربار دَ مریم علیها السلام کښ دُعا اوغوختله نو قبوله شوه نو دَ قبرونو دَ اولیاؤ په خوا کښ دُعا ګانے ښه قبلیږی ؟
جواب :- دا استدلال په جهل باندے بنا دے ځکه هغه مکان (محراب) خوځائے دَ عبادت دَ زکریا علیه السلام وؤ یعنی دا دَ هغه خپل دربار وؤ، مریم علیها السلام خو پکښ دَ هغه دَ کفالت دَ لاندے اوسیده له

دَ هغې دربار ته وو۔ دا رنګ په صريح نصوصو سره ثابت دی چه دَ اوليآؤ درجه دَ انبيآؤ نه ښکته ده۔
تنبيه: عامو مفسرينو ليکلی دی چه زکريا عليه السلام هر کله دَ مريم په خوا کښې بے وخته رزق اوليدلو نو توجه ئې پيدا شوه چه الله تعالی بے وخته اولاد هم ورکولے شی دَ دے رجے نه دا دُعا ئې اوغوښتله۔ په دے توجيه باندے سوال واردیږی چه زکريا عليه السلام خود مخکښې نه په قدرت دَ الله تعالی باندے عالم وو نو ولے ئې دُعا نه غوښتله؟
جواب ۱:۔ علم ئې وو ليکن په مشاهدے سره هغه علم زيات شو او دا مشاهده (دَ رزق دَ مريم عليها السلام بے وخته) سبب اوګرځيدله دَ پاره دَ توجه دغه دعا ته۔
جواب ۲:۔ غوره خبره دا ده چه صرف ليدل دَ بے وخته رزق سبب دَ دُعا نه دے بلکه هر کله چه زکريا عليه السلام بوډا شوے وو او دَ عمران نارينه اولاد او نشو بلکه مريم عليها السلام پيدا شوه نو زکريا عليه السلام سره دَ دعوت او تبليغ دَ دين فکر زيات پيدا شو چه زمونږ په نسل کښې نارينه اولاد نيشته نو دَ دے دين الهی دعوت به څوک کوی دَ دے وجے نه دَ خپل ولد دَ پاره ئې دُعا اوغوښتله او دا توجيه غوره ده په درے وجوهو سره۔ اوله وجه، سورة مريم کښې دَ ضرورت دَ ولد دَ پاره ئې ذکر کړی دی، يَرِثُنِىْ وَ يَرِثُ مِنْ اٰلِ يَعْقُوْبَ، او مراد دَ دينه وراثت دَ دين دے په اتفاق دَ مفسرينو سره۔ دويمه وجه دا ده چه صرف بے وخته رزق ليدلو سره دَ نارينه ولد طلب کولو څه خاص مناسبت نيشته نو حاجات هم دَ انسانانو شته دے هغه ئې ولے نه طلب کول۔
دريمه وجه سيوطی وئيلی دی چه هنالك په معنیٰ دَ مِنْ ثَمَّ سره دے يعنی دَ ما قبل دَ حالاتو دَ وجے نه او په ما قبل حالاتو کښې لوئے حال پيدا ئش دَ مريم دے په اولاد

فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ

نو آواز ورکړو هغه ته ملائکو او دے ولاړ وو

يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ ۙ اَنَّ اللّٰهَ

مونځ یې کولو په عبادت خانه کښ چه یقیناً الله تعالیٰ

يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى مُصَدِّقًاۢ بِكَلِمَةٍ

زیرے درکوی تا لره په یحییٰ علیه السلام تصدیق کوونکے دے د کلمے

د عمران کښ چه هغه زنانه وه پوره صلاحیت د دعوت د دین نه لری۔

دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهٗ قَالَ رَبِّ هَبْ لِيْ ، دا روستو جمله تشریح ده د اولے جملے یعنی دُعا د پاره۔ هِبَة (بخشش) په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه د غوختونکی سره هیڅ سبب او بدله نه وی او دا په ډیر عجز یادنے دلالت کوی۔

مِنْ لَّدُنْكَ ، یعنی په خالص قدرت ستا سره، په دیکښ تاکید دے د هَبْ د پاره یعنی د والدینو د طرف نه عادتی اسباب هم نیشته ځکه دواړه د تولید د وخت نه وتلی دی۔

ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ، لفظ د ذریت جنس دے یو او ډیرو د پاره استعمالیږی دلته یو مراد دے په قرینه د لفظ د وَلِيًّا چه په سورة مریم کښ ذکر دے او په لفظ د ذریت کښ اشاره ده ډیر والی د منافعو د هغه ولد ته۔ طَيِّبَةً ، صالح او مبارک (قرطبی) او سلیم بدن او دین والا۔ او بعضو وئیلی دی چه په دین کښ مرتبے د نبوت ته اورسیږی (ابوحیان)۔ او په سورة مریم ۶ کښ لفظ د رَضِيًّا په دے دلیل دے۔

اِنَّكَ سَمِيْعُ الدُّعَآءِ ، دا دلیل او علت دے د پاره د تخصیص د دُعا د رب تعالیٰ ته او وسیله ده د پاره د اجابت د

مِنَ اللّٰهِ وَسَيِّدًا وَّحَصُوْرًا وَّ

چه د طرف د الله تعالیٰ نه ده او سردار به وی او پاک لمنے به وی او

نَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٣٩﴾

نبی به وی د جماعت د کاملو نیکانو -

دُعا په نوم د الله تعالیٰ سره - او سمیع دلته په معنیٰ د قبلوونکی دے - ابوحیان وئیلی دی چه دا دُعا د زکریا علیه السلام په سورة انبیاء کښ په اختصار سره ده او په سورة مریم کښ په اوږد والی سره ده او دلته په توسط (درمیانه) طریقے سره ده -

۳۹: په دے آیت کښ استجابت د دُعا د زکریا علیه السلام ذکر دے او په سورة انبیاء ۹۰ کښ تعبیر د استجابت ذکر کړے وؤ ځکه چه په قصه د نوح او ایوب او ذالنون علیهم السلام کښ دا تعبیر ذکر وؤ او په سورة مریم کښ صرف تفسیر د نداء ذکر دے په ے کښ ځکه هلته نداء د زکریا علیه السلام نداء خفی ذکر وه نو د الله تعالیٰ د طرف نه ډیره اخفاء اوشوه یعنی نداء ئے حذف کړه - او دا خو په باره د دے قصه کښ اول سورت دے د دے وجے نه ئے دلته تعبیر د نداء د ملائکو او تفسیر د هغے ئے دواړه ذکر کړی دی -

فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ، مراد د دینه جنس ملائکه دی یعنی جبرئیل علیه السلام او هر کله چه د هغه سره اتباع او ملګری وؤ نو د هغے په لحاظ سره ئے جمع ذکر کړے ده او په اعتبار د جنس سره روستو په سورت مریم کښ مفرد صیغے ذکر کړی دی او نداء په پیښ د نون یا په زیر د هغے سره رفع الصوت (آواز اوچتول) ته وئیلے شی او استعمالیږی د فریاد او بشارت د پاره -

وَهُوَ قَآئِمٌ يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ، صلاة کښ دلته

دوه احتمالونه دي اول دا په معنیٰ دَ مونځ سره دے او دليل دے چه مونځ کوونکی ته په حال دَ مونځ کولو کښې دَ ضرورت په وخت کښې آواز کول جائز دي دويم دا په معنیٰ دَ دُعا سره دے او اشاره ده چه په اولاړے حالت کښې هم دُعا غوختل جائز دي - او دَ فِي الْمِحْرَابِ معنیٰ مخکښې ذکر شوے ده او دا دليل دے چه عبادت خانه کښې دُعا غوختل غوره دي -

أَنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيَىٰ ، دا تفسير دَ نِداء دے او نوم دَ هغه الله تعالیٰ دَ خپل طرف نه راوليږلو - مفسرينو وئيلے دي چه پنځه انبياء عليهم السلام اسحاق او يعقوب او يحيیٰ او عيسیٰ او محمد صلی الله عليه وسلم دي چه دَ هغوی نومونه الله تعالیٰ پخپله کيخودلي دي -

مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللَّهِ ، مراد دَ کلمه نه تورات او انجيل او نور کتابونه دي چه دَ دينه مخکښې نازل کړے شويدي نو مراد دَ کلمه نه جمع ده يا مراد دَ دے نه عيسیٰ عليه السلام دے او هغه ته کلمه دَ دے وجے نه وئيلے شي چه هغه پيدا کړے شوے وُو په کلمه دَ کُنْ سره بغير دَ واسطے دَ پلار نه يا مراد دَ کلمه نه بشارت دَ الله تعالیٰ دے مريم عليها السلام لره په ولادت دَ عيسیٰ عليه السلام نو يحيیٰ عليه السلام دَ دے بشارت او دَ عيسیٰ عليه السلام تصديق کړيدے هغه اوس هم په انجيل دَ نصاراؤ کښې ذکر دے -

وَسَيِّدًا ، دَ دے لفظ په معنیٰ کښې ډير اقوال دي - کريم، فقيه، عالم چه غضب ورباندے غلبه نه کوی ، سردار چه اتباع ئے کيديشي ، خائسته خوئ والا ، مطيع دَ الله تعالیٰ ، تقوی دار ، هغه څوک چه حسد نه کوی ، قناعت کوونکے په خپله برخه باندے ، سخی او صبر ناک (صاحب اللباب) - او دا دليل دے چه دَ انسان (صالح) صفت په سيد سره صحيح دے لکه چه په حديث کښې سعد رضی الله عنه ته سيد او حسن رضی الله عنه ته سيد وئيلے شويدی - نو

قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّ

هغه اُویل اے ربه زما څه رنګ به کیږی ماله هلک او

قَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ وَامْرَاَتِيْ

حال دا چه دا رسیدلے ما ته بوډاوالے او ښځه زما

عَاقِرٌ ۗ قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ

شنډه ده - اُویل هغه ته به دغسے دے الله تعالیٰ

يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ﴿۴۰﴾

کوی څه چه اوغواړی -

صفت دَ سیدی اوسیدل تا زمونږ دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ پاره په اتفاق سره جائز دے لیکن دَ ظالم او منافق دَ پاره او کافر دَ پاره دا مدح جائز نه ده ( ابوحیان )۔

وَحَصُوْرًا ، دَ دے معانی هم ډیرے دی۔ هغه څوک چه راز پټ لری، هغه څوک چه زنانه ته راتلل نشی کولے۔ پاکباز چه زنانه ته په زنا کولو سره راتلل نه کوی۔ غوره قول دا روستو دے

وَنَبِيًّا ، هر کله چه په سیدًا کښ اشاره ده صفت دَ مصالحو دَ خلقو ته په اعتبار دَ دین او په اعتبار دَ دُنیا سره او حصورًا کښ اشاره ده پوره زهد ته نو دَ دے دواړه صفاتو مجموعه نبوت دے دَ دے وجے نه نَبِيًّا ئے روستو ذکر کړو۔

مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ، دا مستقل صفت دے مراد دَ دینه صلاحیت کامله دے په دُنیا کښ یا جماعت دَ صالحینو دے روستو دَ مړګ نه او په آخرت کښ او دے مرتبے ته انبیاء علیهم السلام محتاج دی لکه چه په دُعا دَ سلیمان علیه السلام په سورة نمل سـ۱۹ کښ ذکر دی۔

سـ۸ :- دا بله دُعا ده دَ ذکریا علیه السلام دَ پاره دَ ښکاره کولو دَ ډیر عجیب قدرت دَ الله تعالیٰ په طریقه دَ سوال او جواب۔

سوال :- هر کله چه دهٔ دُعا طلب کړی ده او ملائکو ورله آواز دَ اجابت ورکړو نو بیا ولے تپوس کوی پدے دُعا کښ ؟
جواب ۱ :- دلته آنیٰ په معنیٰ دَ کیف سره دے یعنی تپوس کوی دَ کیفیت په باره کښ چه آیا پیدائش په زموږ دَ بوډا والی په حال کښ کیږی او که نه ځوانیٔ ته به واپس کیږو او آیا دَ دے ښځے نه به کیږی او که دَ بلے نه به وی نو حاصل جواب دا دے چه په حال دَ بوډا والی دَ دواړو کښ به دَ دے ښځے نه پیدائش دَ ولد کیږی او دا په الله تعالیٰ باندے گران نه دے.
جواب ۲ :- دا استعظام دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دے او دا حالت دَ ډیرے خوشحالیٔ نه هم پیدا کیږی - او مفسرینو نور جوابو نه هم لیکلی دی لیکن اکثر دَ هغے دَ انبیاءِ علیهم السلام دَ حال سره مناسبت نه لری.
غُلٰمٌ دا دَ غلمت او اغتلام نه اخستلے شوے دے په معنیٰ دَ طلب دَ نکاح نو غلام نوی عمر والا ځوان ته وئیلے شی او وړوکی ته مجازًا او تفاؤلًا وئیلے شی.
وَقَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ، په داسے احوالو کښ بلوغ (رسیدل) دَ دواړه طرفونو نه استعمالیږی یعنی بوډا والے ما ته رارسیدلے دے یا ځه بوډا والی ته رسیدلے یم دا دواړه وئیل جائز دی دَ دے وجے نه په سورت مریم کښ دی چه وَقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا - او مفسرینو لیکلے دی چه زکریا علیه السلام په دغه وخت کښ شپیږ شلے یا دوه نوی کالو ته رسیدلے وؤ.
وَامْرَاَتِیْ عَاقِرٌ، دا جمله حالیه ده - اِمْرَءَةٌ ئے او نه وئیلو ځکه چه مقام دَ حمل او دَ ولادت دے او هغه وصف دَ اِمْرَاَة دے - عَاقِرٌ، دَ عقر نه اخستلے شوے دے او عقر قتل ته وئیلے شی لکه فَعَقَرُوا النَّاقَةَ، دا رنګ عقر اصل دَ څیز ته وئیلے شی او قرطبی وئیلی دی چه عاقر په اصل کښ هغه ډیر کئ دَ شکو ته وئیلے شی چه هیڅ بوټے پکښ نه کیږی - او په اصطلاح کښ هغه ښځه وئیلے شی چه اولاد ئے نه کیږی که

سړے وی او که ښځه وی او عقیم ورته هم وئیلې شی -او هر کله چه دا د صفاتِ مشترکه د سړی او د ښځې نه دے په معنیٰ د ذات عقر سره د دے وجے نه مؤنث د پاره هم عاقر استعمالیږی -او وئیلے شویدی چه د هغے عمر په دغه وخت کښې دوه کم سل کاله وو.

سوال :- بَلَغَنِیَ الْکِبَرُ، جمله فعلیه او امرأتی عاقر جمله اسمیه ده نو وجه د فرق ئے څه ده ؟

جواب :- کِبَرُ د صفات عارضه نه دے لږ لږ زیاتی کیږی نو د هغے سره جمله فعلیه مناسب وه او عاقر حالت مستمره دے په یو حالت باندے نو د هغے سره جمله اسمیه مناسب ده۔

سوال :- په سورة مریم کښې حالت د ښځې ئے عاقر مخکښې ذکر کړیدے په قَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا باندے او دلته په دے سورت کښې برعکس دے ؟

جواب :- په سورة مریم کښې د اول نه زکریا علیه السلام خپل بوډا والے په دُعا کښې ذکر کړیدے او روستو ئے عقر د ښځې ذکر کړیدے نو په دویمه دُعا کښې ئے عقر مخکښې کړو په کبر خپل باندے د رعایت د فاصلے د آیاتو نو د پاره او دا رنګ عقر د ښځې د استعظام په مقام کښې لوئے سبب دے نو هغه ئے مخکښې ذکر کړو او دلته خو مخکښې ذکر د کبر د زکریا علیه السلام نیشته نو په دویمه دُعا کښې اول خپل حال ذکر کړو او روستو حال د ښځې خپلے۔

تنبیه :- ابوحیان د ماتریدی نه نقل کړی دی چه په تعبیراتو کښې دا اختلافات د دے وجے نه دی چه دا حکایات دی او په حکایاتو کښې رعایت د معانی کیږی نه رعایت د الفاظو۔

قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ، فاعل د قال الله تعالیٰ دے چه په رَبِّ اَنّٰی يَكُوْنُ لِیْ غُلٰمٌ کښې ذکر دے یا

قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْٓ اٰيَةً ؕ

اُویل هغه اے ربه زما اوګرځوه ما دپاره یوه نخه

قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ

هغه اُویل ستا نخه داده چه خبرے به نه کوے د خلقو سره

ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا رَمْزًا ؕ وَاذْكُرْ

درے ورځے مګر په اشاره کولو سره او یادوه

رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ

خپل رب لره ډیر او تسبیح وایه بیګاه ئی

وَالْاِبْكَارِ ﴿٤١﴾

او صباځ.



مراد په دے سره جبرئیل علیه السلام دے۔ كَذٰلِكَ،
دغسے نا اشنا کارونه د الله تعالیٰ دی لګه دا کار (ابوحیان).
یا مبتدا پټه ده اَنْتُمَا كَذٰلِكَ (تاسو دواړه به هم داسے
یئ لکه چه څنګه یئ) (ابن عطیه)۔ مَا يَشَآءُ، په عموم
اختیار او تصرف د الله تعالیٰ باندے دلالت کوی او په یکښ
پیدائش د. یحیٰ په حال د بوډا والی د مور او پلار کښ
داخل دی۔
۴۱:- روستو د ذکر د طریقے د ولادت نه په سوال او اجابت
سره اوس ذکر کوی طلب د علامت په ولادت باندے۔
بعضے مفسرینو لیکلی دی چه د دے سبب دا وو چه زکریا
علیه السلام شک کوؤ چه دا کلام او بشارت د الله تعالیٰ د
طرف نه نهٔ دے د دے وجے نه هغه علامت طلب کوؤ
لیکن دا قول د دوی د انبیاء علیهم السلام د شان بے ادبی
ده ځکه چه انبیاء علیهم السلام باندے په کلام د الله تعالیٰ
کښ هیڅ التباس نه راځی بلکه دا قول د دوی د اسرائیلیا تو

نه دے چه انجیل لوقا کښې ذکر دے۔ او اهلِ تحقیق مفسرینو لیکلې دی چه طلب دَ علامت دَ زیاتے تسلیٔ او دَ پوره والی دَ بشارت دَ پاره دے ځکه چه نعمت را تلل روستو دَ انتظار کولو نه ډیر لذیذ او قیمتی وی۔ ایۃً نه مراد هغه علامت دے چه دلالت کوی په ابتداء دَ حمل دَ بی بی دَ هغه باندے او چه معلومه شی چه نیزدے دے او که لرے دے۔

قَالَ اٰيَتُكَ اَنۡ لَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ، په دیکښې دَ مفسرینو دوه اقوال دی اول دا چه دا بندیدل دَ ژبے دی بے اختیاره یعنی الله تعالیٰ دَ هغه ژبه بنده کړله دَ خبرو کولو نه دَ خلقو سره سرهٔ دَ قدرت نه په ذکر الٰهی باندے او په دے نښه کښې پوره معجزه وه او په دے نښه کښې حکمت دا وو چه دَ نعمت دَ راتللو په انتظار کښې ټوله توجه الله تعالیٰ طرف ته اوګرځی او دا لویه طریقه ده دَ شکر ادا کولو دَ پاره۔ بل دا چه هغه ژبه چه خوزیدله په خبرو باندے هغه بنده شوه دَ خبرو نه او هغه بی بی چه بنده وه دَ ولد راوړلو نه تیاره شوه دَ پاره دَ راوړلو دَ ولد نو دا نښه دَ ضد شوه په خپل ضد باندے۔ دویم قول دا دے چه دا بندش دَ کلام په امر دَ الله تعالیٰ سره دے چه عبادت په بنی اسرائیلو کښې دا وو چه په روژه کښې خبرے کول منع وے نو درے ورځے کلام بندول اختیاراً په حکم دَ الله تعالیٰ سره نښه ده چه ولد به درے ورځے روستو پیدا کیږی او دا هم طریقه دَ ادائیګئ دَ شکر دَ نعمت الٰهیه ده۔ په دیکښې اول قول غوره دے ځکه چه په سورة مریم کښې ثَلٰثَ لَيَالٍ ذکر دے او ظاهر دا ده چه دَ شپے روژه نه وی۔ او لفظ دَ ایام په عرف کښې شپو ته هم شامل وی یعنی درے شپے او ورځے یئے ژبه بنده وه۔

سوال:- دلته لفظ ایام او په سورة مریم ۱۰ کښې

لفظ د لیال کښ څه حکمت دے ؟
جواب :- هر کله چه هغه سورت د دے سورت نه مخکښ نازل شوے وۀ او شپه د ورځ نه مخکښ وی د دے وجے نه هلته ئے شپے ذکر کړے دی او دلته ئے ورځ ذکر کړیدی د دے د پاره چه معلومه شی چه دا حکم په شپے پورے خاص نه دے بلکه ورځ پکښ هم داخل دی۔
اِلَّا رَمۡزًا ، په دیکښ دوه اقوال دی چه رمز د جنس د کلام نه نۀ دے نو دا استثناء منقطعه ده دویم قول دا دے چه رمز پټ آواز ته شامل دے نو د جنس د کلام نه دے نو استثناء متصله ده۔ روستو قول غوره دے ځکه چه فقهاؤ تصریح کړیده چه په باب د قسم کښ رمز په حکم د کلام کښ داخل دے۔
وَاذۡکُرۡ رَّبَّکَ کَثِیۡرًا وَّسَبِّحۡ بِالۡعَشِیِّ وَالۡاِبۡکَارِ ، ذکر په زړه سره مراد دے او تسبیح په ژبے سره یا ذکر عام دے او تسبیح نه مراد مونځ کول دی۔ کثیرًا صفت دے د موصوف پټ د پاره یعنی ذکرًا کثیرًا یا زمانًا کثیرًا ، او په دیکښ اشاره ده چه عام ذکر الٰهی د پاره تحدید او توقیت نیشته دے۔ او کثرت په دوه قسمه دے اول په اعتبار د عدد سره او د ډیر وخت سره او دویم کثرت معنویه دے یعنی په اخلاص او سنت طریقے سره ځکه چه اخلاص او طریقه د سنت نه وی نو ذکر ته اعتبار نیشته۔ بِالۡعَشِیِّ ، زمحشری وئیلی دی چه عشی وخت دے د زوال د نمر نه تر پټیدلو د هغے پورے۔
واحدی وئیلی دی چه دا جمع د عشیه ده آخر د ورځ ته وئیلے شی په هغے کښ ماسپخین او مازیګر داخل دی او په نیز د راغب اصفهانی په دیکښ ماښام او ماسخوتن هم داخل دی۔ وَالۡاِبۡکَارِ ، دا وخت دے د صبا ختلو نه تر وخت د ساخت (ضحی) پورے۔ تو په نیز د اکثرو مفسرینو دا دواړه طرفونه د شپے او د ورځ دی لیکن مراد د دے نه همیش والے دے

وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ
او كوم وخت چه اُويل ملائكو اے مريم
اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىكِ وَطَهَّرَكِ
يقيناً الله تعالىٰ غوره والے دركړے تا ته او پاكه ساتلے يې ته
وَاصْطَفٰىكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۲﴾
او غوره كړے يې ته په زنانو د خلقو باندے۔

لكه په سوره مريم ۶۲ كښ او په قول د راغب باندے (په تفسير د عشى) كښ پنځه اوقاتو د مونځونو ته اشاره ده۔

۴۲:۔ هركله چه د مريم عليها السلام ولادت اوتربيت ذكر كړے شو نو بيا په مينځ كښ قصه د زكريا عليه السلام ذكر كړه (په طور د جملے معترضے سره) د پاره د اظهار د عبديت د هغه نو اوس انتقال كوى ذكر د حالاتو د مريم عليها السلام ته روستو د بلوغ د هغے نه او په ديكښ رد دے په يهوديانو باندے چه هغوى مريم عليها السلام ته نسبت د فاحشه كوى۔

وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ، قرطبى او ابن حزم او ابن عاشور وئيلے دى چه مريم عليها السلام نبيه وه رسوله نه وه او دليل په دے باندے خطاب د ملائكو دے د هغے سره دارنګ نور صفات د هغے د اصطفاء او د تصديق د كلماتو د الله تعالىٰ په دے دلالت كوى۔ او اكثر اهل علمو وئيلے دى چه دا خطاب او صفتونه مستلزم د نبوت د پاره نه دى بلكه خطاب د ملائكو په طريقه د كرامت سره دے لكه ذكر د وحى د مور د موسىٰ عليه السلام ته۔ دارنګ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا او ارسال نبوت ته شامل دے دارنګ په سوره مائده كښ اعلىٰ مرتبه د عيسىٰ عليه السلام ئے رسالت ذكر كړيدے او اعلىٰ مرتبه د مريم عليها السلام ئے صديقيت ذكر كړيدے د پاره د رد كولو په يهوديانو

بانده تو که دا نبیه وے نو مناسب داوه چه هلته ئې صفت د
نبوت د هغې ذکر کړے وے. اَلْمَلٰٓئِكَةُ، مراد د دے صرف جبرئیل
علیه السلام دے لکه چه سوره مریم کښ ذکر دے او احتمال
لری چه د جبرئیل په ملګرتیا کښ نور ملائک وو.
اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىكِ، دا اصطفا شامل ده قبولیت او تربیت د هغې
ته او کفالت د زکریا علیه السلام ته او بچ ساتل د مس د شیطان
ته او تا اشنا رزق ورکولو ته چه مخکښ ذکر کړے شویدی.
وَطَهَّرَكِ، پاک والے د کفر او ګناهونو ته او بچ ساتل د نارینه
او د حیض او نفاس او ناکاره اعمالو او اخلاقو نه دلته مراد دے.
وَاصْطَفٰىكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ، مخکښ اصطفاء ذاتی وه او
دا اصطفاء نسبتی ده او په دے اصطفاء کښ دوه اقوال دی
اول غوره والے مطلقاً په ټولو زنانو بانده او دا دلیل دے
د هغه چا چه د نبوت د هغې قائل وی دویم قول اصطفاء په
ولد ورکولو سره په غیر د لګیدلو د سړی نه د هغې سره
او دا په اعتبار د راتلونکے زمانے سره دے یعنی پیشنګوئی
ده او تسلی او تیارول د هغې دی ولادت د عیسی علیه السلام
ته او په دیکښ هم اصطفاء په ټولو زنانو مراد ده ځکه چه
د بلے هیڅ زنانه د پاره دا فضیلت نیشته لیکن دا فضیلت
جزوی دے دلالت نه کوی په فضیلت د مریم علیها
السلام په ټولو زنانو بانده.
فائده:- په باره د فضیلت د بعضے زنانو کښ مختلف احادیث
راغلی دی اول په روایت د بخاری او مسلم کښ د هشام بن
عروه په سند سره چه غوره د زنانو (د زمکے او اسمان په
مینځ کښ) مریم علیها السلام لور د عمران او خدیجه لور
د خویلد ده۔ دویم په روایت د انس رضی الله عنه کښ
دی چه پوره ده تا لره د زنانو د عالمینو نه (په اعتبار د
فضیلت سره) مریم علیها السلام او خدیجه او فاطمه
لور د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا روایت کړیدے

يٰمَرْيَمُ اقْنُتِىْ لِرَبِّكِ وَاسْجُدِىْ

اے مریم تابعداری کوه دَ رب خپل او سجده کوه

وَارْكَعِىْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴿۴۳﴾

او رکوع کوه سره دَ رکوع کوونکو نه ۔

ترمذی او وئیلی دی چه دا صحیح روایت دے ۔دریم روایت دَانس رضی الله عنه دے چه غوره دَ زنانه دَ عالمینو نه څلور دی مریم علیها السلام ۔ آسیه ، خدیجه او فاطمه رضی الله عنهن ابن کثیر دا روایت راوړے دے دَ ابن مردودیه په سند سره ۔څلورم روایت دَ بخاری دے چه نه دی کامل شوی دَ زنانو نه مگر درے مریم علیه السلام آسیه او خدیجه او فضیلت دَ عائشه رضی الله عنها په نورو زنانو باندے پشان دَ فضیلت دَ ماتے روټئ دے په باقی طعاموتو باندے ۔پنځم روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما دے چه سرداره دَ زنانو دَ عالم نه مریم ده بیا فاطمه ده بیا خدیجه ده بیا آسیه ده دا سیوطی په درمنثور کښ راوړے دے او کنز العمال جلد ۱۲ ص ۱۴۳ کښ شته او صاحب اللباب او قرطبی وئیلے دی چه دا حدیث حسن دے نو په دے حدیث سره ترتیب معلوم شو او اشکال ختم شو او قرطبی دے ترتیب له ترجیح ورکړیده او بعضے علماؤ په دیکښ توقف کړیدے وئیلے دی چه دا څلور غوره دی لیکن دَ دوی په کورنئ کښ ترجیح دَ یوے په بله باندے یقیناً ثابت نه دے ۔

س ۴۳ :. هر کله چه مخکښ دَ مریم علیها السلام لوئے والے دَ مرتبے ذکر کړو نو اوس دَ وهم دَ دفع کولو دَ پاره دَ هغے عبدیت ذکر کوی ۔ اول رد وؤ په یهودیانو باندے نو په دے آیت کښ رد کوی په نصاراؤ باندے او دَ دے وجے نه ئے یَامَرْیَمُ دوباره ذکر کړو چه اهمیت

# ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ

داچه ذکر شول بعض دی د پټو خبرو نو نه وحی کوؤ مونږ د دے

واضح شی ۔ اُقْنُتِیْ لِرَبِّكِ ، مراد د قنوت نه هر طاعت او بندګی ده نو په دیکښ اوږدوالے د قیام او د رکوع په ما نځه کښ داخل دے ۔

وَاسْجُدِیْ وَارْكَعِیْ ، دا تخصیص دے روستو د تعمیم نه ۔ یا د قیام نه روستو ذکر د سجدے او رکوع دے او د مجموعه نه مراد مونځ ادا کول دی ۔

سوال :۔ سجده ئے مقدم ذکر کړه په رکوع باندے ؟

جواب ۱ :۔ سجده ډیر افضل او اشرف جزء دے د اجزاؤ د مونځ نه نو د شرافت د وجے نه ئے مخکښ ذکر کړو ۔

جواب ۲ :۔ مراد د سجدے نه مونځ کول دی په ذکر د جزء سره او مراد تری نه کل دے او مقصد د دے نه انفرادی مونځ کول دی او وارکعی سره د جماعت مونځ ذکر کوی په ذکر د رکوع او مراد تری نه پوره مونځ دے ۔

جواب ۳ :۔ واو د پاره د ترتیب نه دے بلکه صرف د عطف یا د جمع د پاره راځی لیکن بیا هم د تقدیم د پاره مخکنی حکمتونه ذکر کول پکار دی ۔

مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ، په مع کښ دوه اقوال دی اول داچه معیت د اقتداء مراد دے نو مراد د دے نه مونځ د جماعت دے ۔ دویم مع په معنیٰ د اشتراك د صفت دے یعنی د دوی پشان مونځ کوه ۔

سوال :۔ مع الراکعات ئے ولے او نه وئیلو ؟

جواب ۱ :۔ صاحب اللباب وئیلی دی چه اقتداء د زنانه په نارینو پسے په شرط د ستر سره غوره ده د اقتداء کولو نه په زنانه پسے ۔

جواب ۲ :۔ هر کله چه په دعوت او تصدیق د کلماتو الهیه کښ د دے همت پشان د نارینو وؤ او د نارینه په ځائے د خدمت د پاره قبوله شوے وه د دے وجه نه دلته ئے صیغه د مذکر ذکر کړله ۔

اِلَيْكَ ۭ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ

ستا طرف ته او نه وې ته د دوی سره حاضر

اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ اَيُّهُمْ

کله چه دوی غورځول خپل قلمونه (چه معلومه شي) چه کوم یو کس به

يَكْفُلُ مَرْيَمَ ۠ وَمَا كُنْتَ

پالنه کوي د مریم او نه وې ته حاضر

لَدَيْهِمْ اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿۴۴﴾

د دوی سره کوم وخت چه دوی بحث کوؤ په باره (د ساتلو د مریم کښ).

۴۴: دا جمله معترضه ده په مینځ د خطاباتو د مریم علیها السلام کښ د پاره د اثبات د صدق د نبی صلی الله علیه وسلم۔

ذٰلِكَ، اشاره ده واقعې د زکریا او د یحییٰ او د ښځې د عمران او مریم علیهم السلام ته په تاویل د مذکور سره۔

مِنْ اَنْۢبَاۗءِ الْغَيْبِ، مِنْ د پاره د تبعیض دے ځکه چه دا بعضې واقعات دی۔ اِنْۢبَاۗءِ جمع د نباء ده هغه خبر ته وئیلے شي چه د هغې شان لوئے وی او اِنْۢبَاۗءِ خبر ورکول دی د غائب څیز نه۔ الْغَيْبِ، مصدر په معنیٰ د فاعل سره دے یعنی هغه خبرونه چه غائب وؤ ستا د علم نه (اے نبی) ځکه چه تا هیڅ کتاب لوستلے نه دے او غائب وؤ د علم د نورو مخاطبینو د قرآن نه ځکه چه دا خبرونه یهودیانو او نصاراؤ پټول۔ یهودیانو د دے وجې نه پټول چه په دیکښ اوچت والے د شان د زکریا او مریم علیهما السلام وؤ او هغوی دوی ته بد کتل۔ او نصاراؤ د دے وجې نه پټول چه په دیکښ عبدیت او احتیاج د دوی ذکر دے نو حقدار د الوهیت نشي کیدلے او دوی ورته اِلٰه وئیل۔

نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ، قرطبي وئيلي دي چه وحي په لغت کښ خبر ورکول دي په پټے طريقے سره او دَ ابن فارس نه ئے نقل کړے دي چه وحي اشاره، کتابت، رسالت او هر هغه څيز دے چه بل چا ته ئے غورځوے دَ پاره دَ دے چه علم حاصل کړي - او متضمن دے معنیٰ دَ سرعت لره - او دا ماده په قرآن کريم کښ اته اويا ۷۸ کرته ذکر ده په مختلفو وجوهو سره اوله وجه په معنیٰ دَ الهام کولو اولياء ته لکه مور دَ موسٰی عليه السلام ته په سوره قصص ۷ او سوره طه ۳۸ کښ او حواريونو ته په سوره مائده ۱۱۱ کښ - دويمه وجه په معنیٰ دَ اشاره کولو لکه په سوره مريم ۱۱ کښ. دريمه وجه په معنیٰ دَ تعليم فطري دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه لکه سورت نحل ۶۸ کښ - څلورمه وجه په معنیٰ دَ امر کولو سره لکه سوره زلزال ۵، حم سجده ۱۲ - پنځمه وجه په معنیٰ دَ وسوسے سره لکه سوره انعام ۱۱۲، ۱۲۱ - شپږمه وجه وحي کول ملائکو ته لکه انفال ۱۲ کښ - اوومه وجه ارهاص ( دَ نبوت نه مخکښ وحي کول ) لکه سوره يوسف ۱۵ کښ - اتمه وجه وحي دَ رسالت او نبوت بغير دَ واسطے دَ ملك نه لکه سوره شوریٰ ۵۱ کښ - نهمه وجه وحي دَ رسالت او نبوت په واسطے دَ مَلَكُ (جبرئيل) سره او نسبت ئے جبرئيل ته وي لکه په سوره شوریٰ ۵۱ کښ - لسمه وجه دغه وحي دَ رسالت او نبوت په واسطه دَ ملك سره چه نسبت ئے الله تعالیٰ ته کړے شوے وي او دا خو په قرآن کښ په کثرت سره دے - په دے آيت کښ دا روستنے قسم دَ وحي مراد دے - نُوْحِيْهِ، ضمير دَ ۂ راجع دے الغيب ته او دا صاحب اللباب غوره کړيدے او دَ دے وجے نه فعل مضارع ذکر کړے چه نورو مغيباتو ته هم شامل شي يا راجع دے ذٰلِكَ ته لکه چه قرطبي ذکر کړے ده -

وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يُلْقُوْنَ أَقْلَامَهُمْ، دا تاكيد دے
دَغيبوبت دَ دے واقعاتو او دفع دَ وهم ده دَ بعضے
جاهلانو (بریلیان دَ دے وخت) چه هغوی عقیده لری
چه نبی صلی الله علیه وسلم مخکښ دَ پیدائش او روستو
دَ پیدائش نه هر ځائے حاضر او ناظر دے او دا باطله
عقیده ده نو الله تعالی دَ هغے نفی اوکړله په دے جملے
سره او صاحب اللباب لیکلی دی چه په دے جمله ذکر
کولو کښ (اګرچه دَ دے نفی بدیهی ده) فائده دا ده
چه په دیکښ تهکم (مسخره کول) دی په منکرینو دَ
نبوت دَ نبی صلی الله علیه وسلم پورے یعنی هر کله چه
معلومه ده چه دا نبی امی دے لوستل او دهیچا نه ئے
ایزده کول نه دی کړی او نه په هغه موقع باندے حاضر
وو نو متعین شوه چه علم دَ دهٔ په دے واقعاتو باندے
په ذریعه دَ وحی الهی سره دے نو دا یقینی دلیل دے دَ
اثبات دَ نبوت دَ هغه دَ پاره او داسے مضمون په سوره یوسف
۱۰۲، اوسوره قصص ۴۴، ۴۵، ۴۶ کښ هم راغلی دے او
او دَ دے وجه دَ ذکر کولو دا ده چه یهودیانو او نصاراؤ دغه
واقعات پټ ساتلے وو نو الله تعالی دَ آخری نبی په واسطے
سره ښکاره کړل ځکه دَ دهٔ صفت په سوره مائده ۱۵ کښ
(يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيرًا مِمَّا كُنْتُمْ تُخْفُونَ مِنَ الْكِتٰبِ) دے۔
أَقْلَامَهُمْ، په روایت دَ ابن جریر سره دَ عکرمه نه نقل ده
چه هغه قلمونه مراد دی چه دوی په هغے سره تورات
لیکلو او دَ دے نه ازلام مراد نه دی لکه چه ابو مسلم وئیلی
دی ځکه چه هغه دَ جاهلیت والو طریقه وه او په دغه روایت
کښ ذکر دی چه قلمونه ئے روانو (جاری) اوبو ته
اوغورځول او دوی اوئیل چه دَ چا قلم په اوبو کښ په خپل
ځائے باندے اودرید لو یا دَ اوبو په بره طرف باندے
روان شو نو هغه به کفالت دَ مریم علیها السلام کوی او

إِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ
کوم وخت چه أویل ملائکو اے مریم
إِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ
یقیناً الله تعالیٰ زیرے درکوی تاته په یو کلمے دطرف د الله تعالیٰ نه
اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ
نوم د هغه مسیح عیسیٰ ځوے د مریم دے
وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ
مخوریز دے په دنیا او په آخرت کښ
وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ ﴿۴۵﴾
او د نزدے کړے شوؤ نه دے۔

ظاهر داده چه دا دوی ته په وحی سره معلوم شوے وه۔
أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ، دا مبتدا او خبر په ځائے د نصب کښ
دے دپاره د فعل پټ دے چه يَقُولُونَ يا لِيَعْلَمُوا دے۔
وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُونَ، غوره داده چه مراد د
اختصام نه د دوی د هر یو رغبت کول وؤ په کفالت د مریم
کښ۔ د دے وجے نه چه هغه د دوی د امام لوروه او په خرق
عادت طریقے سره قبوله شوه۔ او فیصله ئے مقدم ذکر
کړله په اختصام باندے د قبیلے د تقدیم د اهم نه په
غیر اهم باندے۔ او د دے آیت په تفسیر کښ قرطبی مسئله
د قرعه (خسنړی اچولو) په حکم د شرع کښ په تفصیل
سره لیکلے ده او امام بخاری باب القرعه فی المشکلات کښ
دا آیت په دلیل کښ لیکلے دے۔
۴۵: إِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ، د دے آیت نه عبدیت د
عیسیٰ علیه السلام په تفصیل سره ذکر کوی او د هغے
دپاره ئے پنځویشت وجوه ذکر کړیدی۔ او دا د سره

کلام دے یا بدل دے دَ وَاِذۡ قَالَتِ الۡمَلٰٓئِکَةُ نه چه په ۴۲
کښ ذکر وۀ او په مینځ کښ جمله معترضه ده او وجه دَ
ترتیب ئے دا ده چه په ۴۲ کښ بشارت دَ مریم علیها السلام
ذکر شو په اصطفاء او تطهیر او په امر دَ عبادت سره نو
هغه تمهید او مقدمه ده دَ پاره دَ بشارت په یو امرِ خارق
للعادت (نا آشنا کار) سره چه پیدائش دَ ولد دے بغیر
دَ نارینه دَ لرِیدلو دَ هغے سره۔ الۡمَلٰٓئِکَةُ، دا جمع ده
مراد ترینه جبرئیل علیه السلام دے په دلیل دَ سوره
مریم ۱۷ سره او کیدے شی چه دَ جبرئیل علیه السلام
سره په دغه وخت کښ نور ملائک هم وۀ۔
اِنَّ اللّٰهَ یُبَشِّرُكِ، په دے آیت کښ دَ عبدیت دَ عیسٰی
علیه السلام شپږ وجے دی۔
بِکَلِمَةٍ مِّنۡهُ، مراد دَ کلمے نه عیسٰی علیه السلام دے په
دلیل دَ روستو کلماتو سره او تعبیر ترینه په دے لفظ
سره دَ دے وجے نه کړے شوے چه په کلمه دَ کُنۡ سره
(بغیر دَ واسطے دَ ناریتو نه) پیدا کړے دے او قتاده
وئیلی دی چه دَ عیسٰی علیه السلام په باره کښ وعده ذکر
ده په تورات کښ نو هغے ته ئے کلمه او وئیله۔ یا دَ دے
وجے نه چه دے هر وخت کلمے دَ توحید ته دعوت
ورکوونکے دے یا مراد دَ دے نه بشارت ورکول دَ ملائکو
دی مریم علیها السلام ته۔ مِنۡهُ، مِن دَ پاره دَ تبعیض
نه دے بلکه دَ پاره دَ ابتداء غایه دے یعنی دا کلمه
صادر وه دَ طرف دَ الله تعالٰی نه (اللباب)۔
اِسۡمُهُ، ضمیر دَ مذکر کَلِمَه ته راجع دے په اعتبار
دَ معنٰی دَ هغے سره چه ولد دے۔ او لفظ دَ اِسم عام
دے عَلَم (ذاتی نوم) او صفت، اسم کنیت او لقب ټولو
ته شامل دے او روستو دا درے واړه ذکر دی لقب
(المسیح) عَلَم (عیسٰی) کنیت (ابن مریم)۔ په لفظِ

مسیح کښې دوه وجوه دي اول دا چه دا عبراني لفظ دے عربۍ ژبے ته نقل کړيده يا عربي لفظ دے او چه عربي شي نو په دیکښې دوه وجوه دي اول دا چه دا وزن د فعيل په معنیٰ د مفعول دے دويم دا فعيل په معنیٰ د فاعل سره دے - بنا په اول قول دا په اصل کښې مسيحا دے په معنیٰ د مبارک سره دے او بنا په دويم قول چه مسيح په معنیٰ د ممسوح شي نو په دے کښې ابوحيان او قرطبي اووه وجوه ذکر کړے دي چه ع۱ مسح کړے شوے په برکت سره ع۲ يا په خاص تيلو سره. ع۳ پاک کړے شويدے د ګناهونو نه ع۴ مسح کړے شوے دے په وزر د جبرئيل عليه السلام سره ع۵ قدم (د خپے تلے) ئے هموار وو. ع۶ په خائست سره. ع۷ پاک کړے شوے د ګندګو د نورو بچو نه چه حيض او نفاس د ميندو وی. او بنا په دريم چه مسيح په معنیٰ د فاعل شي نو په هغے کښې پنځه وجوه دي ع۱ مسح کوونکے د آفاتو د بدن وو په خپل لاس سره نو هغه به جوړ شو. ع۲ مسافتونه د زمکے (په سفر سره) قطع کوونکے وو. ع۳ سياحت کوونکے وو. ع۴ صديق دے. ع۵ بادشاه دے. او لقب ئے ځکه مخکښې راوړو چه هغه د علَم (عيسیٰ) نه ډير مشهور وو (ابن انباري) - او دجال ته هم مسيح وئيلے شي ليکن د هغے معنیٰ دا ده چه يوه سترګه ئے مسح کړے شويده.

عِيْسَیٰ، په عبرانۍ کښې هغه ته ايسوع يا يسوع وئيلے شي - او په عربۍ ژبه کښې ماخوذ دے د عاس يعوس نه په معنیٰ د سياست او انتظام کولو سره نو دواړه لغتونه يو بل سره موافق دي.

اِبْنُ مَرْيَمَ، دا اسم کنيت دے هر کله چه پلار ئے نه وو نو مشهور شو په نسبت کولو سره مور ته او دا خصوصيت د عيسیٰ عليه السلام دے.

وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ

او خبرې به کوي د خلقو سره په ځانګو د مور کښې

وَكَهْلًا وَّمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۴۶﴾

او په پوخ عمر کښې او د پوره نیکانو نه به وي.

وَجِيْهًا فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ، وجيه یعنی خاوند د مرتبې دے (ابن قتيبه) محبوب او مقبول دے (ابن دُرید) شریف دے او خاوند د قدر او مرتبې دے (اخفش) مخوریز دے په خلقو کښې۔ نو وجاهت د عیسٰی علیه السلام په دنیا کښې په اعتبار د نبوت او په معجزاتو او په طاعت او په اوچت شان سره دے او په بچ کولو سره دے د قتل او صلیب نه۔ او په آخرت کښې په اوچت والي د مرتبې او شفاعت کولو دے او خاوند د لوئے درجاتو دے په جنت کښې۔

وَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ، یعنی مُقَرَّبًا مِّنَ الْمُقَرَّبِيْنَ، او په دیکښې اشاره ده چه مقربین تور خلق هم شته لکه ملائک مقربین او مؤمنان مقربین۔ او مقرب والے د عیسٰی علیه السلام په ډیرو وجوهو سره دے آسمان ته پورته کول۔ ملکرتیا د ملائکو کښې ساتل۔ په جنت کښې په اوچته مرتبه کښې ساتل۔

۴۶: په دے آیت کښې درے امور د عیدیت د عیسٰی علیه السلام ذکر کوي چه تعلق لري تیریدلو د زمانے سره په هغه باندے او په طریقه د خرقِ عادت سره۔

وَيُكَلِّمُ النَّاسَ، دا عطف دے په وجیها باندے۔

فِي الْمَهْدِ، هغه کلام په سوره مریم کښې د ۳۰ نه تر ۳۲ پورے ذکر دے او په هغه کلام کښې تفصیل د عیدیت دے د هغه په ذکر د دیارلس حالاتو سره۔

مَهْدًا دا ماده په قرآن کښې شپاړس کرته ذکر ده

دلالت کوي په تیا رولو د آرامګاه یا تدے. په دیکښ
شپږ کرته د جهنم دپاره ذکر شویدے په طریقه د تهکم
او استهزاء سره او په صفت د زمکه کښ څلور کرته ذکر
دے او په صفت د جنت کښ یوکرت ذکر دے او په مالونو
د دنیا کښ دوه کرته ذکر دے او په یاره د عیسیٰ علیه
السلام کښ درے کرته ذکر دے - او مهد په عرف کښ
ځائے د سملاستلو د وړوکی ته وئیلے شي په حال د پئ رودلو
کښ (قرطبي ابوحیان) او صاحب اللباب وائي چه هغه
ځائے چه د وړوکی د تربیت دپاره تیار کړے شوے وي او
دا مصدر دے په معنیٰ د مکان یا ظرف مکان دے نومهد
د بچي دپاره اول غیږ د مور ده لکه چه سوره مریم کښ
دي فَاَتَتْ بِهٖ قَوْمَهَا تَحْمِلُهٗ، قَالُوْا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ
فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا ، او بیا هغه ځائے چه بچے د آرام کولو
دپاره په هغے کښ اچولے کیږي که زانګو وي یا بستره وي
او په حدیث د بخاري او مسلم کښ ثابت دي چه په
وړوکوالی کښ درے کسانو خبرے کړے دي عیسیٰ علیه
السلام او صاحب جریج او صاحب جبار (بخاري کتاب
الانبیاء او کتاب التفسیر سوره مریم) او دا عدد په
حصر سره ذکر کړیده او په صحیح مسلم کښ په واقعه
د اصحاب الاخدود کښ هم یو وړوکے ذکر دے لیکن د
دغے نه علاوه د نورو بچو په باره کښ صحیح حدیث
ثابت نه دے.

وَكَهْلًا ، په زمانه د کهولت کښ اختلاف دے دوه دیرش
یا درے دیرش کلونه او بعضو څلویښت او پنځوس ذکر
کړیدي او دیته پوخ عمر وئیلے شي - او اکتهال په
لغت کښ پورته کیدلو ته وئیلے شي - کاهل هم پورته
شویدے د زمانے د شباب نه د زمانے د کهولت ته.
سوال :- په دا سے حال (د کهولت) کښ خو خبرے هر

قَالَتْ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ

اُویل (مریم) اے ربه زما څه رنګ کیدے شي ما د پاره

وَلَدٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ ؕ

بچے او هیڅ لاس نه دی لګولی زما سره هیڅ بنده

قَالَ كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ

اُویل (جبریل) د غسے به ئے الله تعالیٰ پیدا کوی

مَا يَشَآءُ ؕ اِذَا قَضٰٓى اَمْرًا

څه چه اوغواړی هر کله چه فیصله اوکړی د یو کار د کیدلو

فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿۴۷﴾

نو اُوائی هغه ته اوشه نو هغه اوشی

څوک کولے شی نو د دے د ذکر کولو څه فائده ده ؟

جواب ۱ :- ابن جریر وئیلی دی چه دا دلالت کوی چه په عیسیٰ علیه السلام باندے به زمانه تیریږی او عمر به ئے د یو حال نه بل حال ته بدلیږی نو دا دلیل دے چه هغه اِلٰه نشی کیدلے ۔

جواب ۲ :- د ابو العباس او حسین بن الفضل او ابن زید نه نقل دی چه مراد په دیکښ دا دے چه دے به په زمانه د کهولت کښ د آسمان نه راکوزیږی او بیا به خلقو سره دیتی خبرے کوی او په صحیح احادیثو کښ وارد دی چه دجال به قتل کوی دا قول قرطبی ، امام رازی ، ابوحیان ، صاحب اللباب ، خطیب شربینی ، بیضاوی ، ابو السعود ، سیوطی او آلوسی وغیره ټولو ذکر کړیدے ۔

وَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ، ابن کثیر وئیلی دی چه صلاحیت به وی په قول او عمل د هغه کښ او علم صحیح او عمل صالح به لری ۔ او صلاحیت په اولاد کښ مطلوب دے

لکه په سوره اعراف ۱۹۰ او سوره آل عمران ۳۹ او صافات ۱۰۰ و ۱۱۲ کښې۔
۴۷ :- قَالَتْ رَبِّ، هرکله چه مریم علیها السلام ته اوئیلې شو چه الله تعالیٰ تاله زیرے درکوی د دے وجے نه هغې د الله تعالیٰ سره خطاب شورو کړو په رَبِّ سره او ابوحیان او زمخشری وئیلې دی چه چا دا وئیلې دی چه دا رَبِّ آواز دے جبرئیل ته په معنیٰ د سیدی سره نو دا خطاء دے۔
اَنّٰی یَکُوْنُ لِیْ وَلَدٌ، اَنّٰی د پاره د تعجب دے په اعتبار د عادت سره نه په اعتبار د قدرت د الله تعالیٰ سره او د تاکید د تعجب د پاره اوئیل چه وَلَمْ یَمْسَسْنِیْ بَشَرٌ، لاس نه دی راوړی ما ته هیڅ بنده په نکاح او نه په زنا سره او بغیر د نارینه د یو ځائے کیدلو نه د ولد پیدا کیدل د عادت نه خلاف دی۔ یا اَنّٰی په معنیٰ د کیف دے لکه په واقعه د زکریا علیه السلام کښې چه دی یعنی آیا نکاح به کووم یا به په قدرت د الله تعالیٰ سره پیدا کیږی۔ بَشَرٌ، په دے لفظ کښې مفرد او تثنیه او جمع او مذکر مؤنث ټول برابر دی۔
قَالَ کَذٰلِکِ اللّٰهُ یَخْلُقُ مَا یَشَآءُ یعنی اَنْتِ کَذٰلِکَ، (ته به دغه شان یې بغیر د نزدیکت د نارینه نه)۔ یَخْلُقُ، په قصه د زکریا علیه السلام کښې یَفْعَلُ وئیلې وو او دلته یَخْلُقُ ځکه چه هغه واقعه ډیره نا اشنا نه وه عام عادت ته نیز دے خبره وه او دا واقعه خو د عادت نه ډیره لرے ده نو ډیره عجیبه او نا آشنا ده۔
اِذَا قَضٰی اَمْرًا فَاِنَّمَا یَقُوْلُ لَهٗ کُنْ فَیَکُوْنُ، د دے جملے تفسیر په سوره بقره کښې تیر شوے دے یعنی اراده د الله تعالیٰ پوره کول هیڅ سبب ته حاجت نه لری۔ فَیَکُوْنُ کښې هُوَ ضمیر محذوف دے او هغه مبتدا ده۔

لکه په سوره اعراف ۱۹۰ او سوره آل عمران ۳۹ او صافات ۱۰۰ و ۱۱۲ کښې.

۴۷ :- قَالَتْ رَبِّ ، هرکله چه مریم علیها السلام ته اوئیلے شو چه الله تعالیٰ تاله زیرے درکوی د دے وجے نه هغے د الله تعالیٰ سره خطاب شورو کړو په رَبِّ سره او ابوحیان او زمخشری وئیلے دی چه چا دا وئیلے دی چه دا رَبِّ آواز دے جبرئیل ته په معنیٰ د سیدی سره نو دا خطاء دے.

اَنّٰی یَکُوْنُ لِیْ وَلَدٌ ، اَنّٰی د پاره د تعجب دے په اعتبار د عادت سره نه په اعتبار د قدرت د الله تعالیٰ سره او د تاکید د تعجب د پاره اوئیل چه وَلَمْ یَمْسَسْنِیْ بَشَرٌ ، لاس نه دی راوړی ما ته هیڅ بنده په نکاح او نه په زنا سره او بغیر د ناریته د یو ځائے کیدلو نه د ولد پیدا کیدل د عادت نه خلاف دی. یا اَنّٰی په معنیٰ د کیف دے لکه په واقعه د زکریا علیه السلام کښې چه دی یعنی آیا نکاح به کوؤم یا به په قدرت د الله تعالیٰ سره پیدا کیږی. بَشَرٌ ، په دے لفظ کښې مفرد او تثنیه او جمع او مذکر مؤنث ټول برابر دی.

قَالَ کَذٰلِكِ اللّٰهُ یَخْلُقُ مَا یَشَآءُ یعنی اَنْتِ کَذٰلِكِ، (ته به دغه شان ئے بغیر د نزدیکت د ناریته نه). یَخْلُقُ ، په قصه د زکریا علیه السلام کښې ئے یَفْعَلُ وئیلے وو او دلته یَخْلُقُ ځکه چه هغه واقعه ډیره ناآشنا نه وه عام عادت ته نیز دے خبره وه او دا واقعه خو د عادت نه ډیره لرے ده نو ډیره عجیبه او ناآشنا ده.

اِذَا قَضٰۤی اَمْرًا فَاِنَّمَا یَقُوْلُ لَهٗ کُنْ فَیَکُوْنُ ، د دے جملے تفسیر په سوره بقره کښې تیرشوی دے یعنی اراده د الله تعالیٰ پوره کول هیڅ سبب ته حاجت نه لری. فَیَکُوْنُ کښې هُوَ ضمیر محذوف دے او هغه مبتدا ده.

وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ

او خودنه به کوی دۀ ته دَ کتاب او دَ سنت

وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ﴿۴۸﴾ وَرَسُوْلًا

او دَ تورات او دَ انجیل او وګرځوی بهٔ رسول

اِلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ اَنِّيْ

بنی اسرائیلو ته (روائی به) چه بیشکه

قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۙ

راوړے دے ما تاسو ته معجزات ستاسو دَ رب دَ طرف نه

اَنِّيْٓ اَخْلُقُ لَكُمْ مِّنَ الطِّيْنِ

چه بیشکه څه جوړوم تاسو لره دَ خټو نه

۴۸: پہ دے آیت کښں دَ هغه دَ عبدیت شپږ وجوه نور ذکر کوی چه هغه احتیاج دَ هغه دے په علم او معجزاتو کښں الله تعالیٰ ته او دَ هغه اِذن ته۔

وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ، دا عطف دے په یخلق ما یشآء باندے او دا غوره قول دے په اقوالو کښں۔ تعلیم دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه انبیاء علیهم السلام ته په طریقه دَ وحی سره دی۔ اَلْكِتٰبَ ، په دیکښں مختلف اقوال دی۔ کتابت یعنی خط کول یا نور نازل شوی کتابونه چه الله تعالیٰ ته معلوم دی۔ او الف لام په الکتاب کښں جنسی دی یعنی تورات او انجیل او عطف دَ پاره دَ تفسیر دے۔ او حکمت نه مراد سنت دَ انبیاء علیهم السلام دی او درست او برابر اقوال و اعمال ترینه هم مراد دی (البحر المحیط)۔ یا مراد دَ دے نه قرآن او حدیث دی روستو دَ راکوزیدلو دَ عیسیٰ علیه السلام نه په آخره زمانه کښں (جواهر القرآن للشیخ غلام الله خان رحمه الله) او په دیکښں اشاره ده نزول دَ عیسیٰ علیه السلام ته په

كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ فَأَنْفُخُ فِيهِ

پشان دَ شکل دَ مرغۍ نو پوکے کوم په هغے کښ

فَيَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِ اللّٰهِ ۚ

نو شي هغه مرغۍ الوتونکے په حکم دَ الله تعالیٰ سره

وَأُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ

او جوړوم زۀ دَ موره پیدا شوے ړوند او برګی والا

وَأُحْيِ الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِ اللّٰهِ ۚ

او ژوندے کوم مړو لره په حکم دَ الله تعالیٰ لره

وَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا

او خبر درکوم تاسو ته دَ هغه خوراک چه خورئ به تاسو او هغه خوراک

تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ ۚ إِنَّ

چه ذخیره کوئ تاسو په کورونو خپلو کښ یقیناً

فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَكُمْ إِنْ

په دے کښ ډیر معجزات دی ستاسو دَ (هدایت) دَ پاره که چرے

كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ۚ ﴿۴۹﴾

تاسو ایمان والا یئ۔

روستو زمانه کښ او دا پیشنګوئ ده مریم علیها السلام ته لکه چه انجیل هم نه وۀ نازل شوے لیکن پیشنګوئ ئے ورته اوکړه۔

۴۹ :- وَرَسُولًا إِلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ ، په زور دَ رسولًا کښ ډیر وجوه دی اول دا چه فعل پټ دے (وَيَجْعَلُهُ رَسُولًا) - دویم دا چه دا حال دے دَ يُعَلِّمُهُ دَ ضمیر نه - دریم دلته أُرْسِلْتُ، لفظ پټ دے لیکن اوله وجه غوره ده -او دا آیت

دلیل دے چه عیسیٰ علیه السلام رسول وؤ ټولو بنو اسرائیلو ته لکه چه په سوره صف ۲۸ کښ دی۔
اَنِّیْ قَدْ جِئْتُكُمْ، په دے عبارت کښ تر صراط مستقیم پورے دوه اقوال دی اول قول دا دے چه دا متعلق دے په رسولا پورے په تقدیر د یاء سره۔ او داخل دے په خطاب د مریم علیها السلام کښ۔ دویم قول دا دے چه دلته ادماج دے یعنی کلام په رسولا باندے ختم شو او دا کلمات پټ دی (چه عیسیٰ علیه السلام پیدا شو لکه چه سوره مریم کښ ذکر دی او بیا ورته وحی شوروشوه او رسول شو نو بنی اسرائیلو ته ئے اوئیل) اَنِّیْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰیَةٍ، مراد د نه هغه ټول آیات (معجزات) دی چه روستو ذکر دی یعنی مفرد (اٰیَة) په معنیٰ د جمع سره ده۔
اَنِّیْ اَخْلُقُ لَكُمْ مِّنَ الطِّیْنِ، دا اَنِّیْ بدل دے د اٰیَةٍ نه یا د مخکښ اَنِّیْ نه۔ اَخْلُقُ، دلته خلق په معنیٰ د تصویر دے (شکل جوړول) لکه په سوره مؤمنون ۱۴ کښ دی
لَكُمْ لام اجلیه دے یعنی د پاره د حصول د ایمان ستاسو
كَهَیْئَةِ الطَّیْرِ، اخفش وئیلی دی چه دا کاف اسم دے په معنیٰ د مِثل سره دے او نورو نحویانو وئیلے دی چه دا حرف دے او صفت دے د پټ مفعول د پاره یعنی هَیْئَةً مِثْلَ هَیْئَةِ الطَّیْرِ، اول قول غوره دے ځکه چه ضمیر د فَاَنْفُخُ فِیْهِ کاف ته راجع دے او هغه په اعتبار د لفظ سره مذکر دے او په سوره مائده ۱۱۰ کښ ضمیر د مؤنث ذکر دے ځکه چه دلالت کوی په هیئت باندے۔
فَیَكُوْنُ طَیْرًا، مفسرینو لیکلے دی چه بنو اسرائیلو ورته اوئیل چه مونږ د پاره خفاش (ښاپیرك) جوړ کړه ځکه چه هغه عجیبه خلقت والا دے وزرے شته چه په هغے سره الوځی لیکن بنړے وریاندے نیشته دے او دارنګ هغه مرغۍ به د دوی په مخکښ الوتله او چه غائب به

شو نو بیا په پریوتله (بحر محیط)
بِاِذْنِ اللّٰہِ، دا متعلق دے په اُخْلُقُ پورے نو جوړول او پوکے کول او مرغئ جوړیدل او الوتل ټول په اذن دَ الله تعالیٰ سره وؤ نو دَ دیته دا استدلال نشی کیدلے چه تصویرونه او بُتان دَ حیواناتو جوړول جائز دی ځکه چه دا خاص اذن دَ الله تعالیٰ وؤ عیسیٰ علیه السلام ته او دَ دے وجے نه یې په سوره مائده ۱۱۰ کښ باذن الله دَ تخلق سره ذکر کړیدے۔
سوال:۔ دلته یې باذن الله دَ اَخْلُقُ سره مستقل ذکر نه کړو؟
جواب:۔ په سوره مائده کښ مقصد ذکر دَ نعمتونو دَ الله تعالیٰ دے په عیسیٰ علیه السلام باندے په میدان حساب کښ نو هلته یې باذنی مکرر وئیلے دے او دلته مقصد خو صرف پیشنګوئی کول دی په معجزاتو دَ هغه باندے نو یو کرت باذن الله هم کافی دے چه متعلق دے دَ اخلق سره لکه چه مخکښ ذکر شول۔
وَ اُبْرِئُ الْاَکْمَهَ وَالْاَبْرَصَ بِاِذْنِ اللّٰہِ، براءت په اصل کښ خلاصیدل دی دَ هغه څیز نه چه بد ګڼړل کیږی او په معنیٰ دَ اکمه کښ ډیر اقوال دی غوره دا دے چه مراد دَ دے نه هغه څوک دی چه مور نه ړوند پیدا شی دَ سترګو نظر یې پوره بند وی۔ زمخشری وئیلی دی چه زمونږ په امت کښ دا سے شخص قتاده (راوی دَ تفسیر) پیدا شوے وؤ۔ وَالْاَبْرَصَ، هغه څوک دے چه مرض دَ بَرص ورته اورسیږی۔ او ابن عاشور وئیلی دی چه دا جلدی (دَ څرمنے) مرض دے سپین داغونه په څرمن کښ ښکاره شی نو که په څرمن کښ دننه داخل وی دا ابرص دے او که څرمنے سره برابر وی نو دا بهق دے نو دَ بعضے سپینو داغونو چه بعضے حکیمان علاج کوی او جوړ شی نو دغه بهق وی او د

برص علاج نشی کیدلے۔

تنبیه: الله تعالیٰ په هره زمانه کښ خپلو رسولانو له هغه معجزات ورکړیدی چه د هغے زمانے سره مناسب وی لکه قوم د صالح علیه السلام د ګټو نه ښیرونه جوړول نو الله تعالیٰ ورته د ګټے نه اوښه راویستله چه دوی د هغے نه عاجز شول او د یوسف علیه السلام په زمانه کښ تعبیر د خوبونو رواج وو نو الله تعالیٰ هغه له معجزانه علم د تعبیر ورکړو او د موسیٰ علیه السلام زمانه کښ د سحر د مارانو جوړولو وغیره چرچا وه نو هغه له یې د همسا نه مار جوړ کړو چه خلق تری نه عاجز شول۔ او د عیسیٰ علیه السلام په زمانه کښ د طبابت چرچه ډیره وه او د یونان حکماؤ به په هغے سره فخر کوؤ نو عیسیٰ علیه السلام له الله تعالیٰ داسے معجزه ورکړله چه طبیبان او حکیمان د هغے نه عاجز پاتے شول ځکه چه د اکمه او ابرص علاج نشی کیدلے او په ختمه او مړی کښ هیڅوک روح نشی اچولے۔ او زمونږ د نبی صلی الله علیه وسلّم په زمانه کښ د فصاحت او بلاغت ډیره چرچه وه نو الله تعالیٰ زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم له داسے کتاب ورکړو چه ټول فصحاء بلغاء د هغه د مقابلے نه عاجز شول (ابن کثیر)۔

وَاُحۡیِ الۡمَوۡتٰی بِاِذۡنِ اللّٰهِ، مراد د احیاء نه نفخ د روح او جمع کول د اعضاؤ او د ذراتو د بدن د هغه نه دی داخو په الله تعالیٰ پورے خاص دے بلکه عیسیٰ علیه السلام به دعا اوغوختله د الله تعالیٰ نه د یو مړی په باره کښ چه یا الله تعالیٰ دے راژوندے کړے نو الله تعالیٰ به هغه ژوندے کړو او دا دعا د دهٔ هم په اذن د الله تعالیٰ باندے موقوف وه په دلیل د دے لفظ سره چه بِاِذۡنِ اللّٰهِ۔

# وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ

(او راغلے یم) تصدیق کوونکے د هغه کتاب چه مخکښې زمانه (نازل کړے شوے دے)

وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ، دا معجزه دہ د قسم د انباء بالغیب الصادق نه یعنی رشتنی پیشنګوئی کول او دا هم معجزه ده په دلیل د اول د دے کلام سره چه قَدْ جِئْتُكُم بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ، او روستو کلام سره او دا سے معجزه د یوسف علیه السلام ذکروه په سوره یوسف ۳۷ کښ او زمونږ د نبی صلی الله علیه وسلم دا سے معجزات خو د شمار نه هم ډیر دی۔

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ، دا جمله داخل ده په کلام د عیسی علیه السلام کښ یا دا کلام د الله تعالی دے او دیکښ تاکید دے چه تیر شوی کاروته معجزات وؤ دلیلونه د توحید د الله تعالی او د صدق د رسول د پاره۔

إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ، تعلیق په دے شرط پورے د دے وجے نه دے چه مراد په آيَةً سره آیتِ نافعه دے او نفع اخستلو د پاره ایمان شرط دے یا إِنَّ په معنی د إِذ سره دے۔

فائده:- دغه معجزات ئے په صیغه د فعل مضارع سره ذکر کړیدی اشاره ده چه دا یو کرت نه وو بلکه دا سے د عیسی علیه السلام نه ډیر ځلے صادر شوی وؤ۔ او هر کله چه أَخْلُقُ لَكُم کښ اعجاز ډیر وؤ په نسبت د أُبْرِئُ الْأَكْمَهَ سره نو بإذن الله ئے د اول سره ذکر کړو او دویم ئے په هغے باندے قیاس کړو دا رنګ أُحْيِي الْمَوْتَىٰ کښ اعجاز ډیر وؤ په نسبت د أُنَبِّئُكُم، سره نو دلته هم د اول سره ئے بإذن الله ذکر کړو او دویم سره ئے مقائیستګا پریخودلو د اختصار د کلام او د بلاغت د پاره۔

مِنَ التَّوْرٰىةِ وَلِاُحِلَّ لَكُمْ

چه تورات دے او چه حلال کړم (په بیان سره) تاسو ته

بَعْضَ الَّذِیْ حُرِّمَ عَلَیْكُمْ

بعض هغه څیزونه چه حرام کړے شوے دی په تاسو باندے

وَجِئْتُكُمْ بِاٰیَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۣ قف

او راوړے دی ما تاسو ته ډیر معجزات ستاسو د رب د طرف نه ،

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِیْعُوْنِ ﴿۵۰﴾

نو ویره اوکړئ د الله تعالیٰ نه او زما خبرے او منئ -

نشه ۵۰: په دے آیت کښ د عبدیت د عیسیٰ علیه السلام درے وجوه دی د پاره د رد په نصاراؤ باندے او د صدق د رسالت د هغه د پاره هم درے وجوه دی -

وَمُصَدِّقًا ، دا عطف دے په رسولًا باندے یا جِئْتُكُمْ لفظ پټ دے او عطف دے په معنیٰ د مخکښ کلام باندے یعنی د نزول د انجیل نه مخکښ پوره عمل کوؤنکے وو په تورات باندے - او د نزول د انجیل نه روستو بعضے احکام د تورات منسوخ شول لیکن تصدیق په اعتبار د ایمان لرلو سره په هغے باندے باقی پاتے وؤ -

وَلِاُحِلَّ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِیْ حُرِّمَ عَلَیْكُمْ ، دا عطف دے په معنیٰ د مصدقًا باندے ځکه چه هغه په معنیٰ د لِاُصَدِّقَ سره دے او نسبت د تحلیل عیسیٰ علیه السلام ته په طریقه د بیان کولو دے په طور د رسالت سره د طرف د الله تعالیٰ نه ځکه چه رسول پخپل اختیار سره تحلیل او تحریم نشی کولے -

بَعْضَ الَّذِیْ حُرِّمَ عَلَیْكُمْ ، په دیکښ د مفسرینو دوه اقوال دی اول دا چه په تورات کښ بعضے کارونه چه

حرام کړے شوی وُ په بنی اسرائیلو باندے نو په انجیل کښې هغه منسوخ شول او حلال کړے شول او هغه دا سے څیزونه وُ چه حرام کړے شوی وُ په سبب دَ ګناهونو دَ دوی لکه اوښان ، بطه ، شتر مرغ او بعضے اقسام دَ وازدے دا سے په سوره انعام سـ۱۴۶ کښې ذکر دی۔

سوال :- مصدقًا خو دلالت کوی چه په پوره تورات باندے عیسٰی علیه السلام عمل کوؤ او دا جمله دَ هغے نه په خلاف باندے دلالت کوی ؟

جواب لـه: مخکښې ذکر شول چه تصدیق دلته په دوه معانو سره دے او په هغے سره دَ دے اعتراض جواب کیدیشی۔ دویم قول مراد دَ دینه هغه څیزونه دی چه ناکاره احبارو (ملایانو) په دوی باندے بے دلیله حرام کړے وُو نو دَ هغے عیسٰی علیه السلام تردید اوکړو او دوی ته ئے دَ هغے تحلیل بیان کړو لیکن په دے توجیه باندے سوال دے چه په دے قول سره خو لفظ کل ذکر کول پکار وُو دَ دے اول جواب داد ے چه کله کله بعض په معنیٰ دَ کل سره راځی دَ قرینے په وجے سره۔

جواب ۲لـه:- ناکاره ملایانو دوه قسمه څیزونه حرام کړی وو یو قسم هغه چه په دلیل سره وُو او دویم قسم هغه چه بغیر دَ دلیل نه وُو نو دا روستنی بعض شول په نسبت دَ کل سره۔

وَجِئۡتُكُم بِاٰيَةٍ مِّن رَّبِّكُمۡ ، ابوحیان وئیلی دی چه دا جمله په طور دَ تاسیس سره ده دَ دوه وجو نه اوله وجه داده چه مخکښې دَ ایَةٍ نه مراد په هغه معجزات وو چه مخکښې ذکر شول او دلته دَ ایَةٍ نه مراد روستو جمله ده (فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيۡعُوۡنِ)۔

دویمه وجه ، دَ مخکښې آیت نه مراد هغه معجزات دی چه مخکښې ذکر شول او دَ دے آیت نه مراد انجیل دے

إِنَّ اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ

یقیناً الله تعالیٰ زما رب دے او ستاسو رب دے نو هغه لره بندګي خاص کړئ

هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿۵۱﴾

دا لاره نیغه ده۔

چه عیسیٰ علیه السلام پاندے نازل شو او فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ
اَطِيْعُوْنِ دَ انجیل دَ مضمون خلاصه ده - په اوله جمله کښ
توحید او رد دَ ټولو اقسامو دَ شرک مراد دَ دے۔
وَاَطِيْعُوْنِ، کښ صدق دَ رسالت او اتباع دَ سنت مراد ده او
دا دواړه جملے دَ ټولو انبیاء علیهم السلام نه نقل دی لکه
په سوره شعراء په ۱۰۸، ۱۱۰ کښ دَ نوح علیه السلام نه.
په ۱۲۶، ۱۳۱ کښ دَ هود علیه السلام نه ۱۴۴، ۱۵۰ کښ دَ صالح
علیه السلام نه۔ په ۱۶۳ کښ دَ لوط علیه السلام نه۔ ۱۷۹ کښ
دَ شعیب علیه السلام نه۔ او په سوره زخرف ۶۳ کښ دَ عیسیٰ
علیه السلام نه - او په سوره نوح ۳ کښ دَ نوح علیه السلام
نه او سوره تغابن ۱۶ کښ دَ آخری رسول نه نو دعوت
دَ توحید او اتباع دَ رسول دَ ټولو رسولانو اجماعی
مسئله ده۔
۵۱ :- دا علت دے دَ فَاتَّقُوا اللّٰهَ دَ پاره دَ دے وجے نه
بغیر دَ عطف نه ئے ذکر کړے دے او په دیکښ دَ
عبدیت دَ عیسیٰ علیه السلام یو وجه ذکر ده او صریح
رد دے په نصارا ؤ باندے چه هغوی عیسیٰ او مریم
علیهما السلام په الوهیت کښ دَ الله تعالیٰ سره شریک
جوړ کړے دی - او په دے آیت کښ توحید دَ ربوبیت
ذکر دے په إِنَّ اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ سره او توحید دَ
عبودیت (الوهیت) ذکر دے په فَاعْبُدُوْا سره او
دا سے جمله دَ عیسیٰ علیه السلام نه نقل ده په سوره
مریم ۳۶ او سوره زخرف ۶۴ کښ - او دَ دے پشان په

فَلَمَّآ اَحَسَّ عِيْسٰى مِنْهُمُ

نو هر كله چه بنه معلوم كړو عيسىٰ عليه السلام د دوى نه

الْكُفْرَ قَالَ مَنْ اَنْصَارِيْٓ

كفر كول اُويل ئې څوك دى ما سره مرسته كوونكى

اِلَى اللّٰهِ ؕ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ

د الله تعالىٰ د پاره اُويل مخلصانو ملګرو

نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ ۚ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ ۚ

مونږ مرسته كوؤ د الله تعالىٰ (د دين) ايمان راوړے دے مونږ په الله تعالىٰ باندے

وَاشْهَدْ بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ﴿۵۲﴾

او ته ګواه شه په دے خبره چه مونږ تابعدارى كوونكے يو.

سوره مائده ۱۱۷ كښ. او تفريع د قاعده وا په مخكښ جمله باندے دلالت كوى چه توحيد د ربوبيت مستلزم دے توحيد د عبوديت لره او توحيد د عبوديت تفريع او لازم دے د توحيد د ربوبيت سره.

هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ، هذا اشاره ده مجموعه د مخكښ جملے ته يعنى توحيد د ربوبيت او الوهيت مجموعى طور سره صراط مستقيم دے.

۵۲ :. په ماقبل آياتو كښ صفات د عبديت د عيسىٰ عليه السلام سره د صفاتو د رسالت د هغه نه ذكر شول اوس ذكر كوى مجاهده د هغه او د ملګرو د هغه د پاره د دعوت د توحيد او د رسالت د هغه د دے وجے نه ئې دلته فاء ذكر كړه په فَلَمَّآ اَحَسَّ سره يعنى روستو د دعوت د هغه نه بنو اسرائيل دوه ډلے شول يو ډلے پوره دشمنى او كفر ښكاره كړو او بله ډلے د هغه د نصرت اعلان اوكړو. اوله ډله مشهوره شوه په يهوديانو سره او دويمه مشهوره

شوه په نصاراؤ سره ، اَحَسَّ ، احساس علم حاصلیدل دی په حواسو سره یعنی په سترګو سره ئې د هغوی مخالفت کول اولیدل او په غوږونو سره ئې د هغوی نه د دشمنئ خبرے واوریدلے چه هغه سبب شو د پاره د طلب د ملګرتیا د خلقو په ایمان او په دین کښ په اخلاص سره نو ځکه ئې قَالَ مَنۡ اَنۡصَارِیۡۤ اِلَی اللّٰهِ ، دلته مراد د نصرت نه مرسته او ملګرتیا کول دی - مجاهد وئیلی دی چه مراد دا دے چه څوک ځما تابعداری کوی (ابن کثیر) - او دا نصرت د بندګانو وی د یو بل سره او مقصد په دیکښ اظهار د دعوت د توحید او بچ کیدل دی د شر د قوم نه - او د دے نصرت ارمان کړے وو لوط علیه السلام لَوۡ اَنَّ لِیۡ بِکُمۡ قُوَّةً اَوۡ اٰوِیۡۤ اِلٰی رُکۡنٍ شَدِیۡدٍ ، اِلَی اللّٰهِ ، فراء وئیلی دی چه الی په معنیٰ د مع دے یعنی چه نصرت خپل یو ځائے کړی د نصرت د الله تعالیٰ سره - زمخشری وئیلی دی چه متعلق د اِلٰی پټ دے یعنی ذاهبًا الی الله ، او حسن بصری وئیلی دی الی په معنی د فی دے یعنی فی سبیل الله - او فارسی وئیلی دی چه اِلٰی په معنی د لام سره دے (اللباب) -

قَالَ الۡحَوَارِیُّوۡنَ ، حواریون جمع د حواری ده په دیکښ دوه اقوال دی اول قول دا دے چه د حور نه اخستلے شوے دے په معنیٰ د اخلاص او د خیری نه پاکیدلو او سپین والی سره دے او د دے وجے نه جامو وینځلو نه هم وئیلی شی او په عرف کښ حواری مخلص مددګوؤنکی ته وئیلے شی لکه چه په حدیث د بخاری (کتاب الجهاد) کښ دی اِنَّ لِکُلِّ نَبِیٍّ حَوَارِیًّا وَحَوَارِیَّ الزُّبَیۡرِ - ملګرو د عیسیٰ علیه السلام ته حواریون ځکه او ئیلے شو چه دوی به جامے وینځلے یا د دے وجے نه چه ډیر په سخت وخت کښ د هغه سره د نصرت کولو اعلان ئې کړے وو

رَبَّنَآ اٰمَنَّا بِمَآ اَنْزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا

اے ربه زمونږ ایمان راوړے مونږ په هغه څه چه تا نازل کړي دي او تابعداري کړے ده مونږ

الرَّسُوْلَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۵۳﴾

د رسول نو اولیکه مونږه د ګواهی کوونکو (د توحید او رسالت) سره۔

نو زړونه د دوی پاک وو د ضد او عناد نه۔ یل قول دا دے چه حواریون د حَارَ یَحُوْرُ نه اخستلے شوی دے په معنیٰ د رَجَعَ سره نو دوی رجوع کوونکی وو الله تعالیٰ ته۔

نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ، مضاف پټ دے یعنی اَنْصَارُ نَبِیِّهٖ وَدِیْنِهٖ۔

اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَاشْهَدْ بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ، دا تفسیر دے د نصرت د امت د خپل نبی سره یا علت دے د پاره د ما قبل ځکه ایمان بالله سبب دے د پاره د نصرت د دین۔

مُسْلِمُوْنَ، دا دلیل دے چه د عیسیٰ علیه السلام هم دین اسلام وو۔ اسلام چه د ایمان سره ذکر شی نو مراد دا دے چه مونږ ایمان د زړه ښکاره کوو په ژبه او په اندامونو او په علمونو او نصرت او جهاد کولو سره۔

۵۳: روستو د اقرار د ایمان او اسلام نه تضرع کوی الله تعالیٰ ته۔

رَبَّنَآ اٰمَنَّا بِمَآ اَنْزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُوْلَ، مراد د الرسول نه عیسیٰ علیه السلام دے۔ ایمان او اتباع د رسول ئے په طور د وسیلے سره ذکر کړو او دعا ئے دا ده چه

فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ، مراد د دے نه امت د محمد صلی الله علیه وسلم دے لکه چه سوره بقره ۱۴۳ کښ ذکر دی یا مراد د دینه انبیاء علیهم السلام دی یا هر هغه څوک چه شهادت ئے کړے دے په توحید او په انبیاؤ باندے او په دے بیان کښ تفصیلی رد دے په نصاراؤ د نجران باندے یعنی د دوی مشرانو د اسلام

وَمَكَرُوْا وَمَكَرَ اللّٰهُ ؕ وَاللّٰهُ

او يهودو مكرونه او چل كړل (د عيسى عليه السلام د قتل) او الله تعالى هم پټ تدبير او چل وكړ (د هغه د بچ كولو) او الله تعالى

خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ﴿۵۴﴾

غوره د چل جوړوونكو نه دے۔

اقرار كړے دے او د آخرى امت سره د ملګرتيا مطالبه
ئے كړيده او نصارائو د نجران او اوسني نصارى د خپلو
اسلافو خلاف كوي۔
۵۴: مكر په لغت كښ ستر (پټولو) ته وئيلے شي او احتيال
او خداع (دهوكے) ته هم وئيلے شي او هر پټ تدبير ته
هم وئيلے شي او مكر دوه قسمه دے اول قسم محمود دے
چه په هغے سره د نيڼ كار اراده او كړيشي لكه په صفت د
الله تعالى كښ چه ذكر دے۔ دويم مذموم دے چه په هغے
سره د فساد او بد كار اراده او كړيشي لكه مكر د بندګانو او
ماده د مكر په قرآن كريم كښ درے شلويشت كرته ذكر ده او
دا په ډيرو وجوهو سره ده اوله وجه مكر په معنى د پټے
جرګے كولو د پاره د فساد كولو او د عيب وئيلو د پاره په بل
چا باندے لكه په سوره يوسف ۳۱ اعراف ۱۲۳ كښ دي۔
دويمه وجه ګمراهي او شرك ته دعوت وركول لكه په سوره
نوح ۲۲ او سبا ۳۲ كښ۔ دريمه وجه خيرے او دعاء
شر كول لكه سوره فاطر ۴۳ كښ۔ څلورمه وجه طعن او
اعتراض كول په آيا تونو د الله تعالى باندے لكه سوره
يونس ۲۱ كښ۔ پنځمه وجه ګناهونه كول لكه نحل ۴۵،
او يونس ۲۱ كښ۔ شپږمه وجه پټ پټ چلونه جوړول
او حيلے كول د بل چا د ضرر وركولو د پاره لكه سوره يوسف
۱۰۲ كښ۔ او دا معنى خو ډيره استعمال ده۔ اوومه وجه
نسبت كول الله تعالى ته هغه په معنى د عذاب پټ سره
لكه په سوره اعراف ۹۹ كښ او په معنى د پټ تدبير

إِذْ قَالَ اللَّهُ يَٰعِيسَىٰٓ إِنِّى مُتَوَفِّيكَ

په هغه وخت چه اُویل الله تعالیٰ اے عیسیٰ یقیناً زهٔ تا پوره اخلم

وَرَافِعُكَ إِلَىَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ

او تا ځان ته پوره راولم او پاکوم تا لره د هغه کسانو نه چه

كَفَرُوا۟ وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ

کفرئې کړے دے او ګرځوم هغه کسانو لره چه ستا تابعداری ئې کړے ده

فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِلَىٰ يَوْمِ

پورته د هغه کسانو نه چه کفرئې کړے دے تر ورځ د

الْقِيَٰمَةِ ثُمَّ إِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ

قیامته پورے بیا په ما طرف ته ستاسو راګرځیدل دی

کولو د پاره د بچ کولو لکه سوره نمل ۵۰ او په دے آیت کښې. نو دلته معنیٰ د مَکَرُوْا، دا ده چه دوی پټه جرګه اوکړله د عیسیٰ علیه السلام د قتل کولو د پاره یائې چل ول جوړ کړو د پاره د قتل کولو لکه چه دا قرطبی او ابن کثیر وغیره ذکر کړے دی یائې طعنو ته اوئیل او تکذیب ئې اوکړو د عیسیٰ علیه السلام چه دے مفسد او دروغژن دے بادشاه ته ئې داسے شکایت اوکړو یائې دعوت شور وکړو ګمراهئ او مخالفت د عیسیٰ علیه السلام ته دا ټولے معانی صحیح دی خو اوله معنیٰ غوره ده.

وَمَكَرَ اللَّهُ، یعنی الله تعالیٰ پټ تدبیر اوکړو د هغه د بچ کولو د پاره یعنی ژوندئې پورته کړو اسمان ته لکه روستو آیت کښې ذکر دی. وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ، داسے په سوره انفال ۳۰ کښې هم ذکر دی په واقعه د بچ کولو د آخری نبی صلی الله علیه وسلم کښې د شر د اهلِ مکه نه. قرطبی لیکلی دی چه دا په نومونو د الله تعالیٰ کښې شمار دے او داسے دعا جائز ده چه یا خیر

# فَاَحۡكُمُ بَيۡنَكُمۡ فِيۡمَا كُنۡتُمۡ

نو فیصله به اوکړم په مینځ ستاسو کښې په هغه خبرو کښې چه تاسو

# فِيۡهِ تَخۡتَلِفُوۡنَ ﴿۵۵﴾

په هغې کښې اختلاف کوے -

الۡمَاكِرِيۡنَ اُمۡكُرۡلِىۡ ، او په دعا دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښې
ثابت ده اَللّٰهُمَّ اُمۡكُرۡلِىۡ وَلَا تَمۡكُرۡ عَلَىَّ ،-

۵۵ :- دا متعلق دے دَ مکر الله سره یعنی ذکر دے دَ پټ تدبیر دَ الله تعالیٰ دَ بچ کولو دَ عیسیٰ علیه السلام دَ پاره دَ قتل کولو یا صلیب باندے خیژولو دَ دشمنانو نه - يَا عِيۡسٰى ، دا خطاب دَ استیناس دے دَ پاره دَ تسلئ ورکولو هغه ته په څلورو بشارتونو سره (چه روستو ذکر دی) - او هر کله چه په دے آیت کښې حفاظت دَ عیسیٰ علیه السلام مقصود وو دَ هغه په الوهیت او ابنیت باندے رد کول مقصد نه دے دَ دے وجے نه دلته ئے ورسره ابن مریم نه دے ذکر کړے او کوم آیاتونو کښې چه رد په الوهیت او ابنیت دَ هغه باندے مقصد وی نو هلته ابن مریم ذکر وی - اول بشارت اِنِّىۡ مُتَوَفِّيۡكَ ، په دیکښې دَ مفسرینو مختلف اقوال نقل دی اول دا چه ستا عمر پوره کوونکے یم ، دویم قول دا چه مړ کوونکے یم تا لره او بیا په دیکښې درے اقوال دی اول قول دَ وهب دے چه درے ساعاته ئے مړ کړو بیا ئے ژوندے کړو او پورته ئے او خیژولو - دویم قول دَ محمد بن اسحاق دے چه اووه ساعاته ئے مړ کړو بیا ئے ژوندے کړو او پورته ئے کړو - دریم قول دَ ربیع دے چه اوده ئے کړو او آسمان ته ئے او خیژولو - څلورم قول په متوفیك کښې دا دے چه دَ شهواتو انسانیو نه دِ خالی کوونکے یم او دَ ملائکو پشان دِ گرځوم او آسمان کښې دِ دَ ژوند دَ ملائکو سره درکووم - پنځم پوره دِ قبض کووم یعنی بدن سره دَ روح نه او پوره دِ آسمان ته خیژ وم -

شېږم کرځووم دِ پشان دَ وفات کړے شوی چه پېږ مکه ئې اثر پاتے نشی - اووم ستا عملونه پوره کوؤم - دا اقوال اللباب او بحر المحیط وغیره ذکر کړیدی - لیکن صحیح په دیکښ پنځم قول دے چه پوره قبض کووم تا له دَ زمکے نه او آسمان ته دِ پوره پورته کوؤم بغیر دَ مرګ یا خوب راوستلو نه او دَ دے تحقیق روستو ذکر کیږی.
دویم بشارت وَرَافِعُكَ اِلَیَّ، رفع په حقیقت کښ نقل دَ یو ځیز دے دَ ځکته نه بره طرف ته او په حدیث صحیح دَ معراج کښ ذکر دی چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ هغه سره په دویم آسمان کښ ملاقات کړیدے. او اِلَیَّ په معنیٰ حقیقی سره دے ځکه چه الله تعالیٰ پورته دے لکه چه نور شکاره دلیلونو سره ثابت دی (فوق او علو او استوا په عرش باندے دا دَ هغه صفاتِ حقیقیه دی بغیر دَ تشبیه او تمثیل او تحریف او تاویل نه او دا مذهب دَ سلف صالحینو دے) - او عطف دَ رَافِعُكَ په ماقبل باندے په طریقه دَ عطف تفسیر سره دے یعنی کیفیت دَ توفی په طریقه دَ مرګ یا خوب سره نه دے بلکه په طریقه دَ رفع الی السماء سره دے.
فائده: ماده دَ رفع په قرآن کښ نهه ویشت کرته واقع ده دَ هغے نه په دولس ځایونو کښ په رفع دَ درجاتو سره او په معنیٰ مجازی سره ده او دَ هغے سره په اکثر ځایونو کښ لفظ دَ درجات ذکر دے لکه په سوره بقره ۲۵۳ او سوره انعام ۱۶۵ کښ یا دَ بلے قرینه نه معلومیږی لکه په اعراف ۱۷۶ او سوره انشراح ۴ کښ - او په اوولس ځایونو کښ معنیٰ حقیقی مراد ده دَ هغے نه یو ځائے دا دے او بل په سوره نساء ۱۵۸ کښ دے نو څوک چه وائی چه دلته رفع په معنیٰ دَ عزت ورکولو سره مراد ده دا قول خطاء دے - او ابن کثیر قرطبی وغیره دَ ضحاک په روایت

سره واقعه دَ اوچتولو دَ عیسیٰ علیه السلام ذکر کړے دہ
رد هغې خلاصه دا دہ) چه هر کله یهودیانو اراده اوکړه دَ
قتل دَ عیسیٰ علیه السلام نو دولس حواریون دَ یرے دَ
وجے نه په یو کوټه کښ جمع شول او عیسیٰ علیه السلام هم
دَ ځان بچ کولو دَ پاره هغه کوټے ته داخل شو یهودیان
چه خبر شول نو څلور زره کسان دروازے دَ هغه کوټے ته
راغلل - او بل روایت کښ دی چه یهودیانو دَ دهٔ په باره
کښ بادشاه ته رپورټ ورکړو چه دا مفسد دے او ستا
دَ دین خلاف کوی او دروغ شها دتونه ئے دَ هغه په
فساد باندے پیش کړل نو بادشاه دے سره دَ ملګرو نه په
جیل کښ بند کړو او بیا ئے په هغه باندے دَ پهانسی کولو
حکم اوکړو - نو عیسیٰ علیه السلام خپل حوایونو ته اوئیل
چه په تاسو کښ کوم یو غواړی چه ځما په شکل سره جوړ
شی - او چه ځما په ځائے قتل کړے شی - او ځما سره په جنت
کښ یو ځائے شی نو یو شخص دا ذمه قبوله کړه نو الله تعالیٰ
دَ هغه کوټے چت سورے کړو او عیسیٰ علیه السلام ئے په
هغې سوری کښ پورته اوخیژولو دوی (یهودیان) چه هغه
کمرے ته داخل شو نو مشابه دَ عیسیٰ علیه السلام ئے
اوموندلو نو هغه (حواری) ئے قتل کړلو - بیا قتل کوونکو
یهودیانو په کورنئ کښ اختلاف اوکړو چه عیسیٰ علیه
السلام او وژلے شو نو هغه بل ملګرے څه شو او دے
واقعے دَ تشبیه ته اشاره دہ په سورۃ نساء ۱۵۷ کښ -
وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا ، دا دریم بشارت دے
او فائدہ دَ رفع ئے ذکر کړیدہ یعنی مقصد په رفع سره
دا دے چه پاکوی تالره دَ کافرانو نه یعنی تا دَ کافرانو نه
لرے کوؤ دَ دے دَ پاره چه دَ هغوی دَ پلیتئ نه پاک
شے او دَ هغوی دَ اذیتونو نه بچ شے او دَ هغوی دَ قتل
کولو نه لرے لاړ شے او په تا باندے به دَ هغوی وس

نه رسیږی۔ وَجَاعِلُ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْكَ فَوْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ، دا هم عطف دے په ماقبل باندے او څلورم بشارت دے عیسیٰ علیه السلام ته په باره دَ امت دَ هغه کښ او مراد دَ اِتَّبَعُوْكَ نه هغه کسان دی چه په توحید او رسالت او ایمان کښ دَ هغه اقتداء ئے کړے وی که دَ هغه امت وی او که دا امت روستنے دے او مراد دَ فوق نه فوقیت دے په حجت او دلیل کښ او په عزت او کرامت کښ په نیز دَ الله تعالیٰ۔ او دا قول دَ جمهور مفسرینو دے او په نیز دَ بعضو مراد دَ اتَّبَعُوْكَ نه صرف نصاریٰ دی چه دَ ځان نسبت عیسیٰ علیه السلام ته کوی اګرچه په هغوی کښ دَ الوهیت دَ عیسیٰ یا دَ ولدیت عقیده وی نو دوی پورته دی په بادشاهئ او اقتدار کښ په یهودیانو باندے لکه چه اوس دا سے حال موجود دے (اللباب)۔ بعضے مفسرینو وئیلی دی چه وَجَاعِلُ کلام مستقل دے او دا خطاب دے زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم ته لیکن دا قول بعید دے دَ قبولیت نه۔

ثُمَّ اِلَیَّ مَرْجِعُكُمْ فَاَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ، اختلاف عام دے که په باره دَ عیسیٰ علیه السلام کښ دے او که نور اختلافات دینیه دی او اشاره ده چه روستو دَ رفع دَ عیسیٰ علیه السلام نه په نصاراؤ کښ ډیر اختلافات او فرقے جوړے شولے۔

فائده :- (مسئله دَ حیات او دَ رفع دَ عیسیٰ علیه السلام او دَ نزول دَ هغه دَ آسمان نه مخکښ دَ قیامت نه) په دیکښ بحثونه دی اول بحث کښ ذکر دَ اختلافاتو دَ خلقو دے۔ دَ یهودیانو دعوی او عقیده ده چه عیسیٰ علیه السلام په صلیب (پهانسئ) سره او وژلے شو او څه ورځے په هغے باندے آویزان وؤ او بیا دفن کړے شو او هغه مړ دے۔ هغوی دَ هغه دَ نبوت او دَ حیات نه بالکل منکر دی دوی خو یقیناً کافر دی۔ او دَ نصاراؤ قول او عقیده دا ده چه

عیسیٰ علیه السلام په صلیب باندے اوخیژولے شو او مړ کړے شو او بیا دفن کړے شو او یو ورځ یا درے ورځے روستو دقبرنه را او بیستلے شو او ژوندے کړے شو او بره اوخیژولے شو دا قول هم باطل دے الله تعالیٰ د دواړو اقوالو په رد کښ فرمائیلی دی وَمَا قَتَلُوْهُ وَمَا صَلَبُوْهُ وَلٰکِنْ شُبِّهَ لَهُمْ، نساء ۱۵۷- او د مسلمانانو قول او عقیده دا ده چه دوی نه قتل کړے دے او نه ئے پهانسئ باندے خیژولے دے بلکه (په قول د وهب سره درے ساعاته ئے مړکړو بیا ئے ژوندے کړو او په قول د ابن اسحاق سره اووه ساعاته ئے مړکړو بیا ئے ژوندے کړو او په قول د ربیع سره اول ئے اوده کړو او بیا ئے بره اوخیژولو او په نیز د جمهور اهل اسلام باندے ژوندے او بیداره ئے آسمان ته اوخیژولو او اوږد ژوند ئے ورکړے دے او د قیامت نه په مخکښ را کوزیږی لیکن په صفت د نبوت سره به نه وی بلکه په صفت د امتی د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم سره به ژوند تیروی او بیا به وفات کړے شی- او قرطبی وئیلی دی چه صحیح قول دا دے چه الله تعالیٰ ده لره آسمان ته پورته اوخیژولو بغیر د مرګ او بغیر د خوب نه دا قول د حسن بصری او ابن زید دے او د ابن عباس او د ضحاک دے او طبری هم غوره کړیدے- په دے امت کښ د دے عقیدے مخالفت کوونکی په سلفو او خلفو کښ موږ ته هیڅوک معلوم نه دی اګرچه اختلاف نقل دے صرف په معنیٰ د متوفیک کښ- خو صرف په دے نیز دے زمانه کښ قادیانان چه د مرزا غلام احمد امت دے او منکرین حدیث دی د ژوند د عیسیٰ علیه السلام او د رفع د هغه نه آسمان ته انکار کوی او په مختلفو شبهاتو سره ګمراه کړے شوی دی روستو د هغے شبهاتو جوابونه ذکر کیدے شی-

دویم بحث :- اثبات د عقیدے د حیات د عیسیٰ علیه السلام

او رفع او نزول دَ هغه دے دَ دے دَ پاره ډیر دلیلونه دی
اول دلیل دا لفظ دے چه مَكَرَ اللهُ ، یعنې دوی مکرونه
اوکړل دَ هغه دَ قتل کولو دَ پاره او الله تعالیٰ تدبیر اوکړو
دَ هغه دَ بچ کولو- نوکه دوی هغه لره وژلے وے نو بیا دَ
الله تعالیٰ دَ تدبیر څه معنیٰ شوه-
دویم دلیل لفظ دَ رافعك اِلَیَّ دے او بل رفعه الله الیه
دے چه مراد دَ رفع نه رفع حقیقي ده لکه چه مخکښ ذکر
شو او اِلَیَّ او اِلَیْهِ هم په حقیقت باندے حمل دی او مراد
ترینه آسمان دے-
دریم دلیل لفظ دَ بل دے په بل رفعه الله الیه کښ- وجه
دَ استدلال دا ده چه بل روستو دَ نفی نه اثبات دَ ضد دَ
منفی کوی یعنې دوی قتل نه دے کړے او په پهانسئ باندے
ئے نه دے خیژولے (او دَ نفس مرګ خو په یهودو او
نصاراؤ کښ هیڅوک قائل نیشته) نو معنیٰ دَ بَلْ دا ده
چه بلکه ژوندے الله تعالیٰ ځان ته پورته خیژولے دے-
څلورم دلیل آیت سورت نساء ۱۵۹ دے- ابن جریر او ابن
کثیر په تفسیر دَ دغه آیت کښ دَ تابعینو ډیر اقوال نقل کړے
دی او وئیلے ئے دی چه اولیٰ قول په صحت سره دا دے چه
باقی به پاتے نشی دَ اهل کتابو نه هیڅوک په وخت دَ نزول دَ
عیسیٰ علیه السلام کښ مګر په هغه باندے به ایمان راوړی
مخکښ دَ مرګ دَ هغه نه او دلالت کوی په دے باندے احادیث
متواتره- او ابن کثیر حدیث دَ بخاری دَ کتاب الانبیاء ذکر کړیدے
چه راکوز به شی په تاسو کښ ابن مریم (تر آخره پورے) او
بیا ابوهریره رضی الله عنه وئیل او لولئ که تاسو غواړئ
دا آیت وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتَابِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ (الآیه)
او دا حدیث ئے دَ مسلم او امام احمد نه سره دَ دے آیت نه
نقل کړیدے-
پنځم دلیل وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ (زخرف ۶۱) په هغه قول

دَ مفسرينو چه ضمير دَ اِنَّهٗ راجع دے عيسٰى عليه السلام ته
(يعني نزول دَ هغه دَ آسمان نه) چه دا علامت دَ قيامت دے
ابن كثير دَ ابو هريره رضى الله عنه او ابن عباس رضى الله عنهما،
ابو العاليه، ابو مالك، عكرمه، حسن، قتاده او ضحاك نه نقل كړے
دے چه صحيح داده چه ضمير دَ اِنَّهٗ راجع دے (نزول) دَ
عيسٰى عليه السلام ته مخكښ دَ قيامت نه- او وئيلى ئے دى چه
دا قرآن ته راجع كول ډيره لرے خبره ده- دا رنګ ابن جرير
دَ حسن او مجاهد، قتاده، سدى، ضحاك، ابن زيد او ابن
عباس نه په مختلف سندونو سره دا قول نقل كړے دے.
شپږم دليل په تفسير دَ كهلاً كښ تير شويدى صاحب اللباب
ذكر كړے دى چه حسين بن الفضل ته او وئيلے شو چه ذكر
دَ نزول دَ عيسٰى عليه السلام په قرآن كښ شته دے؟ نو
هغه ورته دَ كهلاً آيت اولوستلو او دا سے ابن جرير دَ ابو زيد
په روايت سره په تفسير دَ كهلاً كښ ذكر كړے دى-
اووم دليل احاديث دَ نزول دَ عيسٰى عليه السلام دى مخكښ
دَ قيامت نه ابن كثير دَ هغے دَ لسو نه زياتے طريقے (سندونه)
ذكر كړيدى او امام ترمذى وئيلى دى چه په حديث دَ نزول
عيسٰى عليه السلام او قتل كول دَ دجال دَ عمران بن حصين،
نافع بن عيينة، ابو برزة اسلمى، حذيفة بن اسيد، ابو هريرة،
كيسان، عثمان بن ابى العاص، جابر، ابو امامه، ابن مسعود، ابن
عمرو، سمره بن جندب، نواس بن سمعان، عمرو بن
عوف، حذيفة بن اليمان رضى الله عنهم نه نقل دے- ابن
كثير او ابن جرير او ابن عطية او ابو حيان وغيره وئيلى دى
چه دا حديث متواتر دے- او مونږ په كتاب توضيح الحجة كښ نوى احاديث ذكر كړيدى
اتم دليل آلوسى حديث مرفوع ذكر كړے دے چه اِن عيسٰى
لم يمت و انه راجعٌ اليكم قبل يوم القيامة، دَ دے په
سند باندے الله تعالىٰ عالم دے-
نهم دليل اجماع دَ سلف او خلف ده او دَ مفسرينو او

محدثینو ده چه عیسیٰ علیه السلام ژوندے دا اجماع ابن حجر په تلخیص الحبیر او مفسر د جامع البیان او شوکانی په حجج الکرامه ص۳۲۴ کښې ذکر کړے ده - دا دلیلونه مجموعی طور سره او خصوصًا احادیث متواتره په باره د نزول عیسیٰ علیه السلام کښې دلالت کوی چه دا مسئله قطعی ده هغه اهل علمو غلطی کړیده څوک چه وائی چه دا ظنی مسئله ده -

دریم بحث په جوابا تو د شبهاتو د منکرینو د حیات د عیسیٰ علیه السلام کښې دے

اوله شبه - اِنِّیْ مُتَوَفِّیْكَ ، توفی صرف مرګ ته وئیلے شی معلومه شوه چه عیسیٰ علیه السلام الله تعالیٰ مړ کړے دے - جواب د دے په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه توفی په لغت کښې پوره اخستلو د څیز ته وئیلے شی او دا معنیٰ حقیقی ده او په معنیٰ د مرګ باندے ئے په طور د مجاز سره اطلاق کیدیشی ځکه چه روح وا خستلے شی نو د بدن نه ټول حواس ختم شی نو هغه هم داسے شو لکه چه پوره اخستلے شویوی لیکن څو پورے چه حقیقت ممکن وی نو مجاز ته تلل ناجائز دی دا یو مسلّم او کامل قانون دے -

**تنبیه:** ماده د و ف ی په قرآن کریم کښې شپږ شپیته کرته ذکر ده په مختلفو وجوهو سره - پوره ادا کول د ذمه داریٔ ، پوره ورکول د جزا ، پوره حساب کول ، پوره کول د عهد ، پوره ادا کول د کیل او میزان او د ندرونو ، د چا نه ساه اخستل (مړ کول) ، خوب راوستل لکه سوره انعام ۶۰ او سوره زمر ۴۲ کښې دی او پوره قبض کول -

ابن منظور وئیلی دی چه د توفیت المال معنیٰ دا چه ټول مال واخستلے شی - نو دلته آخری معنیٰ مراد ده او دے ته قرطبی او ابن جریر او ابن کثیر او کبیر صحیح قول وئیلے دے امام رازی وئیلی دی چه توفی جنس دے د هغے د

لاندے ډیر انواع دی بعضے دَ هغے نه په مرګ سره دی او بعضے په خیژولو سره دی آسمان ته دلته په قرینه دَ رافعك سره آخری معنیٰ مراد ده۔ خازن او رازی وئیلے دی چه هر کله نصاراؤ وئیلے دی چه دَ عیسیٰ علیه السلام روح اوچت خیژولے شوے دے او ناسوت ئے په زمکه کښ پاتے دے نو الله تعالیٰ په په متوفیك سره په هغوی باندے رد اوکړو چه روح او جسد ے دواړه پورته کړے دی۔

محمد طاهر الفتنی لیکلی دی چه کله کله وفات په معنیٰ دَ قبض سره وی بغیر دَ مرګ نه او متوفیك معنیٰ دا ده چه ستا وجود په زمکه کښ ختموؤ (مجمع البحارج ۵ ص۹۹)۔

دویمه وجه، دا جواب خازن او ابن کثیر او ابن جریر وغیره دَ ربیع نه نقل کړے دے چه دلته دَ توفی نه مراد خوب دے په قرینه دَ سوره انعام سنه سره۔ دریمه وجه، توفی په معنیٰ دَ مرګ سره دے لیکن دا خو اسم فاعل دے او فراء او ضحاك وئیلے دی چه په عبارت کښ تقدیم او تاخیر دے یعنی اوس تا پورته کوؤم او روستو دَ نزول نه به تا مړکوؤم۔ او تفسیر کبیر کښ وئیلی دی چه تقدیم تاخیر په قرآن کښ ډیر واقع دے لکه وَاسْجُدِيْ وَارْكَعِيْ مَعَ الرَّاكِعِيْنَ کښ۔ څلورمه وجه، توفی په معنیٰ دَ مرګ ده لیکن درے ساعاتو یا اوؤ ساعاتو نه روستو الله تعالیٰ بیا ورته حیاتِ دنیویه ورکړو او پورته ئے او خیژ وؤ لکه چه په مخکښ قول دَ وهب او دَ ابن اسحاق کښ تیر شو۔ اګرچه دا روستنی وجوه ضعیف دی لیکن په ذکر کولو کښ فائده دا ده چه دَ توفی معنیٰ که په مرګ سره دَ چا نه نقل ده نو هغوی دَ ژوندَ دَ عیسیٰ علیه السلام نه انکار نه دے کړے اګرچه صحیح وجه په دیکښ مخکښئ ده۔

دویمه شبه :۔ امام بخاری دَ ابن عباس نه دَ متوفیك، معنیٰ په ممیتك (مړکوؤم تا لره) سره نقل کړے ده دَ

دے جواب هم په ډیرو وجوهو سره دے - اوله وجه دا ده چه دا روایت امام بخاری بغیر د سند نه ذکر کړیدے او حال دا دے چه په صحیح سندونو سره یې نزول د عیسیٰ علیه السلام ذکر کړے دے نو دا موقوف بے سنده روایت د دغه مرفوع متواتر احادیثو مقابله نشی کولے.
دویمه وجه دا ده چه د دے سند ابن جریر ذکر کړیدے او د هغے په سند کښې علی بن ابی طلحه راوی دے او هغه ضعیف او منکر الحدیث دے او د ابن عباس رضی الله عنهما نه ارسال کړے دے په دے باندے میزان الاعتدال ص۲۲۷ ج ۲ او تقریب ص۱۸۴ او تهذیب ص۳۴۰ ج ۷ کښې کلام په تفصیل سره ذکر دے - دریمه وجه دا ده چه مخکښې ذکر شوه چه تفسیر د متوفیك په ممیتك سره منافی د ثبوت د حیات د هغه سره نه دے -
دریمه شبه - ابن کثیر په تفسیر د آلعمران آیت ۸۱ کښې حدیث ذکر کړیدے چه لوکان موسیٰ وعیسیٰ حیین لما وسعهما الا اتباعی، جواب په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا چه د دے حدیث سند نیشته او بے سنده حدیث قبول نه وی او حال دا دے چه ابن کثیر په متواتر سندونو سره نزول د عیسیٰ علیه السلام ذکر کړے دے.
دویمه وجه دا ده چه اتباع د آخری نبی په هغه چا لازم ده چه په زمکه کښې ژوندے وی او عیسیٰ علیه السلام خو په آسمان کښې ژوندے دے او کله چه زمکے ته راکوز شی نو ضرور به اتباع د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم کوی -
څلورمه شبه - جامع العتبیه کښې قول د امام مالک ذکر دے چه مات عیسیٰ وهو ابن ثلاث وثلثین سنه -
جواب، دا کتاب د امام مالک نه دے دا تصنیف د یو فقیه اندلسی قرطبی دے او د دے قول هیڅ سند یې نه دے

فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ

هغه کسان چه کفر ئے کړے دے نو عذاب به ورکړم دوی لره

عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا

عذاب سخت په دُنیا کښ

ذکر کړے۔

پنځمه شبه:- نزول دَ عیسیٰ علیه السلام نه مراد پیدائش دَهغه دے او مراد دَ دے نه مثیل عیسیٰ دے یعنی دَ عیسیٰ علیه السلام مشابه شخص به پیدا شی (دا تاویل دَ مرزا غلام احمد قادیانی دے) او هغه وئیلی دی چه انزلنا علیکم لباسا او انزلنا الحدید کښ انزال په معنیٰ دَ پیدائش دے۔ (جواب) دَ عیسیٰ علیه السلام په باره کښ ینزل فیکم راغلے دے او ینزل مجرد صیغه ده په معنیٰ دَ پیدائش هیچرے نه ده راغلے او کوم شواهد چه هغه پیش کړے دی نو هغه انزال فعل مزید ده هغه کله کله په معنیٰ دَ هغه پیدائش راځی چه په تدبیرات سماویه سره وی۔ دا رنګ په هیڅ حدیث کښ مثیل لفظ نه دے ذکر شوے نو دا خو صرف تحریف دَ حدیث دے۔

شپږمه شبه۔ دَ عیسیٰ علیه السلام په نازلیدلو سره قریب دَ قیامت کښ دَ عقیدے دَ ختم النبوت سره تضاد پیدا کیږی؟ جواب دا دے چه عیسیٰ علیه السلام چه روستو راکوزشی نو دَ نبی په وصف سره به نه راځی بلکه دَ متبع (امتی) په حیثیت سره به راځی په دلیل دَ حدیث لوکان موسیٰ حیا لما وسعه الا اتباعی، او ختم النبوت معنیٰ دا ده چه زمونږ دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه روستو نوے نبی نشی جوړیدلے نه تشریعی او نه غیر تشریعی۔

وَالْاٰخِرَةِ ؗ وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۵۶﴾

او په آخرت کښې او نيشته دوی لره هيڅوک مدد کوونکی .

وَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

او هر چه هغه کسان دی چه ايمان ئې راوړے دے او عملونه ئې کړے دی

الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ ؕ

نيک (برابر دَ سنت سره) نو پوره به ورکړی الله تعالیٰ دوی ته ثوابونه دَ عملونو دَ دوی

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۷﴾

او الله تعالیٰ مينه نه کوی دَ ظلم کوونکو سره .

۵۶ :- په دے آيت کښې تفصيل دَ فيصلے دے چه په ورځ دَ قيامت کښې به واقع کيږی او په دے آيت کښې تخويف دنيوی او اخروی دے کفر کوونکو ته عمومًا او خصوصًا دَ عيسیٰ عليه السلام ته انکار کوونکو ته .

شَدِيْدًا ، يعنی کيفيت ئې سخت دے يا مقدار ئې ډير دے او هميشه دے .

فِي الدُّنْيَا ، قيد کول او وژل او جزيه لګول او نور دَ دنيا عذابونه مراد دی .

وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ، دَ دوی شرکاء او ډلے او تابعداران دَ دوی مدد نشی کولے .

۵۷ :- په دیکښې بشارت دے . فَيُوَفِّيْهِمْ ، توفيه په معنیٰ دَ پوره کولو دَ اجر دے چه په هغے کښې هيڅ نقصان نه وی .

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ، په دیکښې دفع کول دَ يو وهم دی هغه دا دے چه الله تعالیٰ خو کافرانو له په دنيا کښې ډير مالونه او عمرونه او مزے ورکوی آيا دا دليل دَ محبت دے ؟ نو جواب او شو چه دا دَ محبت دَ الله تعالیٰ دَ وجے نه ده دے بلکه مهلت او استدراج دے .

ذٰلِكَ نَتْلُوْهُ عَلَيْكَ مِنَ الْاٰيٰتِ

دا چه ذکر شو بیانوؤ مونږ دا په تا باندے دَ آیاتونو نه

وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ ﴿۵۸﴾ اِنَّ مَثَلَ

او دَ نصیحت حکمت والا نه۔ یقیناً حال

عِيْسٰى عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ

دَ عیسیٰ علیه السلام په نیز دَ الله تعالیٰ پشان دَ حال

اٰدَمَ ۭ خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ

دَ آدم علیه السلام وے جوړ کړے وو هغه دَ خاورو نه

۵۸:۔ په دیکښ خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او جمله معترضه ده دَ پاره دَ اثبات دَ صدق دَ هغه۔

ذٰلِكَ، اشاره ده ما قبل واقعاتو دَ زکریا او مریم او عیسیٰ علیهم السلام ته۔

نَتْلُوْهُ، نسبت دَ تلاوت الله تعالیٰ ته حقیقتاً دے او دلیل دے چه دا الفاظ دَ قرآن کریم کلام دَ الله تعالیٰ دے۔

مِنَ الْاٰيٰتِ، مِنْ دَ پاره دَ تبعیض دے ځکه آیاتونه صِرف دغه نه دی کوم چه بیان شول بلکه نور هم شته۔ او مراد دَ آیات نه آیاتِ قرآنیه دی یا معجزات او امورخارقه دی په قصه دَ زکریا او مریم علیهما السلام کښ چه دا بیانول زمونږ دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ پاره معجزه ده

وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ، دَ دینه مراد هم قرآن کریم دے ځکه چه په دیکښ تذکیر دَ عقیدے او دَ اعمالو دے۔ حکیم په معنیٰ دَ محکم یا دَ حکمتونو نه ډک کړے شوے دے دا حکمتونو دلالت کوی چه دا کتاب دَ حکیم ذات دَ طرف نه نازل شوے دے یا مراد دَ ذکرحکیم نه لوح محفوظ دے چه ټول قرآن په هغے کښ موجود دے۔

ثُمَّ قَالَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ (۵۹)

بیا ئې اُوئیل هغه ته شه ته (انسان پوره) نو هغه دغسې شو۔

س۵۹ :۔ دا جواب دَ شبهې دَ نصاراؤ دے هغوی وئیل چه عیسیٰ علیه السلام بغیر دَ نارینه نه پیدا شوی دے نو معلومه شوه چه دے دَ الله تعالیٰ ولد دے او اِله دے او دا قول دَ دوی لوئے ظلم دے او دَدے وجې نه دَ لا یحب الظلمین سره ئې ربط دے حاصل دَ جواب دا دے چه نیشتوالے دَ پلار که علت وی دَ پاره دَ ولدیت دَ الله تعالیٰ او دَ الوهیت په عیسیٰ علیه السلام کښې نو لازم دے چه آدم علیه السلام دے لوئے اله او ولد دَ الله تعالیٰ وی ځکه چه دَ هغه پلار او مور دواړه نه وو۔

اِنَّ مَثَلَ عِيْسٰى ، مَثَلَ په معنیٰ دَ شان او دَ حال او صفت دے۔
عِنْدَ اللّٰهِ ، په حکم او تقدیر دَ الله تعالیٰ کښې۔
كَمَثَلِ اٰدَمَ ، دا تشبیه دَ یو نا آشنا ده دَ یل ډیر نا آشنا سره ځکه تشبیه په بعضې وجوهو کښې هم کافی وی اګرچه په میځ دَ مشبه او مشبه به کښې ډیر فرق وی نو دلته هم وجه تشبیه دا ده چه دَ آدم علیه السلام پلار نه وو۔
خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ ، دا تفسیر دَ تشبیه دے چه په حرف دَ کاف کښې ده۔ خَلَقَ په معنیٰ دَ انشاء (جوړول) یا شکل جوړولو یا تقدیر کولو دے۔
ثُمَّ قَالَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنَ (سوال) دَ تراب نه پیدا کول دَ آدم خو دَ امر دَ کن نه روستو دے نو دلته ئې ثُمَّ لفظ ولے ذکر کړے دے؟
جواب ۱ :۔ دا ثم دَ تعقیب ذکری دَ پاره دے او دا په قرآن کریم کښې ډیر واقع دے لکه یو دَ هغې نه سوره بلد ۱۷ کښې دے۔
جواب ۲ :۔ امام راغب وئیلی دی چه معنیٰ دا ده چه اول ئې دَ هغه شکل او بدن دَ خاورو نه جوړ کړو نو بیا ئې څه موده روستو ورته او وئیل کُنْ (شه ته انسان ناطق)

اَلۡحَقُّ مِنۡ رَّبِّكَ فَلَا تَكُنۡ

دا بیان حق دے سنا د رب د طرف نه نو مه کیږه ته

مِّنَ الۡمُمۡتَرِيۡنَ ﴿۶۰﴾

د ډلے د شک کوؤنکو نه۔

نو د غسے شو۔ نو په دیکښ ثم ېخپله معنیٰ سره دے۔
سوال :۔ دلته فعل ماضی مناسب وه چه فکان ئے وئیلے وے؟
جواب :۔ بقاعی وئیلی دی چه دا مضارع په معنیٰ د فعل ماضی ده لیکن فعل مضارع کښ حکایت د تیر شوی حالت وی۔ او په دیکښ تنبیه ده چه د الله تعالیٰ د امر د کن سره مراد و نه په راتلونکی زمانه کښ هم پوره کیږی ماضی پورے تخصیص نیشته۔
۶۰ :۔ دا خبر دے د مبتدا پټے د پاره یعنی هذا الحق۔ او اشاره ده تفصیل د حال د عیسیٰ علیه السلام ته او په دیکښ اشاره ده چه په باره د عیسیٰ علیه السلام کښ قول د یهودیانو او نصاراؤ حق نه دے۔ یا هذا اشاره ده تمثیل د عیسیٰ علیه السلام ته د آدم علیه السلام سره۔
فَلَا تَكُنۡ مِّنَ الۡمُمۡتَرِيۡنَ، خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او مراد تر ینه امت دے یعنی د یهود او نصاریٰ د مختلف اقوالو په سبب سره تا سو د دے حق بیان په باره کښ شک کښ مه پریوزئ۔
فائده :۔ هر کله چه په باره د قبلے (کعبه) کښ اختلاف د یهودیانو، نصاراؤ او مشرکانو په ضد او عناد بانددے بنا وو د دے وجے نه ئے هلته په بقره ۱۴۷ کښ نهی په تاکید سره ذکر کړیده یعنی فَلَا تَكُوۡنَنَّ او دلته خو مخالفت د نصاراؤ صرف په جهل بانددے بنا دے اګر چه مخالفت د یهودیانو په ضد او په عناد بانددے بنا وؤ خو دلته ډیر تاکید ته ضرورت نیشته د دے وجے نه فلا تکن ئے اوئیلو۔

فَمَنْ حَآجَّكَ فِيْهِ مِنْ بَعْدِ

نو څوک چه تا سره جګړه کوی په باره د عیسٰی علیه السلام کښ روستو د هغې نه

مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ

چه راغلے دے تا ته علم (په ذریعه د قرآن سره) نو ورته اُووایه

تَعَالَوْا نَدْعُ اَبْنَآءَنَا

راشئ چه راوبلو مونږ ځامن خپل

وَاَبْنَآءَكُمْ وَنِسَآءَنَا وَنِسَآءَكُمْ

او ځامن ستاسو او زنانه خپلے او زنانه ستاسو

وَاَنْفُسَنَا وَاَنْفُسَكُمْ قف ثُمَّ

او ملګری خپل او ملګری ستاسو بیا به

نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ

عاجزی اوکړو نو اوبه غواړو لعنت د الله تعالٰی

عَلَى الْكٰذِبِيْنَ (٦١)

په دروغ ویونکو باندے.

٦١: روستو د بحث د مناظرے او د دفع کولو د شبهاتو د نصاراؤ نه اوس دعوت دے مباهلے ته د پاره د اظهار د حق چه په مخکښ آیت کښ په لفظ د الحق سره ذکر شو.

فَمَنْ حَآجَّكَ فِيْهِ، مراد د حاجك نه صرف جګړه کول دی ځکه چه روستو د ماقبل بیان نه د نصاراؤ سره هیڅ صحیح حجت پاتے نه شو. فِيْهِ ضمیر عیسٰی علیه السلام ته راجع دے یعنی عبدیت او نبوت او رسالت د هغه.

مِنْ م بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ، علم قرآن دے او مراد دا دے چه په قرآن سره ثابت شوه چه عیسٰی علیه السلام ابن الله او اله نه دے بلکه عبد او بشر او رسول دے.

فَقُلْ تَعَالَوْا ، دا دَ غُلُو نه اخستلے شوے دے نو په اصل کښ دعوت ورکول دی اوچت مکان ته بیا په کښ وسعت اوکړے شو نو هر اوچت حال ته دَ دعوت دَ پاره استعمالیږی (اللباب) ۔

نَدْعُ اَبْنَآءَنَا وَاَبْنَآءَكُمْ ، اولاد زړه ته ډیر نیزدے وی په مینه او محبت کښ او انسان دَ تکلیف دَ ځائے ته دَ اولاد دَ بچ کولو کوشش کوی نو دَ هغوی حاضرول دا سے مقام (دَ مباهلے) ته دلالت کوی په ډیر یقین کولو دَ انسان پخپل مقصد باندے ۔او په بعض روایتونو کښ دَ حاکم او ابو داؤد طیالسی نه ثابت دی چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ ځان سره فاطمه رضی الله عنها حسن او حسین رضی الله عنهما او علی رضی الله عنه حاضر کړے وو نو دا دلیل دے چه دَ لونړو په اولاد (نوسو) او په ځوم باندے هم دَ اولاد اطلاق کیدلے شی ۔

وَنِسَآءَنَا وَنِسَآءَكُمْ ، دا عام دے بیبیانو او لونړو ته ۔ په ځامنو پسے انسان دَ خپلو لونړو او ښځو حفاظت هم ډیر ضروری ګنړی نو دَ هغوی حاضرول هم دلیل دے په مضبوط یقین کولو په خپله مدعا باندے ۔

وَاَنْفُسَنَا وَاَنْفُسَكُمْ ، مراد دَ دینه نور ملګری او هم جنس دی ځکه چه انفس په معنیٰ دَ هم جنس سره ډیر مستعمل دے په قرآن کریم کښ او په دیکښ علی رضی الله عنه داخل دے یا مراد دَ دینه ذات دَ نبی صلی الله علیه وسلم دے ۔ او په عرق کښ دا سے وئیلے کیدیشی چه خپل ځان ته آواز اوکړه ۔او ابو حیان لیکلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم خپل خواص (حسن، حسین، فاطمه او علی رضی الله عنهم وغیره) راوستلے وو مخکښ دَ ارادے دَ نصاراؤ نه په مباهله باندے لکه چه په حدیث دَ مسلم کښ راغلے دی او که چرے نصاراؤ عزم دَ مباهلے کړے وے نو ټولو مؤمنانو به خپل ځامن او زنانه راغوختلے وے ۔

ثُمَّ نَبْتَهِلْ ، ابتهال کښ دوه اقوال دی اول دا چه تضرع او اخلاص او کوشش کول په دعا کښ که دَ خیر وی او که دَ شر وی - دویم دُعا دَ لعنت او دَ هلاکت کول - او بهلت لعنت ته وئیلے شی حاصل دا چه اکثر استعمال دَ ابتهال په دعا دَ شر کښ دے او کله کله دُعا دَ خیر کښ هم استعمالیږی - او دلته باب افتعال (ابتهال) په معنیٰ دَ تفاعل سره دے -

فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ ، بِنا په مشهوره معنیٰ دَ ابتهال (دُعاء دَ شر) دا تفسیر دَ ابتهال دے او بِنا په عام معنیٰ باندے دا تخصیص دَ دُعاءِ دَ ابتهال دے په شر پورے.

فائده ۱ :- مفسرینو دَ دے آیت په تفسیر کښ واقعه دَ وفد دَ نجران ذکر کړے ده او دَ هغوی انکار ئے دَ مباهلے نه ذکر کړے دے دغه وفد والا شپیته کسان وُو خوارلس دَ دوی اشراف وُو او عاقب او سید دَ دے ټولو مشران وُو - او دَ دے سورت څه دَ پاسه اتیا آیاتونه دَ دوی په رد کښ نازل شوی وُو - نو انکار دَ دوی دَ مباهلے کولو نه ښکاره دلیل دے په اثبات دَ صدق دَ نبی صلی الله علیه وسلم باندے.

فائده ۲ :- آلوسی لیکلی دی چه مباهله اوس هم جائز ده په دلیل دَ دے چه دَ ابن عباس رضی الله عنهما او دَ بل شخص په مینځ کښ څه جګړه پیدا شوه نو هغه مباهلے ته دعوت ورکړو او دا آیت ئے اولوستلو او لاسونه ئے پورته کړل او حجر اسود ته ئے مخ کړو او حاکم هم په مستدرک کښ دا روایت راوړیدے قاسمی هم په تفسیر کښ لیکلی دی چه دا آیت دلیل دے چه څوک دَ یو امر شرعی نه انکار کوی نو دَ هغه سره مباهله کول جائز دی او بیا ئے ذکر کړے دی چه دَ مباهلے جواز دَ پاره شرطونه دا دی چه یو اهمه شرعی مسئله وی چه په هغے کښ عناد واقع شی نو په هغے کښ مباهله کیدیشی او دَ

هغې شروطِ اولیه دا دی چه اول حجت قائم کړی په خصم (مقابل) باندې بیا دَ هغه دَ شبهاتو جوابونه اوکړې شی او بیا ورته نصیحت اوکړیشی او چه بیا هم انکار کوی نو دعوت دَ مباهلې په ورکیدیشی۔ ځکه وائیم چه دَ دې سورت تیر شوې مضمون چه دَ عیسی علیه السلام په باره کښ دې په رد دَ نصاراؤ کښ په هغې کښ دلیلونه وو او جوابونه دَ شبهاتو وو او نصیحتونه اوزجرونه او تخویفات وو نو دَ هغې نه روستو ئې حرف دَ فاء دَ دې آیت په اول کښ راؤړو نو دا دلالت کوی په دغه شرطونو باندې۔ او ابن قیم الجوزیه رحمه الله منکرینو دَ صفاتو دَ الله تعالی ته چه هغوی دَ صفاتو دَ الله تعالی تاویلونه کوی (جهمیه وغیره) دَ مباهلې دعوت ورکړې وو په مینځ دَ حجر اسود او مقام ابراهیم کښ او هغوی اجابت نه دې کړې۔ دا ئې دَ قصیده نونیه په اول کښ ذکر کړیدی او مباهلې ته ابن عباس رضی الله عنهما او امام اوزاعی په فرعی مسائلو کښ هم دعوت ورکړې دې (زهٔ وایم) چه دا په هغه فرعیاتو کښ وو چه په صحیح حدیث سره ثابت وی او خصم دَ حسد او عناد دَ وجې دَ هغې نه مطلقاً انکار کوی۔

فائده ۳:- شیعهٔ گانو په دې آیت سره استدلال کړې دې په فضیلت دَ علی رضی الله عنه په ټولو انبیاؤ باندې او برابر والې دَ آخری نبی سره دوی وائي چه دَ اَنْفُسَنَا نه خو ذات دَ نبی نشی مراد کیدلې ځکه چه خپل ذات ته دعوت نشی ورکیدلې نو مراد دَ دې نه علی دې په سبب دَ حدیث دَ مسلم نو علی رضی الله عنه نفس دَ نبی او ګڼلې شو او نبی صلی الله علیه وسلم خو په ټولو انبیاؤ باندې افضل دې نو معلومه شوه چه علی رضی الله عنه په ټولو انبیاؤ

إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ

یقیناً دا خوامخوا بیان حق دے

وَمَا مِنْ إِلٰهٍ إِلَّا اللّٰهُ ۚ وَإِنَّ اللّٰهَ

او نیشته هیڅوک حقدار د بندګئ سیوا د الله تعالیٰ نه او یقیناً الله تعالیٰ

لَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ (٦٢)

خوامخوا زور آور حکمتونو والا دے۔

او صحابه کرامو باندے افضل دے د دے تفصیلی جواب امام رازی او آلوسی په خپل خپل تفاسیرو کښ لیکلے دے حاصل ئے دا دے چه د نفس نه مراد ذات د نبی صلی الله علیه وسلم دے او دعوت خو د خپل نفس هم کیدے شی عرب وائی دَعَوْتُ نَفْسِيْ إِلٰى كَذَا، او که مراد د دینه ذات د نبی صلی الله علیه وسلم نشی نو مراد ترینه ټول صحابه دی (چه د انفس اطلاق په هم جنس باندے کیدے شی) نو تخصیص د علی خو د دے نه ثابت نه دے او که اوئیلی شی چه په حدیث د مسلم سره ثابت دی چه نبی صلی الله علیه وسلم علی حاضر کړے وو نو جواب دا دے چه هغه ئے د ابتداءً په مصداق کښ حاضر کړے وو ځکه چه څوم هم پشان د خوئ کتر لے شی او نبی صلی الله علیه وسلم بذاتِ خود هم حاضر وو۔

۶۲ :- دا تاکید د ماقبل بیان دے سره د تقریع د نتیجے نه په ماقبل باندے - هذا اشاره ده تفصیل د حالاتو د عیسیٰ علیه السلام ته۔

الْقَصَصُ، دا مصدر دے په اصل کښ روانیدل دی په نقش قدم باندے لکه په سوره کهف ۶۴ کښ دی۔ او په عرف کښ پرله پسے واقعات په ترتیب سره ذکر کولو ته وئیلے شی۔

فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌۢ

نو که چرې دوی مخ واړوي (اوګرځولو) نو یقیناً الله تعالیٰ عالم دے

بِالْمُفْسِدِينَ ۝۶۳ ع

په فساد کوونکی باندے۔

الْحَقُّ، دا رد دے په بیانونو د یهودو او نصاراؤ باندے په باره د عیسیٰ علیه السلام کښ چه هغه دروغ او باطل دی۔

وَمَا مِنْ إِلٰهٍ إِلَّا اللَّهُ، هر کله چه په تیرشوی بیان باندے رد وؤ (په ولدیت او الوهیت د عیسیٰ علیه السلام باندے) خصوصًا نو اوس عطف کوی په هغے باندے په طریقه د عموم او استغراق سره۔ مِنْ د پاره د استغراق دے نو په دیکښ رد دے په هر هغه چا باندے چه شرک کوی په صفاتو د الوهیت کښ د الله تعالیٰ سره۔

وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ، دا عطف د دلیل دے په مدعیٰ باندے او عزیز او حکیم خلاصه ده د صفاتو د الوهیت۔

۶۳:۔ دا تخویف دے۔ تَوَلَّوْا، تولی د القصص، الحق او روستو دوه جملو نه مراد ده یا تولی کول یعنی مخ ګرځول د مباهلے نه۔ تولوا فعل ماضی غائب ده یا فعل مضارع مخاطب دے په حذف د تا سره۔

فَإِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌۢ بِالْمُفْسِدِينَ، په دیکښ ذکر د سبب د عذاب دے چه افساد دے او علم د الله تعالیٰ په افساد د دوی باندے کنایه ده د عذاب ورکولو نه۔ او المفسدین کښ اشاره ده چه د محاجے او مباهلے نه اعراض کوی او د حق سره ضد او عناد کوی نور خلق ګمراه کوی نو دا فساد دے۔ او صاحب اللباب وئیلی دی چه مفسدین هغه خوک دی چه بندګی د غیر الله کوی د دے وجے نه ور پسے رد د شرک فی العبادت کوی۔

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا

اُو وايه اے كتاب والو راشئ

اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍۢ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ

داسے كلمے ته چه برابر ده زمونږ او ستاسو په مينځ كښ

اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا

(هغه داده) چه بندگي به نه كوؤ مگر د يو الله او شريك به نه جوړ وؤ د هغه سره هيڅ څيز

وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا

او نه به نيسي بعض زمونږ بعضو لره خدايان (اختيارمند د شرعے جوړولو)

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ فَاِنْ تَوَلَّوْا

سوا د الله تعالىٰ نه نو كه چرے دوى مخ واړوؤ

فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ﴿٦٤﴾

نو تاسو اُوايئ چه گواه شئ چه يقيناً مونږ خو مسلمانان يو.

س۶۴:- د دے آيت نه تر ۱۰۱ پورے د سورت دويمه حصه ده او مقصد پكښ اثبات د صدق د رسول صلى الله عليه وسلم دے په ذكر د څوارلس خبا ثاتو د منكرينو د آخرى رسول سره د جوابونو د اعتراضونو د دوى نه - او ذكر د دعوت دے اهل كتابو (يهود او نصارى) ته - په دے حصه كښ د دوى څوارلس خبا ثات ذكر كوى چه په هغے كښ د څلورو شبهاتو جوابونه هم په س۶۵، س۷۹، س۹۳، س۹۶ كښ ذكر دى.
په دے آيت كښ د دوى دعوت دے توحيد ته او اشاره ده چه په دوى كښ درے انواع د شرك موجود دى شرك في العبادت، عقيده د حلول او شرك في الربوبيت په معنىٰ د اطاعت او تشريع يا ندے او دا لوئے خبا ثات دى.

ربط دَ دے آیت دَ مخکښ سره دا دے چه ماقبل کښ رد اوکړے شو دَ دوی په شبهاتو باندے سره دَ اعراض کولو دَ دوی دَ مباهلے نه نو اوس ذکر کوی دعوت دَ دوی توحید خالص ته۔

قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ، دا خطاب دے نصاراؤ ته ځکه چه تیر شوے کلام هم دَ دوی سره خطاب وؤ۔ او ابن کثیر وئیلی دی چه دا عام دے ټولو اهل کتابو ته چه یهود او نصارٰی دی او هغه څوک چه دَ دوی پشان وی (صابئین او دَ دے امت والا)۔

اِلٰى كَلِمَةٍ، مراد دَ دینه مفیده جمله ده مفرد نه دے لکه چه نحویانو وئیلی دی او تفسیر دَ دے روستو جمله ده۔

سَوَآءٍ، دا په معنیٰ دَ مُسْتَوِيَةٍ او عَدْلٍ دے۔ او ابن عطیه وئیلی دی چه مراد دَ دینه مشهوره معنیٰ ده یعنی مونږ او تاسو کشران او مشران ټول په یکښ برابر شریک یو۔ یا دا چه ستاسو په دین او کتاب کښ ښته دے او زمونږ په دین کښ هم ښته دے۔ قاسمی وئیلی دی اعتدال دَ دے کلمے دا دے چه نه یکښ تعطیل ښته او نه شرک۔ او دَ کتابونو الهیو او رسولانو یکښ اختلاف نیشته دے۔

اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ، دا رد دَ شرک فی العبادت دے ځکه چه نصارٰی دَ عیسٰی او مریم علیهما السلام عبادت کوی۔

وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا، دا رد دَ شرک دے مطلقاً او رد دے په عقیده دَ حلول باندے هم۔ شَيْـًٔا، مفعول مطلق دے یعنی شَيْـًٔا مِّنَ الْاِشْرَاكِ (هیڅ قسم شرک) یا مفعول به دے یعنی هیڅ څیز دَ څیزونو نه۔ ابن کثیر وئیلی دی نه وثن او نه صلیب او نه صنم او نه طاغوت او نه اور او نه بل څیز۔ ځکه چه لفظ دَ شیئًا عام دے او نکره ده په سیاق دَ نفی کښ ذکر ده نو په ډیر عموم باندے دلالت کوی۔

سوال:- اوله جمله چه اِلَّا نَعْبُدُ اَلَّا اللّٰهَ دے رد دے په

شرک بانډے نو دویمه جمله ئے دَخه فائدے دَ پاره ذکر کړیده؟
جواب ۱ :- اول ردوؤ صرف په شرک فی العبادت بانډے او په دویمه جمله کښ په ټولو اقسامو دَ شرک بانډے رد دے.
جواب ۲ :- نصاراؤ وئیل چه مونږ دَ عیسیٰ علیه السلام عبادت دَ دے وجے نه کوؤ چه الله تعالیٰ دَ دهٔ په بدن کښ حلول کړے دے نو داخو عین عبادت دَ الله تعالیٰ دے نو پدے جملے سره جواب اوشو چه دا عقیده خو مستلزم ده شرک لره چه عیسیٰ علیه السلام ئے دَ الله تعالیٰ سره شریک اوګرځوؤ۔
وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّنْ دُونِ اللهِ، دارد دے په دریم قسم شرک بانډے چه شرک فی الاطاعت والتشریع والحکم ورته وئیلے شی او داسے په تفسیر دَ سوره توبه ۳۱ کښ هم شته او په دے سورت ۸۰ کښ هم دی۔ دلته مراد دَ ربوبیت نه اختیار او تصرف دَ احکامو جوړولو دے او په معصیت کښ اطاعت کول دی لکه چه مفسرینو دَ ابن جریج نه نقل کړیدی او معصیت بے دلیله خبرے ته وئیلے شی لکه چه په حدیث دَ عدی بن حاتم رضی الله عنه کښ وارد دی هغه اوئیل چه یا رسول الله مونږ خو دَ احبارو او رهبانو عبادت نه کوؤ نو هغه ورته اوفرمائیل آیا داسے نه ده چه هغوی تاسو لره څیزونه حلالوی او حراموی او تاسو (بے دلیله) په هغے بانډے عمل کوئ (حدیث تر آخره پورے) (ترمذی)۔ قرطبی او طبری وئیلے دی معنیٰ دَ دے دا ده چه دوی ګرځولے دی هغوی لره په منزله دَ رب دَ دوی په قبلولو دَ تحریم دَ هغوی کښ دَ هغه څیز چه الله تعالیٰ نه دی حرام کړی او نه دی حلال کړی۔ او دوی په دَ دے وجے نه هغوی ته سجدے هم کولے۔ او قرطبی لیکلی دی چه دا

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تُحَآجُّونَ

اے کتاب والو ولے جګړه کوئ تاسو

فِيٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَمَآ أُنزِلَتِ

په باره د ابراهيم عليه السلام کښ او نه دے نازل کړے شوے

ٱلتَّوۡرَىٰةُ وَٱلۡإِنجِيلُ إِلَّا مِنۢ

تورات او انجيل مګر روستو

بَعۡدِهِۦٓۚ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ﴿٦٥﴾

د هغه نه آيا نو تاسو څه عقل نه لرئ۔

دلالت کوی چه هغه استحسان چه دليل شرعی سره ثابت نه وی نو باطل دے او کيا هراسی وئيلی دی چه په ديکښ رد دے په هغه چا باندے چه قول د يو امام په تحليل او تحريم کښ قبلوی بغير د ښکاره کولو د دليل شرعی نه (چه هغے ته تقليد وئيلے شی) او قرطبی په ديکښ تقديرات د ابوحنيفه رحمه الله ذکر کړی دی چه هغه بغير د دليل شرعی نه جوړ کړے دی (اکثر دغه تقديرات لکه عشرا فی عشر وغيره مقلدينو د امام ابوحنيفه رحمه الله جوړ کړے دی او بيا امام ابوحنيفه ته د هغے نسبت کوی) او دا رد دے په روافضو باندے په دے مسئله کښ چه هغوی تقليد د امام واجب ګڼړی۔

فَإِن تَوَلَّوۡاْ فَقُولُواْ ٱشۡهَدُواْ بِأَنَّا مُسۡلِمُونَ، يعنی که چرے دوی مخ او ګرځوی د موافقت کولو نه په عقيده د توحيد کښ نو تاسو انصاف او کړئ چه زمونږ د پاره شهادت او کړی په اسلام باندے او تاسو کافريئ نو په ديکښ تعريض دے په کفر او شرک د هغوی باندے په وخت د مخ ګرځولو کښ۔ او لفظ مسلمون دلالت کوی

هَاَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ حَاجَجْتُمْ فِيْمَا

خبردار تاسو اے دغه کسانو جګړه کوئ تاسو په هغه خبره کښ

لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ فَلِمَ تُحَآجُّوْنَ

چه تاسو لره په هغے باندے علم شته دے نو ولے جګړه کوئ تاسو

چه دا دعوت دَ اسلام دے او هغه دین دَ ټولو انبیاء علیهم السلام دے دَ دے وجے نه په حدیث دَ مسلم کښ راغلے دی چه نبی صلی الله علیه وسلم هرقل بادشاه ته خط لیکلے وو نو په هغے کښ ئے لیکلے وو اِنِّیْٓ اَدْعُوْكَ بِدِعَايَةِ الْاِسْلَامِ، او دا آیت ئے ورته لیکلے وو لیکن هغه دنیا غوره کړه په آخرت باندے.

٦٥: په دیکښ دَ دوی دویم خباثت ذکر کوی چه هغه نسبت دَ یهودو او دَ نصاراؤ دے دَ ابراهیم علیه السلام یهودیت او نصرانیت ته - او دا رنګ دوی ته دعوت ورکول دَ پاره دَ منع کیدلو دَ دے دعوے نه په دروغو سره - او حاصل دَ رد دا دے چه تورات او انجیل چه دَ ابراهیم علیه السلام نه ډیر روستو نازل شویدی په هغے کښ ذکر دَ یهودیت او نصرانیت نیشته بلکه ذکر دَ اسلام دے نو هغه یهودیت او نصرانیت چه تاسو دَ تورات او انجیل دَ نزول نه روستو ایجاد کړے دے دَ هغے نسبت کول خو ابراهیم علیه السلام ته خالص دروغ دی - لِمَ تُحَآجُّوْنَ فِیْٓ اِبْرٰهِیْمَ، په لِمَ کښ استفهام انکاری دے او محاجه نه مراد جګړه کول دی بغیر دَ دلیل نه.

وَمَآ اُنْزِلَتِ التَّوْرٰىةُ وَالْاِنْجِيْلُ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِهٖ، دا جمله حال دے دَ ما قبل نه او مؤرخینو لیکلے دی چه په مینځ دَ ابراهیم علیه السلام او موسیٰ علیه السلام او عیسیٰ علیه السلام کښ دوه زره کاله یا یو زر شپږ سوه

فِیمَا لَیْسَ لَکُمْ بِهٖ عِلْمٌ ط
په هغه خبرو کښ چه نيشته تاسو لره په هغې باندې هيڅ علم

وَاللّٰهُ یَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ (٦٦)
او الله تعالی علم لري (دَ هر څيز) او تاسو علم نه لرئ (په هر څيز)

ديرش کاله فرق وؤ۔
اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ، يعنی دا کلام دَ عقل نه خلاق دے چه دَ مخکښ شخص نسبت روستو جوړ کړے شوے دين ته کوئ۔
س٦٦:۔ دا هم رد دے دَ هغوی په دعوی باندے۔ هٰٓاَنْتُمْ مبتدا ده او حَاجَجْتُمْ ئے خبر دے او په مينځ کښ هٰٓؤُلَآءِ په تقدير دَ يا سره دَ پاره دَ توهين دَ دوی دے يا هٰٓؤُلَآءِ خبر دے دَ هَا اَنتم دَ پاره۔
فِیمَا لَکُمْ بِهٖ عِلْمٌ، مراد دَ دينه دين دَ دوی دے چه دَ دوی په کتابونو کښ ذکر دے او دوی په هغے باندے علم لري چه په هغے کښ حال دَ عيسٰی عليه السلام هم داخل دے او دوی دَ هغے نه انکار کوی او په هغے کښ جدال کوی يا مراد دَ دينه حال او صفات دَ محمد صلی الله عليه وسلم دی چه دَ دوی په کتابونو کښ ذکر دی او دوی دَ هغے نه انکار کوی۔
فِیمَا لَیْسَ لَکُمْ بِهٖ عِلْمٌ، مراد دَ دينه حال دَ ابراهيم عليه السلام دے چه دوی دعوی کوله چه هغه يهودی يا نصرانی وؤ دا خو بالکل بے علمه او بے دليله جګړه ده۔ او په دےکښ ترقی ده دَ دوی په قباحاتو کښ يعنی په معلومه خبره کښ جګړه کول قبيح کار دے ليکن په غير معلومه خبره کښ جګړه کول خو ډير اقبح دی۔ قرطبی وئيلی دی چه په دےکښ دليل دے په منع دَ جدال کولو په هغه خبره کښ

مَا كَانَ اِبْرٰهِيْمُ يَهُوْدِيًّا

نه وؤ ابراهيم علیه السلام یهودي

وَّلَا نَصْرَانِيًّا وَّلٰكِنْ كَانَ

او نه نصراني او لیکن وؤ هغه

حَنِيْفًا مُّسْلِمًا ؕ وَمَا كَانَ

پوخ مؤحد پوره تابعدار او نه وؤ هغه

مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٦٧﴾ اِنَّ اَوْلَى

د مشرکانو د ډلې نه - یقیناً حقدار

النَّاسِ بِاِبْرٰهِيْمَ لَلَّذِيْنَ

د خلقو نه په نسبت کولو ابراهیم علیه السلام ته ضرور هغه کسان دي

اتَّبَعُوْهُ وَهٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِيْنَ

چه تابعداري يې د هغه کړې ده او دا نبي دے او هغه کسان

چه علم د هغې نه لري او تحقیق یې د هغې نه وي کړے.
وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ، دا تاکيد دے د عدم
علم د دوی په باره د ابراهیم علیه السلام کښې او توجه
ورکول دي بیان د حق ته چه ینا دے په علم د الله تعالی
باندے.

۶۷:- دا تفسیر د وَاللّٰهُ يَعْلَمُ دے په باره د ابراهیم علیه
السلام کښې او صریح رد دے په دعوی د یهود او نصاری
باندے په باره د ابراهیم علیه السلام کښې- او صاحب
اللباب او ابن عطیه او ابوحیان وئیلی دي چه مَا كَانَ
مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ تعریض دے چه یهود او نصاری
مشرکان دي- نور تفسیر د دے په سوره بقره ۱۳۵ کښې
تیر شوید ے.

اٰمَنُوْا ؕ وَاللّٰہُ وَلِیُّ الْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۶۸﴾

چه ایمان ئې راوړے دے او الله تعالیٰ خاص دوست دَ مؤمنانو دے۔

وَدَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ

غواړی یو ډله د کتاب

الْکِتٰبِ لَوْ یُضِلُّوْنَکُمْ ؕ وَمَا یُضِلُّوْنَ

والو نه چه ګمراه کړی تاسو لره او نه ګمراه کوی دوی

اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا یَشْعُرُوْنَ ﴿۶۹﴾

مګر ځانونه خپل او دوی نه پوهیږی۔

س ۶۸ :- دا هم رد دے په یهود او نصارٰی باندے په طریقه دَ نتیجے سره چه دَ مخکښ درے آیاتونو نه معلومه شوه یعنی هرکله چه دین دَ ابراهیم علیه السلام یهودیت او نصرانیت نه وو نو یهود او نصاراؤ له حق نیشته چه ابراهیم علیه السلام ته خپل نسبت کوی۔

اَوْلیٰ په معنیٰ دَ حقدار دے په نسبت کولو کښ هغه ته یا په معنیٰ دَ اَقْرَبُ دے یعنی ډیر نیزدے ابراهیم علیه السلام ته۔

لَلَّذِیْنَ اتَّبَعُوْهُ ، عام دے زمانے دَ ابراهیم علیه السلام او زمانے دَ موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام او زمانے دَ فترت ته۔

وَهٰذَا النَّبِیُّ وَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا ، دا تخصیص بعد التعمیم دے دَپاره دَ اظهار دَ شرافت دَ آخری نبی او دَ امت دَ هغه۔

وَاللّٰہُ وَلِیُّ الْمُؤْمِنِیْنَ ، وَلِیُّ په معنیٰ دَ مددګار او دَ دوست دَ ایمان والو دے په نصرت او توفیق او اکرام سره او اَلْمُؤْمِنِیْنَ کښ نبی صلی الله علیه وسلم اول داخل دے۔

س ۶۹ :- په دے آیت کښ دَ دوی دریم خباثت ذکر کوی

يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ

اے کتاب والو ولے کفر کوئ تاسو

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ ﴿۷۰﴾

په آیاتونو دَ الله تعالیٰ او حال دا چه تاسو علم لرئ۔

یعنی په مخکښ دعوی (چه ابراهیم علیه السلام یهودی یا نصرانی وؤ) کښ خلق گمراه کوی دا سے په سوره بقره ۱۰۹ کښ دی هلته مطلب دا وؤچه په اعتراضونو او سوالونو دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره دوی خلق مرتد کول غواړی۔

مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ، مِنْ دَ پاره دَ تبعیض دے په قرینه دَ طائفه سره ناکاره کتابیان مراد دی۔

وَدَّتْ، وَدْ په معنیٰ دَ تمنا سره دے او دَ دے سره لفظ لَوْ مصدریه استعمالیږی او اَحَبَّ سره لَوْ نه استعمالیږی۔

لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ، اضلال دلته گمراه کول او مرتد کول دواړه ته شامل دے۔

وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ، یعنی دوی په اضلال دَ نورو خلقو سره (که هغوی دَ دوی خبرے منی او که نه منی) پخپله گمراه شول ځکه څوک چه چا ته کلمه دَ کفر وائی یا عمل دَ کفر ته ترغیب ورکوی نو دا شخص په دے سره کافر شی۔ یا مراد دَ اضلال نه ځان دَ عذاب مستحق گرځول دی۔ یا مراد دَ اضلال نه ناامیده کیدل او ناوانی کیدل دی ځکه چه دوی کوشش کوی دَ اضلال دَ مؤمنانو او هغوی ئے او نه منی نو دوی ناامیده او ناوانیان شول۔

نټ: پدیکښ څلورم خباثت دَ دوی ذکر کوی او دعوت دے په طریقه دَ زجر ورکولو سره۔

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ، مراد دَ دینه تورات او انجیل دے او دَ کفر

٧ع٨/١٥

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَلۡبِسُونَ

اے کتاب والو ولے گډوډ کوئ تاسو

ٱلۡحَقَّ بِٱلۡبَٰطِلِ وَتَكۡتُمُونَ

حق لره (په خلقو باندے) په باطل (شبهاتو) سره او پټوئ تاسو

ٱلۡحَقَّ وَأَنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ع ﴿٧١﴾

حق لره او تاسو علم لرئ.

نه مراد دا دے چه په هغے کښ ذکر وو چه ابراهیم علیه السلام حنیف مسلم وو او دین حق خو دین اسلام دے او دَ آخری نبی صلی الله علیه وسلم په باره کښ بشارت او دَ هغه صفات وو او دوی دَ دے ټولو خبرو نه انکار کوی نو دا کفر دے په تورات او انجیل باندے اګرچه وائی چه مونږ دا کتابونه منو.

وَأَنتُمۡ تَشۡهَدُونَ، مراد دَ شهادت نه علم دے په تورات او انجیل باندے چه دا حق دی.

ك :- په دیکښ پنځم خباثت دَ دوی ذکر کوی او دعوت په طریقه دَ زجر سره ذکر کوی او تفسیر دَ تلبیس او کتمان په سوره بقره ۴۲ کښ تیر شوے دے.

فائده :- په سوره بقره ۴۱، ۴۲ کښ نهی دَ کفر کولو او دَ تلبیس او کتمان نه ذکر کړے وه لیکن هر کله چه دوی په هغه نهی باندے عمل اونکړو نو په دے سورت کښ ئے ورته زجر ذکر کړو.

وَأَنتُمۡ تَعۡلَمُونَ، یعنی تاسو پوهیږئ په حق او باطل باندے په سبب دَ شهادت دَ تورات او انجیل سره نو شهادت سبب دے دَ پاره دَ علم نو دَ دے وجے نه اول آیت کښ ئے تشهدون او په دیکښ تعلمون ذکر کړے دے.

وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ

او اُویل یو ډلې د کتاب والو نه (خپلو کشرانو ته)

اٰمِنُوْا بِالَّذِیْٓ اُنْزِلَ عَلَی الَّذِیْنَ

ایمان ښکاره کړئ په هغه څیز چه نازل کړې شوې دې په هغه کسانو باندې

اٰمَنُوْا وَجْهَ النَّهَارِ وَاكْفُرُوْٓا

چه ایمان ئې راوړې دې په اول د ورځ کښ او کفر اوکړئ

اٰخِرَهٗ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٧٢﴾

په آخر د ورځ کښ دپاره چه دوی (مؤمنان) واپس شي (کفر ته).

س ٧٢:- په دې آیت کښ د دوی شپږم خباثت ذکر کوی چه هغه د خپلو ملګرو (چه اسلام ئې قبول کړې وؤ) د مرتد کولو دپاره حیله د منافقت جوړولو ده۔

طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ، طائفه جماعت ته وئیلې شي او په یو شخص باندې هم اطلاق کیدیشي او مراد د دینه غټ علماء دی۔ او مامور لهم پټ دې یعنی غټو علماؤ د دوی بعضې کشرانو علماؤ ته اوئیل۔

اٰمِنُوْا، مراد د دینه ایمان په ژبه سره ښکاره کول دی۔

بِالَّذِیْٓ اُنْزِلَ عَلَی الَّذِیْنَ، مراد د دینه قرآن دې ټول یا بعضې احکام د هغې لکه کعبې ته مخ کول په مونځ کښ۔

وَجْهَ النَّهَارِ، دا ظرف دې دپاره د اٰمِنُوْا، وَجْهَ په لغت کښ مخې د هر څیز ته وئیلې شي دلته مراد اول د ورځې دې یعنی د زوال نه مخکښ وخت۔

وَاكْفُرُوْٓا اٰخِرَهٗ، ٗه ضمیر ورځ ته راجع دې او اخر د هغې مازیګرې دې۔

لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ، ضمیر راجع دې ټولو مؤمنانو ته یا هغه مؤمنانو کتابیانو ته چه ایمان ئې راوړې وؤ۔ او دا حیله

وَلَا تُؤْمِنُوْٓا اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ

او خبره مه منئ (دَ هيچا) مگر دَ هغه چاچه تابعداري کوي

دِيْنَكُمْ ؕ قُلْ اِنَّ الْهُدٰى

دَ دين ستاسو ته اُوايه يقينًا (صحيح) هدايت

هُدَى اللّٰهِ ۙ اَنْ يُّؤْتٰٓى اَحَدٌ

خو هدايت (دين) دَ الله تعالیٰ دے آيا ورکيدے شي بل چاته

مِّثْلَ مَآ اُوْتِيْتُمْ اَوْ يُحَآجُّوْكُمْ

پشان دَ هغې چه تاسو ته درکړے شوے دے يابه دوي جګړه اوکړي تاسو سره

عِنْدَ رَبِّكُمْ ؕ قُلْ اِنَّ الْفَضْلَ

په نيز دَ رب ستاسو ته اُوايه يقينًا فضل

بِيَدِ اللّٰهِ ۚ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ؕ

په لاس دَ الله تعالیٰ کښ دے ورکوي دغه فضل هغه چاته چه اوغواړي

وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ۚۙ ﴿٧٣﴾

او الله تعالیٰ فراخ فضل والا دے عالم دے په هر څيز۔

دَ دوي بِنا وه دَ دوي په غلط ګمان باندے يعني دوي ګمان کوؤ چه ايمان دَ دے صحابو په تقليد باندے بِنا دے او تقليد خو په شك غورځولو سره باطليږي ليکن ايمان دَ هغوي په علم او يقين سره وؤ دَ هغې ابطال په تشکيك سره نشي کيدلے۔

۷۳ :. په دے آيت کښ دَ دوي اووم خباثت ذکر کوي۔ چه هغه وصيت کول دي په دين باطل سره سره دَ ضد او حسد نه۔ او دا ايت تتمه دَ مخکښ آيت ده او عطف دے په مخکښ اٰمَنُوْا باندے دَ قالت دَ لاندے داخل دے يعني و ئيلے دي مشرانو دَ دوي خپلو کشرانو ته عمومًا يا هغه کسانو ته چه

راليږلے ئےوۇ دَ اظهار دَ ايمان دَ پاره په اول دَ ورځ كښ.
قرطبي او صاحب اللباب وئيلے دى چه دا ايت په دے سورت كښ
ډير مشكل دے وجه دَ اشكال ئے دا ده چه په ديكښ احتمالات
او توجيهات مختلف دى اول دا چه وَلَا تُؤْمِنُوْا ، ابن عطيه
وئيلى دى چه اجماع ده دَ مفسرينو چه دا قول دَ يهوديانو
دے خپلو كشرانو ته او قرطبي يو احتمال ذكر كړے دے چه دا
قول دَ الله تعالىٰ دے مؤمنانو ته دَ پاره دَ كلكولو دَ زړونو
دَ هغوى - ليكن په ديكښ اول قول غوره دے - دويم دا
چه ايمان په لفظ وَلَا تُؤْمِنُوْا كښ په معنىٰ دَ تصديق سره
دے (ايمان شرعى) او لِمَنْ كښ لام زائد دے په معنىٰ
دَ اقرار او اعتراف او تصديق لغوى دے او لام دَ دے صله
ده يا ايمان په معنىٰ دَ اظهار دَ ايمان دے چه په اول دَ ورځ
كښ دے او په مخكښ آيت كښ ذكر دے اٰمِنُوْا - دريم دا
چه مستثنىٰ مِنْهُ دَ اِلَّا نه مخكښ پټه مراد ده يعنى لَا تُؤْمِنُوْا
لِاَحَدٍ، يا مستثنى مِنْهُ اَنْ يُّؤْتٰى اَحَدٌ الخ دے او مستثنىٰ
ئے مخكښ راوړيده - خو دا قول ضعيف دے ځكه چه
تقديم دَ مستثنىٰ او په مينځ كښ ډيره فاصله دَ بليغ كلام
سره مناسب نه ده -
لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ ، په ديكښ دوه احتمالونه دى اول دا چه
مراد دَ دينه خپل انبياء دَ بنى اسرائيلو او خپل علماء
دى يعنى دَ بنى اسرائيلو نه سيوا دَ بل چا دَ پاره رسالت
او دَ بل عالم غير دَ بنى اسرائيل نه تصديق مه كوئ او
خبره ئے مه منئ - دويم احتمال دا چه هغه خلق چه تابع
وۇ دَ بنى اسرائيلو او اوس ئے اسلام قبول كړے دے
نو هغوى ته په اول ورځ كښ خپل ايمان ښكاره كړئ او په
آخر دَ ورځ كښ كفر اوكړئ نو دغه ملګرى به دَ اسلام نه
واپس را اوګرځى -
قُلْ اِنَّ الْهُدٰى ، په ديكښ دوه احتمالات دى اول دا چه

دا جواب دَ هغوی دَ قول لَا تُؤْمِنُوْا اه دے یعنی دوی هدایت په خپل قوم کښ منحصر کوی نو ته ورته اووایه چه هدایت په دین دَ الله تعالیٰ کښ منحصر دے اَلْهُدٰی نه مراد صحیح هدایت او دین دے او هُدَی الله نه مراد هغه دین دے چه الله تعالیٰ په خپلو کتابونو کښ او بیا په قرآن کښ رالیږلے دے۔ دویم احتمال دا چه دا جمله معترضه ده په مینځ دَ لا تؤمنوا او دَ مفعول دَ هغے کښ چه ان یوتی اه دے۔

هُدَى اللهِ، په دیکښ دوه احتمالونه دی اول احتمال دا دے چه هُدَى اللهِ خبر دے دَ اِنَّ دَپاره دویم احتمال دا چه هُدَى الله بدل دے دَ الهدی نه او خبر روستو ذکر دے۔

اَنْ یُّؤْتٰۤی اَحَدٌ مِّثْلَ مَآ اُوْتِیْتُمْ، په دیکښ پنځه احتمالات دی اول دا چه دا مفعول دے دَ اول لَا تُؤْمِنُوْا دَپاره لکه چه مخکښ ذکر شو۔ دویم احتمال دا چه دا مفعول دے دَ پټ ولا تؤمنوا دَپاره یعنی یهودیانو خپلو کشرانو ته اوئیل چه دا مه منئ چه ستاسو او زموږ نه سیوا به بل چالره نبوت او کتاب او نور نعمتونه ورکړیشی یعنی دا اخری نبی او دَ هغه دین مه قبلوئ۔ دریم احتمال دا چه دلته همزه دَ استفهام پټ دے او هغه په قراءت دَ ابن کثیر (قاری) او ابن محیصین او حمید کښ موجود دے یعنی آاَنْ یُّؤْتٰۤی او دا هم په قول دَ یهودیانو کښ داخل دے یعنی قَالُوْا آاَن یؤتی، او دا استفهام انکاری دے۔ څلورم احتمال دا دے چه هدی الله بدل شی دَ الهدی نه او اَن یؤتی خبر دے دَ ان الهدی دَپاره نو داخل دے لاندے دَ قل نه۔ پنځم احتمال دا دے چه اَنْ نه مخکښ لام تعلیلیه پټ دے تقدیر عبارت دا دے قُلْتُمْ مَا قُلْتُمْ وَدَبَّرْتُمْ مَا دَبَّرْتُمْ لِاَنْ یُّؤْتٰۤی اَحَدٌ اه۔

یُحَآجُّوْکُمْ عِنْدَ رَبِّکُمْ، په دیکښ هم احتمالات دی اول دا

يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ

خاص کوی په رحمت خپل سره هغه چالره چه اوغواړی

وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۷۴﴾

او الله تعالیٰ خاوند د فضل لوی دے ۔

عطف دے په يؤتي باندے دَ اَنْ دَ لاندے داخل دے نو
په دیکښ هغه احتمالات دی چه په اَنْ يؤتي کښ ذکرشول او
اَوْ دَ پاره دَ عطف دے لیکن په آخری احتمال (څلورم) کښ
اَوْ په معنیٰ دَ اِلیٰ اَنْ یا اِلَّا اَنْ سره دے نو دا په یحاجوکم
کښ دویم احتمال دے او مراد دَ محاجے نه په حجت کښ
غالب کیدل دی او عِنْدَ رَبِّکُمْ کښ دوه احتمالونه دی اول دا
چه په دنیا کښ په حکم دَ شرع کښ دوی په تاسو باندے
حجت قائم کړی او تاسو به مغلوب شئ ۔ دویم احتمال کښ
مراد دَ دینه قیامت دے ۔
قُلْ اِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ، په دیکښ اول احتمال دا دے چه کله
اَنْ يؤتي مستقل کلام شی نو دا دَ هغے جواب دے ۔ دویم
احتمال دا دے چه کله اَنْ يؤتي دَ مخکښ نه جزءِ اوګرځی
نو مستقل کلام دے دَ پاره دَ تسلیٰ دَ مؤمنانو ۔ تر دے
ځائے پورے تقریبًا څلیرویشت احتمالات ذکرشول دَ
دے نه علاوه نورهم شته دے چه مفسرینو لیکلی دی ۔
په دے ټولو کښ غوره قول دا دے چه لا تؤمنوا الا
مستقل کلام دے دَ یهودیانو دَ طرف نه خپلو کشرانو ته
او قُلْ اِنَّ الْهُدٰی دَ هغے جواب دے او اَنْ يُّؤْتٰٓی الخ دویم
قولِ مستقل دَ هغوی دے خپلو کشرانو ته او قُلْ اِنَّ
الْفَضْلَ دَ هغے جواب دے ۔
۷۴ :- دا هم داخل دے په جواب دَ یهودیانو کښ او الفضل
نه مراد علم دَ دین او توفیق دَ عمل دَ حق دے او نعمتونه
دی او دَ رحمت نه مراد رسالت او وحی ده هرکله چه

وَمِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ مَنْ إِنْ

او بعض دَ کتاب والو نه داسے دي که چرته

تَأْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُّؤَدِّهٖٓ إِلَيْكَ ۚ

امانت ورکړے هغه له لویه خزانه دربه کړي هغه تا ته

وَمِنْهُمْ مَّنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِدِيْنَارٍ

او بعض دَ دوي نه داسے دي که چرے امانت کیږدے ورسره یوه اشرفۍ

لَّا يُؤَدِّهٖٓ إِلَيْكَ إِلَّا مَا دُمْتَ

نه ادا کوي هغه تا ته (په هیڅ وخت) مګر خو پورے چه همیشه چه ته

عَلَيْهِ قَآئِمًا ؕ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ

دَ هغه په خوا کښې ولاړ ئې دا دَ دے وجے نه چه یقیناً دوي

قَالُوْا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيّٖنَ

وائی چه نیشته په مونږ باندے په مال دَ امیانو کښې

سَبِيْلٌ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ

هیڅ ګناه او دوي جوړوي په الله تعالی باندے

الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٥﴾

دروغ او دوي علم لري۔

فضل کښې لږ عموم وو او رحمت (په معنیٰ دَ رسالت) کښې خصوص دے دَ دے وجه نه دَ الفضل سره ئې یختص نه دے ذکر کړے او واسع ئې ورسره دَ عموم دَ پاره ذکر کړے او رحمت چه هر کله خاص مراد شي چه رسالت دے نو دے ته فضل عظیم وئیلے شي نو دا هم خاص دے دَ مطلق فضل نه۔

۷۵ :۔ په دے آیت کښې دَ دوي اتم خباثت ذکر کوي۔ په

مخکښې آیت کښې د دوی خیانت ذکر کړو په دین کښې او س د
دوی خیانت ذکر کوی په مالونو کښې - او په دے آیت کښې د
دوی دوه قسمونه ذکر کوی یو قسم امانت دار او دویم قسم
خیانت گر -

اول قسم مَنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُّؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ، مراد د قنطار
نه ډیر مال دے یعنی په ډیر مال کښې هغوی امانت داری
کوی نو لږ مال کښې خو په طریقه اولی سره کوی - قِنْطَارٍ،
د دے په مقدار کښې اختلاف دے اول قول یو زر او دوه سوه
اوقیه (اوقیه د څلویښت درهمو مقدار ته وئیلے شی) -
دویم قول دا چه د غوئی څرمن ډکه کړیشی - دریم قول
لس لاکھ دینار یا لس لاکھ روپئ - او تفصیل ئے په آیت
۱۴ کښې ذکر شوید ے -

دویم قسم د دوی وَمِنْهُمْ مَّنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِدِيْنَارٍ لَّا يُؤَدِّهٖٓ
اِلَيْكَ، مراد د دینار نه لږ مال دے چه په لږ مال کښې
خیانت کوی نو په ډیر کښې خو خامخا کوی باء په بقنطار
او بدینار کښې په معنیٰ د فی یا په معنیٰ د علی سره دے
ځکه چه د مِنْ په صله کښې علی ډیر استعمالیږی -

اِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا، دا استثناء مفرغ ده تقدیر د
عبارت داسے دے لَا يُؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ فِيْ جَمِيْعِ الْمُدَدِ وَالْاَ
زْمِنَةِ اِلَّا فِيْ مُدَّةِ دَوَامِكَ قَآئِمًا عَلَيْهِ، (نه ادا کوی تا ته
په ټولو مودو او زمانو کښې مگر په هغه موده کښې چه ته
ورسره او لاړ ئے) (یعنی هر وخت ورپسے ځے راځے) او
لفظ ما مصدریه او علیه متعلق دے په قائما پورے او د
ابن عباس رضی الله عنهما روایت دے چه مراد د قیام نه
هر وخت مطالبه کول او خصومت کول دی - او دا دلیل دے
چه په قرض داری پسے ملازمه (رانختل او گرځیدل)
جائز دی - او مقصد د استثناء دا دے چه ادائیگی د
یرے د الله تعالیٰ نه نه کوی بلکه د شرم او حیاء د خلقو

دَ وجے نه ئے کوی او دا قبیح صفت دے۔
فائده :- مراد دَ امانت نه عام دے که عین وی لکه چه ودیعت ورسره کیخودلے شی یا دین او قرض وی په سبب دَ عقد دَ خرڅولو یا اجاره وغیره کول۔

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ سَبِيلٌ، دا علت دَ خیانت ذکر کوی او اشاره ده چه دا خیانت کول دوی حلال او جائز ګڼړی او تحلیل دَ حرام شرعی خو صفت دَ کافرانو دے۔ فِي الْأُمِّيِّينَ، په اخستلو دَ مالونو دَ امیانو کښ۔ امیین نه مراد غیر کتابیان خلق دی۔ سَبِيلٌ، په معنیٰ دَ عذاب او ګناه او ضمان دے۔
فائده :- مفسرینو دَ دے استحلال ډیر وجوه لیکلے دی۔ اوله وجه، سخت تعصب دَ مخالفینو خپلو سره چه مالونه دَ هغوی په هره طریقه سره اخستل جائز ګڼړی۔ دویمه وجه، دوی وئیل مونږ اَبْنَاءُ اللهِ یو نو خلق زمونږ مریان دی او دَ مریانو مال مولاګانو لره اخستل جائز دی۔ دریمه وجه، مذهب دَ یهودو دا دے چه څوک دَ یو دین نه بل دین ته نقل شی که حق وی او که باطل وی نو دا مرتد دے او مال ئے حلال دے۔ په دے امت کښ هم اوس دا سے مبتدعین شته چه دَ بدعاتو په مختلفو طریقو سره دَ عوامو مالونه حاصلوی او وائی چه دا مونږ لره جائز دی او وائی چه مال موذی خور دغازی۔ کله وائی دا امیان زمونږ باغ باړئ دی۔

وَيَقُولُونَ عَلَى اللهِ الْكَذِبَ، په دیکښ دَ دغه استحلال دلیل ذکر کوی یعنی دوی وئیل چه دا جواز په تورات کښ ذکر دے او دا ئے دروغ وئیل نو دا ګناه دے دَ بل ګناه دَ پاسه (عذر ګناه بد تر از ګناه)۔
وَهُمْ يَعْلَمُونَ، دوی پوهیږی چه خیانت ګناه دے۔ او دوی پوهیږی چه دا په الله تعالیٰ باندے افتراء کول دی۔

بَلٰى مَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى

| بلکه | چا چه | پوره والے او کړو په لوظ خپل سره | او تقوٰی ئے او کړه |
|---|---|---|---|

فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۷۶﴾

| نو یقیناً | الله تعالیٰ | مینه کوی | دَ متقیانو سره - |
|---|---|---|---|

س۷۶:- هر کله چه مخکښ دوه قسمونه ذکر شول نو اوس دَ اول قسم (امانت دار) دَ پاره بشارت ذکر کوی او دَ هغوی دوه صفتونه ئے ذکر کړے دی اول وفاء کول په عهد بان سے دویم تقوی او دا دواړه اسباب دی دَ پاره دَ امانت دارئ - بَلٰى، دا جواب دَ قول دَ دوی دے چه لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْاُمِّيّٖنَ سَبِيْلٌ، په طریقه دَ هغه چه دوی دَ گناه نفی کړے ده یعنی داسے نه ده لکه چه دوی وائی بلکه په دوی بان سے گناه شته دے - په دے قول سره دلته وقف دے او مَنْ اَوْفٰى نو دے کلام شورو دے اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ ضمیر راجع دے مَنْ ته یا الله تعالیٰ ته یعنی خیانت په مال او په دین کښ نه کوی او لویه وفا دَ کتابیانو دا ده چه په آخری نبی صلی الله علیه وسلم او په قرآن بان سے ایمان اولری. وَاتَّقٰى، یعنی ځان دَ افتراء علی الله او دَ خیانت نه بچ اوساتی او په خپل کتاب کښ تحریف او کتمان او تلبیس نه کوی - یعنی دَ دے آیت نه وړان سے چه کوم خبا ثتونه ذکر شول دَ هغے ټولو نه ځان بچ اوساتی -

فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ، دلته ئے المتقین اسم ظاهر په ځائے دَ ضمیر (هم) کښ راوړلو اشاره ده چه سبب دَ محبت دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه تقوی ده که په کتابی کښ وی او که غیر کتابی کښ وی -

اِنَّ الَّذِیۡنَ یَشۡتَرُوۡنَ بِعَهۡدِ
یقیناً هغه کسان چه اخلی په لوظ (کتاب د هغه)

اللّٰهِ وَ اَیۡمَانِهِمۡ ثَمَنًا قَلِیۡلًا
د الله تعالیٰ او په قسمونو خپلو دنیا معمولی

اُولٰٓئِکَ لَا خَلَاقَ لَهُمۡ فِی
دغه کسان نیشته هیڅ برخه (د ثواب) دوی لره په

الۡاٰخِرَةِ وَ لَا یُکَلِّمُهُمُ اللّٰهُ
آخرت کښ او خبرے به نه کوی دوی سره الله تعالیٰ

وَ لَا یَنۡظُرُ اِلَیۡهِمۡ یَوۡمَ
او نه به نظر کوی دوی ته په ورځ د

الۡقِیٰمَةِ وَ لَا یُزَکِّیۡهِمۡ ۪ وَ لَهُمۡ
قیامت او نه به پاکوی دوی لره او د دوی دپاره

عَذَابٌ اَلِیۡمٌ ﴿۷۷﴾
عذاب دردناک دے۔

۷۷: په دے آیت کښ د دویم قسم (چه خیانتګر دے) دپاره تخویف اخروی ذکر کوی په تقابل د صفتونو سره۔ مخکښ آیت کښ اَوۡفٰی بِعَهۡدِهٖ وَاتَّقٰی ذکر کړے وو نو په دیکښ د هغے مقابل ذکر کوی چه هغه ماتول د عهد د الله تعالیٰ دی او په هغے سره حرامه دنیا حاصلول دی۔ اِنَّ الَّذِیۡنَ یَشۡتَرُوۡنَ بِعَهۡدِ اللّٰهِ، دلته هم د مخکښ آیت پشان عهد الله عام دے په دے داخل دے په هغے کښ ایمان په آخری رسول او قرآن باندے او په هغه احکامو چه په تورات او انجیل کښ ذکر دی یا په قرآن کریم کښ۔ او اشتراء

ئې دا سې ده چه دَ هغې تحریف کوي او باطل تاویل یې کوي او دَ هغه حکمونو مخالفت کوي یا یې کتمان کوي دَ پاره دَ حصول دَ مال دَ دنیا - یا دَ جاه او اقتدار دَ پاره په حرامه طریقه اجرت اخستل یا په رشوت اخستلو سره یا په نورو حراموطریقو سره -

وَاَيۡمَانِهِمۡ، دا تخصیص دے روستو دَ تعمیم نه ځکه چه په عهد الله کښ قسم کول په نوم دَ الله تعالیٰ پاندے داخل دي او په دیکښ هغه قسمونه دَ دوی داخل دي چه مخکښ دَ راتللو دَ نبي صلی الله علیه وسلّم نه کتابیانو وئیلے وو چه مونږ به ضرور په دے نبي باندے ایمان راوړو او نصرت به یې کوو لکه چه دَ يَسۡتَفۡتِحُوۡنَ په تفسیر کښ تیر شویدي - دا رنګ قسمونه دَ مشرکانو عوامو چه مونږ به په کتاب او آیاتونو او نبي دَ الله تعالیٰ باندے ایمان راوړو لکه په سوره انعام ۱۰۹ او ۱۵۷ او سوره فاطر ۴۲ کښ ذکر دي دا رنګ په وخت دَ خرڅولو دَ یو مبیعه (ساماَن) کښ په دروغه قسمونه کول دَ پاره دَ دے چه اخستونکی ته دهوکه ورکړي په سبب دَ حدیث دَ مسلم دَ (کتاب الایمان) کښ او حدیث دَ بخاري کتاب التوحید او کتاب الایمان والنذور په دیکښ داخل دي.

ثَمَنًا قَلِيۡلًا، دَ دے تفسیر په سوره بقره کښ ذکر کړے شوے دے - دَ داسې کسانو پنځه سزا ګانې ذکر کوي -

اوله سزا اُولٰٓئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمۡ فِى الۡاٰخِرَةِ ، مراد دَ خلاق نه حِصّهٔ دَ خیر او دَ ثواب ده - او په دے سزا کښ دوه مرتبے دي اوله دا چه دغه اشتراء درجے دَ کفر ته رسیدلے وي یعنی اصول دَ ایمان یې برباد کړے وي نو ټول عملونه دَ خیر یې حبط شویدي نو هیڅ ثواب یې نیشته دے - دویمه مرتبه دا چه دا اشتراء درجے دَ کفر ته نه وي رسیدلے نو په کوم اعمالو

وَإِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيقًا يَلْوُنَ
او يقيناً | دَ دوی نه | خوامخواه يو ډله ده | تاوئ

أَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتٰبِ لِتَحْسَبُوهُ
ژبې خپلې | په لوستلو دَ كتاب سره دَ دې دَ پاره چه تاسو گمان اوکړئ | په هغه باندې

مِنَ الْكِتٰبِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتٰبِ
دَ كتاب دَ الله تعالىٰ | او نه دے هغه | دَ كتاب دَ الله تعالىٰ نه

او حکمونو (فروعات) باندې چه دنيا غوره كړې وی نو دَ هغې ثوابونه دَ آخرت دوی ته نه حاصليږی ځکه چه په اجرت دَ دنيا سره دَ آخرت اجر باطليږی۔

دویمه سزا وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ، دا اسے په سوره بقره ۱۷۴ کښ تیرشویدی مراد تریته داچه دَ خوشحالئ خبرې به ورسره نه کوی (طبری)۔

یاداچه هیڅ خبرې به ورسره پخپله نه کوی بلکه دَ ملائیکو په ذریعه به ورسره حساب کوی۔ یا داکنایه ده دَ ناراضگئ نه۔

دریمه سزا وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، نفی دَ نظر په اعراض کولو سره ده یا مراد نظر رحمت او شفقت دے۔ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، دَ لا يكلمهم او لا ينظر دواړو دَپاره ظرف دے۔

څلورمه سزا وَلَا يُزَكِّيهِمْ، دَ دوی ثناء (تعریفونه) به نه کوی، دَ دوی مرتبې به نه اوچتوی دوی به دَ اثر دَ گناهونو نه نه پاکوی۔

پنځمه سزا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ دَ دې پنځه سزاگانو وجه دا ده چه هر کله دلته پنځه جرمونه ذکر وو۔ ع۱ عهد ماتول۔ ع۲ دَ هغې مقابلے کښ دنیا غوره کول۔ ع۳ په دروغه باندې قسم کول۔ ع۴ دَ الله تعالىٰ

وَيَقُولُونَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

او دوی وائی چه دا دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دے

وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

او نه دے هغه دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه

وَيَقُولُونَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ

او دوی جوړ وی په الله تعالیٰ باندے دروغ

وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿۷۸﴾

او دوی پوهیږی.

دَ نوم بے عزتی کول. ۵ او دهوکه کول. دَ دے وجے نه دَ دے پینځه مناسب سزاګانے ذکر شوی دی. او دا سے په سوره بقره ۱۷۴ کښ هم تیر شویدی هلته صرف کتمان حق او دنیا غوره کول او خوراک کول دَ حرامو او حرام لره حلال ګرځول ذکر وو نو دَ هغوی مناسب یے هلته خلور عذابونه ذکر کړے دی.

۷۸ :- په دے آیت کښ دَ دوی تهم خباثت ذکر کوی او دَ اشتراء بالعهد دَ پاره کیفیت ذکر کوی چه هغه تحریف او افتراء علی الله ده. هر کله چه دَ مخکښ صفاتو او دَ دے صفاتو (چه په دے آیت کښ ذکر دی) پوره مناسبت دے دَ یو بل سره دَ دے وجے نه په طریقه دَ عطف سره یے ذکر کړل.

وَاِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيْقًا يَّلْوٗنَ اَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتٰبِ، يلوٗنَ دَ لوی یَلْوِیْ نه اخستلے شویدے او دَ یَلْوٗنَ واو په همزه سره بدل شوے دے لځ په اصل کښ الوول دَ خیز دی دَ نیغ والی نه کوږ والی طرف ته.

بِالْكِتٰبِ، حال دے په تقدیر دَ ناطقة بالكتب سره

یا متعلق دے په یلوٰن پورے په معنیٰ دَ بقراءة الکتٰب - او
ژبے اړول په کتاب سره په ډیرو طریقو سره دی اوله
طریقه دا ده چه اراده اوکړی لفظ دَ تورات ته نو حرکات
وغیره ورله بدل کړی په داسے طریقه چه معنیٰ ئے هم
بدله شی او آوریدونکی گمان کوی چه دا عبارت دَ کتاب
الله دے - دا کار دوی په تورات او انجیل دواړو کښ کولو
او دا هم دَ تحریف یوه طریقه ده - دَ دے مثال په انجیل
کښ دا دے چه په هغے کښ راغلی وو وَ لَّدَ اللّٰهُ عِیسٰی
(پیدا کړے دے الله تعالیٰ عیسیٰ لره) نو دوی به لام
په شد کښ تخفیف کولو وئیل به ئے وَ لَدَ الله عیسیٰ او
په دے سره به ئے ولدیت دَ عیسیٰ دَ الله تعالیٰ دَ پاره
ثابتولو - دَ دے بل مثال لفظ دَ رَاعِنَا دے چه دوی په
هغے سره لَيِ اللسان کولو یعنی راعینا یا راعن او الف
به ئے اوږد کړو لکه په سورة نساء سږګ کښ ذکر دی. او
زمونږ امت کښ دَ دے مثال دا دے چه په قرآن کښ
ذکر دی چه قُلْ اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ، نو غلطے عقیدے
والا (چه دَ رسول دَ بشریت نه منکر دی) داسے لولی
اِنَّ مَا اَنَا بَشَرٌ یعنی دَ حرف ما نه نافیه جوړوی - دویمه
طریقه، دوی به په تورات کښ دَ نبی صلی الله علیه وسلم
دَ صفاتو عبارت بدل کړو او خپل عبارت به ئے اولوستلو
په وزن دَ قراءت دَ تورات نو آوریدونکو به خیال کوو
چه دا دَ تورات عبارت دے داسے زمونږ امت کښ هم شته
چه بعضے باطل پرست خلق څه عربی عبارت دَ اثبات
دَ غلطے عقیدے دَ پاره په وزن دَ قراءت دَ قرآن سره
اولولی نو آوریدونکی گمان اوکړی چه دا عبارت دَ قرآن
دے - او دَ دینه امام رازی په تشدق او تکلف سره تعبیر
کړے دے - دریمه طریقه ، امام رازی وئیلی دی چه
هغه آیا تونه چه دلالت ئے کولو په اثبات دَ نبوت دَ نبی

صلی اللہ علیہ وسلم تو پہ ھغے کښې یہ پورہ نظر پکار وؤ نو دوی بہ پہ ھغے باندې سوالونو او شبهات پیدا کړل تو پہ آوریدونکو بہ التباس راغے او دوی بہ وئیل چہ مراد دَ دې آیاتونو نہ دا دې څہ چہ مونږ وایو۔ (راو امام رازی) مثال پیش کوی چہ زمونږ پہ زمانہ کښې چہ یو حق والا یو آیت پہ دلیل کښې ذکر کړی نو باطل پرست پہ ھغې باندې اعتراض او شبہ کوی چہ دغہ مراد نہ دې چہ تاسو ترینہ اخلئ بلکہ ھغہ مراد دې چہ مونږ وایو لکہ آیات دَ توحید او دَ رد دَ مشرکانو او آیاتونہ دَ صفاتو دَ اللہ تعالیٰ۔

لِتَحْسَبُوْهُ مِنَ الْكِتٰبِ ، ہٗ ضمیر راجع دې ھغہ محرف تہ چہ يَلْوٗنَ پہ ھغے باندې دلالت کوی۔ یا دَ بالکتاب نہ مراد بِشِبْهِ الْكِتٰب دې او ضمیر دَ تحسبوہ ھغہ شبہ تہ راجع دې۔

وَ يَقُوْلُوْنَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ، دَ دې او دَ ما قبل جملے فرق پہ څو وجوھو سرہ دې۔ اولہ وجہ دا دہ چہ پہ يَلْوٗنَ اَلْسِنَتَهُمْ سرہ ئې تحریف کولو پہ غلط عبارت لوستلو سرہ او پہ دې جملے کښې تحریف دې پہ غلط نسبت کولو سرہ چہ دَ ځان نہ بہ ئې غلط عبارت جوړ کړو او دَ ھغے پہ اول کښې بہ ئې اوئیل قال اللہ تعالیٰ۔ دویمہ وجہ دا دہ چہ مخکښې الکتاب تہ مراد تورات وؤ او دلتہ مِنْ عِنْدِ اللہ کښې بہ ئې اشارہ کولہ نورو کتابونو الھیۂ تہ او پہ ھغے باندې بہ ئې غلطہ حوالہ ورکولہ۔ دریمہ وجہ دا دہ چہ اثبات دَ حکم شرعی پہ کتاب اللہ پورې خاص نہ دې کلہ پہ سنت یا اجماع سرہ ھم ثابتیږی او ھغے تہ ھم من عند اللہ وئیلے شی۔ اوس ھم دا سے مرضونہ پہ دې امت کښې موجود دی۔

وَ يَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ، دا عطف تفسیر دې

مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّؤْتِيَهُ

نه دی جائز هیڅ (داسے) بنده لره چه ورکړے وی هغه ته

اللّٰهُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ

الله تعالیٰ کتاب او پوهه دَ دین او پیغمبری

ثُمَّ يَقُوْلَ لِلنَّاسِ كُوْنُوْا

بیا دے اُووائی خلقو ته شئ تاسو

عِبَادًا لِّيْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ

عبادت کوؤنکی زما سِوا دَ الله تعالیٰ نه او لیکن

كُوْنُوْا رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنْتُمْ

شئ تاسو خدائے پرست خلق په سبب دَ دے چه تاسو

تُعَلِّمُوْنَ الْكِتٰبَ وَبِمَا كُنْتُمْ

تعلیم ورکوئ (خلقوته) دَ کتاب دَ الله تعالیٰ او په سبب دَ دے چه تاسو

تَدْرُسُوْنَ ﴿٧٩﴾

پخپله ئے لوستل کوئ۔

په ما قبل باندے یعنی په دغه دواړو طریقو کښ دَ دوی کار افتراء علی الله ده سره دَ علم نه چه دا افتراء ده او دا گناه عظیم دے۔

ف ٧٩ :۔ په دے آیت کښ دَ دوی لسم خباثت ذکر کوی او جواب دَ شبهے دَ دوی دے دَ پاره دَ اثبات دَ الوهیت دَ عیسیٰ علیه السلام او جواب دے په طریقه دَ ذکر دَ منافات دَ بشریت او دَ الوهیت۔ او دَ مخکښ آیت سره مناسبت دا دے چه هلته ئے زجر ورکړو چه دوی په الله تعالیٰ باندے دروغ وائی نو اوس ذکر کوی چه دوی په انبیاء علیهم السلام باندے هم دروغ وائی۔

وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ، بشر ټولو بنی آدمو ته وئیلے شی دا اسم جنس دے واحد او جمع دواړو دپاره استعمالیږی۔ دلته مراد په اعتبار د سبب نزول سره عیسیٰ علیه السلام دے ځکه چه نصارای وائي چه عیسیٰ علیه السلام مونږ ته امر کړے دے چه ځما او ځما د مور عبادت کوئ ځکه ستاسو ذمه وار د نجات یم۔ او د دے متعلق سوال او جواب په قیامت کښ په سوره مائده ۱۱۶ کښ ذکر دے۔ یا مراد د دینه محمد صلی الله علیه وسلم دے بنا په یو روایت د ابن عباس رضی الله عنهما او د عطاء چه یو یهودی او نصرانی اوئیل چه یا محمده ته غواړے چه مونږ ستا عبادت اوکړو او ستا نه رب جوړ کړو نو هغه اوفرمائیل معاذ الله چه ځه دے امر اوکړم په عبادت د غیرالله۔ دا رنګ په دیکښ اصلاح د هغه صحابه کرامو هم مقصد ده چه هغوی وئیل چه مونږ ته اجازت اوکړه چه تا ته سجده (د اکرام) کوو نو هغه منع اوکړله او اوفرمائیل ئے چه وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَأَكْرِمُوا أَخَاكُمْ (حدیث)۔ دا ټول مصداقات ابوحیان او صاحب اللباب او قرطبی وغیره ذکر کړی دی۔ او په اعتبار د عموم د بشر سره ټول هغه بندګان په دیکښ داخل دی چه روستو صفتونه ورله هم ثابت دی یعنی انبیاء علیهم السلام خو دعوی د الوهیت بالکل نه کوی او نور بندګان هم د دینه منع کړے شویدی۔

فائده :- ابوحیان وئیلی دی چه د ماکان استعمال په دوه قسم سره دے اول قسم نفی په اعتبار د عقل سره او دا نفی تام ده لکه دا آیت وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُنْبِتُوا شَجَرَهَا (نمل ۶۰) وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلَّا بِإِذْنِ اللّٰهِ (آلعمران ۱۴۵)۔ او دویم قسم نفی په طریقه د انبغاء (مناسب کنړل) سره یعنی مَا كَانَ لِابْنِ أَبِي قُحَافَةَ أَنْ

يَتَقَدَّمَ فَيُصَلِّيَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -
اوځه وایم چه لفظ دَ ما کان په قرآن کریم کښې ۲۷ کرته دے
او استعمال دَ دے په شپږ وجوهو سره دے اوله وجه نفی دَ امکان
ده چه داکارکیدے نشی ممکن نه دے لکه په آل عمران ۱۴۵،
یونس ۱۰۰، رعد ۳۸، ابراهیم ۱۱، نمل ۶۰، قصص ۶۸، غافر
۷۸ او شوری ۵۱ - دویمه وجه په معنیٰ دَ لا ینبغی (مناسب نه
دی) او لا یجوز لکه په آل عمران ۱۶۱، نساء ۹۲، انفال ۶۷،
توبه ۱۱۳، ۱۲۰، ۱۲۲، یوسف ۳۸، فرقان ۱۸ او احزاب ۳۶،
۵۳ - دریمه وجه ما موصوله دے لکه په انعام ۱۳۶ کښې،
څلورمه وجه عدم قبولیت لکه په سوره توبه ۱۷ کښې - پنځمه
وجه اخبار په طریقه دَ بشارت دے پِنا په یو تفسیر سره په
سوره بقره ۱۱۴ - شپږمه وجه نفی دَ وجود په دے معنیٰ
سره ډیر استعمالیږی په صفت دَ الله تعالیٰ کښې لکه بقره ۱۴۳،
آلعمران ۱۷۹، انفال ۳۳ - او په صفت دَ مخلوق کښې لکه په
سوره بقره ۱۳۵، آلعمران ۶۷ او یونس ۱۹ کښې - او په صفت
دَ قرآن کریم کښې په سوره یونس ۳۷ کښې - او په دے آیت
کریمه کښې نفی دَ وجود ده په طریقه دَ اخبار سره دَ طرف
دَ الله تعالیٰ نه یعنی یو بشر کښې دا صفتونه متضاد نه وی (نبوت
او شرک ته دعوت ورکول) - یا په معنیٰ دَ لا ینبغی او لا یجوز
دے یعنی یو بشر نبی لره دعوت شرک ته جائز او مناسب
نه دے -

أَنْ يُّؤْتِيَهُ اللّٰهُ الْكِتٰبَ، مراد دَ دے نه قرآن یا انجیل دے
او تورات ته هم شامل دے -

وَالْحُكْمَ، مراد دَ دینه علم او فهم دَ دین دے یا احکام دی
چه دَ هغے نه تعبیر په سنت او حدیث سره کیدلے شی -

وَالنُّبُوَّةَ، دا رسالت ته هم شامل دے -

أَنْ يُّؤْتِيَهُ، اسم دَ کان دے او بشر خبر مخکښې دے
دَ پاره دَ دے چه ضمیر دَ یؤتیه او یقول ورته راجع شی

او ثُمَّ يَقُوْلَ لِلنَّاسِ عطف دے په يؤتيه بانذے او ديته عطف لازمه وئيلے شي ځکه چه بغير دَ ذکر دَ دے معطوف نه معنٰی نه صحيح کيږي او مقصود په ديکښ نفي دَ دے معطوف ده يعنې داسے بشرخوشته دے چه الله تعالٰی ورته کتاب اوسنت اونبوت ورکړے وي ليکن دا قول دَ هغه دَ طرف نه خلقوته نيشته دے چه کُوْنُوْا عِبَادًا لِّيْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ، بعضے مفسرينو دَ لفظ عباد او عبيد په استعمال کښ فرق کړيدے په داسے طريقے سره چه لفظ عباد په مقام دَ عزت او اکرام کښ ذکر کيږي او لفظ عبيد په مقام دَ تحقير کښ ذکر کيږي - ليکن په دے بانذے ابوحيان اعتراض کړيدے - او بعضو وئيلے دي چه دَ دوي فرق دا دے چه لفظ دَ عباد جمع قياسي دَ عبد دَ پاره ده او لفظ دَ عبيد جمع غير قياسي ده او مدلول دَ دواړو يو دے او لفظ عبيد دَ آياتونو په آخر کښ دَ موافقت دَ فواصلو دَ پاره ذکر کړے دے - او بل فرق دا دے چه عباد لفظ ملائکو او انسانانو

اوجناتو صالحينو

غير صالحينو ټولو ته عام استعماليږي او لفظ دَ عبيد په انسانانو اوجناتو ( مکلفينو ) پورے خاص دے او دلته مراد دَ عبديت نه دَ تعبد دے عبديت دَ ملکيت نه دے او لفظ دَ من دون الله په دے بانذے دلالت کوي -

وَلٰكِنْ ، په لفظ دَ ولکن کښ اثبات دَ هغه لفظ وي چه مخکښ دَ هغے نفي کړے شوے وي يعنې ولکن يَّقُوْلُ -

كُوْنُوْا رَبّٰنِيّٖنَ ، دا جمع دَ رباني ده او په ديکښ دوه قولونه دي اول قول دَ سيبويه دے هغه وئيلي دي چه منسوب دے رب ته الف نون په ديکښ زياتي دي دَ پاره دَ مبالغے او په مقام دَ نسبت کښ دا زيادت استعماليږي. نو معنٰی دَ دے منسوب ده رب ته يعنې عالم دے دَ هغه په ربوبيت بانذے او هميشوالے کوي دَ هغه په طاعت

کولو بانده نو معنیٰ دَ دے خدائی یا خدا پرست سړے دے.
او هغه وئیلی دی چه ربانی لفظ خاص دے په علم بالرب
پورے نور علمونو والا ته نشی وئیلے - او دویم قول دَ
مبرد دے هغه وئیلی دی چه دا جمع دَ ربان ده په معنیٰ
دَ مُعَلِّمُ دَ خیر چه انتظام کوونکے وی او دَ خلقو دینی کارونه
سه پیژنی - او مفسرینو په دیکښ ډیر اقوال نقل کړے دی
اول قول دَ علی او ابن عباس رضی الله عنهم دے چه مراد
نقهاء علماء او عمل کوونکی دی په علم بانده - دویم
قول دَ قتاده دے چه مراد علماء او حکماء دی - دریم قول
دَ سعید بن جبیر دے چه مراد عالم باعمل دے او تعلیم
ورکوونکے نورو خلقو ته - بخاری وئیلی دی چه هغه څوک
چه تربیت دَ خلقو کوی په جزئیاتو دَ مسائلو سره ( دَ
دے دَ پاره چه خلق ور بانده عمل اوکړی ) مخکښ دَ
کلیاتو او قواعدو دَ علمونو نه - او نور اقوال هم شته دے
لیکن غوره دا ده چه روستو دَ دے دَ پاره تفسیر ذکر دے
په ذکر دَ سبب دَ ربانیت سره چه بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُوْنَ
الْكِتٰبَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُوْنَ ، تعلمون په معنیٰ دَ خپله
لوستلو او ایزده کولو سره او تدرسون په معنیٰ دَ درس کولو ته خلقو ته
یا په عکس سره دے او دا غوره دے اول صفت دَ ربانیت دَ امتیاز دَ پاره
دے دَ دے وجے نه ئے هغه مخکښ ذکر کړو حاصل دا دے
چه په تمام تعلیم دَ کتاب الله سره ربانیت حاصلیږی او
سوره مائده ۴۴ کښ ذکر کړیدی چه ربانیین هغه
دی چه دَ الله تعالیٰ په کتاب بانده فیصلے کوی او دَ هغے
کتاب علم او حفاظت کوی -
فائده ۱۰ :- دا آیت دلیل دے چه هر کله دَ یو نبی صاحب
دَ کتاب دَ پاره جائز نه دی چه دعوت اوکړی خپل عبادت
ته نو بل هیڅ مؤمن لره په اولیٰ طریقے سره دا جائز
نه دی (حسن بصری) -

وَإِذْ أَخَذَ اللّٰهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّنَ

او کوم وخت چه واغست الله تعالیٰ پوخ لوظ دَ پیغمبرانو (مخکنو) نه

لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّ

خو اهخواه هغه چه درکړے دے ما تاسو ته څه کتاب او

حِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ

سنت بیا راشی تاسو ته رسول

مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ

چه تصدیق کوؤنکے وی دَ هغه چه تاسو سره وی ضرور ایمان به راوړئ

بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ ؕ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ

په هغه یانے او ضرور مدد به کوئ دَ هغه او فرمائیل الله تعالیٰ آیا تاسو اقرار اوکړو

نه او مراد دَ امر نه اذن او اجازت ورکول دی او په دے معنیٰ سره هغه حدیث هم دے چه لَوْ كُنْتُ آمِرًا اَنْ يَّسْجُدَ اَحَدٌ لِاَحَدٍ لَاَمَرْتُ الْمَرْءَةَ اَنْ تَسْجُدَ لِزَوْجِهَا - دلته هم امر په معنیٰ دَ نفس اذن ورکولو سره دے۔

اَرْبَابًا ، جمع دَ رب ده دلته په عامه معنیٰ سره مراد دے تصرف او تدبیر دَ عالم چلوؤنکے په حکم تکوینی او حکم تشرعی جوړولو سره یا مراد خاصه معنیٰ ده یعنی معبود۔

اَيَاْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ اِذْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ، دا دلیل دے چه غیر الله که هغه ملائک - او انبیاء وی او که بتان وغیره وی رب جوړول دَ هغوی په خاصه معنیٰ او عامه معنیٰ سره کفر او ارتداد دے دَ اسلام نه۔

فائده :- ابوحیان وئیلی دی چه په دیکښ اشاره ده چه کفر ټول ملت واحده دے ځکه هغه چا چه ملائک ارباب گنړلے دی هغه صابئین او بت پرست دی او هغه چا چه انبیاء علیهم السلام ارباب گنړلے دی هغه یهود او نصاریٰ او مجوس

وَأَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ إِصْرِيْ ؕ

او قبول کړے دے تاسو په دے باندے وعده زما

قَالُوْٓا أَقْرَرْنَا ؕ قَالَ فَاشْهَدُوْا

دوی اُویل مونږ اقرار کوؤ او فرمائیل الله تعالٰی نو گواه شئ

وَأَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿٨١﴾

او زه تاسو سره د گواهئ ورکونکو نه یم۔

دی او ټولو ته یې نوم د کفر کیخودلے دے۔

ف۸۱:۔ په دے آیت کښ د دوی یوؤ لسم خباثت ته اشاره ده ماخذ د اشارے ورپسے آیت دے او دا آیت تمهید دے یعنی د دے آخری نبی صلی الله علیه وسلم په باره کښ د ټولو انبیاؤ سابقینو ته وعده اخستلے شوے ده چه د ده تصدیق به کوئ او ملګرتیا به یې کوئ که د ده زمانه مو اوموندله او خپلو امتونو ته به هم دا وصیت کوئ لیکن یهودو او نصاراؤ د دے نبی صلی الله علیه وسلم د بعثت نه روستو د هغه نه انکار کړے دے۔او ربط یې د مخکښ آیت سره دا دے چه دوی سبب د انکار دا سے ګرځولو چه په دروغه یې وئیل چه دا نبی غواړی چه مونږ د ده عبادت اوکړو نو الله تعالٰی اول د دوی د دغه خبرے تردید اوکړو نو اوس د هغه نبی صلی الله علیه وسلم صدق ذکر کوی۔

وَإِذْ أَخَذَ اللهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ، په متعلق لفظ د اِذْ کښ درے اقوال دی۔اول قول، دا خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او لفظ اُذْکُرْ لَهُمْ (دوی ته یاد کړه) پټ دے۔ دویم قول، لفظ د اُذْکُرُوْا پټ دے او خطاب دے یهودو او نصاراؤ ته۔ دریم قول، دا متعلق دے په روستو قَالَ ءَأَقْرَرْتُمْ پورے۔ دا رنګ د دے میثاق په باره کښ د مفسرینو درے اقوال دی

اول قول دا دے چه دا میثاق د ټولو انبیاؤ سابقینو نه اخستلے شوے دے او مختص دے په محمد صلی الله علیه وسلم پورے او مراد د رسول نه آخری رسول دے او دا قول د علی او ابن عباس رضی الله عنهم نه روایت دے۔ دویم قول دا دے چه مراد د دینه هر رسول رو ستنے دے چه د هر رسول مخکنی نه د هغه په باره کښ میثاق اخستلے شوے دے او دا قول د طاؤس او حسن بصری نه نقل دے۔
دریم قول دا دے چه د دے په مینځ کښ منافات نیشته ځکه چه دویم قول مستلزم دے اول قول لره او دا ابن کثیر ذکر کړے دے۔ او د اول قول د تائید د پاره ابن کثیر صحیح حدیث ذکر کړے دے چه لَوْ كَانَ مُوسٰى حَيًّا لَمَا وَسِعَهُ الا اتباعی۔ او یو حدیث ئے ذکر کړے دے چه لَوْ كَانَ مُوسٰى وعیسٰی حیین لَمَا وَسِعَهُمَا، لیکن دا حدیث بے سنده دے دیته اعتبار نیشته۔ د دے جواب د متوفیك په تفسیر کښ مونږ ذکر کړیدے۔ دا رنګ د دے میثاق په کیفیت کښ هم اقوال دی اول قول دا دے چه د هر نبی په زمانه کښ هغه ته دا سے وحی کړے شوے ده چه د آخری رسول تصدیق او نصرت به کوئ دلته الله تعالی هغه ټول په دے لفظ النبیین کښ جمع کړل نو الف لام عهدی دی د محمد صلی الله علیه وسلم نه مخکښ ټول انبیاء مراد دی۔ دویم قول دا دے چه په عالم الذر کښ چه الله تعالی د آدم علیه السلام د شا نه اولاد راویستل نو درے وعدے تربینه واخستلے یو وعده د ټولو نه په باره د ربوبیت د الله تعالی کښ لکه په سوره اعراف ١٧٢ کښ ذکر ده دویمه وعده د ټولو رسولانو نه سره د آخری رسول نه په باره د دعوت کولو کښ او دا په سوره احزاب ٧ کښ ذکر ده او دریمه وعده د ټولو انبیاؤ مخکنو نه ماسیوا د آخری رسول نه په باره د تصدیق د

آخری رسول کښې هغه په دے آیت کښې ذکر ده۔ دریم قول دا دے چه په مخکنو کتابونو کښې دَدے نبی صفات ذکر دی نو هر کله چه دَ آخری نبی صفات دَ هغه لیکلو سره برابر شول چه په مخکنو کتابونو کښې وو نو دا پښتان دَ میثاق شو. په دیکښې اول قول غوره دے۔ دا رنګ دَدے میثاق په مؤثق علیهم کښې هم درے اقوال دی اول قول دا دے چه دا میثاق خاص دے په انبیاؤ پورے دویم قول دا دے چه ذکر دَ انبیاء دے او مراد تری ته امتونه دَ هغوی دی۔ دریم قول دا دے چه انبیاء سره دَ امتونو نه مراد دی۔ په دیکښې اول قول مستلزم دے دویم لره او دواړه غوره دی۔

لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ، لام دَ پاره دَ تاکید دَ جواب قسم دے او قسم په لفظ اخذ الله مِيْثَاقَ کښې اشارتًا ذکر دے۔ په لفظ دَ ما کښې ډیر اقوال دی اول دا چه ما شرطیه دے او مِنْ او ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ عطف دے په اٰتَيْتُكُمْ باندے او لَتُؤْمِنُنَّ جواب دَ شرط دے۔ او دویم قول دا دے چه سیبویه دَ خپل استاد خلیل نه دَ دے تپوس کړے وؤ نو هغه ورته وئیلی وؤ چه دا ما پښتان دَ الذی دے او لام دَ پاره دَ نفس تاکید دے مبتدا ده او من زیاتی خبر دے دَ الذی دَ پاره۔ او دریم قول دَ ابوعلی فارسی دے چه ما موصوله دے من کتاب بیان دَ ما دے او ثُمَّ جَآءَكُمْ په دے باندے عطف دے۔ څلورم قول دا دے چه ما موصوله دے او مفعول دے دَ پاره دَ پټ فعل یعنی وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَتُبَلِّغُنَّ النَّاسَ مَآ اٰتَيْتُكُمْ او مِنْ كِتَابٍ وَّحِكْمَةٍ دَ هغے بیان دے۔ پنځم قول دا دے چه ما په معنیٰ دَ مَهْمَا سره دے او په معنیٰ دَ ظرف سره دے۔ کِتَابٍ نه مراد وحی جلی ده دَ هر یو نبی او وَحِكْمَةٍ نه مراد وحی خفی ده دَ هر یو نبی۔

سوال :- هر نبی له کتاب نه دے ورکړے شوے ؟
جواب :- کتاب عام دے چه نازل کړے شوېوی په هغه باندے یا د مخکښ نبی نه ورته پاتے شوے وی او دوستنی نه حکم ورکړے شویوی د هغے کتاب په باره کښ د دے وجے نه انزلت علیکم ئے نه دے وئیلے بلکه اٰتَیْتُکُمْ ئے وئیلے دی۔
ثُمَّ جَآءَکُمْ رَسُوْلٌ ۔
سوال :- رسول خو انبیاؤ ته نه راځی ؟
جواب :- مراد دا چه که ستاسو په زمانه کښ بالفرض راشی یا ستاسو امتونو ته راشی ۔
مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَکُمْ ، دا صفت دلیل دے چه مراد د دینه محمد صلی الله علیه وسلم دے ځکه چه دا صفت د هغه په ډیرو آیاتونو کښ ذکر دے او د عیسٰی علیه السلام په باره کښ ذکر دے لیکن هغه خاص دے د تورات سره ۔
لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ ، ایمان او تصدیق یو والے د زمانے نه غواړی یعنی مخکښ انبیاء مکلف وو چه په آخری رسول به ایمان راوړی او د هغه رسالت او ختم نبوت به منئ۔
وَلَتَنْصُرُنَّهٗ ، د نصرت ډیر قسمونه دی اول دا چه په شرط د وجود سره د هغه په زمانه په جهادونو او غزاګانو کښ ملګرتیا اوکړی ۔ دویم دا چه خپلو امتونو ته تاکیدی حکم ورکړی چه د آخری نبی سره به مرسته کوئ او د هغه خلاف به نه کوئ ۔ دریم دا چه د هغه تصدیق، علامات او نښے به خپلو امتونو ته ذکر کوئ چه د هغے تحریف او نکړی ۔
فائده :- ابن کثیر په البدایه والنهایه او نورو اهل علمو لیکلے دی چه دا دلیل دے چه خضر علیه السلام مخکښ وفات شویدے ځکه که د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښ ژوندے وے نو په غزوه بدر، احد او احزاب وغیره کښ به ضرور موجود وے لیکن هیڅ د

صحابه کرامو نه وئیلې نه دی چه مونږ په یو غزوه کښې خضر علیه السلام لیدلې دے او حال دا دے چه هغه بشر وؤ په سترګو سره ضرور ښکاره کیدلو، هاں عیسیٰ علیه السلام ژوندے دے لیکن هغه په آسمان کښې دے او د آسمان نه راکوځیدل د هغه په اختیار کښې نه دی۔

قَالَ ءَ اَقۡرَرۡتُمۡ، فاعل د قال الله تعالیٰ دے او استفهام په دیکښې د تقریر او د امر په معنیٰ سره دے چه اقرار اوکړئ په دے میثاق باندے په ژبے سره لکه چه په زړه کښې هم تاسو تصدیق کوئ۔

وَ اَخَذۡتُمۡ عَلٰی ذٰلِکُمۡ اِصۡرِیۡ، اخذ په معنیٰ د قبلولو سره دے ذالکم اشاره ده لَتُؤۡمِنُنَّ بِهٖ وَ لَتَنۡصُرُنَّهٗ ته۔ اصر په لغت کښې تړلو ته وئیلې شی او مراد د دینه عهد دے چه ښه او تړلے شی یا مراد د اخذ نه د امتونو نه دا وعده اخستل دی۔

قَالُوۡۤا اَقۡرَرۡنَا، دا لفظ جواب د اولے جملے او دویمے دواړو ته شامل دے د دے وجے نه صرف نعم یے او نه وئیلو نو معنیٰ دا چه اقرار کوؤ په ایمان راوړلو سره په هغه باندے او په مدد کولو سره او اصر یے هم قبول کړے دے لیکن اول مستلزم دے دویم لره د دے وجے نه دویم یے حذف کړو۔

قَالَ فَاشۡهَدُوۡا، د دے یو معنیٰ دا ده چه امتونو ته دا بیان اوکړئ۔ شهادت په معنیٰ د بیان دے۔ دویمه معنیٰ دا ده چه په یو بل باندے ګواهان شئ په وخت د اقرار کولو کښې نو شهادت په معنیٰ د ګواهئ کولو دے۔ دریمه معنیٰ ګواهان شئ په ځان باندے په علم او په اقرار سره۔ یا دا خطاب دے ملائکو ته چه ګواهان شئ په دے میثاق اخستلو باندے۔

وَ اَنَا مَعَکُمۡ مِّنَ الشّٰهِدِیۡنَ، جمله حالیه ده یا استیناف دے

فَمَنْ تَوَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ

نو چا چه مخ وار وؤ (دَ دے رسول نه) روستو دَ دے (میثاق) نه

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۸۲﴾

نو دغه کسان خاص دوی لوے نافرمان دی۔

اَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ

آیا سِوا دَ دین دَ الله نه لټوی دا خلق (بل دین)

وَلَهٗٓ اَسْلَمَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ

او خاص دَ الله تعالیٰ دَ پاره تابعداری کوی هغه څوک چه په آسمانونو کښں دی

دَ پاره دَ تاکید۔

فائده :- ابن کثیر په تفسیر دَ دے آیت کښں لیکلی دی چه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم امام اعظم دے که په هره زمانه کښں وی او دَ ده طاعت دَ ټولو انبیاؤ په طاعت باندے مقدم دے دَ دے وجے نه په شپه دَ اسراء کښں دَ ټولو انبیاء امام وؤ او په ورځ دَ قیامت کښں به اول شفاعت کوؤنکے وی۔

۸۲ :- په دیکښں تعریض دے په یهودیانو او نصاراؤ باندے چه هغوی دَ دے رسول نه انکار کړے دے۔

فَمَنْ تَوَلّٰى ، چه اعراض اوکړی دَ ایمان نه پدے رسول باندے او دَ نصرت دَ ده نه۔

بَعْدَ ذٰلِكَ ، روستو دَ دے میثاق او اقرار نه یا روستو دَ شهادت کولو دَ رسولانو مخکښو نه۔

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ، فسق کامل مراد دے چه هغه کفر او نافرمانی ده۔

وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّاِلَيْهِ

او په زمکه کښ دي په خوشحالئ او په زور او خاص هغه طرف ته

يُرْجَعُوْنَ ﴿۸۳﴾

ټول ورګرځولے شي -

س۸۳ :- دا زجر متعلق دے دَ فَمَنْ تَوَلّٰى او دَ اَلْفٰسِقُوْنَ سره او دَ فا نه مخکښ معطوف عليه پټ مراد دے يعني اَيَتَوَلَّوْنَ وَيَفْسُقُوْنَ فَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ، يعني مخ ګرځول دَ ايمان دَ دے نبي نه او نا فرماني کول مستلزم دي طلب کولو دَ بل دين لره -

دِيْنِ اللّٰهِ، اضافت دَ دين الله تعالىٰ ته دَ دے وجے نه دے چه هغه دا دين جوړ کړے او مقرر کړے دے -

يَبْغُوْنَ، دَ طلب کولو نه مراد په هغے سره تدين او تعبد کول دي - او طلب ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو چه هر وخت دَ هغے نه بحثونه کوي -

وَلَهٗ اَسْلَمَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا، دا جمله حال دے دَ ما قبل نه، اَسْلَمَ په معنىٰ دَ استسلام، انقياد او تابعداري کولو دے په اعتقاد او په اقرار او په عمل کولو سره يا په معنىٰ دَ خضوع او عاجزي کولو دے حکم دَ الله تعالىٰ ته -

طَوْعًا غاړه کيخودل او حکم منل دي په خوښه او په آسانتيا سره او كَرْهًا حکم منل دي په مجبورئ او په تکليف سره - او په ديکښ ډير اقوال دي اول دَ حسن بصري نه روايت دے چه طوعًا ټول اسمانونو والا دي او زمکے والا بعضے طوعًا او بعضے کرهًا دي دَ يرے دَ قتل او دَ قيد کولو نه - دويم قول دَ مجاهد دے چه مؤمنان طوعًا منقاد دي او دَ کافرانو سوري کرهًا منقاد دي لکه په رعد س۱۵ کښ دي - دريم قول دَ شعبي دے چه کرهًا دعا دَ مشرکانو ده

# قُلْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ

ته اووایه ایمان راوړے مونږ په الله تعالیٰ باندے او په هغه کتاب چه نازل کړے شوے دے

په وخت د سختئ کښ لکه په سورة عنکبوت ۶۵ کښ۔ څلورم قول د کلبي دے چه طوعًا هغه خلق دي چه په اسلام کښ پیدا شوي دي او کرهًا هغه دي چه په زور سره ئے اسلام قبول کړے دے۔ پنځم امام رازي وئیلي دي چه په مسلمانانو تولو کښ دا دواړه صفتونه شته دے۔ یعني مسلمان تابع دي د امور دینیه په خوشحالئ سره او د فقر او مرضونو او مرګ په کره سره او کافران په هر حال کښ منقاد دي کرهًا۔

شپږم زمخشري وئیلي دي چه طوعًا هغه خلق دي چه دلیلونو او حجتونو ته ئے نظر کړیدے او اسلام ئے قبول کړے دے او کرهًا هغه دي چه د یرے د قتل نه یا په وخت د نزع کښ ایمان راوړي۔

اووم ابوحیان نقل کړیدي چه اسلم نه مراد اقرار کول دي په خالقیت د الله تعالیٰ سره اګرچه شرک في العبادت پکښ وي نو چاچه شرک پریخودلو دا طوعًا دے او چاچه شرک کوئ سره د اقرار د خالقیت نه نو دا کرهًا دے۔

اتم د عکرمه قول دادے چه چا بغیر د جګړے او د ضرورت د حجت نه ایمان راوړلو نو دا طوعًا دے او څوک چه په حجت سره مجبوره شو نو دا کرهًا دے۔

وَاِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ، په دیکښ تخویف اخروي ته اشاره ده چه د طوعًا او کرهًا دواړو صفتونو والو رجوع الله تعالیٰ ته ده او هغه به د هغے مناسب جزا او سزا ورکوي۔

عَلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ

په مونږ باندے او په هغه وحی چه نازل کړے شوې ده په ابراهيم عليه السلام

وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ

او اسمٰعيل عليه السلام او اسحاق عليه السلام او يعقوب عليه السلام

وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى

او اولادِ دَ يعقوب عليه السلام او په هغه کتابونو چه ورکړے شوے دی موسٰی عليه السلام ته

وَعِيْسٰى وَالنَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ص

او عيسٰی عليه السلام او نورِ پيغمبرانو ته دَ طرف دَ رب دَ دوی نه

لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ز

جدائی نه کوؤ مونږ (په ايمان راوړلو کښ) په مينځ دَ هيچا کښ دَ دوی نه

وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۸۴﴾

او مونږ يو خاص الله تعالٰی ته انقياد کوؤنکی (اخلاص کوؤنکی) -

ربط :- هر کله چه مخکښ آيت کښ زجر ذکر شو هغه چا ته چه دَ الله تعالٰی دَ دين نه غير بل دين غواړی نو په دے آيت کښ دعوت او تفصيل دَ الله تعالٰی دَ دين ذکر دے په مقابله دَ يهود او نصارا ؤ کښ. قُلْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ ، دا امر دے نبی صلی الله عليه وسلم ته ځکه چه هغه هم مکلف دے په ايمان شرعی او په اظهار دَ هغے باندے او دارنګ هر کله چه نبی صلی الله عليه وسلم خاص کړے شو په اخذ دَ ميثاق دَ انبياؤ سره نو دَ دے وجے نه ئے خاص کړو په دے آيت کښ په دعوت سره. او دَ دے آيت تفسير په سوره بقره ۱۳۶ کښ تير شوے دے ليکن فرق په دوه وجوهو سره دے اوله وجه دلته

اُنْزِلَ عَلَيْنَا او عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ دے او په هغه آيت کښ وَمَا اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَا اُنْزِلَ اِلٰى اِبْرَاهِيْمَ ذکر دے د دے حکمت دا دے چه په دے سورت کښ خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلّم او خطاب نبی صلی الله علیه وسلم ته د بره طرف نه بلا واسطه نازليږی نو دَ هغے سره عَلٰى مناسب دے او په سوره بقره کښ خطاب وو امت ته او هغوی ته خطابات په واسطه دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره رسيږی نو دَ هغے سره لفظ دَ اِلٰى مناسب دے (راغب) او بل حکمت دا دے چه انزل علیه په هغه ځائے کښ ذکر کیږی چه منزل علیه ته امر دَ تبلیغ وی نو معنیٰ دَ وجوب پکښ ده او په هغے باندے لفظ دَ عَلٰى دلالت کوی او دا مناسب ده دَ حال دَ انبیاؤ سره - او انزل الیه په هغه ځائے کښ ذکر کیږی چه خاص وی په منزل الیه پورے او دا مناسب ده دَ حال دَ امت سره - او تائید دَ دے فرق په سوره عنکبوت ۵ او په سوره نحل ۴۴ کښ دے - اگرچه دا فرق و نه همیشه نه وی کله دَ نبی سره الی او دَ امت سره عَلٰى هم ذکر کیږی لکه بقره ۲۵ او آلعمران ۲۷ کښ - دویمه وجه دَ فرق دا ده چه په سوره بقره کښ وَمَا اُوْتِيَ النَّبِيُّوْنَ او په دے آيت کښ وَالنَّبِيُّوْنَ ذکر دے حکمت دا دے چه په سوره بقره کښ خطاب عام وو او جواب وو دَ سوال دَ کتابیانو او دَ هغے سره بسط او تفصیل مناسب دے او په دے سورت کښ خطاب خاص دے او صرف اظهار دَ دین الهی مقصد دے نو په دیکښ اختصار مناسب دے.

فائده :- امام رازی وئیلی دی چه ایمان بالله بنیاد او اصل دے دَ پاره دَ ایمان بالکتب والانبیاء نو هغه ئے مخکښ ذکر کړو بیا ایمان په محمد صلی الله علیه وسلم او په قرآن باندے موقوف علیه دے دَ پاره دَ ایمان په نورو انبیاؤ او کتابونو دَ هغوی باندے۔

وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ

او چا چه اولټولو سوا دَ اسلام نه

دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ ج

بل دين نو هيچرې به قبول نه شي دَ هغه نه

وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٨٥﴾

او هغه به په آخرت كښ دَ تاوان والو نه وي.

بيا ئې وروسته هغه انبياء عليهم السلام ذكر كړل چه كتابيانو
دَ هغوی وجود په خپلو زمانو كښ منلے وؤ اګرچه دَ هغوی
په نبوت كښ اختلاف كوؤ او بيا ذكر دَ موسیٰ او عيسیٰ
عليهما السلام او دَ هغوی دَ كتابونو ئې څكه اوكړو چه كتابيانو
دَ هغوی نبوت منلو سره دَ اختلاف دَ دوی نه په باره دَ
عيسیٰ عليه السلام كښ.

س ٨٥ :- هر كله چه مخكښ آيت كښ تفصيل دَ اسلام ذكر شو
نو په دے آيت كښ زجر او تخويف اخروی دے په تبديل
دَ اسلام په بل دين سره.

وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ، ابتغاء دلالت كوی په طلب
كولو باندے سره دَ ډير بحث او كوشش كولو نه ليكن
دا كوشش ئې په باطل طريقے سره دے يعنی په ضد او عناد
سره دے. غَيْرَ الْاِسْلَامِ، مراد دَ اسلام نه دين دَ توحيد
دے يا مراد دَ دينه خاص شريعت دَ نبی صلی الله عليه
وسلم دے او دلته ايمان او اسلام مترادف (هم معنی) مراد
دی او دِيْنًا، زور دَ دهٔ په طريقه دَ مفعول سره دے او غير
الاسلام حال دے يا بدل دے دَ لفظ دَ غير نه يا په طريقه
دَ تميز سره دے دَ لفظ دَ غير نه په طريقه دَ تفسير سره
او وجه دَ تفسير كولو دا ده چه غير اسلام طلب كول دوه
قسمه دے اول دا چه هغه غير ته دين نه وائی صرف جهل

كَيْفَ يَهْدِي اللّٰهُ قَوْمًا

څه رنګ به توفیق ورکړي الله تعالیٰ (د حق) هغه قوم ته

كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ وَشَهِدُوْٓا

چه کفر یې کړے دے روستو د ایمان راوړلو د دوی نه او شهادت کړے دے دوی

اَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ وَّجَآءَهُمُ

چه یقیناً دا رسول حق دے او راغلي وُو دوی ته

الْبَيِّنٰتُ ط وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي

ښکاره دلیلونه او الله تعالیٰ توفیق (د هدایت) نه ورکوي

الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۸۶﴾

قوم ظالمانو (عنادیانو ته) .

او غفلت یې د مخالفت کولو سبب وی او دویم قسم هغه دے چه هغه غیر ته دین وائي په مقابله د اسلام کښ لکه یهود او نصارا چه مخالف د اسلام ته دین وائي دا رنګ مبتدع چه خلاف د اسلام (عقیده، عمل او قول) ته دین وائي۔ فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ، قبولیت په معنیٰ د صحت عند الله دے نو عدم قبولیت دا دے چه په هغې سره احکام د اسلام په دنیا کښ نه مرتب کیږي او نجات په آخرت کښ نه حاصلیږي۔

وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ، مراد د خسران نه په آخرت کښ محروم کیدل دي د ثواب او د جنت نه او داخلیدل دي جهنم ته په همیش والی سره۔

س ۸۶ :- په دے آیت کښ نخه د عدم قبولیت په دنیا کښ ذکر کوي چه هغه د هدایت د الله تعالیٰ نه محروم کیدل دي۔ او په دے آیت کښ د کتابیانو دو لسم خباثت ذکر کوي هغه دا چه د بعثت د نبی صلی الله علیه وسلم نه وړاندې

دوی دَ نبی صلی اللہ علیه وسلّم تصدیق کوۓ لیکن روستو دَ بعثت دَ هغه نه دَ هغه انکار ئې اوکړو۔

گَیْفَ، دَپاره دَ سوال دَحالاتو راځي لیکن دلته دَپاره دَ تعجیب یا دَپاره دَ انکار دے۔

یَهْدِ اللّٰهُ، مراد دَهدایت نه توفیق ورکول دَ هدایت دی ځکه نفسِ هدایت په لارخودلو او دلیلونو سره خو دَ الله تعالیٰ دَطرف نه شته دے۔

کَفَرُوْا بَعْدَ اِیْمَانِهِمْ، اشاره ده هغه تصدیق دَکتابیانو ته چه مخکښ دَ بعثت دَنبی صلی الله علیه وسلّم نه ئې کړے وۀ په دلیل دَ یَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَی الَّذِیْنَ کَفَرُوْا سوره بقره ۸۹ سره۔ او کفر نه مراد روستو دَ بعثت دَ هغه نه انکار کول دی او الفاظ دَآیت هر مرتد ته شامل دی۔

وَشَهِدُوْٓا اَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ، په دیکښ درے اقوال دی اول دا چه عطف دے په اِیْمَانِهِمْ باندے دَ قبیلے دَعطف دَخاص نه په عام باندے یا مراد دَایمان نه تصدیق دَ زړه دے او شهادت په معنیٰ دَ اقرار کولو دے او په ایمانهم کښ معنیٰ فعلی (ایمان راوړل) مراد ده نو عطف دَ فعل په هغے باندے صحیح دے۔ دویم قول، دا حال دے دَ فاعل دَ کفروا نه۔ دریم قول، دا عطف دے په کفروا باندے او واو دَپاره دَ ترتیب نه دے او الف لام په الرسول کښ دَ عهد دَپاره دی یعنی محمد رسول الله (صلی الله علیه وسلم)۔

وَجَآءَهُمُ الْبَیِّنٰتُ، دا عطف دے په شهدوا باندے دَ تاکید دَپاره یعنی شهادت دَدوی تقلیدًا نه دے بلکه روستو دَ ښکاره دلیلونو نه دے۔

وَاللّٰهُ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِیْنَ، مراد دَ ظلم نه ضد او عناد کول دی چه هغه سبب دے دَپاره دَ حرمان دَ هدایت۔ او په آخر دَآیت کښ ئې دا جمله دَ دے

أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ

د غسې کسان بدله د دوی داده چه یقیناً په دوی باندې دې

لَعْنَةَ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ

لعنت د الله تعالیٰ او د ملائکو او د خلقو

أَجْمَعِينَ ﴿٨٧﴾ خَالِدِينَ فِيهَا

ټولو دې. همیشه به وی دوی په هغې کښې

لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ

نه به شي سپکیدې د دوی عذاب (مقرر) د دوی

وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٨٨﴾

او نه به دوی له مهلت ورکیدې شي.

د پاره ذکر کړله چه اشاره اوشي هغه قسم کافرانو ته چه عنادیان دی ځکه چه ټورو کافرانو ته خوهدایت کیدیشي.

۸۷، ۸۸ :- دا تخویف اخروی دې د پاره د ظالمانو چه مخکښې ذکر شول.

أُولَٰئِكَ، مبتدا ده او جزاءهم بدل اشتمال دې د هغې نه یا دویمه مبتدا ده او أَنَّ عَلَيْهِمْ خبر دې. داسې په سوره بقره ۱۶۱ کښې تیر شویدی لیکن فرق دا دې چه دلته جزاءهم لفظ ذکر دې او هلته جزاءهم نه دې ذکر کړې وجه د فرق داده چه سوره بقره کښې ذکر د هغه چا دې چه مړ شي په کفر باندې تو جزاء په داسې وی د دې وجې نه روستو د توبې ذکر شوې دې.

فِيهَا ضمیر لعنت ته راجع دې ځکه چه دوی به په هیڅ حالت کښې د لعنت نه نه خالی کیږی یا مراد د لعنت نه عذاب د نار دې. نور تفسیر ئې مخکښې تیر شویدې.

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن بَعْدِ

مګر هغه کسان چه توبه اوباسي روستو

ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا فَإِنَّ اللَّهَ

دَ دې نه او اصلاح اوکړي دَعملونو خپلو نو یقیناً الله تعالی

غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٨٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ

بخښه کوونکے رحم کوونکے دے یقیناً هغه کسان

كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ

چه کفر یې کړے دے روستو دَ ایمان دَ دوی نه بیا

ازْدَادُوا كُفْرًا لَّن تُقْبَلَ

زیاتي شي په کفرکولو کښ هیڅرے به قبوله نه کړے شي

تَوْبَتُهُمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الضَّالُّونَ ﴿٩٠﴾

توبه دَ دوی او دغه کسان خاص دوی ګمراهان دي

س۸۹ :- دا ترغیب دے توبه کولو ته په دُنیا کښ إِلَّا، استثناء متصله ده اشاره ده چه عنادي شخص هم چه کله عناد پریږدي او حق ته انابت اوکړي نو توبه اوباسي او دَ هغه توبه قبوله وي خو دا هغه کسان دي چه مرتبې دَ ختم القلب ته نه وي رسیدلے او دا دواړه قسمونه په اهل عناد کښ قاسمي دَ قاشاني نه نقل کړے دي۔

س۹۰ :- هر کله چه مخکښ دَ توبې ذکر اوشو نو اوس ذکر کوي چه توبه په وخت دَ قبولیت کښ پکار ده چه هغه دَغرغرے دَ وخت نه مخکښ وي - نو په دے آیت کښ تخویف او زجر دے هغه چاته چه صحیح توبه یې نه ده کړے۔
ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا، مراد دَ دینه اقامت کول دي په کفر باندے تر وخت دَ غرغرے پورے۔

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا

یقیناً هغه کسان چه کفرئے کړے دے او مړه شي

وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَن يُقْبَلَ

په داسے حال کښ چه کافروی نو هیچرے به قبول نه کړے شي

مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الْأَرْضِ

دَ هر یو دَ دوی نه ډکه زمکه

ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدَىٰ بِهِ ۗ

سره زر اګرچه فدیه ورکوی دے په هغے سره

أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ

دغه کسان دَ دوی دَ پاره عذاب دردناک دے

وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٩١﴾

او نیشته دوی لره هیڅ مددګاران -

لَّن تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ، مراد دَ توبے دَ دوی نه توبه ده په وخت دَ غرغره کښ یعنی چه ساه ئے مرئ ته اورسیږی داسے په سوره نساء ۱۸ کښ هم دی۔ او دا قول دَ حسن او قتاده او عطاء نه روایت دے - او دا رنګ په حدیث کښ وارد دی چه إِنَّ اللَّهَ يَقْبَلُ تَوْبَةَ الْعَبْدِ مَا لَمْ يُغَرْغِرْ، او دیته حشرجه او معائنه هم وئیلے شي یا مراد دا دے چه دَ دوی توبه نیشته تو څرنګه به قبوله شي۔

وَأُولَٰئِكَ هُمُ الضَّالُّونَ، مراد دَ دینه کامله درجه دَ ضلال ده ځکه چه موصوف دی په کفر او په زیا توالی دَ کفر باندے سره دَ عدم توبه کولو نه۔

۹۱ :- هر کله چه دَ جرم معاف کیدلو دَ انسان په اختیار کښ دوه طریقے دی اوله دا چه په وخت باندے معافی

اوغواړی او توبه اوباسی نو دا توبه قبوله ده لیکن چه توبه
د وخت نه روستو کړی لکه توبه په وخت د غرغره کښې.
نو او وئیل یئ چه دا توبه نه قبلیږی دویمه طریقه دا ده
چه فدیه (جرمانه) ادا کړی او قبوله شی۔ توبه دے آیت
کښ د هغے نفی (نیشتوالے) ذکر کوی۔
اِنَّ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا وَ مَاتُوۡا وَهُمۡ کُفَّارٌ، یعنی تر مرګه پورے
هیڅ قسم توبه یئ نه وی کړے نو په حالت د کفر کښ مړ شی.
فَلَنۡ یُّقۡبَلَ مِنۡ اَحَدِهِمۡ مِّلۡءُ الۡاَرۡضِ ذَهَبًا، مِلۡءُ مقدار
د ډکولو ته وئیلے شی یعنی دومره مقدار چه زمکه ډکه کړی.
ذَهَبًا، تمیز دے د مِّلۡءُ د پاره په طریقه د تفسیر سره۔
سوال :- هر کله چه اسم د اِنَّ موصول وی نو په خبر د
معنے کښ فاء داخلیږی نو په دے آیت کښ فاء په خبر کښ
داخله کړے ده او په مخکښ آیت کښ فاء نه ده داخل کړے؟
جواب :- په اول آیت کښ صله کفر او ازدیاد کفر دے او توبه
نه قبلیدل مرتب کیږی په مرګ علی الکفر باندے چه
صراحتًا ذکر وی او صرف په ازدیاد د کفر باندے عدم
قبولیت نه مرتب کیږی مګر هله چه زیادت د کفر په معنی
د موت علی الکفر شی لیکن هغه صریح نه دے۔ او په دے
آیت کښ موت په کفر باندے صراحتًا ذکر دے او هغه
سبب دے د پاره د عدم قبولیت د فدیے۔ او دا قاعده
کلیه نه ده چه حکم مرتب شی په وصف باندے نو هغه
وصف به ضرور مستلزم وی سببیت لره بلکه تعبیر په
موصول باندے کله د نورو اغراضو د پاره هم وی۔
وَّلَوِافۡتَدٰی بِهٖ، اهل عربیت وئیلے دی چه دا سے واو
چه ملګرے وی د شرط (وصلیه) سره نو تقاضا کوی
د بل شرط چه د ده نه مخکښ یه مراد وی او حکم به
په هغه کښ (پټ) په طریقے اولے سره موجود دی۔
او ابوحیان وئیلی دی چه وَلَوۡ تنبیه ورکوی لکے راځی لکه

چه ما قبل راغلے دے په طریقه دَ انتها سره او ما بعد
کښ تصریح ده په داسے حالت چه گمان کیدیشی چه ما
قبل کښ داخل نه دے لکه ردو السائل وَلَوْ جَاءَ عَلٰی فَرَسٍ
او لکه اَکْرِمْ زَیْدًا ، او دارنګ وَلَوْ عَلٰی اَنْفُسِکُمْ (النساء ۱۳۵)
او اَوَلَوْ کَانَ اٰبَآءُ هُمْ لَا یَعْقِلُوْنَ ، (بقره ۱۷۰) - نو اوس
سوال دا دے چه په دے آیت کښ خو داسے نه ده ځکه چه فدیه
ورکول په ډکه زمکه دَ سرو زرو سره دَ دے نه خو لبل
اوچت حال نیشته چه په هغے کښ عدم قبولیت دَ فدیے
په طریقه اولی سره معلوم شی (جواب په ډیرو طریقو
سره دے)
جواب ۱ :- په عبارت کښ تقدیر دے چه فلن یقبل من
احدهم فدیة وَلَوِ افْتَدٰی بِمِلْءُ الْاَرْضِ ذَهَبًا ، یعنی
ډکه زمکه سره زر فدیه نه قبلیږی نو هسے فدیه خو په
طریقه اولی سره نه قبلیږی -
جواب ۲ :- په عبارت کښ تقدیر دے یعنی وَلَوِ افْتَدٰی
بِمِثْلِهٖ مَعَهٗ ، یعنی که مثل دَ ملئ الارض ورسره شی
نو هم فدیه نه قبلیږی نو صرف ملئ الارض خو په طریقے
اولی سره نه قبلیږی
جواب ۳ :- په عبارت کښ تقدیر دے فَلَنْ یُّقْبَلَ مِنْهُ
مِلْءُ الْاَرْضِ ذَهَبًا تَصَدُّقًا وَّ تَبَرُّعًا وَلَوِ افْتَدٰی بِهٖ ، یعنی
په طور دَ فدیے سره هم نه قبلیږی نو په طور دَ صدقے
سره په اولی طریقے سره نه قبلیږی - (دا جوابونه زمخشری
ذکر کړی دی)
جواب ۴ :- واو زیاتی دے دا جواب قرطبی ذکر کړے دے .
جواب ۵ :- ابن عطیه دَ زجاج نه نقل کړی دی چه په عبارت
کښ تقدیر داسے دے چه فلن یقبل من احدهم انفاقه
فی الدنیا ولو انفق ملئ الارض ذهبًا وَلو افتدی ایضًا
به فی الاخرة لم یقبل منه ، یعنی که چرے دے فدیه په

لَن تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا
هیڅکله به حاصل نه کړئ تاسو نیکي تر دې پورې چه خرچ کړئ

مِمَّا تُحِبُّوْنَ ۚ وَمَا تُنْفِقُوْا
د هغه څیز نه چه تاسو ته خوښ وي او هغه څه چه تاسو خرچ کوئ

مِنْ شَيْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿۹۲﴾
هر څیز چه وي نو یقیناً الله تعالیٰ په هغې باندې علم لرونکې دې.

د کے زمکے سره زر و سره په آخرت کښې ورکوي نو هم نه قبلیږي نو په دنیا کښې که چرې دې په خپله یا د دۀ د طرف نه څوک د اسې خیرات کوي نو هغه په طریقه اولی سره نه قبلیږي.

وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ، هیڅوک مددګار به نه وي د پاره د لرې کولو یا آسانولو د دغه عذاب، او مِنْ د پاره د استغراق دې.

۹۲: په دې آیت کښې جواب د سوال دې سوال دا دې چه هر کله یو انسان د که زمکه سره زر خرچ کوي نو پکار دا دې چه قبول شي څکه چه دا لویه صدقه ده نو په دې آیت کښې جواب دا دې چه دا څکه قبوله نه ده چه شرط د قبولیت پکښې نیشته چه هغه انفاق د محبوب دې او په آخرت کښې دغه مال د دۀ محبوب نه دې.

لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ، تنالوا د نیل نه اخستلې شوې دې په معنیٰ د حاصلولو د یو څیز دې. او د بِرّ تفسیر په سوره بقره ۱۷۷ کښې تیر شوې دې دلته په معنیٰ د جنت دې په روایت د ابن عباس رضی الله عنهما او ابن مسعود رضی الله عنه او مجاهد سره او مقاتل وئیلي دي چه بِرّ په معنیٰ د تقویٰ دې او بعضو وئیلي دي چه بِرّ د الله تعالیٰ اکرام او عزت ورکول او فضل کول دي او دا قول د ابو بکر

وراق دے۔
مِمَّا تُحِبُّوْنَ ، مِنْ دَ پاره دَ تبعیض دے او محبت نه مراد تعلق دَ زړه دے په یو خیز پورے تر دے پورے چه دَ هغې خرڅ کول دَ دهٔ په نفس باندے سخت شی - او دَ محبوب مال نه مراد هغه مال دے چه دَ انسان دَ خپل ځان دَ پاره خوښ وی او هغه خرڅ کړی په لار دَ الله تعالیٰ کښ - او صحابه کرامو په دے باندے عمل کړیدے لکه طلحه رضی الله عنه باغ بیرحاء وقف کړے دے داحدیث بخاری او مسلم او امام احمد راوړے دے او عمر رضی الله عنه هغه برخه چه خیبر کښ ئے حاصل کړے وه وقف کړله دا هم بخاری او مسلم راوړے دے داسے نور هم ډیر روایات دی دَ صحابه رضی الله عنهم نه - دا رنګ محبوب نه مراد هغه دے چه په حالت دَ حیات کښ وی ځکه چه دَ مرګ په وخت کښ هر انسان دَ خپل مال نه مایوس شی - دا رنګ محبوب هغه دے چه قیمتی او کره مال وی - دا قول ابوحیان او صاحب اللباب ذکر کړے دی - او بیضاوی او صاحب فتح البیان وئیلے دی چه ما تحبون عام دے مال او جاه او بدن او روح ته چه دا ټول خرڅ کړیشی دَ پاره دَ توحید او سنت او حصول دَ علم او جهاد دَ پاره -

سوال :- په بقره ۱۷۷ کښ ذکر شویدی لس امور دَ پاره دَ حصول دَ بِرُّ او دلته یو عمل ذکر دے ؟

جواب :- دَ ما تحبون په آخری تفسیر سره هغه لس امور په ما تحبون کښ داخل دی -

وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ، جزا دَ شرط پټه ده یعنی الله تعالیٰ به تاسو ته جزاء درکوی او علت دَ جزاء ذکر دے یعنی چه الله تعالیٰ په هغې باندے علم لری -

كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيٓ

ټول د خوراک څیزونه (چه یهودیانو حرام کړي وو) حلال وو بني

اِسۡرَآءِيۡلَ اِلَّا مَا حَرَّمَ

اسرائیلو لره مګر هغه چه حرام کړي وو (ربند کړي وو)

اِسۡرَآءِيۡلُ عَلٰى نَفۡسِهٖ مِنۡ

یعقوب علیه السلام په خپل ځان باندے

قَبۡلِ اَنۡ تُنَزَّلَ التَّوۡرٰىةُ ؕ

مخکښ د نازلیدلو د تورات نه

قُلۡ فَاۡتُوۡا بِالتَّوۡرٰىةِ فَاتۡلُوۡهَآ

ته اوایه نو راوړئ تورات نو اولولئ هغه

اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ ﴿۹۳﴾

که چرے یئ تاسو رشتنی۔

۹۳: ربط د دے آیت د مخکښ سره اول دا دے چه په ماقبل کښ ترغیب وو په انفاق د محبوب څیز باندے نو اوس د هغے مثال ذکر کوی چه یعقوب علیه السلام د مرض نه د شفا د پاره نذر کړے وو چه الله تعالی ما ته صحت راکړی نو څه به محبوب طعام او مشروب په ځان باندے حرام کړم نو غوښے او پئ د اوښانو ئے په ځان باندے حرام کړل۔ دا حدیث مسند احمد کښ ذکر دے او ابن کثیر د دے روایت کړے دے (ابوحیان)۔

دویم دا چه مخکښ آیاتونو کښ صدق د نبی صلی الله علیه وسلم ذکر شو او زجر او تخویف وو هغه منکرینو ته نو اوس د هغه شبها تو جوابونه کوی چه یهودیانو او نصاراؤ په نبی صلی الله علیه وسلم باندے کول۔

او دا ربطونه صاحب اللباب او ابن کثیر هم ذکر کړيدي.
کُلُّ الطَّعَامِ، په دے آیت کښ د دوی د یو شبهے جواب
دے هغه شبهه دا ده چه دوی نبی صلی الله علیه وسلم
ته وئیل چه ته دعوے کوے د ملّتِ ابراهیمیه او حال
دا چه د هغه په ملّت کښ د اوښ غوښه حرام وه او ستا
په دین کښ حلاله ده نو ته په تحلیل او تحریم کښ د
هغه نه مخالف یې - دا رنګ دوی د نسخ اعتراض کولو
په نبی صلی الله علیه وسلّم باندے نو په دے آیت کښ
نسخ هم ثابتوی چه د اوښ غوښه مخکښ حلاله وه او یعقوب
علیه السلام هغه حرامه کړله نو دوی شبهه اوکړه چه د
اوښ غوښه د آدم علیه السلام د وخت نه حرامه وه او دوی
په تورات باندے حواله ورکوله نو الله تعالی د دوی د دے
قول تردید اوکړو او ورته یې اوئیل چه تورات حاضر کړئ
نو دوی شرمنده شول - الطَّعَامِ، په معنیٰ د مطعوم دے
او دا عام دے هر هغه څیز ته چه خوړلے کیږی نو تخصیص
د طعام په غنمو پورے چه احناف کړے دے نو دا ضعیف
دے - او مراد د کل الطعام نه ټول مطعومات نه دی ځکه
چه مردارے او خنزیر او وینه مسفوح او ما اهل به لغیر
الله خو په ټولو دینونو کښ حرام وو نو مراد دلته هغه
مطعومات دی چه یهودیانو په وخت د نزول د قرآن کریم
کښ دعوای د حرمت د هغے په ملّتِ ابراهیمیه کښ کوله
یعنی هغه چه دوی د ځان نه بے دلیله حرام کړے وو او
هغے ته تحریمات لغیر الله وئیلے شی (ابوحیان د قفال
نه او دا رنګ په تفسیر مواهب الرحمان کښ ذکر دی) -
کَانَ حِلًّا لِّبَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ، حِلًّا مصدر دے مذکر او مؤنث
مفرد تثنیه او جمع ټولو کښ یو شان دی -
اِلَّا مَا حَرَّمَ اِسْرَآءِیْلُ عَلٰی نَفْسِهٖ، په دے استثناء کښ دوه
اقوال دی اول قول دا چه دا استثناء منقطع ده یعنی یعقوب

علیه السلام صرف په ځان باندے حرام کړے وؤ او په بنی اسرائیلو باندے حرام نه وؤ - دویم قول استثناء متصله ده یعنی د یعقوب علیه السلام د تحریم د وجے نه هغه په بنی اسرائیلو باندے حرام شول - لیکن اول قول ځما په نظرکښ راجح دے ځکه چه یعقوب علیه السلام چه په ځان باندے حرام کړے وؤ هغه غوښه اوپئ د اوښانو وؤ په اتفاق د علماؤ سره او اوښان خو په بنی اسرائیلو باندے د تورات نه مخکښ حرام نه وؤ بلکه د هغوی د بغی او د ظلم د وجے نه روستو حرام کړے شول لکه په سوره انعام ۱۴۶ اوسوره نساء ۱۶۰ او سوره نحل ۱۱۸ کښ دی - مَا حَرَّمَ، هغه څیز چه په ځان باندے یئے حرام کړے وؤ نو اتفاقی قول دا دے چه هغه غوښه اوپئ د اوښانو وؤ- او د سدی یو قول دا دے چه هغه په غوښه کښ عروق (رګونه) وؤ- او په سبب د تحریم د هغے کښ اختلاف دے اول قول هغه دے چه مخکښ ذکر شویں ے چه په طور د نذر سره وؤ د الله تعالیٰ د رضا د پاره او دا په ملّت د هغوی کښ جائز وه چه په نذر کښ ځان باندے محبوب څیز حرام کړی - دویم قول د ضحاک په واسطه د ابن مبارک نه روایت دے چه یعقوب علیه السلام ته عرق النساء مرض رسیدلے وؤ نو طبیبانو ورته اوئیل چه د غوښے د اوښانو نه پرهیز اوکړه نو هغه په ځان باندے هغه بنده کړه-

سوال :- تحریم او تحلیل کښ اذن د الله تعالیٰ شرط دے او په دے باندے ډیر نصوص دلالت کوی نو یعقوب علیه السلام څرنګ تحریم په ځان باندے اوکړو؟

جواب ئے :- دلته تحریم په معنیٰ لغوی سره دے یعنی منع کول، او په دے معنیٰ سره په قرآن کریم کښ هم استعمال دے لکه په سوره قصص ۱۲ او تحریم ۱ کښ-

فَمَنِ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ

نو څوک چه جوړوی په الله تعالیٰ باندے

الۡكَذِبَ مِنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ

دروغ دروستو دَ دے نه

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوۡنَ ﴿۹۴﴾

نو دغه کسان دوی ظالمان دی۔

وقف جبرئیل علیه السلام

نواول دا منعه کول یا په نذر سره وو او دَ هغوی په ملّت کښ دا جائز وؤ یا په طور دَ پرهیز سره وو۔

جواب ۲ :- دا تحریم شرعی وؤ په اجتهاد دَ یعقوب علیه السلام سره او اجتهاد دَ انبیاؤ هم دلیل شرعی دے کله چه الله تعالیٰ هغه برقرار اوساتی۔

مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ تُنَزَّلَ التَّوۡرٰىةُ دا متعلق دے په حِلًّا پورے او دا فصل په نیز دَ کسائی جائز دے یا متعلق دے په حَرَّمَ پورے۔

قُلۡ فَاۡتُوۡا بِالتَّوۡرٰىةِ فَاتۡلُوۡهَآ ، هر کله چه بنی اسرائیلو په دے شبهه کښ دلیل نیولو په تورات باندے نو دَ دے وجے نه دوی ته حکم اوکړے شو په راوړلو او لوستلو دَ تورات باندے۔ لیکن دوی تورات حاضر نه کړے شو۔

۹۴ :- په دیکښ زجر دے هغوی ته هر کله چه هغوی دَ خپلے خبرے دَ اثبات دَ پاره تورات حاضر نه کړو نو دَ هغوی دروغ ثابت شول نو الله تعالیٰ اوفرمائیل فَمَنِ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ الۡكَذِبَ، اشاره ده چه کتاب دَ الله تعالیٰ باندے په دروغه سره حواله ورکول دا په الله تعالیٰ باندے دروغ تړل دی۔

مِنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ ، دا متعلق دے په اِفۡتَرٰی پورے ذٰلِكَ اشاره ده وضاحت دَ مخکښ خبرے ته دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه یا اشاره ده عدم ثبوت دَ خبرے دَ دوی ته په تورات کښ۔

قُلْ صَدَقَ اللّٰهُ قف فَاتَّبِعُوْا

ته اُوایه رښتیا وئیلي دي الله تعالی نو تابعداري کوئ

مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ط

دَ دين دَ ابراهيم عليه السلام چه کلک وُو په توحيد بانديے

وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (۹۵)

او نه وُؤ دے دَ مشرکانو نه۔

اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ

يقيناً اول کور چه جوړ کړے شوے دے دَ پاره دَ خلقو

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ، مراد دَ ظلم نه کامله درجه ظلم دے ځکه حصر ئے په افترای علی الله کښ کړے دے.

۹۵ :- په ديکښ تقابل دے دَ مخکښ آيت سره يعنی دا کتابيان په الله تعالی باندے دروغ وائی او الله تعالی رشتيا وئيلي دی - او دا عام دے هر وخت اوهرے خبرے دَ الله تعالی ته او مضمون دَ مخکښ آيت په کښ هم داخل دے يعنی دغه خوراکونه بنی اسرائيلو ته حلال وُؤ حرمت په دوی باندے روستو دَ بغی دَ دوی ته راغلے دے۔

فَاتَّبِعُوْا مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ، دا په اصل کښ دعوت دے اتباع دَ محمد صلی الله عليه وسلم ته ځکه چه محمد صلی الله عليه وسلم په ټولو اصولو او فروعو کښ موافق دے دَ ملّت ابراهيميه سره۔

وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ، دا تعريض دے په کتابيانو مخکنو باندے چه هغوی مشرکان شوی دی۔

# لَلَّذِیْ بِبَكَّةَ مُبٰرَكًا وَّهُدًى

ضرور هغه کور دے چه په مکه کښ دے ډیر برکت والا دے او هدایت دے

# لِّلْعٰلَمِیْنَ ﴿۹۶﴾

د پاره د خلقو۔

۹۶ ربط ۱: په دے آیت کښ رد دے د یلے شبهے د یهودو او نصاراؤ په رسول الله صلی الله علیه وسلّم باندے۔ دوی وئیل چه زمونږ قبله (بیت المقدس) ستا د قبلے نه اول او افضل ده او دا قبله ستا په قبلے سره منسوخ نه ده (ځکه چه دوی د نسخ نه انکار کوؤ)

ربط ۲: دا رنګ په دے آیت کښ یل رد دے په یهودو او نصاراؤ باندے چه هغوی دعوی د ملّت ابراهیمیه کوله او حال دا دے چه حکم د حج د کعبے په ملّت ابراهیمیه کښ داخل دے او دوی تر ینه انکار کوی۔

په دے آیاتونو کښ د کعبے اته فضیلتونه ذکر دی اول او دویم دا دی چه اِنَّ اَوَّلَ بَیْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ، په دے اولیت کښ دوه اقوال دی اول قول دا دے چه دا اولیت مطلقه دے او دا قول د مجاهد او قتاده نه قرطبی نقل کړے دے یعنی د پیدائش د آسمانونو او زمکے سره یو ځائے دا بیت ملائکو جوړ کړیدے په امر د الله تعالیٰ سره بیا آدم علیه السلام جوړ کړے دے بیا شیث علیه السلام جوړ کړو بیا ابراهیم علیه السلام بیا عمالقؤ او بیا بنوجرهم بیا قصی بیا قریشو مخکښ د بعثت د نبی صلی الله علیه وسلم نه بیا عبد الله بن زبیر رضی الله عنهما بیا حجاج بن یوسف دا سے په تاریخ مکه کښ او روح المعانی کښ لیکلے دی او ابوحیان او نورو مفسرینو هم نقل کړی دی او دلیل په اولیت مطلقه باندے حدیث د بخاری او مسلم او احمد دے چه روایت دے د ابوذر رضی الله عنه

نه چه دهٔ دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو چه کوم
مسجد اول جوړ کړے شوے دے نو هغه اوفرمائیل مسجد
حرام بیا وروستو مسجد اقصی او دَ دوی په مینځ کښ څلویښت
کاله فاصله ده - نو ظاهر دَ دے حدیث دا دے چه دا جوړښت
په واسطه دَ ملائکو سره مراد دے ځکه چه په جوړولو دَ
ابراهیم او سلیمان علیهما السلام په مینځ کښ خو دَ زرو
کلونو نه زیاته فاصله ده او په سوره بقره ۱۲۷ اوحج ۲۶
کښ دَ بِنَاء دَ ابراهیم علیه السلام ذکر دے نو مراد دا دے
چه دَ هغه دَ زمانے نه مخکښ دا سے تړیں لے ووچه بنیادونه
ئے هم غائب شوی وُ چه ابراهیم علیه السلام ته الله تعالی
بنیادونه ښکاره کړل او هغه تجدید دَ بناء او اعلان دَ حج
اوکړلو - دویم قول دا دے چه دا اولیت مقیده دے یعنی
دَ قبلے مقرر کولو په حیثیت سره دا اول کور دے اگر چه
دَ دے نه مخکښ کورونه جوړے کړے شوے وے نو په اول
قول سره مراد دَ وُضع نه آبادول دی او بناء په دویم
قول مراد دے ځائے او قبله دَ عبادت او دَ طواف کولو -
لَلَّذِی بِبَكَّةَ ، دَ بکه او مکه په باره کښ دوه اقوال دی
اول دا چه باء دَ بکه بدل ده دَ میم نو دَ دواړو مصداق
یو دے دا قول دَ مجاهد او ضحاک دے - دویم قول دا
دے چه دَ دے په مصداق کښ فرق دے او دَ هغے
دوه وجوه دی اول دا چه بکه صرف ځائے دَ بیت الله ته
وئیلے شی او مکه ټول ښار ته وئیلے شی دا قول دَ امام مالک
نه نقل دے - دویمه وجه ، بکه مسجد حرام ته وئیلے
شی او مکه ټول حرم ته وئیلے شی - او فرق په مینځ دَ بکه
او مکه په اعتبار دَ معنیٰ لغوی او وجے تسمیے سره په ډیرو
وجوهو سره دے په لفظ دَ بکه کښ دوه وجے دی -
اوله وجه ، بکه دَ بك نه اخستلے شوے ده په معنیٰ دَ ازدحام
(رټیل کول دَ گڼړے) نو په کعبه باندے هم په وخت دَ

طواف کښې د انسانانو ازدحام او ګڼه وي۔
دویمه وجه، بك د ستونو ماتولو ته وئیلے شي نو کعبه کښې چه څوک الحاد په ظلم سره اوکړي نو د هغه سټ الله تعالی ماتوي او ابن زبیر رضی الله عنه نه روایت دے چه کوم جبار په بد نیت سره د کعبې په باره کښې اراده اوکړي نو الله تعالی د هغه سټ ماتوي۔ او په لفظ د مکه کښې درې وجې دي اوله وجه مکه د مك نه اخستلے شوے دے او مك په لغت کښې کم والی د اوبو ته وئیلے شي او هلته اوبه ډیرې لږې دي دویمه وجه مك د هډوکی نه مغز (تلے) راویستل دي نو هلته هم په مشقت اوکړاؤ سره د انسان د خپو وغیره تلی اوچ شي۔ دریمه وجه، مَكُّ هلاکولو اوکمولو ته وئیلے شي نو مکه هم ظالمانو لره هلاکوي۔
مُبٰرَكًا په دیکښې دریم فضیلت ذکر دے او برکات د هغے ډیر دي لکه په لږ عمل سره ډیر ثواب حاصلیږي۔ ګناهونه په حج اوعمره او طواف او اعتکاف سره معاف کیږي۔ هر قسم رزقونه او میوے هغے ته راځي۔ د طواف کوؤنکو او اعتکاف کوؤنکو او رکوع او سجده کوؤنکو نه خالي کیږي۔ او د شپې ورځې په هر وخت کښې د هر طرف نه د دے طرف ته مونځ کوؤنکي موجود وي۔
وَهُدًى، داڅلورم فضیلت دے په دے صفت کښې حمل د مصدار (هدی) په طریقے د مبالغے سره دے۔ او د دے هدایت ډیر وجوه دي لکه قبله کیدل، رحمت، صلاح، دلالت په توحید او په صدق د رسول الله صلی الله علیه وسلم، رسوؤنکے جنت ته په سبب د توجه کولو دے ته په هر مونځ کښې۔
لِّلْعٰلَمِيْنَ، په دیکښې اشاره ده چه کعبه د ابتداء نه د ټولو انبیاؤ او د هغوی د امتونو د پاره قبله او مقام د حج وو۔

فِيهِ ءَايَٰتٌۢ بَيِّنَٰتٌ مَّقَامُ

په دے کښې نخې ښکاره دی (یو دَ هغې نه) ځائے دَ اودریدلو

إِبْرَٰهِيمَ ۖ وَمَن دَخَلَهُۥ كَانَ

دَ ابراهیم علیه السلام دے او څوک چه داخل شو هغې ته وی به

ءَامِنًا ۗ وَلِلَّهِ عَلَى ٱلنَّاسِ حِجُّ

امن والا او خاص الله دَ پاره په خلقو باندے (فرض دے) حج کول

ٱلْبَيْتِ مَنِ ٱسْتَطَاعَ إِلَيْهِ

دَ بیت الله په هغه چا باندے چه طاقت لری هغې ته

سَبِيلًا ۚ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ ٱللَّهَ

دَ لارے او چا چه کفر اوکړو نو یقیناً الله تعالیٰ

غَنِىٌّ عَنِ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٩٧﴾

بے حاجته دے دَ ټولو خلقو نه۔

ت ۹۷ :- فِيهِ ءَايَٰتٌۢ بَيِّنَٰتٌ ، دا په منزله دَ تفسیر دے دَ پاره
دَ مبارکًا او هدًی دَ دے وجے نه بغیر دَ عطف نه ذکر
دے۔ او په دیکښې پنځم فضیلت ذکر کوی۔ فِيهِ ، ضمیر
بیت ته راجع دے لیکن توسع کړے شویده په دے
ظرف کښې نو بیت الله او ټول حرم په دیکښې داخل دے
او ابوحیان او آلوسی په دیکښې ډیر امور ذکر کړے دی
لکه حجر اسود ، حطیم ، زمزم ، تعظیم او هیبت دَ هغې
په زړونو دَ خلقو کښې ، واقعه دَ فیل ، منع دَ جیا بره دَ
هغې نه۔ نیج ساتل دَ سیلا بونو نه په هره زمانه کښې ،
امن دَ وحشی مارغانو او ځناورو ته په هغې کښې ، او هر
رکن (کونج) دَ هغې کښې چه باران اوشی نو دَ هغې طرف په
ټوله علاقه کښې فراخ کالی وی مثلاً باران چه په طرف

دَ رکن یمانی اوشی نو دَ یمن په طرف علاقه کښ فراخ کالی وی او هر کله چه باران ټولو اړخ ته اوشی نو په ټولو چاپیره ملکونو کښ فراخ کالی وی، دَ هغے په خوا کښ دُعا ګانے قبلیږی - او څوک چه په هغے کښ الحاد اوکړی نو زر ورباندے عذاب راځی - او چا چه وئیلے دی چه مارغان او کونترے دَ هغے دَ پاسه نه الوځی نو دا خبره ابن عطیه او آلوسی رد کړیده او دَ واقع نه هم خلاف ده -

مَقَامُ اِبْرٰهِيْمَ، دَ دینه مخکښ خبر پټ دے یعنی مِنْهَا بعضے دَ هغه آیاتونو نه مقام ابراهیم دے یعنی هغه ګټه چه ابراهیم علیه السلام په وخت دَ آبادلو دَ بیت الله کښ دَ هغے دَ پاسه اودریدلو او په هغے کښ دَ قدمونو دَ هغه نخے جوړے شوے او ډیره زمانه پورے باقی پاتے شوے - او دا شپږم فضیلت دے او دَ دے تخصیص ئے دَ دے وجے نه اوکړلو چه دا مشتمل دے په ډیرو آیاتونو باندے لکه نخے دَ قدم په سخته ګټه کښ، او په هغے کښ ترکیدو پورے دَ هغه قدمونه ورننوتل، او دَ هغے محفوظ ساتل دَ دشمنانو نه - او ابن عطیه وئیلی دی چه دا نخه دَ غټو نخونه په دے وجے سره ده چه دا په کافرانو باندے حجت دے ځکه چه هغوی ته ښکاریدله. او په دے سره دین ابراهیمی خلقو ته یاد یږی - او په دیکښ بل قول دا دے چه مقام ابراهیم ټول بیت الله او چاپیره ځایونه دی ځکه چه هغه دَ دعا او مونځ کولو او نورو مناسکو دَ حج دَ پاره په صفا او مروه او مزدلفه او منیٰ او عرفات کښ وقوف کړے دے.

وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا، په دیکښ اووم فضیلت ذکر دے، هٗ ضمیر راجع دے مقام ابراهیم ته په معنیٰ دَ حرم مکه سره دا نقل دے دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه یا راجع دے الذی ببکة یا البیت ته. او مَنْ لفظ اګرچه

دَ ذوی العقول دَ پاره دے لیکن په دیکښ وحشی ځناور او مارغان بلکه بوټی او ونے دَ حرم هم داخل دی چه دوی ته په هیڅ قسم تعرض نشی کیدلے (یعنی څوک به ورته څه نه وائی) (الوسی). - اٰمِنًا نه مراد ذَا آمْنٍ (خاوند دَ امن، امن والا) دے. او په امن کښ درے اقوال دی دَ مفسرینو اول قول دا چه مراد دَ دینه امن دنیوی دے یعنی قصاص، لاس پریکول، او نورو عقوباتو نه په بچ وی. - دَ حسن بصری نه روایت دے چه په جاهلیت کښ به یو شخص قتل اوکړو او بیا به حرم ته داخل شو نو څوئی دَ مقتول به هم ته غوختل چه دَ هغه نه بدل واخلی. - او دغسے روایات دَ ابن عمر او ابن عباس او عمر رضی الله عنهم نه آلوسی وغیره نقل کړے دی. - او اجماع ده په دے خبره باندے چه څوک په حرم کښ قتل اوکړی نو دَ هغه نه به په حرم کښ قصاص اخستے کیدیشی او دا رنګ سیوا دَ جنایت دَ نفس ته په نورو جنایاتو کښ حرم امن نه ورکوی. هاں اختلاف دے په دے خبره کښ چه خارج دَ حرم نه په چا باندے قصاص واجب شی او بیا حرم ته پناهی حاصله کړی نو په قول دَ امام شافعی رحمه الله کښ دَ هغه نه په حرم کښ قصاص اخستل جائز دی او په قول دَ امام ابوحنیفه رحمه الله کښ دَ هغه نه په حرم کښ قصاص نشی اخستلے کیدلے بلکه خوراک څښاک او بیع شراء او خبرے کول به دَ هغه سره بند کړیشی دَ پاره دَ دے چه مجبور شی دَ حرم نه بهر وتلو ته. - او دَ دلیلونو تفصیلات په نورو کتابونو کښ شته دے. - او دویم قول دا دے چه دا امن اخروی دے یعنی څوک چه داخل شو حرم ته (په اراده دَ حج او عمرے او صحیح عقیدے سره) نو دے به په امن وی دَ اور دَ جهنم نه. - دریم قول دا دے چه دَ دے نه امن دنیوی او اخروی دواړه مراد دی.

او د دے پشان آیا تونه د سورت بقره ۱۲۵، ۱۲۶ او سوره قصص ۵۷ او سوره ابراهیم ۳۵ او سورة قریش ۴ کښ هم دی۔

وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا، په دیکښ اتم فضیلت د بیت الله ذکر دے او په دے جمله کښ د حج د فرضیت ډیر تاکیدات دی اول لفظ د لِلّٰه چه دا حق د الله تعالیٰ دے په دیکښ شرک جلی او خفی نه وی، ریا، سُمعت، تجارت او میله جوړول یه مقصد نه وی۔ او قرطبی وئیلی دی چه لام د پاره د ایجاب او الزام دے۔ دویم لفظ د علیٰ دے چه دلالت کوی په استعلاء او پورته والی او په تاکید د وجوب باندے۔ دریم لفظ د النَّاسِ دے په لفظ د عموم سره، اګرچه مراد د دے نه خصوص دے۔ څلورم لفظ د مَنِ اسْتَطَاعَ دے دا بدل دے د الناس نه نو تکرار دلالت کوی په تاکید باندے او ورسره تفصیل دے روستو د اجمال نه۔ پنځم وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ، اشاره ده چه حج پریخودل مشابهت دے کافرانو سره او انکار کول خو عین کفر دے۔ شپږم په غَنِيٌّ کښ اشاره ده چه داسے انسان د الله تعالیٰ د خاص رحمت نه محروم دے الله تعالیٰ په دهٔ باندے هیڅ پروا نه کوی۔ حِجُّ الْبَيْتِ، زیر د حا او زور د هغے دوه لغتونه دی او په زیر سره په نیز د سیبویه مصدر دے لکه چه په زور سره هم مصدر دے۔ او په دیکښ اضافت د مصدر دے مفعول ته چه البیت دے۔

مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا، دا دلیل دے چه استطاعت شرط دے د پاره د وجوب د حج برابره خبره ده که فی الفور وی او که په روستوالی سره وی په دے شرط چه د هغه نه فوت نشی۔ او استطاعت د پاره اسلام او بلوغ او حریت (آزادوالے) شرط دے او سَبِيْل،

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ

ته اووايه اے كتاب والو دلے كفر كوئ تاسو

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۖ وَاللّٰهُ شَهِيْدٌ عَلٰى

په آيَاتونو دَ الله تعالیٰ او الله تعالیٰ خبر دے په

مَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۸﴾

هغه عملونو چه تاسو يې كوئ -

نه مراد توخه اوسورلی ده او دا قول قرطبی دَ عمراو ابن عباس رضی الله عنهم او نورو تابعينو او دَ امام شافعی او امام ابوحنيفه رحمهم الله غوره ګڼلے دے - او ابن كثير دَ عكرمه نه نقل كړے دی چه سبيل صحت دَ بدن ته وئيلے شي او قرطبی دَ ائمو دَ اقوالو تفصيلی ذكر كړے دے هغه اوګورئ -

وَمَنْ كَفَرَ ، ابن كثير دَ ابن عباس رضی الله عنهما او مجاهد وغيره نه نقل كړی دی چه مراد دَ دينه هغه څوک دے چه انكار اوكړی دَ فرضيت دَ حج نه - او حسن بصری په ظاهر باندے حمل كړے دے -

فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ، هركله چه دَ بيت الله په باره كښ هدًى للعالمين اوئيلے شو نو دَ دے دَ پريخودلو سره ئے ځكه ټول عالم ذكر كړے دے او په ديكښ لطيفه اشاره ده چه بقاء دَ بيت الله سره بقاء دَ دنيا متعلق ده چه څو پورے كعبه موجود وی او احترام ئے جاری وی نو دنيا به آباده وی لكه چه په دے باندے بعضے روايات دلالت كوی نو هركله چه كعبه ورانه كړے شي نو الله تعالیٰ به خپله غنا (بے حاجتی) ښكاره كړی په فناكولو دَ عالم سره-

۹۸ :- په ديكښ زجر دے اهل كتابو ته او مناسبت ئے دَ مخكښ سره دا دے چه او ئيلے شو فِيْهِ اٰيٰتٌ بَيِّنٰتٌ ، او اهل

قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَصُدُّونَ

ته اوايه اے کتاب والو ولے اړوئ تاسو

عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ مَنۡ ءَامَنَ

دَ لارے دَ الله تعالیٰ نه هغه څوک چه ایمان ئې راوړے دے

تَبۡغُونَهَا عِوَجٗا وَأَنتُمۡ شُهَدَآءُۗ

لټوئ تاسو دغه لارے لره کږلیچ او حال دا چه تاسو علم لرئ

کتابو دَ دغه آیاتو نه انکار کړے دے او حج دَ بیت الله نه منی نو اوس هغوی له زورنه ورکوی - دا رنګ په مخکښ آیاتو نو کښ په جوابونو دَ شبهاتو سره صدق دَ آخری نبی صلی الله علیه وسلم ثابت شو لیکن یهود او نصاریٰ بیا هم دَ هغه نه انکاری کوی نو دوی له زورنه ذکر کوی۔

لِمَ تَكۡفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ، مراد دَ آیات الله نه ایٰت بینٰت دَ کعبے دی او دوی په هغے باندے علم لرلو یا مراد دَ آیاتو نه دَ تورات او انجیل دی چه دلالت کوی په صدق دَ آخری نبی باندے او دوی په هغے باندے علم لرلو۔ یا مراد دَ ایٰت الله نه قرآن کریم دے چه په هغے کښ ذکر دَ فرضیت دَ حج دے او دا قول ابوحیان ذکر کړے دے او په روستو توجیه سره وهم دَ تکرار دفع شو چه په آیت نړے کښ هم دا سے زورنه ذکر ده لیکن هلته مراد آیاتو نه دَ تورات او انجیل وُ چه دوی په هغے کفر کوؤ سره دَ علم دَ دوی نه نو ورته وئیلے شوے وُ۔

وَأَنتُمۡ تَشۡهَدُونَ، او دلته مراد قرآن کریم دے او په دے باندے دَ دوی تفصیلی علم نه وُ نو الله تعالیٰ او فرمائیل وَٱللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا تَعۡمَلُونَ، په دے جمله کښ سخت تهدید او زورنه ده - آلوسی وئیلی دی چه شهید په معنیٰ دَ عالم او اطلاع لرونکی دے دا رنګ ابوحیان هم وئیلی دی چه

# وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۹﴾

او نه دے الله تعالیٰ غفلت کوونکے د هغه کارونو نه چه تاسو کوئ۔

شهید نه مراد په صفت د الله تعالیٰ کښ عالم دے او دا صیغه د مبالغے ده۔

س ۹۹:۔ هر کله چه مخکښ آیت کښ زجر وؤ د دوی په کفر او گمراهئ باندے نو اوس زجر ورکوی په گمراه کولو د نورو خلقو باندے چه هغے ته ضَالّ مُضِل وئیلے شی۔

لِمَ تَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ، صد لازمی او متعدی دواړه استعمالیږی لیکن دلته متعدی دے ځکه چه مفعول (مَنْ اٰمَنَ) ذکر کړے دے او سَبِيْلِ اللّٰهِ دین او شرع د الله تعالیٰ ده او په هغے کښ قرآن او سنت او ایمان او توحید داخل دی۔ امام راغب مفردات کښ وئیلی دی چه د کوم آیت په سر کښ قل یا اهل الکتٰب وی نو په هغے کښ اول زجر مراد وی او بیا دلالت کوی په دعوت باندے او په کوم آیت کښ چه بغیر د قل نه یا اهل الکتٰب ذکر وی نو په هغے کښ دعوت مراد وی اگر چه په زجر باندے هم دلالت کوی۔

مَنْ اٰمَنَ مفعول دے د پاره د تَصُدُّوْنَ که د کتاب والو نه وی او که د غیر کتابی وی۔

تَبْغُوْنَهَا عِوَجًا، هَا ضمیر سبیل الله ته راجع دے او قرطبی وئیلی دی چه په دیکښ لام پټ دے یعنی لکهار لټوئ او طلب کوئ او کوشش کوئ تاسو دغے لارے له د کږه ولو)۔

عِوَجًا، په زیر د عین سره دلالت کوی په کوږوالی معنوی باندے یعنی په دین کښ او قول او عمل کښ او په اخلاقو کښ، چه هغه په فکر کولو سره معلومیږی۔ او په زور د عین سره د محسوساتو د پاره استعمالیږی لکه دیوال او ونه کږه۔ او د دے په تفسیر کښ درے اقوال دی اول

داچه دَ خلقو په زړونو کښ دَ سبیل الله په باره کښ شکونه او شبهات اچوی دَ دے دَ پاره چه هغوی مرتد شی۔
دویم قول دا دے چه ستړے کوئ تاسو ځانونه خپل په اعتراضونو کولو او په خلقو اړولو کښ دَ دے لاره نه (ابوحیان، کشاف)۔
دریم قول دا چه تبغون دَ بغی نه دے په معنیٰ دَ تعدی او ظلم کولو سره یعنی ظلم کوئ تاسو په دے لار باندے په داسے حال کښ چه تاسو دَ دینه کاږه روان یئ (صاحب اللباب او ابوحیان)۔
او بل احتمال دا دے چه لټوئ تاسو دا لاره کږه یعنی تاسو سبیل الله په غلط صورت پیش کوئ یا تاسو (چه په کږه لار باندے روان یئ) او دعوی کوی چه دا نیغه لار ده (صاحب اللباب)۔
وَ اَنۡتُمۡ شُهَدَآءُ، په دیکښ څلور اقوال دی اول دا چه تاسو علم لرئ چه په تورات کښ وئیلے دی چه دین دَ الله تعالیٰ اسلام دے دویم قول، تاسو علم لرئ چه صد عن سبیل الله حرام او کفر دے۔ دریم قول، تاسو مشاهده کړیدی (لیدلے دی) معجزات دَ آخری نبی صلی الله علیه وسلم۔ څلورم قول، تاسو په خپل امت کښ خاوندان دَ شهادت وړکولو یئ یعنی په تاسو باندے اعتماد کیدیشی نو ولے دَ (صد عن سبیل الله) دَ ګناه ارتکاب کوئ۔
وَ مَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ، تیرشوی آیت کښ دَ دوی کفر صریح ذکر وؤ نو دَ هغے سره صفت دَ شهید مناسب وو او په دے آیت کښ دَ دوی پټ پټ شبها تو ته اشاره ده نو دَ هغے سره په زور نه کښ دا جمله مناسب ده۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تُطِيْعُوْا

اے ایمان والو که چرے تاسو تابعداری اوکړئ

فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا

د هغه کسانو نه چه ورکړے شوے دے هغوی ته

الْكِتٰبَ يَرُدُّوْكُمْ بَعْدَ

کتاب واپس به اوګرځوی تاسو روستو

اِيْمَانِكُمْ كٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۰﴾

د ایمان ستاسو نه کافران -

ربط :- هر کله چه تر دے آیت پورے خباثات د کتابیانو ذکر شول او خاص دا چه دوی تاسو د حق لارے نه منع کوی نو اوس مؤمنانو ته آداب ذکر کوی د پاره د دے چه بچ شی د دغه خباثتونو نه۔

اول آدب دا دے چه د دوی د اطاعت نه ځان بچ کړئ چه مرتد مو نه کړی او د کفر کارونه درکښې پیدا نشی۔

اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ، اِنْ لفظ د شک دلالت کوی چه مؤمنان خو دا کار نه کوی لیکن تنبیه ورکول مقصود دے۔

فَرِيْقًا، د دینه مراد هغه کسان دی چه د ګمراه کولو کوشش کوی۔

يَرُدُّوْكُمْ، رد دلته متضمن دے معنیٰ د صَيَّرَ لره نو دوه مفعولونه غواړی نو کافرین دویم مفعول دے یا کافرین حال دے او قید۔

بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ د ډیر تقبیح د پاره دے۔

وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ وَاَنْتُمْ تُتْلٰى

او څه رنګ | كفر كوئ تاسو | او حال دا چه | لوستلے كيږي ښې

عَلَيْكُمْ اٰيٰتُ اللّٰهِ وَفِيْكُمْ

په تاسو باندے | اٰياتونه | دَ الله تعالىٰ | او په تاسو كښ

رَسُوْلُهٗ ؕ وَمَنْ يَّعْتَصِمْ بِاللّٰهِ

رسول دَ هغه شته دے | او چا چه ځان | كلك كړو | په الله تعالىٰ پورے

فَقَدْ هُدِيَ اِلٰى صِرَاطٍ

نو يقيناً | او رسولے شو هغه | لارے

مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۱۰۱﴾ ع

نيغ ته -

۱۰۱:- مخكښ آيت كښ تحذير ذكر شو دَ اطاعت دَ كتابيانو نه چه سبب دَ كفر دے اوس تبعيد (لرے والے) ذكر كوى دَ صحابو او دَ هغوى دَ تابعدارانو دَ كفر نه په سبب دَ وجود دَ موانعو دَ كفر چه هغه تلاوت او درسونه دَ قرآن كريم او وجود دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم او وجود دَ سنت دَ هغه دے په مؤمنانو كښ - او دا دليل دے چه صحابه كرام دَ مرتد كيدلو نه بچ ساتلے شوے دى -

وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ، دا استفهام دَ پاره دَ تبعيد دے -

وَاَنْتُمْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ اٰيٰتُ اللّٰهِ، صيغه دَ مجهول دلالت كوى په عموم دَ درسونو او دعوت دَ قرآن كريم باندے ځكه چه مراد دَ ايت الله نه قرآن كريم دے - آلوسى وئيلى دى چه دا مجهولى صيغه دلالت كوى په استقلال دَ دواړو (كتاب وسنت) باندے او اشاره ده چه هر څوک چه دَ قرآن دعوت كوى نو دا كافى كيږى دَ هدايت دَ پاره -

وَفِيْكُمْ رَسُوْلُهٗ، په وخت دَ حيات دَ رسول الله كښ وجود دَ

ذات دَ هغه مراد وُ او روستو دَ وفات دَ هغه نه دَ هغه سنت مراد دے دَ دے وجے نه رسول لفظ ئے ذکر کړے دے چه دلالت کوی په وصف دَ رسالت دَ هغه باندے که تخصیص دَ ذات مراد وے نو وئیلے به ئے وُ۔

وَفِيكُمْ مُحَمَّدٌ (صلی الله علیه وسلم) نو دا دلیل نشی کیدلے دَ هغه ګمراهانو دَ پاره چه نبی صلی الله علیه وسلم روستو دَ وفات نه هم حاضر ناظر (په هر ځائے کښ) ګنړی۔ او قرطبی وئیلی دی چه داخل دی په آیت کښ هغه خوک چه نبی صلی الله علیه وسلم ئے لیدلے نه دے ځکه چه سنت دَ هغه قائم دی په ځائے دَ لیدلو دَ هغه۔ او داسے ئے دَ زجاج نه هم نقل کړیدی۔ او ابن عطیه هم وئیلی دی چه اقوال او آثار دَ نبی صلی الله علیه وسلم په امت کښ دَ هغه دَ حضور په ځائے قائم دی او داسے آلوسی هم وئیلی دی۔

وَمَنْ يَعْتَصِمْ بِاللَّهِ، عَصَمَ په لغت کښ منع کولو او بچ کولو ته وئیلی شی لکه عرب وائی عَصَمَ الطَّعَامَ، (منع ئے کړو خوراک) او عصام هغه څیز ته وئیلے شی چه مشکیزه په هغے سره تړلے کیږی۔

وَمَنْ يَعْتَصِمْ بِاللَّهِ کښ دوه اقوال دی اول دا چه مضاف پټ دے یعنی بِدِينِ اللهِ چه قرآن او سنت دے او اعتصام په معنیٰ دَ تمسك دے یعنی دلیل نیول او تابعداری او عمل کول او دا جمله عطف ده په وَأَنْتُمْ تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ باندے او په ځائے دَ حال کښ ده او دویم قول دا دے چه اعتصام نه مراد پناهی حاصلول دی په الله تعالیٰ سره په وخت دَ شرونو او شبهاتو اچولو دَ کتابیانو کښ دَ دفع کولو دَ هغے دَ پاره۔ په دے توجیه سره دا نتیجه ده دَ إِنْ تُطِيعُوا دَ مضمون دَ پاره۔

فَقَدْ هُدِيَ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ، اشاره ده چه اعتصام په کتاب دَ الله تعالیٰ یقینی سبب دَ هدایت دے دا په اول قول سره۔ دا رنګ التجاء کول الله تعالیٰ ته دَ پاره دَ دفعے دَ شر دَ خلقو

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ

اے ایمان والو ویره کوئے د الله تعالیٰ نه

حَقَّ تُقٰتِهٖ وَلَا تَمُوْتُنَّ

په پوره ویرے سره او مه مړه کیږئ تاسو

اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۱۰۲﴾

مګر په داسے حال کښ چه پوره تابعداری۔

عین هدایت دے دا بنا دے په دویم قول بانده۔

۱۰۲:۔ د دے آیت نه د سورت دریمه حصه ده په دیکښ څلور اصول ذکر کوی د پاره د مضبوطوالی د ایمان او د جماعت د مؤمنانو او د حفاظت د هغوی د تفرق نه او دیته آداب هم وئیلے شی۔

اول اصل او ادب پوښ پاتے کیدل دی په کامل ایمان او اسلام بانده تر مرګه پورے او دیته اصلاح د نفسونو وئیلے شی دا ذکر دے په ۱۰۲ کښ۔

دویم اصل او آدب اتحاد ساتل دی په اعتصام بالکتاب والسنة سره او دیته اصلاح د افرادو د جماعت وئیلے شی په ۱۰۳ کښ۔

دریم اصل او ادب دعوت کول کتاب او سنت ته د پاره د نشر و اشاعت د اسلام او دیته اصلاح د اجانبو وئیلے شی۔ او په دے پسے فائده د دعوت کولو ذکر کوی لکه فلاح په ۱۰۴ کښ او د مخونو سپین والے په ۱۰۷ کښ او خیریت (غوره والے) په ۱۱۰ کښ۔ او بیا تقابل دے د صفاتو د ګمراهانو کتابیانو او د صفاتو د صالحینو چه دعوت کوؤنکی دی او د هر یو لس لس صفات ذکر کوی بیا تخویف او زجر دے ګمراهانو ته په ۱۱۶، ۱۱۷ کښ۔

څلورم اصل او ادب پرهیز کول دی د دوستانے او رازداریٔ

وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا

او منګولې اولګوئ په رسئ د الله تعالى باندې ټول

وَّلَا تَفَرَّقُوْا ص وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ

او مه ډلې ډلې کيږئ - او ياد کړئ نعمت د الله تعالى

عَلَيْكُمْ اِذْ كُنْتُمْ اَعْدَآءً فَاَلَّفَ

په تاسو باندې کله چه تاسو وئ دشمنان نو جوړ خ يئ راوستلو

د منافقانو نه او د هغې لس علتونه (وجې) يئ ذکر کړې دي د ۱۱۸ نه ترځ ۱۲۰ پورې بيا تفريع ده په دغه اصولو باندې په ذکر د واقعې د احد او د بدر سره - او په آخر کښ رد د شرک في التصرف دې د نبي صلى الله عليه وسلم نه او توحيد ذکر کوي په ۱۲۹ کښ.

ربط د مخکښ سره دا دې، هر کله چه مؤمنانو ته تحذير ذکر شو د ګمراه کيدلو نه په وسوسو د کتابيانو سره نو اوس د دوی د پوخوالي آداب ذکر کوي - په دې آيت کښ آدب د په کامله تقوىٰ سره او په دوام د ايمان او اسلام باندې تر مرګه پورې -

حَقَّ تُقٰتِهٖ، په ديکښ اضافت دې موصوف ته يعني اَلْاِتِّقَاءَ الْحَقَّ او اضافت د حق مصدر ته دلالت کوي په کمال باندې او مراد د دينه دا دې چه په باره د حق کښ د هيچا د ملامتيا نه دوی يره نه کوي او په اتصاف باندې قائم وي. او خپله ژبه په واک کښ ساتي او د هر ګناه نه د ځان بچ کولو کوشش کوي او وَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ د دې تفسير دې او په دې معنىٰ سره دا منسوخ نه دې او دا قول د ابن عباس رضي الله عنهما او طاؤس نه نقل دې او په دې معنىٰ کښ د توحيد په ټولو اقسامو باندې عقيده ساتل هم داخل دي (سراج المنير) -

بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ

په مینځ دَ زړونو ستاسو کښې نو شوې تاسو

بِنِعْمَتِهٖٓ إِخْوَانًا ۚ وَكُنْتُمْ عَلٰى

په سبب دَ نعمت دَهغه سره رونړه رونړه او تاسو وئ په

شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ

غاړه دَ کندے دَ اور

فَأَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا ۗ كَذٰلِكَ

نو بچ ئے کړلئ تاسو دَ هغے نه د غسے

يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ

بیانوی الله تعالیٰ تاسو ته احکام خپل

لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۳﴾

دَ دے دَپاره چه هدایت او موهئ تاسو .

وَلَا تَمُوْتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ، دا سے په سوره بقره س۱۳۲
کښې تیر شویدی یعنی په اسلام باندے په عقیده او عمل
کښې هر وخت پابند اوسیږئ تر دے پورے چه په تاسو
باندے مرګ راشی په حال دَ ایمان او اسلام کښې -
س۱۰۳ :- په دے آیت کښې دویم اصل او ادب ذکر دے او
مناسبت ئے دَ مخکښې سره اول دا دے چه کامله تقوىٰ
او همیش والے په اسلام باندے حاصلیږی په سبب دَ
اعتصام بحبل الله - دویم دا دے چه په هغه ادب کښې
اصلاح دَ خپل نفس وه او په دے ادب کښې اصلاح دَ
ټول جماعت دَ مسلمانانو ده - نو په آیت کښې امر دے په
اعتصام بحبل الله - او منع ده دَ تفرق نه -او دَ دے دوه
فائدے ذکر کوی اوله فائده دنیوی ده چه هغه الفت پیدا کیدل دی په کورنئ کښې او دشمنی

ختمیدل دی او دوېمه فائده اخروی ده چه هغه د عذاب د اُور نه بچ کیدل دی۔
وَاعْتَصِمُوْا ، دا عطف دے په اتقوالله باندے نو ایمان والو ته خطاب دے او معنیٰ د عصمت مخکښ ذکر شوه۔
بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِیْعًا ، د حبل الله په مصداق کښ د مفسرینو ډیر اقوال دی ، عهد ، قرآن ، دین ، طاعت ، اخلاص د توبے ، جماعت د مؤمنانو ، اخلاص د توحید او اسلام دا اقوال یو بل ته نیز دے دی او په روایت د ابوسعید خدری او عبدالله بن مسعود او زید بن ارقم رضی الله عنهم کښ ذکر دی چه حبل الله قرآن دے (ابوحیان ، صاحب اللباب)۔ او روایت د زید بن ارقم رضی الله عنه مسلم راوړید ے۔ حبل په اصل کښ هغه سبب ته وئیلے شی چه په هغے سره مقصد ته رسیدل کیدیشی او په عام عرف کښ رسئ ته وئیلے شی او دلته په طریقه د تشبیه یا د استعارے سره استعمال شوید ه یعنی لکه چه په رسئ سره د کوز ځائے او کوهی نه انسان بره راختلے شی او د زمکے نه اوچت ځائے ته هم په هغے سره ورختلے شی۔ او مختلف لرګی ، خشاک او سامان وغیره پرے په ګیډ ی او پنډ کښ تړلے کیدیشی نو دا رنګ په اعتصام د قرآن سره هم انسان د ذلت او جهالت نه بهر راوتلے شی او لویو درجاتو ته رسیدلے شی۔ او متفرق او مختلف خلق په دے سره متفق او متحد کرځئ۔
جَمِیْعًا ، دا حال دے د فاعل د واعتصموا نه په معنیٰ د مجتمعین سره او دا لفظ ئے روستو د حبل الله نه ذکر کړو اشاره ده چه په اعتصام بحبل الله سره اتحاد او اتفاق حاصلیږی۔
وَلَا تَفَرَّقُوْا ، په دیکښ منع ده د اختلاف کولو نه په دین حق کښ او د هر هغه بدعت نه چه سبب د تفرق کرځئ یعنی د قرآن او سنت په پرېښودلو سره چه کوم اختلاف او ډله بازی پیدا کیږی نو هغه تفرق مراد دے او هغه منع دے۔ د دے وجے نه دا فروعو او مجتهداتو اختلاف ته نه دے شامل او په دے سره نفی د اجتهاد نشی کیدلے لکه چه قرطبی وئیلی دی۔ او هغه وائی دی

چه داسے اختلاف اجتهادی په صحابه کرامو کښ هم موجود وؤ
لیکن دغه اختلاف سبب دَ فساد نه دے او نه ترینه سبب دَ
فساد جوړول پکار دی۔ لیکن کوم حدیث چه دلته قرطبی لیکلے
دے او دَ خلقو په ژبو باندے مشهور دے چه (اختلاف اُمتی
رَحْمَةٌ) نو دا دَ سند په لحاظ سره ثابت نه دے مناوی په فیض
القدیر ج۱ ص۲۱۲ کښ وئیلی دی چه سبکی وئیلی دی چه دا په
نیز دَ محدثینو معروف نه دے او څه خبر نه یم دَ دے په
هیڅ سند باندے نه صحیح نه ضعیف نه موضوع۔ او سیوطی
په جامع صغیر کښ بے سنده ذکر کړے دے او عراقی وئیلی
دی چه بیهقی په مدخل کښ دا حدیث دَ ابن عباس رضی الله
عنهما نه راوړیدے لیکن سند ئے ضعیف دے۔
وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللهِ عَلَيْكُمْ ، په دیکښ ترغیب دے عمل
کولو ته په تقوٰی او اعتصام بحبل الله په نعمت دنیویه او
اخرویه سره۔ نعمت دنیویه ختمول دَ دشمنئ دی چه دَ اوس
او خزرج (چه دوه قبیلے دَ انصارو وے) په مینځ کښ دَ یو
مقتول په سبب سره شپږ شلے کلو نه دشمنی او اختلاف وؤ۔
لیکن په سبب دَ اسلام قبلولو سره هغه دشمنی ختم شوه او دَ
دے نور تفصیل صاحب اللباب ذکر کړے دے۔ نِعْمَتَ نه
مراد اسلام یا قرآن دے یا الفت پیدا کول دی روستو دَ
دشمنئ نه لکه چه روستو ذکر دی په اِذْ كُنْتُمْ اَعْدَاءً فَاَلَّفَ
بَيْنَ قُلُوْبِكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهٖ اِخْوَانًا ، او داسے په سوره
انفال ۶۳ کښ هم دی۔ اَصْبَحْتُمْ په صباح کښ داخلیدلو ته
وئیلے شی او په معنیٰ دَ صِرْتُمْ سره استعمالیږی لیکن په دے
لفظ کښ اشاره ده چه دشمنی په مثال دَ تورے شپے ده او
مینه محبت پښتان دَ رنړا دَ صبا دے۔ اِخْوَانًا او اِخوة دواړه
جمع دَ اَخ دَ پاره دی۔ بعضے اهل لغت وئیلے دی چه اخوان
په دینی رورولئ کښ استعمالیږی او اخوت په نسبی رورولئ
کښ لیکن دا اکثری قاعده ده همیشه نه ده۔ او دَ دے

وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ أُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ

او دی دِ ستاسو نه يوه ډله چه دعوت کوی

اِلَى الْخَيْرِ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ

خير طرف ته او حکم کوی دَ نيکئ

اخوت ډيرے قصے په انصارو کښ مشهور دی يو دَ هغے نه ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دے چه يو سر دَ بيزے روريت کړے شوے) په اوؤ کورونو دَ انصارو کښ گرځيدلے وؤ چه يو کور بل کور ته دَ ايثار او احتياج دَ هغه دَ وجے نه ورکوؤ تردے چه واپس اول کور والو ته را اورسيدلو.

بِنِعْمَتِهٖ دا لفظ ئے دوباره ذکر کړو ځکه دَ اول نعمت نه دشمنی لرے کول مراد دی او دَ دويم نه الفت او اخوت پيدا کيدل مراد دی يا دَ اول نه اسلام مراد دے او دَ دويم نه قرآن مراد دے.

وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَاَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا، په ديکښ نعمت اخرويه ذکر کوی چه په سبب دَ اسلام او قرآن دَ اور دَ جهنم نه بچ شوئ. شَفَا طرف او غاړے ته وئيلے شی. مِنْهَا ضمير حفرة يا نار ته راجع دے يا شفا ته راجع دے په اعتبار دَ مضاف اليه مؤنث سره او په دے عبارت کښ تشبيه مراد ده يعنی په سبب دَ کفر او دَ شرک سره تاسو داسے وئ لکه چه انسان دَ اور دَ کندے په غاړه باندے اولاړ وی نيز دے وی چه په هغے کښ پريوځی ليکن څوک دوست ئے راشی او دَ هغه غاړے نه ئے لرے بوځی نو الله تعالٰی دَ اسلام په وجے سره تاسو دَ جهنم دَ کندے نه بچ اوساتلئ. انقاذ وئيلی شی يو څيز دَ بل دَ لاس او قبضے نه خلاصول. نو په دے لفظ کښ ډير تاکيد او مبالغه ده په بچ کولو کښ.

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ، آيات نه مراد

وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ۗ وَأُولَٰئِكَ

او منع کوی د بدئ نه او دغه کسان

هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿١٠٤﴾

خاص دوی فلاح موندونکی دی۔

قرآن دے او تیر شوی آیاتونه د دے سورت او اشاره ده چه د قرآن بیان په داسے ترتیب سره ذکر شو چه سبب د هدایت موندلو دے۔

۱۰۴:۔ دا عطف دے په ما قبل آیت باندے او خطاب دے مؤمنانو ته او ذکر د دریم اصل او ادب دے د پاره د اصلاح د نور و خلقو (مشرکانو، کافرانو، منافقانو، فاسقانو)۔ وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ أُمَّةٌ، په دے مِنْ کښ دوه اقوال دی اول قول دا چه دا د پاره د تبعیض دے یعنی بعضے ستاسو نه او دا قول د ضحاک او د طبری دے او قرطبی غوره کړے دے او دلیل ئے دا دے چه دعوت الی الخیر هغه څوک کولے شی چه خیر او معروف او منکر باندے علم لری او دارنګ د هغے طریقه پیژنی او ځایونو د سختئ او د نرمئ کښ فرق کولے شی نو مراد په دے سره علماء دی (ابوحیان)۔ او دلالت کوی په دے قول باندے آیت ۱۰۸ د سوره یوسف۔ په دیکښ لفظ بصیرت په معنیٰ د علم سره دے نو بنا په دے قول باندے دعوت فرض کفائی دے او مصداق ئے اهل علم دی په هر مکان او هره زمانه کښ۔ دویم قول دا دے چه مِنْ د پاره د بیان دے او دا قول د زجاج دے یعنی دعوت په هر مکلف باندے فرض دے په لاس سره یا په ژبه سره یا په زړه سره نو امر عام دے خو سا قطیګی په فعل د بعضو کسانو سره۔ د دے قول رجع هم فرض کفائی ته ده۔ فیصله دا ده چه هر مسلم او مؤمن باندے دعوت فرض دے او چا چه

دَ یوې مسئلې علم حاصل کړې دې نو په هغه باندې دَ هغې دعوت فرض دې او چا چه ډیر علم حاصل کړې دې نو په هغه باندې دَ هغې دعوت فرض دې لیکن چه یو علاقه کښې ډیر علماء وي نو په هغوی باندې فرض کفائي دې او چه یو علاقه کښې یو عالم حق پرست وي او نور علماء حق نه وي نو په هغه باندې فرض عین دې۔

یَدْعُوْنَ اِلَی الْخَیْرِ، ابن کثیر دَ ابن مردویه روایت دَ ابوجعفر باقر نه مرفوع نقل کړې دې چه مراد په خیر سره اتباع دَ قرآن او سنت ده۔ او اسلام او عمل په طاعت دَ الله تعالیٰ او جهاد پکښې هم داخل دي او دا اقوال ابوحیان ذکر کړي دي۔

وَیَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَیَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ، زمخشري وئیلې دي چه دا عطف دَ خاص دې په عام باندې ځکه خیر عام دې هر فعل دَ خیر او ترک دَ منکر ته شامل دې لیکن غوره دا ده چه دا عطف تفسیر دې ځکه چه لفظ دَ خیر دَ معروف او منکر نه بغیر بل مصداق نه لري نو دا تفصیل بعد الاجمال دې دَ تاکید دَ پاره۔ معروف په شریعت کښې هر هغه قول او فعل دې چه په شرع سره دَ هغې حسن (ثواب) ثابت وي نو توحید او فرائضو او اعمالو او مندوباتو ټولو ته شامل دې او منکر هر هغه قول او فعل دې چه په شرع سره دَ هغې قبح (بدي) ثابت وي دا رنګ معروف هغه څیز دې چه کتاب او سنت سره موافق وي او منکر هر هغه څیز دې چه دَ کتاب او سنت نه خلاف وي نو په معروف کښې اول توحید او ایمان داخل دې او په منکر کښې اول شرک او کفر داخل دې نو زاد المسیر کښې ابن جوزي دَ ابوالعالیه نه چه روایت کړې دې چه معروف توحید دې او منکر شرک دې دا دَ تخصیص دَ پاره نه دې بلکه ذکر دَ اول

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا

او مه کیږئ پشان د هغه کسانو چه ډلے ډلے شول

وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ

او اختلاف ئے اوکړو روستو د هغه نه چه راغلل دوی ته

الْبَيِّنٰتُ ط وَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ

ښکاره دلیلونه او دغه کسان دوی د پاره

عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿۱۰۵﴾

عذاب لوے شان والا دے .

مصداق دے په دواړو کښ۔

فائده :- قرآن کریم کښ په هر ځائے کښ د امر بالمعروف سره نهی عن المنکر یو ځائے ذکر کړے ده لکه په دے سورت ۱۱۰، ۱۱۴ او سوره اعراف ۱۵۷، توبه ۶۷، ۷۱، ۱۱۲، حج ۴۱ او لقمان ۱۷ کښ نو معلومه شوه چه اکتفاء کول په یو قسم باندے یعنی صرف امر بالمعروف کول یا صرف نهی عن المنکر کول ناقص عمل د دعوت دے او ډیر اهم پکښ نهی عن المنکر ده ځکه د دے په پریخودلو سره الله تعالیٰ سخت زجر ذکر کړے دے په سوره مائده ۶۳، ۷۹ کښ.

وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ، مراد د فلاح نه دا ده چه دوی ته به د دے عملونو اجرونه او د عملونو د هغه چانه چه د دوی د دعوت نه بعد ادی ئے کړے ده ملاویږی او دے ته اجر غیر ممنون وئیلے شی او هغه په جنت پورے خاص دے۔

۱۰۵ :- په دے آیت کښ اشاره ده چه په ترک د دعوت سره تفرق او اختلاف پیدا کیږی او عذاب عظیم ملاویږی نو دا ناکاره اثر دے چه په ترک د دعوت باندے مرتب

کیږی او مقابل دَ فلاح دے۔ او په آیت کښ نهی ده دَ تشبیه دَ یهودو او نصاراؤ نه چه هغوی دعوت ترک کړے وُو او دیرے فرقے په هغوی کښ پیدا شوے۔
وَلَا تَكُونُوا عطف دے په وَلْتَكُنْ مِّنكُمْ باندے۔
كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا ، ابوحیان وئیلی دی چه دا تفصیل دَ ماقبل دے یعنی وَلْتَكُنْ مِّنكُمْ تفصیل دَ وَاعْتَصِمُوا دے او وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ الخ تفصیل دے دَ لَا تَفَرَّقُوا دَ پاره۔
دَ ابن عباس رضی الله عنهما او حسن بصری نه نقل دے چه مراد دَ دینه یهود او نصارٰی دی ځکه چه په حدیث صحیح کښ وارد دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه مخکښ اهل کتاب (یهود او نصارٰی) په خپل دین کښ دوه اویا ډلے جوړ شویوو او دا امت به درے اویا ډلو ته تقسیمیږی۔ او بعضے مفسرینو وئیلی دی چه مراد دَ دینه بدعتیان دَ دے امت او حروریه ډله (خوارج) دی لیکن صحیح دا ده چه دوی په طور دَ تشبیه سره په آیت کښ داخل دی یا په طریقه دَ اخبار بالغیب (پیشنګوئی) سره ځکه چه په وخت دَ نزول دَ قرآن کښ دوی موجود نه وُو۔ او په مینځ دَ تفرق او اختلاف کښ فرق دے په درے وجوهو سره. اوله وجه دا ده چه تفرق په اصولو کښ وی او اختلاف په فروعو کښ وی۔ دویمه وجه، تفرق په اصولو کښ وی او اختلاف تحزب او ډله بازی او تعصب کول دی۔ دریمه وجه، تفرق دَ کتاب او سنت پریخودل دی او اختلاف مخالفت کول دی دَ کتاب او سنت نه۔ صاحب اللباب څلورم فرق ذکر کړے دے چه تفرق والا هغه کسان دی چه دَ نصوصو شرعیو باطل تاویلات کوی او اختلاف دا دے چه هر یو دَ خپل مذهب نصرت کوی۔ لیکن په اوله وجه کښ اختلاف دَ فروع چه مرتب وی په اختلاق اصولی باندے نو دا امر قبیح دے۔ نفس اختلاف دَ فروعو دَ صحابه کرامو

يَوۡمَ تَبۡيَضُّ وُجُوهٌ وَّ تَسۡوَدُّ

په داسې ورځ چه سپين به شي بعضِ مخونه او تور به شي

وُجُوهٌ ۚ فَاَمَّا الَّذِيۡنَ اسۡوَدَّتۡ

بعضِ مخونه نو هغه کسان چه تور به شي

وُجُوهُهُمۡ ۟ اَكَفَرۡتُمۡ بَعۡدَ

مخونه دَ هغوی (او به وئيلې شي دوی ته) آيا کفر کړے دے تاسو روستو دَ

اِيۡمَانِكُمۡ فَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ

ايمان ستاسو نه نو اوڅکئ عذاب

بِمَا كُنۡتُمۡ تَكۡفُرُوۡنَ ﴿۱۰۶﴾

په سبب دَ هغه چه تاسو کفر کوۀ۔

او دَ مجتهدينو په مينځ کښې په ديکښې داخل نه دے۔ دلته زيات تفصيل قاسمي په خپل تفسير کښې او آلوسي ليکلے دے. مِنۡ بَعۡدِ مَا جَآءَهُمُ الۡبَيِّنٰتُ، دَ ابن عباس رضی الله عنهما په تيز هغه آيا تونه مراد دی چه مخکښې ملتونو باندے نازل شوے وۀ او تورات او انجيل او قرآن په کښې داخل دی. وَ اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ، دا دليل دے چه تفرق او اختلاف گناه کبيره دے او کله کله کفر ته اورسيږی.

س۱۰۶:۔ دا متعلق دے په عذاب عظيم پورے او مفعول فيه دے دَ هغے دَ پاره يا لفظ دَ وَاذۡكُرۡ پټ دے او په ديکښې دَ تفرق نه دَ بچکيدلو او دَ دعوت نتيجه ده په سپينوالی دَ مخونو سره او نتيجه دَ پريخودلو دَ دعوت او دَ تفرق په توروالی دَ مخونو سره ذکر کوی۔

يَوۡمَ تَبۡيَضُّ وُجُوهٌ وَّ تَسۡوَدُّ وُجُوهٌ، صحيح دا ده چه مراد دَ سپينوالی او توروالی نه معنی ظاهری حقيقی ده او داسے په سوره يونس س۲۶ او سوره زمر س۶۰ او سوره قيامه س۲۲

او سوره عبس ۳۸ کښې دي - او دا به په ورځ دَ قيامت کښې وي ليکن دَ مفسرينو په تعين دَ مقام کښې اقوال دي- اول قول، دا به په وخت دَ پاسيدلو کښې وي دَ قبرونو نه- دويم قول، دا به وخت دَ تول کولو دَ اعمالو کښې وي، دريم قول، په وخت دَ لوستلو دَ اعمال نامو کښې به وي - څلورم قول، دا به په وخت دَ وئيلو دَ وَامۡتَازُوا الۡيَوۡمَ اَيُّهَا الۡمُجۡرِمُوۡنَ کښې وي -پنځم قول، کله چه او ئيلے شي چه هر څوک دے دَ خپل معبود سره روان شي نو دا به په هغه وخت کښې وي-
او په مخونو والو کښې هم اقوال دي اول قول دَ ابن عباس او دَ ابن عمر رضی الله عنهم دے چه حديث مرفوع کښې وارد دي چه سپين به شي مخونه دَ اهل سنت او تور به شي مخونه دَ اهل بدعت - قرطبي وئيلي دي دا حديث منکر دے - او حديث (موقوف) دَ ابو امامه رضی الله عنه دے چه ده اوليدل سرونه (دَ خوارجو باغيانو) چه آويزان وو په دروازه دَ دمشق باندے نو اوئيل يې چه كِلَابُ النَّارِ شَرَّ قَتۡلٰى تَحۡتَ اَدِيۡمِ السَّمَآءِ خَيۡرُ قَتۡلٰى مَنۡ قَتَلُوۡهُ ،(دا سپي دَ اور دي او بد تر قتيلان (قتل کړے شوي) دي لاندے دَ څرمنو دَ آسمان نه او غوره دي هغه څوک چه دوي قتل کړي دي) بيا يې اولوستلو دا آيت يَوۡمَ تَبۡيَضُّ وُجُوۡهٌ وَّتَسۡوَدُّ وُجُوۡهٌ ، (ترمذي وئيلي دي چه دا حديث حسن دے).
دويم قول دَ عطاء دے چه سپين به شي مخونه دَ مهاجرينو او انصارو او تور به شي مخونه دَ بنو قريظه او بنو نضير-
دريم قول دَ ابي بن کعب دے چه مراد ترينه کافران دي په دليل دَ روستو جملے سره او دا قول منافقانو او مرتدينو او يهود او نصارای او هغه مبتدعينو ته چه بدعت يې کفر ته رسيدلے وي شامل دے -او قرطبي په تفسير دَ دے آيت کښې وئيلي دي چه هر چا چه بدل کړو دين دَ الله تعالی يا يې بدعت پيدا کړو په دين دَ الله تعالی کښې هغه څيز

چه دَدین نه دے نو دے په دَحوض کوثر نه شړلے کیږی او مخ به ئے تور وی - او په دیکښ داخل دی هغه څوک چه دَ مسلمانانو دَعقیدے نه مخالف شی لکه خوارج او روافض او معتزله او ظالمان او ښکاره کوونکی دَکبائرو ګناهونو او خاوندان دَ هوئ او بدعتیان دَدے ټولو په باره کښ یره کیدیشی چه په دے آیت کښ داخل وی اګرچه په اور کښ به هغه خلق همیشه وی چه هغوی کافران او منکر وی۔

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْوَدَّتْ وُجُوْهُهُمْ اَكَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ ، په دیکښ تخویف اخروی دے یوړلے ته او دا تفصیل دَ دواړو فرقو دے په طریقه دَلف او نشر غیر مرتب سره- وجه دَ بدلولو دَ ترتیب دا ده چه سپینو مخونو والا افضل دی نو اول ئے هغوی مخکښ راوړل دَپاره دَ شرافت دَ هغوی - نو بیا ئے تورو مخونو والا مخکښ کړو چه مقصد دَ دوی دَ حال ته تحذیر ورکول دی او دفع دَ ضرر مخکښ وی دَ فائدے راخکلو ته۔

فَاَمَّا ، شرط دے او جزاء پټه ده یعنی فَيُقَالُ لَهُمْ اَكَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ ، اَكَفَرْتُمْ کښ اختلاف دے په خطاب کښ، په سبب دَ اختلاف سره په تَسْوَدُّ وُجُوْهٌ کښ نو که مراد دَ هغے نه مبتدعین وی په دا سے بدعت سره چه کفر ته رسول کوی نو خطاب دغه مبتدعینو ته دے او که مراد دَ هغے نه بنو قریظه بنو نضیر (یهودیان) وی نو هغوی دَ بعثت دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه وړاندے په هغه ایمان لرلو او هرکله چه هغه مبعوث کړے شو نو دوی کفر اوکړو نو خطاب دغه یهودو ته اوشو - او که مراد دَ هغے نه عام کافران وی نو هر کافر په فطرت دَ توحید سره پیدا شوے دے او روستو ئے کفر اختیار کړے دے نو دا خطاب ورته صحیح دے او که مراد دَ هغے نه منافقان وی نو منافق خو په ژبه ایمان راوړے دے او په زړه سره ئے کفر کړے دے نو هغه ته دا خطاب صحیح دے او که مراد مرتدین شی نو دا خطاب خو واضح

وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ
او هر چه هغه کسان دی چه سپین به شی مخونه د هغوی
فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ ۖ هُمْ فِيهَا
نو دوی به په رحمت د الله تعالی کښ وی دوی به په هغې کښ
خَالِدُونَ ﴿١٠٧﴾ تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ
همیشه وی - دا (رچه ذکر شول) آیاتونه د الله تعالی دی
نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۗ
لولو مونږ دے لره په تا باندے په حقه سره
وَمَا اللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِّلْعَالَمِينَ ﴿١٠٨﴾
او نه دے الله تعالی چه اوغواړی ظلم کول په عالم والو باندے۔

دے۔ دا سے تفصیل ابوحیان ذکر کړے دے۔
فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ، ذوق ئے په طریقه د استعارے سره ذکر کړے دے اشاره ده چه د عذاب خوند تریخ دے او دوی به د هغې په تریخوالی باندے بنه پوهه شی۔
نمبر ۱۰۷:- په دیکښ بشارت اخرویه دے دو یمے ډلے ته۔
فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ، فِي اشاره ده چه رحمت به دوی ته د هرطرف نه شامل وی ځکه چه هغه ئے طرف کرځولے دے او اضافت د رحمت ئے الله تعالی ته کړے دے اشاره ده عظمت د رحمت د هغه ته او اشاره ده چه جنت ته داخلیدل هم په رحمت د الله تعالی سره دی او ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه مراد د رحمت نه جنت دے۔
نمبر ۱۰۸:- په دے آیت کښ ذکر د صدق د رسول صلی الله علیه وسلم دے او جواب د سوال دے چه د مخکښ مضمون نه پیدا کیږی یعنی هر کله چه اوئیلے شو چه د کافرانو مخونه

په نور وی کیږی یعنې چه دا به دے نبی صلی الله علیه وسلم دځان نه وئیلې وی ځکه چه داخو ظلم کول دی او الله تعالیٰ خو ظلم نه کوی حاصل جواب دا دے چه دا آیا تونه د الله تعالیٰ د طرف نه دی د حق بیان د پاره نبی صلی الله علیه وسلم دځان نه نه دی جوړ کړی او مجرمانو ته سزا ورکول ظلم نه دے بلکه عدل دے۔

تِلْكَ اٰیٰتُ اللّٰهِ، تِلْكَ اشاره ده ټول مخکښ مضمون ته خصوصًا عذاب عظیم ته او تفرق والو ته او مخونه توره ولو د کافرانو ته په ورځ د قیامت۔

نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ، نسبت د تلاوت الله تعالیٰ ته حقیقت دے په شان د نورو صفاتِ الٰهیه بغیر د تمثیل او تشبیه نه او بغیر د تحریف او تاویل نه۔

بِالْحَقِّ، حق په معنیٰ د رشتیا سره دے او ابن کثیر وئیلی دی چه مراد ترینه کشف (ښکاره کول) د احوالو د دُنیا او د آخرت دے۔

وَمَا اللّٰهُ یُرِیْدُ ظُلْمًا لِّلْعٰلَمِیْنَ، په دیکښ مبالغه ده یعنی چه اراده د ظلم نه کوی نو ظلم کول خو د هغه د شان نه ډیره لرے خبره ده - د ظلم دلته معنیٰ مصدری مراد ده او للعٰلمین په دے پورے متعلق دے او نکره یے په مقام د نفی کښ ذکر کړی ده د ډیر عموم د پاره یعنی په هیڅ یو شخص بانداے د هیڅ قسم ظلم کولو اراده نه کوی۔ او معتزله وائی چه ظلمًا اسم مصدر دے یعنی بندګان چه کوم ګناهونه کوی نو دا د الله تعالیٰ د ارادے نه بغیر کوی بندګان د دے په خپله خالق دی او دا قول باطل دے ځکه چه په دا سے وخت کښ مِنَ الْعٰلَمِیْنَ وئیل پکار وُو۔

وَ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا

او خاص الله تعالیٰ لره اختیار دے د هغه څیزونو چه په آسمانونو کښ دی او د هغه

فِی الْاَرْضِ ؕ وَ اِلَی اللّٰهِ

چه په زمکه کښ دی او خاص الله تعالیٰ طرف ته

تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴿۱۰۹﴾ كُنْتُمْ خَیْرَ ع ۱۱/۸ ۲

گرځولے شی ټول کارونه ۔ دے تاسو غوره

اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ

امت راویستلے شوی یئ د خلقو د پاره امر به کوئ

بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ

په نیکئ سره او منع به کوئ د بدئ نه

وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ؕ وَلَوْ اٰمَنَ

او ایمان به لرئ په الله تعالیٰ باندے او که چرے ایمان راوړلو

۱۰۹ :۔ په دے آیت کښ ذکر د علت دے د پاره د
وَمَا اللّٰهُ یُرِیْدُ ظُلْمًا ، یعنی ظلم هغه څوک کوی چه قدرتِ
عامه او واسعه نه لری او د الله تعالیٰ د پاره خو په دُنیا
او آخرت کښ فراخه قدرت او تصرف دے نو هغه
غنی (بے پرواه) دے د ظلم کولو نه ۔ دا رنګ
په دے آیت کښ دعویٰ د توحید ده روستو د صِدقِ
رسول نه یعنی ټوله بادشاهی او تصرفات د الله تعالیٰ
دی نو هغه حاجت روا او حقدار د بندګئ دے ۔ او
دے دواړه توجیهاتو ته قرطبی اشاره کړیده ۔
وَلِلّٰهِ لام د پاره د مِلك او عبدیت او تصرف دے.

أَهْلُ الْكِتٰبِ لَكَانَ خَيْرًا

كتاب والو ضرور غوره به وه

لَّهُمْ ۚ مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ

دوى لره بعضِ دَ دوى نه مؤمنان دى

وَ اَكْثَرُهُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۱۱۰﴾

او ډير دَ دوى نه نافرمان دى۔

۱۱۰ :- دا متعلق دے دَ وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ سره او په مينځ كښ جملے معترضے دى او په ديكښ ډير ترغيب او تيزى وركول مقصد دے په دعوت كولو باندے او فائده دَ دعوت ذكر كوى په وصف دَ خيريت سره يعنى دعوت سبب دَ خيريت (غوره والى) دے په نيز دَ الله تعالىٰ۔

كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ ، دا خطاب اول صحابه كرامو ته دے او بيا شامل دے دَ هغوى تابعدارانو ته ترقيامته پورے په صفت دَ دعوت كولو سره۔ په كَانَ او لفظ دَ كُنْتُمْ كښ درے اقوال دى اول قول دا دے چه كان فعل ناقص دے او خير امة خبر دے او دا كان دَ دوام دَ نسبت دَ پاره دے لكه كَانَ اللهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ، او كَانَ فَاحِشَةً وَّسَاءَ سَبِيْلًا۔

دويم قول دا دے چه كان ناقص دے او پخپله معنىٰ (انقطاع دَ ماضى) سره دے يعنى كُنْتُمْ فِى اللَّوْحِ الْمَحْفُوْظِ او فِى عِلْمِ اللهِ او فِى الْكُتُبِ السَّابِقَةِ (روئ تاسو په كتاب دَ تقدير كښ يا په علم دَ الله تعالىٰ كښ يا په مخكنو كتابونو كښ)۔

دريم قول دا دے چه كان زيائى دے په معنىٰ دَ اَنْتُمْ سره او دا قول دَ فراء دے په ديكښ اول قول غوره دے۔ خير اسم تفضيل دے مضاف دے نكره ته او هغه په معنىٰ دَ جمع كښ ده يعنى ډير امتونه۔

اُخْرِجَتْ ، مراد دَ اخراج نه ظهور او خوريدل دى او فاعل

دَ اخراج اللہ تعالیٰ دے او پہ دیکښ اشارہ دہ چہ دا امت دَ
وجے دَ دعوت نہ ښکارہ او مشهور دے۔
لِلنَّاسِ متعلق دے دَ خیر سرہ یا دَ اخرجت سرہ او لام
دَ پارہ دَ انتفاع دے۔
تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ، دا صفت دے پہ
معنیٰ دَ شرط سرہ یا علت دے دَ پارہ دَ خیر۔ او مجاهد وئیلی
دی چہ اِذْ لفظ دلتہ پټ دے نو معلومہ شوہ چہ سبب دَ
خیریت (غورہ والی) امر بالمعروف او نهی عن المنکر دے۔
قرطبی وئیلی دی هر کلہ چہ دَ دے امت نہ څوک دا کار
پریږدی نو دوی قابل دَ ذم او دَ بدئ وی او دا بہ سبب
وی دَ دوی دَ هلاکت دَ پارہ۔ آلوسی وئیلی دی چہ معروف
ټول طاعاتو تہ او منکر ټول معاصیو تہ شامل دے او دَ
ابن عباس رضی اللہ عنهما نہ ئے نقل راوړی دے چہ لوئے
معروف کلمہ دَ توحید دہ او لوئے منکر تکذیب (شرک)
کول دی۔ ابن کثیر دَ فضیلت دَ دے امت دَ پارہ دَ دے
آیت پہ تفسیر کښ تقریباً او ویشت احادیث ذکر کړی دی۔
وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ، مراد دَ ایمان نہ ایمان کامل دے
یعنی ایمان شرعی۔
سوال :- ایمان خو مخکښ دے پہ دعوت کولو باندے تو دلتہ
ئے ولے روستو ذکر کړے دے ؟
جواب لہ :- دلتہ مقصد سبب دَ غورہ والی دے دَ نورو
امتونو نہ او وصف دَ ایمان کښ ټول شریک دی لیکن
دَ دے امت خصوصیت کثرتِ دعوت دے دَ دے وجے
نہ دعوت ئے مخکښ ذکر کړے دے۔
جواب ۲ لہ :- مراد دَ دینہ دوام او کلک والے دے پہ ایمان
باندے تر مرګہ پورے او سبب دَ هغے دعوت کول دی نو
دا ذکر دَ اثر دے روستو دَ مؤثر نہ۔
وَلَوْ اٰمَنَ اَهْلُ الْكِتٰبِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ، دلتہ مراد دَ ایمان

لَنْ يَّضُرُّوْكُمْ اِلَّآ اَذًى ؕ

هیڅ‌ بیرته ضرر نشي در کولے دوی تاسو ته مګر بس رد د خُلے

وَاِنْ يُّقَاتِلُوْكُمْ يُوَلُّوْكُمُ

او که چرے دوی جنګ او کړي تاسو سره نو او به ګرځوی تاسو ته

نه ایمان دے پشان دَ دے امت یعنی چه دَ هغے ایمان شرعی سره امر بالمعروف او نهی عن المنکر یوځائے کړیشی نو دوی به هم په صفت دَ خیریت کښ داخل شی او په دے معنیٰ سره دا ربط لری دَ كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ سره او پس یکښ مقصد دعوت ورکول دی کتابیانو ته روستو دَ ذکر دَ خبائثو دَ هغوی نه چه مخکښ تیر شویدی۔

لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ، دلته خیر تفضیلی مراد دے یعنی دَ دے ایمان فائدے به په دنیا او اخرت کښ دوی ته حاصل شی او هرچه دَ دوی ایمان دے (ایمان غیر شرعی) نو دَ هغے فائدے صرف په دنیا کښ دی چه مالونه او مرتبے او مشری په هغے سره په دُنیا کښ حاصلیږی او په آخرت کښ هلاکت دے۔ یا خیر فی نفسه مراد دے معنیٰ تفضیلی پکښ نیشته ځکه چه دَ دوی په کفر کښ هیڅ خیریت نیشته دے۔

مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ وَاَكْثَرُهُمُ الْفٰسِقُوْنَ، دَ دے ځائے نه تقسیم دَ اهل کتابو ذکر کوی دوه قسمونو ته او دَ هر قسم لس لس حالات ذکر کوی۔

فٰسِقُوْنَ، په مقابله دَ مؤمنون کښ په معنیٰ دَ کافرون سره دی هر کله چه کفر دَ دوی په سبب دَ ضد او عناد سره وؤ دَ دے وجے نه فاسقون ئے ذکر کړلو۔

الْأَدْبَارَ ۖ ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ ﴿١١١﴾

شا ګانې بيا به د دوى سره هيڅ مدد نشي کيدلے.

ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ أَيْنَ

تا په کړے شوے دے په دوى باندے ذلت هر ځائے

مَا ثُقِفُوا إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللَّهِ

چه دوى او موندلے شى مګر چه (منګولے او لګوى) په رسئ د الله تعالىٰ باندے

سـ ۱۱۱ :- په دے آيت کښ درے احوال د فاسقينو اهل کتابو ذکر کوى - او دا درے واړه پيشنګوئى دى چه الله تعالىٰ د صحابه کرامو د پاره رشتينې کړيدى او آيت په باره د يهوديانو کښ دے.

إِلَّا أَذًى ، اذى د ژبے په ذريعه سره ضررى کلمات وئيل دى. طعن کول په نبى صلى الله عليه وسلّم او کلمات شرکيه او بهتانونه په مؤمنانو باندے، ردے بدے وئيل او سب وشتم کول دا هم ضرر دے د دے وجے دا استثناء متصله ده.

وَإِن يُقَاتِلُوكُمْ يُوَلُّوكُمُ الْأَدْبَارَ ، يعنى قتال تاسو سره نشى کولے د وجے د جبن (بزدلئ) نه - أدبار يئ وئيلے دے ظهور (شا ګانے) يئ نه دے وئيلے ځکه چه په دے لفظ کښ د دوى ډير توهين او بے عزتى ده.

ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ ، يعنى په وخت د قتال يا بغير د قتال نه هم د دوى سره نصرت نشى کيدلے او دا د إِن يُقَاتِلُوكُمْ د لاندے نه دے داخل ځکه چه عدم نصرت د دوى مشروط نه دے په شرط د قتال پورے بلکه عامو اوقاتو ته شامل دے او ثم دلالت د تعقيب ذکرى د پاره دے.

وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ وَبَآءُوْ

او په رسۍ د خلقو (مؤمنانو) نه او اخته شوے دی دوی

بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ

په غضب د الله تعالیٰ د طرف نه او ټاپه شوے دے په دوی باندے

الْمَسْكَنَةُ ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا

خواری دا په دے سبب سره چه یقیناً دوی

يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ

کفر کوؤ په آیاتونو د الله تعالیٰ سره او قتل کول ئے

الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۭ

پیغمبران په غیر د جرم شرعی نه

ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا

دا په دے سبب چه دوی نافرمانی کوله او وۀ دوی چه

يَعْتَدُوْنَ ﴿۱۱۲﴾

د حد نه ئے تیروتل کول۔

۱۱۲:۔ په دے آیت کښں د دوی اوۀ حالات ذکر کوی۔ ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ، دا ضرب کنایه ده د ټاپے وهلو نه په سکه باندے لکه چه هغه ټاپه په هغے کښں پیوست او کلکه وی په هیڅ نه جدا کیږی دارنګ ذلت هم په دوی پورے جوخت او پیوست دے۔ مصداق د ذلت جزیه اخستل دی په وخت د غلبے د اهل اسلام کښں۔ دارنګ په جنګ کښں د دوی مالونه غنیمت کښں راوړل او دوی قید کول دی۔ او ذلت د دوی په نفسونو کښں بخل او نور خسیس اخلاق دی۔

أَيْنَمَا ثُقِفُوْا ، دا دَ تعميم دَ مكان دَ پاره دے ۔ ثقف موندل دى هغوى لره سره دَ قدرت نه په هغوى باندے ۔ يعنى كه په ميدان جنګ كښ وى يا بل ځائے وى ۔

إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ ، مراد دَ حبل الله او حبل الناس نه عهد دَ ذمے دے چه په هغے سره عصمت دَ مالونو او دَ وينو دَ دوى حاصل شى ليكن دَ جزئے نه نه خلاصيږى هغه ذلت به په دوى باندے باقى وى يا مراد دَ حبل الله نه اسلام او حبل من الناس نه اتباع دَ لارے دَ مؤمنانو ده نو په داسے وخت كښ به دوى هر قسم ذلت نه بچ شى (آلوسى) ۔

وَبَاءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللهِ ، دَ دے تفسير په سوره بقره كښ تير شوے دے ۔

وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ، يعنى دوى خپل حال دَ فقرئ او دَ مسكينئ ښكاره كوى اګرچه مالدار وى او دا دَ وجے دَ بخل او حرص دَ دنيا او دَ ناشكرئ دَ وجے نه ۔

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللهِ ، په ديكښ ذكر دَ اسبابو دَ غضب او مسكنت دے دَ دے تفسير په سوره بقره كښ ذكر شويدے ۔

فائده :- داسے په سوره بقره ۲۱ كښ تير شويدى او دَ دواړو اياتونو په مينځ كښ فرق دے په څو وجوهو سره ۔ اول وجه دا ده چه هلته ذلت او مسكنت ئے جدا ذكر كړل ۔ دويم دا چه هلته ئے مسكنت دَ غضب نه مخكښ ذكر كړے دے او دلته ئے الا بحبل من الله استثناء ذكر كړيده ۔ دريم هلته ئے مسكنت دَ غضب نه مخكښ ذكر كړے دے او دلته ئے روستو ذكر كړيدے ۔ څلورم هلته ئے النبين ذكر كړے وؤ او دلته ئے الانبياء ذكر كړيدے اصل وجه دَ فرق دا ده چه هلته ذكر دَ حالت دَ يهوديانو مخكښ دَ نزول دَ قرآن نه په زمانه دَ موسىٰ عليه السلام

کښې او دلته دَ دوی حال ذکر کوی په وخت دَ نزول دَ قرآن کښې ـ تفصیل دَ اول فرق دا دے چه هلته دَ درے واړو اسباب مشترک وؤ نو یوځائے ئے ذکر کړل او دلته دَ ذلت سبب عدم ایمان دے په آخری رسول او قرآن باندے په قرینه دَ لَوْ اٰمَنَ اَهْلُ الْكِتٰبِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ سره او دَ غضب او مسکنت اسباب روستو ذکر دی ـ وجه دَ دویم فرق دا ده چه په دے سورت کښې مخکښې اعتصام بحبل الله ذکر کړے شوے نو اهل کتابو ته ئے دَ هغے ترغیب ورکړو چه تاسو په دَ ذلت نه په اعتصام سره بچ شئ او سوره بقره کښې دَ دے ذکر نه دے شوے ـ او دَ دریم فرق وجه دا ده چه په سورۀ بقره کښې ذلت او مسکنت په سبب دَ تبدیل دَ نعمت دَ الله تعالیٰ سره مراد وؤ نو مراد دَ مسکنت نه هغه حال دے چه په هغه زمیندارانو باندے ښکاره کیږی چه دَ دین لحاظ نه کوی او دلته مسکنت دَ حرص دَ دنیا او دَ بخل او ناشکرئ دَ وجے نه مراد دے ـ

وجه دَ څلورم فرق دا ده چه النبیّن او الانبیاء دواړه صیغے دَ جمع دَ وجے دَ الف لام نه دلالت کوی په کثرت باندے لیکن النبیّن قرآن کریم دَ ټولو انبیاؤ دَپاره ذکر کړیدے لکه په سوره مریم ت۵۸ او احزاب ت۴۰ او زمر ت۶۹ کښې ـ او الانبیاء ئے صرف دَ بنی اسرائیلو دَ انبیاؤ دَپاره ذکر کړیدے په وصف دَ قتل سره لکه په سوره بقره ت۹۱ او سورۀ آلعمران ت۱۱۲ ، ت۱۸۱ او سوره نساء ت۱۵۵ کښې ـ یا بغیر دَ وصف دَ قتل نه لکه سوره مائده ت۷۰ کښې نو په سورۀ بقره کښې مقصد ذکر دَ خباثتو نو دَ اهل کتابو دے نو هلته ئے دا سے لفظ ذکر کړو چه هغه ډیر دلالت کوی په کثرت باندے او دلته صرف ذکر دَ حال قبیحه دَ دوی ذکر کول مقصد دے نو هغه لفظ ئے راوړو چه دوی پورے خاص دے (وَاللهُ اَعْلَمُ بِحِكَمِ كَلَامِهٖ ـ) ـ

لَيْسُوْا سَوَآءً ۗ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

نه دي دوی برابر بعضِ دَ کتاب والو نه يو

اُمَّةٌ قَآئِمَةٌ يَّتْلُوْنَ اٰيٰتِ اللّٰهِ

ډله ده کلکه په دين پاندے لولی دوی اياتونه دَ الله تعالیٰ

اٰنَآءَ الَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُوْنَ ﴿١١٣﴾

په وختونو دَ شپه کښ او دوی سجدے کوی۔

س ۱۱۳:۔ په دے درے آياتونو کښ دويم قسم اهل کتاب ذکرکوی چه مخکښ يئے دوی ته مؤمنون وئيلے دی او دَدوی هم لس حالات دَ مدح ذکرکوی۔په دے آيت کښ دَ هغے نه درے ذکر کړی دی۔

لَيْسُوْا سَوَآءً، دا مستقله جمله ده په دے کښ رد دے په هغه چا باندے چه هغه اهل کتاب (چه ايمان يئے په آخری نبی باندے راوړے وی) ناکاره ګنړی لکه چه ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه کله عبد الله بن سلام او دَ هغه ملګرو اسلام قبول کړ نو نورو يهوديانو وئيل چه دا شريان خلق دی ځکه چه دين دَ مشرانو يئے پرېښودلے دے حاصل جواب دا دے چه په دے مؤمنانو (چه په آخری نبی يئے ايمان راوړے دے) کښ ټول دَ خير صفات دی نو دوی دَ مخکنو ذکر کړے شوؤ کتابيانو پشان مه ګنړئ۔

مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اُمَّةٌ، دا تفصيل دے دَ فرق ذکرکولو دَپاره په مينځ دَ دواړو ډلو کښ۔ او صاحب اللباب وئيلی دی چه په دے اهل کتابو کښ مخکنی اديانو والا او مسلمانان هم داخل دی په دليل دَ حديث دَ مسند احمد سره چه نبی صلی الله عليه وسلم يوه شپه مونځ دَ ماسخوتن روستو کړو او بيا دَ کور ته رااو وتلو او خلقو دَ مونځ انتظار کوؤ نو هغه اوفرمائيل چه نيشته هيڅوک دَ اديانو والو نه چه الله تعالیٰ لره

په داسې وخت کښې یا دوی غیر ستا سو نه او دا آیت ئې
او لوستلو - ابوحیان هم وئیلی دی چه مراد اهل کتاب نه
قرآن والا دی چه نور اهل کتاب دَ دوی سره برابر نه وی.
قَآئِمَةٌ په معنیٰ دَ مستقیمة دے مجاهد وئیلی دی چه په
معنیٰ دَ عادله (عدل والا) دے - قتاده او ربیع وئیلی دی
چه قَآئِمَةٌ عَلٰی کِتَابِ اللّٰهِ وَحَدُوْدِهٖ ، (او لاړ دی په کتاب
دَ الله تعالیٰ او احکامو دَ هغه) یا په معنیٰ دَ قیام کوؤنکی په
مونځونو کښې -
یَتْلُوْنَ اٰیٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ الَّیْلِ ، اٰنَآءَ په معنیٰ دَ وختونو دَ شپه کښې
دَ ماښام دَ وخت نه تر مونځ دَ صبا پورے ټولو وختونو ته شامل
دے او دا په طریقه دَ تقسیم سره دے یعنی دَ فرائضو نه
علاوه څوک په اول دَ شپه کښې قرآن لولی او څوک په مینځ
کښې او څوک په آخر کښې - او مراد دَ دے نه لوستل دَ قرآن
دی په مونځ کښې اشاره ده چه اهم مقصد په مونځ دَ شپه
کښې قرآن لوستل دی - او هر کله چه دَ شپې دَ مانځه داسې
اهتمام کوی نو دَ ورځې خو ضرور کوی دَ دے وجې نه دَ ورځې
ذکر ئې نه دے کړے -
وَهُمْ یَسْجُدُوْنَ ، یعنی سجده کوی روستو دَ لوستلو دَ قرآن نه
سجده دَ مانځه یا سجده دَ تلاوت یا مراد دَ سجدے نه
مونځ دے په ذکر دَ جزء سره او مراد تری نه کل دے - یا
مراد دَ سجدے نه خشوع او خضوع او حکم دَ الله تعالیٰ
منل دی په هر وخت کښې - نو په دے آیت کښې دوه توجیه
دی اول دا جدا جدا صفتونه دی یعنی استقامت په دین،
او قرآن لوستل ، او مونځ کول - دویمه توجیه دا چه یو
صفت دے یعنی په مانځه کښې قیام کوی او په هغے کښې قرآن
لولی او بیا سجده کوی - ذکر دَ قیام او سجود ئې دَ دے وجې نه
او کړو چه دا دواړه دَ شپې په مونځ کښې اوږده وی دَ رکوع
نه او دا رنګ په سوره زمر ۹ کښې دی -

يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

ایمان راوړی دوی په الله تعالیٰ او په ورځ روستنۍ باندې

وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ

او حکم کوی په نیکۍ سره او منع کوی

عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُسَارِعُوْنَ

د بدۍ نه او کوشش کوی دوی

فِي الْخَيْرٰتِ ط وَاُولٰٓئِكَ

په نیکو کارونو کښې او دغه کسان

مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۱۴﴾

د ډلې د نیکانو نه دی۔

۱۱۴:- په دې آیت کښې د دوی نور شپږ صفتونه ذکر کوی۔ مخکښې یې هغه صفتونه ذکر کړل چه په یهودیانو کښې موجود وو او س هغه صفتونه ذکر کوی چه په دې سره امتیاز راځی د اهل حق او اهل باطل ځکه چه دا صفتونه اهل کتابو پریخودلے وو۔ او مَا بِهِ الْاِشْتِرَاك مخکښې وی په مَا بِهِ الْاِمْتِیَاز باندې (هغه خیز چه سبب د شرکت وی هغه مخکښې وی په هغه خیز چه سبب د امتیاز وی) د دې وجې نه ایمان او امر بالمعروف او نهی عن المنکر یې د مخکښې صفاتونه روستو ذکر کړل۔

يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ، مراد د ایمان نه شرعی ایمان دے یعنې د ایمان د صحابه کرامو او داسې ایمان په یهود او نصاراؤ کښې نه وو۔

وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ، په دې کښې هم تعریض دے په یهود او نصاریٰ باندې ځکه چه هغوی کار د دعوت د حق پریخودلے وو بلکه د دې برعکس عمل یې کولو رد منکراتو طرف ته دعوت او د

وَمَا يَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ
او هغه چه کوي دوی څه د نیک کار نه
فَلَنْ يُّكْفَرُوْهُ ؕ وَاللّٰهُ
نو هیڅ کله به محروم نشي د ثواب د هغې نه او الله تعالی

نیک کارونو نه منع کول ئې کول)

وَيُسَارِعُوْنَ فِي الْخَيْرَاتِ، دا صفتِ جامعه دے ټولو صفتونو د خیر لره که د نفس سره تعلق لري او که د غیر سره او مسارعت په خیر کښ دلالت کوي په ډیر رغبت کولو باندے په خیرات کښ او په دے کښ هم تعریض دے په یهودیانو باندے چه هغوی کوشش کوي په کارونو د شر کښ. مسارعت په اصل کښ ډیر اهم کار بل اهم باندے مخکښ کولو ته وئیلے شي لکه چه تعارض راشي د فرضِ عین او فرضِ کفائي نو فرضِ عین به اول کوي یا تعارض راشي په فرض او سنت عمل کښ نو د فرض عمل به وړاندے کوي. د امر بالمعروف او نهي عن المنکر نه روستو دا صفت ئې د دے وجے نه ذکر کړو چه په امر بالمعروف او نهي عن المنکر کښ د اَهَمُّ فَالْاَهَمُّ او مرتبو لحاظ کوئ. او دا صفت د مدح دے او هرچه عجلت دے نو هغه مخکښ کول د غیرضروري دي په ضروري باندے او دغه صفت د بدئ دے.

وَاُولٰٓئِكَ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ، په صفت د صلاح کښ زیاتوالے په اسلام باندے د دے وجے نه د انبیاء علیهم السلام په دعا او صفت کښ دا وصف ذکر دے لکه دعا د سلیمان علیه السلام سوره نمل ۱۹ کښ او دا سے صفت په سوره بقره ۱۳۰ او سورة الانبیاء ۷۲، ۸۵ کښ هم دے.

عَلِيۡمٌۢ بِالۡمُتَّقِيۡنَ ﴿۱۱۵﴾ اِنَّ الَّذِيۡنَ

خه علم لری په متقیانو باندے - یقینًا هغه کسان

كَفَرُوۡا لَنۡ تُغۡنِىَ عَنۡهُمۡ

چه کفر ئے کړے دے هیچرے به دفع نه کړی دَ دوی نه

اَمۡوَالُهُمۡ وَلَاۤ اَوۡلَادُهُمۡ مِّنَ

مالونه دَ دوی او نه اولاد دَ دوی دَ عذاب دَ

اللّٰهِ شَيۡـئًا ؕ وَاُولٰٓـئِكَ اَصۡحٰبُ

الله تعالیٰ هیڅ څیز او دغه کسان اور

النَّارِ ۚ هُمۡ فِيۡهَا خٰلِدُوۡنَ ﴿۱۱۶﴾

والا دی دوی به په هغے کښ همیشه دی -

۱۱۵ :- په دیکښ بشارت دے او لوئے شان ذکر کوی دَ تیر شوے صفاتو والو او یو صفت دَ هغوی ذکر کوی -

وَمَا يَفۡعَلُوۡا مِنۡ خَيۡرٍ ، ضمیر راجع دے امت قائمه ته -

فَلَنۡ يُّكۡفَرُوۡهُ ، دلته مراد دَ کفر نه دَ ثواب دَ عمل نه محروم کیدل دی او دَ دے معنے دَ وجے نه دا متعدی کړے شویدے دوه مفعولونو ته اګرچه کفر په معنیٰ مشهور سره متعدی وی یو مفعول ته -

وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌۢ بِالۡمُتَّقِيۡنَ ، علم دَ الله تعالیٰ اګرچه عام دے لیکن تخصیص ئے په متقیانو پورے دَ ترغیب دَ پاره دے -

۱۱۶ :- دا تخویف اخروی دے روستو دَ بشارت نه - هر کله چه لَيۡسُوۡا سَوَآءً کښ دوه فریقو ته اشاره وه او دَ یو فریق ذکر ئے په مِنۡهُمۡ اُمَّةٌ سره اوکړو نو اوس دویم فریق دَ هغوی مقابل ذکر کوی -

لَنۡ تُغۡنِىَ عَنۡهُمۡ اَمۡوَالُهُمۡ وَلَاۤ اَوۡلَادُهُمۡ مِّنَ اللّٰهِ شَيۡـئًا ، دا سے دَ دے سورت په آیت ۱۰ کښ هم تیر شویدی دَ تکرار وجه

مَثَلُ مَا يُنْفِقُوْنَ فِيْ هٰذِهِ

مثال دَ هغه خيز چه خرچ كوي ئے دوى دَپاره دَ دے

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ

ژوند دنيوى پشان دَحال دَ هغه سيلئ دے

فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ

چه په هغے كښ يخه لگئ وى او رسيږى فصل دَ يو قوم ته

ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَاَهْلَكَتْهُ ط

چه ظلم ئے كړے وى په ځانونو خپلو باندے نو تباه كړى هغے لره

وَ مَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَ لٰكِنْ

او ظلم نه دے كړے په دوى باندے الله تعالىٰ ليكن

اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۱۷﴾

دوى په خپلو ځانونو باندے ظلم كوى ـ

داده چه هلته ردوؤ په نصارٰى كافرانو باندے اودلته رد دے په يهوديانو كافرانو باندے او دواړه ډلے مالداره وے او اولاد او تابعداران ئے ډير وؤ او په هغے سره ئے فخر كوؤ ـ ليكن آيت ټولو كافرانو ته عام دے ـ

۱۱۷:- دا جواب دَ سوال دے ـ سوال دا وؤ چه دا كافران خو په دُنيا كښ كله كله مالونه په صحيح مصارفو كښ خرچ كوى نو دغه دوى ته فائده ولے نه وركوى ؟

حاصل جواب دا دے چه هغه دَ دوى دَ ظلم دَ وجے نه برباد شوے دى او دَ دے دَپاره مثال ذكر كوى ـ

فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ، په دے كښ دوه توجيهات دى اول دا چه مراد دَ انفاق نه خرچ كول دى په صحيح مصرفونو كښ سره دَ كفر او شرك نه او فى دَپاره دَ ظرفيت

دے او دا قید واقعي دے ځکه چه هر انفاق صرف په دنیا
کښ وي ـ دویم دا چه مراد د انفاق نه خرچ کول دي د
دنیوي ترقئ د پاره لکه د دنیا د اقتدار او حصول د پاره یا
د ریاء او سمعت د پاره چه خلق ئے په دنیا کښ تعریفونه
اوکړي یا هغه چه عوامو یهودیانو په خپلو ملایانو باندے
خرچ کوؤ او هغوی به حق پټولو نو دا انفاق د الله تعالی
د رضا د پاره نه دے نو برباد دے ـ او فی دلته اجلیه دے
یعنی خرچ کوي د وجے د دنیوي ژوند نه ـ
کَمَثَلِ رِيۡحٍ فِيۡهَا صِرٌّ اَصَابَتۡ حَرۡثَ قَوۡمٍ ، په معنیٰ د صِر
کښ دوه اقوال دي اول قول د اکثر اهل لغت او ابن عباس
رضی الله عنهما او قتاده نه روایت دے چه سخته یخني چه
سوزوؤنکے د فصل وي یا کلئ او دویم قول ابن الانباري د ابن
عباس رضی الله عنهما په روایت سره نقل کړے دے چه صِرٌّ
په معنیٰ د اور یا ګرمه سیلئ دے چه فصل لره او سیزي اَصَابَتۡ
صفت د ریح دے ـ
ظَلَمُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ ، دا ضمیرونه راجع دي الَّذِيۡنَ يُنۡفِقُوۡنَ ته
او مراد د ظلم نه کفر او شرک دے دا قول د ابن عطیه او
زمخشري دے یا ضمیرونه راجع دي قوم ته او صفت دے
د پاره د قوم یعنی دا سے قوم چه ظلم ئے کړیدے ـ پدے صفت
کښ اشاره ده چه د دنیا عذاب په سیلئ وغیره سره په هغه
ظالمانو باندے راځي چه کفر او شرک ئے کړے وي یا نور
کبیره ګناهونه ئے کړے وي او په روستو توجیه سره د
ظلم معنیٰ لغوي هم احتمال لري یعنی فصل ئے بے موسمه
بے وخته کرلے وي نو ځکه هلاک شي ـ
وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ ، اشاره ده چه عذابونه د دنیا او آخرت د
طرف د الله تعالی نه ظلم نه دے بلکه عدل دے ـ
وَلٰكِنۡ اَنۡفُسَهُمۡ يَظۡلِمُوۡنَ ، هر ګناه کوؤنکے ځان له حصّه
د ثواب او برکت کمه کړي د دے وجے نه وئیلے شي چه دغه

يَآيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا

اے ایمان والو مه نیسئ

بِطَانَةً مِّنْ دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ

دوستانه دَ راز سِوا ستاسو نه (دَبل چاسره) هغوی کمے نه کوی

خَبَالًا ط وَدُّوا مَا عَنِتُّمْ ج قَدْ

په روانی ستاسو کښ، خوخوی هغه څیزچه تاسوله تکلیف درکوی یقینًا

بَدَتِ الْبَغْضَآءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ صلے ج

ښکاره شوے ده کینه دَ خلو دَ هغوی نه

وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ اَكْبَرُ ط

او هغه چه پټ ساتی سینے دَ هغوی ډیرے لوے دے

قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ اِنْ كُنْتُمْ

یقینًا بیان کړے مونږ تاسو ته نخے دَ (دُشمنۍ دَدوی) که یئ تاسو

تَعْقِلُونَ ﴿١١٨﴾

چه عقل لرئ -

شخص په ځان باندے ظلم کړے دے -

فائده :- په کوم ځائے کښ چه دوام په ظلم یا کفر او شرک صرف مراد وی نو هلته ګانُوٓا اَنْفُسَهُمْ ذکر کیږی لکه په سورت بقره سـ۵۷ اعراف سـ۱۶۰ ، سـ۱۷۷ توبه سـ۷۰ نحل سـ۳۳ او سـ۱۱۸ عنکبوت سـ۴۰ کښ روم سـ۹ کښ او کوم ځائے کښ چه مطلق ظلم مراد دی نو هلته ګانُوٓا نه ذکر کوی لکه په دے آیت کښ او په سوره یونس سـ۴۴ کښ -

سـ۱۱۸ :- په دے آیت کښ څلورم اصل او ادب ذکر کوی او په دے کښ مقصد اجتناب دے دَ پیداکیدلو دَ فساد او اختلاف نه په کورنئ دَ مؤمنانو کښ -

ربط :- هر کله چه دَ یهودیانو خباثات ئې ذکر کړل او هلاکت دَ اعمالو دَ دوی بیان شو نو اوس منع ذکر کوی دَ هغوی دَ دوستانې نه دَ پاره دَ بچ کیدلو دَ دغه خباثتو نه - او قرطبی وئیلی دی چه دا متعلق دے په اِنْ تُطِيعُوا فَرِيقًا پورے -

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً ، بِطَانَةً هغه خاص دوست ته وئیلے شی چه هغه سره دَ راز خبرې کیدلې شی- قرطبی وئیلی دی چه په دے آیت کښ منع ده دَ دوستانې دَ کافرانو او یهودیانو او نور اهل هواء (بدعتیانو) نه -

سوال :- بِطَانَةً نکره ده په سیاق دَ نفی کښ عموم غواړی او حال دا دے چه په آیت دَ سوره ممتحنه ۸ کښ دَ بعضے کافرانو سره دَ تعلق ساتلو جواز ذکر دے ؟

جواب :- په هغے آیت کښ ذکر دَ تولی دے مراد تربنه تعلق دنیوی دے او دلته بِطَانَةً نه مراد دا دے چه خپل پټ رازونه هغوی ته مه ښکاره کوئ - دَ دے وجے عمر رضی الله عنه ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنه ته زورنه ورکړے وه چه هغه خپل کاتب یو نصرانی کړځولے وو ځکه چه په خطونو کښ ډیرے دَ راز خبرے وی- قرطبی وئیلی دی چه افسوس دَ نن زمانے په مسلمانانو باندے چه ډیر اهل کتاب (یهود او نصارٰی) ئې کاتبان او امینان (خزانچیان) کړځولے دی-

مِنْ دُونِكُمْ ، دا صفت دے دَ بِطَانَةً دَ پاره دون په معنیٰ دَ (سوی) یا په معنیٰ دَ ادنیٰ سره دے او مراد دَ دینه ټول کافران منافقان او مبتدعین دی - افسوس دَ نن زمانے په بعضے جماعتونو والو چه دَ تعصب او ضد دَ وجے نه دَ خپل جماعت نه بغیر دَ بل جماعت دَ مسلمانانو سره هم تعلق نه ساتی او دا آیت په دلیل کښ پیش کوی دا عین تحریف دے-

دَ دے نه روستو دَ دے نهی دَ پاره لس علتونه ذکر کوی-

اول علت لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا ، اَلُوَ تقصیر او کوتاهئ کولو ته

وئیلے شی اکثر متعدی کیږی یو مفعول ته او کله متعدی کیږی دوه مفعولونو ته نو خَبَالًا یا مفعول ثانی دے بِنا په دویم قول باندے یا حرف جر حذف دے یعنی فی الخبال۔ خَبَال په لغت کښ دا سے مرض او سستی ده چه انسان یا حیوان ته عارض شی نو په هغه کښ فساد پیدا کوی او په معنی د فساد سره استعمالیږی لکه په سورة توبه ۴۷ کښ۔ نو معنی دا ده چه دوی هیڅ کمے نه کوی ستاسو په فساد کښ یعنی ستاسو په مینځ کښ شرونه جوړوی یا ستاسو په مینځ کښ اختلاف او دشمنی پیدا کوی یا د تورو بدنی او مالی نقصانونو په باره کښ کوشش کوی۔

وَدُّوا مَا عَنِتُّمْ، دا دویم علت دے۔ ما مصدریه دے او عنت سخت مشقت ته وئیلے شی۔ په اوله جمله او دویمه کښ فرق دا دے چه اول خو دوی ستا د دین په وړانولو کښ کوتاهی نه کوی او چه د هغے ته عاجز شی نو کوشش کوی چه تا سو په لوئے دنیوی تکلیف کښ واچوی یا دا چه دوی کوشش کوی په فساد ستاسو کښ او چه دا سے او نه کړی نو په زړه کښ د هغے تمنا کوی۔

قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَاءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ، دا دریم علت دے۔ بغضاء او بغض په اصل کښ د زړه صفت دے لیکن د دوی په ژبو دا کلمات وئیل دا علامت دے د دوی په بغض باندے۔

سوال:- منافقانو خو په خُلے باندے اظهار د بغض د مؤمنانو سره نشی کولے؟

جواب ۱:- د سخت بغض د وجے نه کله بے اختیاره کلمات د دشمنئ د دوی د خُلو نه ښکاره کیږی۔

جواب ۲:- قتاده نه روایت دے چه دا ښکاره کول د دوی په مینځ کښ مراد دی چه په کورنئ کښ غیبتونه د مؤمنانو کوی او په هغوی باندے تهمتونه لګوی (آلوسی، ابوحیان)۔

هٰٓاَنْتُمْ اُولَآءِ تُحِبُّوْنَهُمْ وَلَا

خبردار تاسو اے مؤمنانو مینه کوئ (خیرخواهي) د دوي سره او

يُحِبُّوْنَكُمْ وَتُؤْمِنُوْنَ بِالْكِتٰبِ

دوي مینه نه کوي تاسو سره او ایمان لرئ تاسو په کتابونو

كُلِّهٖ ج وَاِذَا لَقُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا صلے ق ج

ټولو باندے او هر کله چه دوي تاسو سره مخامخ شي دوي وائي مونږ ایمان راوړے دے

وَاِذَا خَلَوْا عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ

او هر کله چه دوي جدا شي چکوته لګوي ستاسو د (ترقئ) په وجه سره د ګوتو څیلو باندے

مِنَ الْغَيْظِ ط قُلْ مُوْتُوْا بِغَيْظِكُمْ ط

د غصے د وجه نه اوایه مړه شئ په غصه خپلے سره

سوال:- افواههم ئې او ئيل السنتهم ئې ولے او نه وئيلو ؟

جواب:- په دے کښ د دوي نور قباحت ته اشاره ده چه دوي خُلے وازوي او وخکی ګرځوی په داسے خبرو سره - او دیته په حدیث کښ ثرثارون متشدقون وئيلے شي (قرطبی) -

وَمَا تُخْفِيْ صُدُوْرُهُمْ اَكْبَرُ ط دا څلورم علت دے په دے سره مراد حسد او بغض د زړونو د دوي دے هغه ډیر غټ دے ځکه چه په هغے کښ ارادے د قتل کولو او د ذلیل کولو د مؤمنانو دي دا رنګ د زړونو بغض ئې همیشه دے او د خُلے اظهار ئې کله کله دے نو ځکه اکبر دے -

قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ ، مراد د اَلْاٰیٰتِ نه دلیلونه دي د اخلاص کولو د مؤمنانو سره او د پریخودلو د منافقت - یا مراد د دینه علامات د دشمنئ د دوي دي -

تَعْقِلُ نه مراد فکر کول دي د پاره د فرق کولو په مینځ د دوست او د دشمن کښ او د هغوی په علاماتو کښ -

# إِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ

یقیناً الله تعالیٰ عالم دے په هغه خبرو چه

# الصُّدُوْرِ ﴿۱۱۹﴾

په سینو کښ دی۔

س۱۱۹:۔ په دے آیت کښ څلور علتونه ذکر کوی او دا خاص دی په منافقانو پورے۔

هَاۤ اَنْتُمْ اُولَاۤءِ، غوره قول دا دے چه ها د پاره د تنبیه ده او انتم مبتدا ده او اولاء خبر اول او تُحِبُّوْنَهُمْ دویم خبر دے او دا خطاب مؤمنانو ته بطور تنبیه دے د زورنے په طور سره نه دے ځکه د زورلے په ځائے کښ هٰۤؤُلَاۤءِ ذکر کیږی لکه په سوره بقره س۸۵ او آل عمران س۶۶ کښ او دلته ئے صرف اولاء ذکر کړے دے۔

تُحِبُّوْنَهُمْ، مراد د محبت نه د هغوی خیرخواهی کول دی۔ دا قول د ابو العالیه او د اصم دے۔ یا مراد محبت دے په سبب د اظهار د دوی اسلام لره۔

وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ، دا ځکه چه د دوی په زړونو کښ کفر او نفاق پروت دے۔

وَتُؤْمِنُوْنَ بِالْكِتٰبِ كُلِّهٖ، مراد د الکتب نه قرآن دے او كُلِّهٖ کښ اشاره ده چه ستاسو په تیز په قرآن کښ هیڅ شک نیشته او دوی بعضے حصه د قرآن منی او بعضے نه منی لکه چه كُلَّمَاۤ اَضَاۤءَ لَهُمْ مَّشَوْا فِيْهِ وَاِذَاۤ اَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوْا، کښ اشاره ده۔ یا مراد د الکتب نه جنس آسمانی کتابونه دی یعنی تاسو تورات او انجیل او قرآن او ټول کتابونه الهیه منئ او دوی صرف خپل کتاب منی او په هغے کښ هم په بعضے حصه ایمان لری او په بعضے نه لری لکه په يَكْفُرُوْنَ بِمَا وَرَآءَهٗ او اَفَتُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ کښ اشاره ده۔

وَإِذَا لَقُوكُمْ قَالُوا آمَنَّا، دا قول دَ دوی په نفاق او په دهوکه باندے بنا دے دَ دے وجے نه دلته متعلق دَ ایمان یٔے نه دے ذکر کړے یعنی مُؤْمَنْ بِهٖ۔

وَإِذَا خَلَوْا عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ، عَضّ چک لګول دی په ذریعه دَ غاښونو سره۔ آنَامِلَ جمع دَ آنْمِلَةٌ ده سرونو دَ ګوتو ته وئیلے شی۔ غیظ سخت غضب ته وئیلے شی۔ او چک لګول کنایه ده چه دَ ډیر غضب دَ وجے نه ګوته په خوله کښ کیدی نو چه غصه یٔے زیاته شی نو ناګهانه په هغه ګوته باندے غاښ خخ کړی۔ یا دا کنایه ده دَ خپیما نه کیدلو نه لکه په سوره فرقان ۲۷ کښ دی یعنی هر کله چه دَ مؤمنانو دَ طرف نه دوی ته غنیمت وغیره کښ څه حصه ملاؤ نشی نو دوی په خپل محرومتیا باندے خپیما نه شی۔ عَلَيْكُمْ، متعلق دے په عَضُّوا پورے یعنی په ترقیٔ ستاسو۔ یا متعلق دے په پټ لفظ پورے (حَنِقِيْنَ عَلَيْكُمْ) سخت خفګان کوؤ نکےوی په تاسو باندے۔ قرطبی وئیلی دی چه دا صفت دَ دے زمانے په ډیرو بدعتیانو کښ موجود دے۔

قُلْ مُوْتُوا بِغَيْظِكُمْ، ابن جریر او ډیرو مفسرینو وئیلی دی چه دا دعاء شر ده هغوی ته مخامخ یا پسی شا او دا سے خلقو ته خیرے کول جائز دی یا دا امر په معنیٰ دَ جملے خبریے کښ دے یعنی الله تعالیٰ په دین حق لره نوره ترقی او غلبه ورکوی ستاسو دَ مرګ نه مخکښ پورے نو آخر به په دغه غصه کښ مړه شیٔ او الله تعالیٰ ستاسو په دے غصه باندے هیڅ پرواه نه کوی۔

إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ، دا دَ قل دَ لاندے داخل دے یا مستقله جمله ده جواب دَ سوال دے چه هر کله او ئیلے شو چه وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ، وَلَا يُحِبُّونَكُمْ او من الغيظ نو دا دریواړه څیزونه خو په سینه کښ پټ دی نو دَ دے ذکر څرنګ اوکړے شو حاصل جواب دا دے چه

إِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ز

که چرے اورسیږی تاسو ته بنهٔ حالت خفه کوی دوی لره

وَإِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَفْرَحُوا

او که چرے اورسیږی تاسو ته بد حالت خوشحالی کوی دوی

بِهَا ط وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا

په هغې سره او که چرے صبر اوکړو تاسو او تقوٰی ضو اوکړله

لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا ط

ضرر به درنکړی تاسو ته مکرونه دَ دوی هیڅ ضرر

إِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿١٢٠﴾ ع

یقیناً الله تعالیٰ په هغه عملونو چه دوی کوی راګیرونکے دے (په علم او قدرت کښ)

الله تعالیٰ دَ سینو په ټولو پټو رازونو باندے علم لری۔
بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ، ذات په معنیٰ دَ صاحب دے دلته موصوف
پټ دے یعنی بِالْمُضْمَرَاتِ ذَوَاتِ الصُّدُوْرِ، یعنی هغه پټ
رازونه چه دَ انسان دَ زړه سره ملګرے دی او په قول او
عمل سره ښکاره شوے نه وی او دا په اصل کښ یو مصداق
دے دَ پاره دَ غیب په مسئله دَ علم غیب دَ الله تعالیٰ کښ ځکه
چه کومه خبره دَ شونډو نه را اوځی بیل چا ته نو هغه په
علم دَ مخلوق کښ داخل شی نو دَ هغې نه کله کله شیاطین
خبر شی یعنی شیطانان ئې واوری او کاهن ته ئې اورسوی
نو کاهن دَ هغه خبرے خبر ورکړی نو دلته دا نشی وئیلے
کیدلے چه دا کاهن په غیب باندے علم لری۔ او دا جمله
په قرآن کریم کښ دولس کرته ذکر ده او بل تفسیر ئې په
سوره عنکبوت ۱۰ او سوره غافر ۱۹ کښ دے۔
۱۲۰ :- په دے آیت کښ نور دوه علتونه دَ لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً
دَ پاره ذکر کوی۔

تَمۡسَسۡكُمۡ ، دَ مَس نه اخستلے شوے دے مس په اصل کښ لاس رسولو ته وئیلے شی بیا په هر څیز کښ استعما لیږی که محسوسی وی او که معنوی وی خیر وی او که شر وی - کله په خیر کښ استعما لیږی لکه دا آیت شو او معارج ۲۱ او سوره انعام ۱۷ او اکثر په شر کښ استعما لیږی لکه آلعمران ۱۴۰ یونس ۱۲ - او کله شریک استعما لیږی لکه په بقره ۲۱۴ او اعراف ۹۵ کښ - او هر ځائے کښ دلالت کوی په کموالی (لږ رسیدلو) -

حَسَنَةٌ ، مراد دَ دینه دَ دنیا منفعت او خوشحالی ده لکه صحت دَ بدن ، فراخی دَ مال ، غلبه په دشمن وغیره -

صاحب اللباب دَ ابو العباس نه نقل کړے دی چه حسنة په قرآن کریم کښ په پنځه وجوهو سره استعمال شوے دے اول په معنیٰ دَ کامیابئ لکه په دے آیت کښ دویم په معنیٰ دَ توحید سوره انعام ۱۶۰ کښ دریم په معنیٰ دَ فراخئ او وسعت سره سوره نساء ۷۸ څلورم په معنیٰ دَ عافیت دَ عذاب نه سوره رعد ۶ په دے کښ بله معنیٰ توحید قبلول دی پنځم په معنیٰ قول دَ معروف سوره رعد ۲۲ -

وَاِنۡ تُصِبۡكُمۡ سَيِّئَةٌ يَّفۡرَحُوۡا بِهَا ، سَيِّئَةٌ دا مقابل دے دَ حَسَنَةٌ - او دا هم په پنځه معانی سره راځی په معنیٰ دَ شکست لکه په دے آیت کښ - دویم په معنیٰ دَ شرک سوره انعام ۱۶۰ کښ دریم په معنیٰ دَ قحط سوره نساء ۷۸ او اعراف ۱۳۱ کښ - څلورم په معنیٰ دَ عذاب سوره رعد ۶ پنځم په معنیٰ دَ ردی قول سوره رعد ۲۲ -

فائده :- دَ حَسَنَةٌ سره ئے لفظ مَس وئیلے دے چه لږ والی باندے دلالت کوی نو په دے کښ اشاره ده چه یر حسد او بغض ته یعنی په لږه خوشحالئ سره چه مؤمن خوشحالی ښکاره کوی په طریقه دَ تحدیث نعمت سره نو دشمنان خبر شی نو خفه شی او تکلیف چه لږ وی نو مؤمن

# وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ

او هر کله چه صبا وختی اووتلې ته د کور خپل نه

# تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ

تیارول تا مؤمنانو لره ځایونه د کیناستلو (مورچې)

په هغې باندې صبر کوی نو د دشمن نه پټ وی لیکن چه ډیر شی نو مجبوراً دشمن خبر شی نو بیا هغوی وربانده خوشحالی کوی.

وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا ، مراد د صبر نه صبر کول دی په طاعت د الله تعالی په دغه تیر آدابو کښ او هغه سختئ باندې چه تاسو ته رسیږی او مراد د تقوی نه ځان ساتل دی د ټولو حراموته او د دوستانو د کافرانو او منافقانو نه.

لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا ، دا قراءت دے په پیښ د ضاد او د راء سره نو دا جواب شرط نه دے بلکه دلالت کوونکے دے په جواب شرط باندې یا په دے کښ فاء پټه ده.

كَيْدُهُمْ ، راغب وئیلی دی چه کید یو قسم حیله ده کله په مدح کښ استعمالیږی او کله په ذم (بدئ) کښ خو اکثر په بدئ کښ استعمالیږی. په مقام د مدح کښ لکه سوره انبیاء ۵۷ اعراف ۱۸۳ کښ او په مقام د ذم کښ یوسف ۵ او نساء ۷۶ کښ او مقصد د آیت دا دے چه څوک صبر کوی په ادا د اوامرو د الله تعالی او تقوای کوی د منهیاتو نه نو داسې شخص په حفاظت د الله تعالی کښ وی نو کید د کید کوونکو هغه ته هیڅ نقصان نشی رسولے.

إِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ، يَعْمَلُونَ نه مراد عملونه د کفر او نفاق او د دشمنئ د مؤمنانو سره او د هغوی مخالف کید وونه کول دی او احاطه د الله تعالی دا په اعتبار د علم او قدرت سره ده او په دے کښ معنی د تخویف موجود ده.

لِلْقِتَالِ ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۲۱﴾

دَ پاره دَ جنګ کولو او الله تعالیٰ هر څه اوري پوهه دے په هر څه۔

سـ ۱۲۱ : ربط دَ دے دَ مخکښ سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښ قوانین او آداب ذکر شول اوس په دے باندے ثبوتًا او سلبًا نتیجه ذکر کوی یعنی په دے اصولو دَ پابندئ دَ وجے نه په بدر کښ غلبه او نصرت الهیه حاصل شو

او په دے اصولو باندے دَ نه پابندئ دَ وجے نه په احد کښ نقصان پیدا شو۔ دویمه وجه دا ده چه هر کله چه اوفرمائیل چه وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا نو دا دواړه سبب دَ نصرت الهیه اوګرځیدل په بدر کښ۔ او دَ دے دواړو دَ نقصان دَ وجے نه په احد کښ ابتلاء راغله په مؤمنانو باندے ځکه چه په هغه وخت کښ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ امر نه عصیان او فشل کړے شوے وو۔ دریمه وجه دا ده چه هر کله دَ منافقانو دَ دوستانے نه منع اوکړے شوله او دَ هغے بعض علتونه ذکر شول نو اوس دَ هغے لوئے علت ذکر کوی چه هغه واپسی دَ منافقانو ده دَ غزوه احد نه دَ ملګرتیا دَ مؤمنانو نه۔

وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ ، دا متعلق دے دَ احد سره یعنی نبی صلی الله علیه وسلم دَ ورځ دَ جمعے په اول وخت کښ دَ عائشه رضی الله عنها دَ کور نه مسجد نبوی ته را اووتلو دے دَ پاره چه دَ صحابه کرامو سره دَ غزوه احد په پاره کښ مشوره اوکړی نو بعضو رائے پیش کړه چه په کلی کښ به ناست یو او مشرکان که چرے راشی نو مدینه کښ به ورسره مقابله اوکړو او بعضے کسانو مشوره ورکړله چه دَ مدینے نه بهر اوځو دَ هغوی دَ جنګ دَ پاره۔ نو په روستو خبره باندے عمل اوکړے شو نو دَ موټځ دَ جمعے نه روستو

إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ

کوم وخت چه قصد اوکړو دوه ډلو ستاسو نه

أَن تَفْشَلَا ۙ وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا ۗ

چه کمزوری ښکاره کړی او الله تعالیٰ مددګار د دوی وو

احد طرف ته روان شول - نو په دے سره تطبیق راغے په مینځ د دے آیت او د حدیث کښ چه په آیت کښ ثابت دی چه نبی صلی الله علیه وسلم د کور نه سحر وختی وتلے دے او حدیث کښ دی چه نبی صلی الله علیه وسلم د جُمعے د مونځ نه روستو وتلے دے ابن جریر هم دا سوال او جواب ذکر کړے دے او دا قول غوره دے.

تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ ، تَبْوِیه په معنیٰ د ځائے تیاردول او مقرر کولو ده. مَقَاعِدَ جمع د مقعد ده ځائے د کیناستلو ته وئیلے شی او مراد ترینه تقسیمول د صحابه کرامو دی د پاره د جنګ کولو نو د عامو صحابو صفونه ئے جوړ کړل پښان د صفونو د مونځ او احد طرف ته ئے ورله شا اوګرځوله او عبد الله بن جبیر رضی الله عنه سره ئے د پنځوس ملګرو نه په یو ډیر کئی باندے مقرر کړے شو چه هغے ته جبل الرماة وئیلے شی نو دا مقاعد پښان د جنګ د مورچو دی. او په دے کښ اشاره ده چه د نبی صلی الله علیه وسلم د امیر لښکر (جرنیل) په حیثیت خپله ذمه داری ادا کړے ده هغه په خپله ذمه داریٔ کښ نقصان نه دے کړے نو هزیمت د احد د هغه د وجے نه نهٔ دے شوے.

وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ، هر کله چه بنا د دے واقعے په خبرو او مشوره او په تیتوتو باندے وه نو دا دواړه صفتونه د هغے سره مناسب دی چه الله تعالیٰ اوریدونکے او پوهه دے (په هر څه باندے).

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲۲﴾

او خاص په الله تعالیٰ باندې توکل دِ کوي مؤمنان -

س۱۲۲ :- دا هم متعلق دے دَ واقعے دَ احد سره او اشاره ده چه
په واقعه دَ احد کښې هیڅ نقصان دَ طرف دَ اوس او خزرج
قبیلو ته نهٔ دے شوے (رهغه دَ انصارو دوه قومونه دي)
اِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتٰنِ ، اول خَیز چه دَ انسان په زړه کښې بے اختیاره
ورتیر شي نو هغے ته خاطر وئیلے شي نو کله چه لږ پوخ شي نو
هغے ته حدیثِ نفس وئیلے شي او چه لږ نور کلک شي نو
هغے ته هَمّ وئیلے شي او دا ټول غیر اختیاري دي او هر کله
چه نیهٔ پوخ شي نو بیا هغے ته عزم وئیلے شي او دا اختیاري
وي -او حدیث صحیح سره ثابت ده چه په هَمّ دَ گناه سره
گناه نه لازمیږي - نو معلومه شوه چه دَ دے دوه طائفو په
زړونو کښې صِرف هَمّ دَ گناه راغلے وؤ او هغه گناه نه وؤ -
طَّآئِفَتٰنِ ، مراد دَ دیته بنو سلمه (دَ خزرج ته) او بنو حارثه
(دَ اوس ته) دي او دوي په لښکر دَ احد کښې دوه طرفونو
ته مقرر وؤ یعني میمنه او میسره او دیته دَ لښکر جناحان
(وزرے) وئیلے شي - هر کله چه عبد الله بن ابيّ (منافق)
سره دَ دریمے حصّے دَ لښکر دَ احد دَ تیمے لارے نه واپس
راوگرځیدلو ځکه چه نبي صلی الله علیه وسلم دَ دهٔ په
رائے باندے عمل او نکړو نو دغه وخت دَ بنو سلمه او بنو
حارثه په زړونو کښې هم دا خبره راتیره شوله چه مونږ هم
دَ دے غزوے نه واپس مدینے ته لاړ شو -
اَنْ تَفْشَلَا ، فَشَل جبن او کمزورے کیدلو ته وئیلے شي او
دا اکثر دَ خوف ته پیدا کیږي نو بیا دَ دشمن سره جنګ
نشي کولے -
وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا ، ولي په معنیٰ دَ حافظ او ناصر دے یعني
الله تعالیٰ دوي لره دَ فشل کولو نه بچ او ساتل او دَ دوي

زړونه یې پاخه کړل - او دا کلمه دَ دوی دَ پاره لوئې بشارت او صفت وو دَ دې وجې نه دَ جابر بن عبد الله رضی الله عنهما روایت دے چه مونږ دَ دې آیت په نازلیدو هیڅ خفه نه وو ځکه چه لفظ دَ وَلِيُّهُمَا زمونږ دَ پاره لوئې صفت دے۔

وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ، په دے جمله کښې اشاره ده علاج کولو ته دَ پاره دَ دفع دَ فشل او سبب دے دحصول دَ ولایت دَ الله تعالیٰ چه هغه توکل کول دی په الله تعالیٰ باندے۔ عَلَى اللَّهِ یې مقدم کړے دے دَ پاره دَ تخصیص کولو او فاء په فلیتوکل کښې دلالت کوی په پټ شرط باندے معنیٰ دا ده که چرے کار په تاسو باندے سخت شی یا بعضے کسان ستاسو نه جدا شی نو په الله تعالیٰ باندے توکل کوئ۔

فائده لـه :- ماده دَ توکل په قرآن کریم کښې په مختلف طریقو سره اوویا کرته ذکر ده اوله طریقه تخصیص دے په الله تعالیٰ پورے په اوویشت ځایونو کښې په طریقه دَ اخبار سره لکه عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ توبه س۱۲۹ ، عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا اعراف س۸۹ ، عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُونَ سوره زمر س۳۸ - او په طریقه دَ امرِ غائب سره لکه آلعمران س۱۲۲ - او په طریقه دَ امرِ مخاطب سره لکه آلعمران س۱۵۹ - دویمه طریقه دَ صفت دَ الله تعالیٰ (وکیل) په طریقه دَ اثبات سره پنځلس کرته - او په طریقه دَ نفی سره دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه خصوصاً او دَ غیر الله نه عموماً انعام س۶۶ ، س۱۰۷ اسراء س۶۸ ، س۸۶ - او دریمه طریقه دَ صفت سره دَ پاره دَ مؤمنانو انفال س۲ ، نحل س۴۲ ، س۹۹ - څلورمه طریقه دَ کفایت سره یعنی وکالت دَ الله تعالیٰ کافی دے احزاب س۳ ، نساء س۸۱ ، س۱۰۹ ، س۱۳۲ ، س۱۷۱ - او پنځمه طریقه دَ نهی دَ وکالت دَ غیر الله نه اسراء س۲ - شپږمه طریقه په ترغیب سره آلعمران س۱۵۹ او په اوومه طریقه دَ مقتضی دَ ایمان او دَ

اسلام سره مائده ۳۳، یونس ۸۴ -
فائده ۲۵ :- وکالت کار سپارل دی بل چاته او کله حفظ ته هم وئیلے شی او په عرف کښ سپارل د کار دی هغه چاته چه اعتماد کولے شی د هغه په ښهٔ تدبیر او تصرف باندے - او ابن فارس وئیلی دی چه وکالت اظهار د عجز دے او اعتماد کول دی په بل چا باندے او حقیقتًا د توکل علی الله اعتماد کول او یقین کول دی چه قضا د الله تعالی ضرور پوره کیږی او تابعداری د سنت د نبی صلی الله علیه وسلم کوی په کوشش کولو کښ په واسطه د اسبابو سره لیکن په شرط د دے چه اسبابو باندے یاور نه کوی بلکه مسبب الاسباب ته نظر کوی - او فراء په معالم التنزیل کښ وئیلی دی چه توکل دا دے چه د الله تعالی نه سیوا بل څوک د ځان د پاره مددګار نه ګڼړے او د رزق د پاره بل څوک اختیارمند نه ګڼړے او د خپل عمل د پاره بل څوک حاضر نه ګڼړے - او د سهل بن عبد الله تستری نه روایت دے چه څوک وائی چه توکل اسباب پریخودلو ته وئیلے شی نو دغه شخص اعتراض اوکړو په سنت د نبی صلی الله علیه وسلم باندے ځکه چه الله تعالی او د هغه رسول د اسبابو طرف ته ترغیبات ورکړے دی - او دا توکل د عام مؤمنانو نه مطلوب دے نو کوم خلق چه اسباب بالذات مؤثر ګڼړی او اسباب جوړوؤنکی ته نظر نه کوی نو دا دهری وی یا مشرک وی او توکل د خواصو دا دے چه سره د وجود د اسبابو نه هیڅ نظر اسبابو ته نه کوی بلکه صِرف په الله تعالی باندے اعتمادِ کُلی ساتی نو دا توکل د انبیاؤ علیهم السلام او د صدیقینو دے او واقعه د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په واقعه د غزوه تبوک کښ د دے دلیل دے چه هغه خپل کور کښ هیڅ سبب نه وؤ پریخودلے یعنی د کور ټول سامان ئے د جهاد د پاره راویستلو او وئیلے وؤ چه ما په کور کښ صرف محبت د الله تعالی او د رسول صلی الله علیه وسلم پریخودلے - او دے

وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ

او یقیناً مدد کړے دے تاسو سره الله تعالیٰ په بدر کښ

وَّ اَنْتُمْ اَذِلَّةٌ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ

او حال دا چه تاسو لږ (او کمزوری) وئ نو ویره کوئ د الله تعالیٰ نه

لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾

دے د پاره چه تاسو شکر ګذار شئ۔

تقسیم ته امام بخاری هم اشاره کړے ده۔

۱۲۳:- په دے آیاتونو کښ ذکر د غزوه بدر دے یو قسم ربط ئے د مخکښ سره ذکر شوے دے بل ربط ئے د وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ سره دا دے چه دا ذکر د نتیجے د توکل علی الله دے چه نصرت او فتح حاصله شوے ده په بدر کښ او د مناسبت د وجے نه ئے په عطف سره ذکر کړے ده۔

وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ، غزوه د بدر په اسلام کښ اوله غزوه ده چه اوسم رمضان د جُمعے په ورځ د هجرت نه اتلس میاشتے روستو واقع شویوه یعنی د احد د واقعے نه قریباً یو کال مخکښ وه او د هغے تفصیلات په سوره انفال کښ ذکر دی۔ او نصرت په هغے کښ په ډیرو طریقو سره واقع شوے دے یعنی په رالیږلو د ملائکو سره او رعب اچول په زړونو د کافرانو کښ او د کافرانو سترګو ته کانړی رسول او نعاس (پرکالی) رالیږل او باران کول او غنیمت حاصلول۔ بدر نوم د اوبو (کوهئ) دے او شعبی وئیلی دی چه دا اوبه د جهینه قبیلے د یو شخص وے چه نوم ئے بدر وو نو دغه مکان د هغه په نوم باندے مسمی کړے شو۔ او بعضو وئیلے دی چه دغه اوبه د بدر (څوار لسمے سپوږمۍ) پشان صفا وے او باء په بدر کښ په معنیٰ د فِیْ سره ده۔

إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ أَلَن يَكْفِيَكُمْ

کله چه اُویل تا مؤمنانو ته آیا کافی نه ده تاسو لره

أَن يُمِدَّكُمْ رَبُّكُم بِثَلَاثَةِ

چه زیاتی به کړی تاسو رب ستاسو په درے

آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُنزَلِينَ ﴿١٢٤﴾

زره سره دَ ملائکو نه چه راکوز کړے شوے به وی -

وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ، دا جمله حالیه ده أَذِلَّةٌ جمع قلت دَ ذلیل ده په جمع قلت کښ دَ هغوی ډیر قلت ته اشاره ده -

سوال :- په سوره منافقون ع۸ کښ دی چه دَ مؤمنانو دَپاره عزت دے نو دلته دَ ذلت څه معنیٰ ده ؟

جواب :- مراد دَ دے نه کم والے دَ عدد دے (چه درے سوه دیارلس کسان وؤ) او کم والے دَ وسلے او دَ مال او دَ سورلئ وؤ او دا په سوره انفال ع۲۶ کښ ذکر دی - مورخینو وئیلے دی چه صحابه کرامو سره یو اس وؤ او په اوښانو باندے دار په وار سوریدل او وه اویا مهاجرین کسان وؤ او دوه سوه شپږ دیرش انصار وؤ -

فَاتَّقُوا اللَّهَ، مراد تر یه عامه تقوی ده او خصوصاً دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په ملګرتیا کښ ټینګیدل په میدانِ جهاد کښ -

لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ، شکر دَ مخکښ نعمت مراد دے یا زیادت دَ نعمت په راتلو تکی وخت کښ چه سبب دَ شکر دے او دا دلیل دے چه شکر دَ الله تعالیٰ په طریقه دَ تقوی شرعی سره دے صرف الفاظ دَ شکر او حمد مراد نه دی -

ع۱۲۴ :- دا دَ محققینو مفسرینو په نیز متعلق دے غزوه بدر سره او إِذْ تَقُولُ متعلق دے په نَصَرَكُمُ پورے او بعضو مفسرینو دَ احد سره متعلق کړے دے او دَ هغے

د دلیلونو نه جوابونه په تفصیل سره ابوحیان او صاحب اللباب ذکر کړي دي۔

لِلْمُؤْمِنِیْنَ، مراد تري نه مجاهدین د غزوه بدر دي۔

اَلَنْ یَّکْفِیَکُمْ اَنْ یُّمِدَّکُمْ رَبُّکُمْ بِثَلٰثَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِکَةِ، حرف استفهام داخل دے په نفی باندے نو په دیکښ دوه اقوال دي اول قول د ابوحیان دے چه دا استفهام انکاري دے یعني عدم کفایت په دغه عدد د ملائکو سره د وجے د ډیر ضعف د مؤمنانو۔ نو دوی پښان د نا امیدئ کوؤنکو وؤ د نصرت نه او جواب اوشو په بلی سره یعني دا امداد کافي دے او کافي یے اوګنړئ۔ او دویم قول د ابن عطیه دے چه دا استفهام تقریري دے یعني د دوی په عقیده کښ دا عدد د امداد د پاره کافي دے او بلی لفظ جواب د متکلم (الله تعالیٰ) د طرف نه د اثبات او د تاکید د دے امداد د پاره دے۔ دا روستو قول غوره دے۔ بِثَلٰثَةِ اٰلٰفٍ، اول خو وعده شوې وه په یو زر ملائکو سره لکه په سوره انفال سره کښ دي بیا دوه زره نور درے زره شو بیا دوه زره نور نو پنځه زره شول دیته اِدْخَالُ النَّاقِصِ فِي الزَّائِدِ (داخلول د کم عدد په زیات عدد کښ) وئیلے شي او دا غوره قول دے۔

مُنْزَلِیْنَ، صفت یا حال دے۔ او غوره قول دا دے چه الله تعالیٰ یو زر ملائک نازل کړے وؤ او هغوی قتال هم کړے دے۔ بیا مشهور شوه چه کرز بن جابر د مشرکانو د مدد د پاره درے زره او بیا پنځه زره کسان راولیږي په دے باندے مؤمنان غمژن شول نو الله تعالیٰ په دے آیت سره او په روستو آیت سره مؤمنانو ته تسلی ورکړه۔ لیکن د مشرکانو نور امداد نه وؤ راغلے نو د نورو ملائکو د رالیږلو سبب موجود نه شو۔

بَلٰٓى ۙ اِنْ تَصْبِرُوْا وَ تَتَّقُوْا
هاں که چرې صبر اوکړو تاسو او تقوٰی مو اوکړله
وَ يَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا
او راشي دوی تاسو ته دَ جوش خپل نه دغه دے
يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ
زیاتی به کړی تاسو رب ستاسو په پنځه
اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ ﴿۱۲۵﴾
زرو سره دَ ملائکو نه چه نخے به ئے لګولے وی دَجنګ

۱۲۵:- بَلٰٓى دا ایجاب دے دَ هغه نفي چه په اَلَنْ يَّكْفِيَكُمْ کښ ده ـ مخکښ دَ دے بحث تیر شو۔

اِنْ تَصْبِرُوْا وَ تَتَّقُوْا ، دلته مراد دَ صبر نه پوخوالے دے په میدانِ قتال کښ په مقابله دَ دشمن کښ او تقوٰی نه مراد ځان بچ کول دی دَ فشل او دَ نا شکرئ کولو نه۔

وَ يَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ ، فَوْر په اصل کښ خوټکیدلو دَ کټوئ ته وئیلے شي او دا اراده کیدیشي دَ سرعت او تلوار کولو دَپاره او کله غضب او غصے ته هم وئیلے شي خو دلته مراد دَ فَوْرٍ نه سمدستي او زر راتلل دی دَ مشرکانو یا په غصه او په جوش کښ راتلل دی او دا غضب دَ دغه مشرکانو پیدا شوے وو دَ وجے دَ شکست خوړلو نه په بدر کښ او لفظ دَ هٰذَا دَ تاکید دَ سرعت دَپاره دے دَپاره دَ نزدیکت او دا شرط ئے دَ دے وجے نه اولګولو چه په داسے وخت کښ دَ مدد دَ راتللو ډیر ضرورت وی او دا روستو شرط چه هرکله موجود نه شو نو امداد راليږلو ته ضرورت نه دے راغلے۔

يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ ، دا جزاء دَ شرط ده۔

بِخَمْسَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ ، مُسَوِّمِيْنَ دَ سوم یا دَ سِمَا نه اخستلے شوے دے یعني نخے لګوونکے وے په خپل

وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى

او نه دے گرځولے دا (نزول د ملائکو) الله تعالیٰ مګر زیرے

لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُكُمْ بِهٖ ط

تاسو لره او د پاره د دے چه کلک شی زړونه ستاسو په دے سره.

وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

او نه دے مدد مګر خاص د نیز د الله تعالیٰ نه دے

الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ﴿١٢٦﴾ لا

چه زور آور حکمتونو والا دے

ځانونو باندے او په خپلو اسونو باندے نو په یو روایت کښ دی چه د جبرئیل علیه السلام زیړه پګړئ وه او د نورو ملائکو سپینے پګړئ وے بل روایت کښ دی چه د ټولو زیړے پګړئ وے او شملے ئے په مینځ کښ آویزان کړے وے قرطبی وئیلی دی دا د دے وجے نه چه د زبیر رضی الله عنه په دغه ورځ باندے زیړ پټکے وؤ- او اسونه ئے برګ رنګ والا وؤ یعنی موافق وو د مقداد رضی الله عنه د اس سره چه په دغه ورځ دا یو اس د دوی سره وؤ او هغه برګ وو- یا دا د سوم نه اخستلے شوے دے په معنیٰ د لیږلے شوے یعنی دوی خپل اسونه د دشمن د مقابلے د پاره رالیږل.

س۱۲۶:- په دے آیت کښ حکمتونه د رالیږلو د ملائکو ذکر کوی او جواب د دوه سوالونو دے- اول سوال دا دے چه الله تعالیٰ خو بغیر د ملائکو رالیږلو نه مدد کولے شی نو په ملائکو رالیږلو کښ څه مقصد دے- دویم که باطل عقیدے والا او وائی چه معلوم شوه چه ملائک هم امداد کولے شی نو دا دلیل شو چه مدد د غیر الله نه غوختل جائز دی؟-

وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ، ه ضمیر راجع دے امداد ته په ملائکو

رالیږلو سره هغه چه په صیغه دَ یُمِدَّکُمْ اویُمْدِدْکُمْ کښ شته.
یا ضمیر نصرت ته راجع دے چه په نصرکم کښ دے۔
اِلَّا بُشْرٰی لَکُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُکُمْ بِهٖ، دا استثناء مفرغ ده
بُشْرٰی مفعول له دے اویا بُشْرٰی مصدر یا اسم مصدر دے
هغه خیز چه دَ خوشحالئ اثر په ظاهری بدن کښ (مخ) کښ
ښکاره کړی په اول اخبار پورے خاص نه دے لکه دا صفت
دَ قرآن په باره کښ چه هر وخت مؤمنانو دَپاره سبب دَ
خوشحالئ دے۔
وَلِتَطْمَئِنَّ، اول قول دادے چه دا عطف دے په معنیٰ دَبُشری
باندے نوبُشْرٰی صفت دَظاهر دے او اطمینان پیدا کیدل
صفت دَ زړه دے۔
سوال:۔ په معطوف کښ لام ولے داخل کړو؟
جواب:۔ دَ معطوف دَ نصب دَپاره (بغیر دَ لام نه) یو والے
دَ فاعل شرط دے اودلته دَجعل فاعل الله تعالیٰ دے
او دَ تطمئن فاعل قلوب دے دَ دے وجه نه ئے دَ جائز
کولو دَ عطف دَپاره لام پکښ داخل کړو۔ او امام رازی ویلی
دی چه په امداد کښ دوه مطلوبه دی اول داخلول دَ
خوشحالئ په زړونو کښ دا په لفظ دَبُشری کښ دے او
دویم مطلوب دَدے نه لوئے دے چه هغه حصول دَاطمینان
دے دَپاره دَ زائلے دَ بزدلئ نو دا لوئے مقصد دے دَدے
وجه نه دَدے دَپاره ئے مستقل لام داخل کړو۔ دویم قول
دادے چه دا متعلق دے په پټ فعل پورے یعنی فَعَلَ ذٰلِكَ
لِتَطْمَئِنَّ۔
وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللهِ الْعَزِیْزِ الْحَکِیْمِ، دلته نصرت
نه مراد غلبه او فتح ورکول دی دا په اسبابو باندے بِنا
نه دے ځکه ئے حصر اوکړو په الله تعالیٰ پورے۔ العزیز
دَ عزت نه اخستلے شوے دے په معنیٰ دَ غلبے نو دَ دے
ځائے سره مناسب دے او الحکیم اشاره ده چه کله امداد

کوی او کله نه کوی د الله تعالیٰ په حکمت باندے پنا دہ۔
فائدہ:۔ داسے آیاتونه په سوره انفال کښ هم (ر۹ پ۱۰) دی لیکن فرق ئے په یو څو وجوهو سره دے اول دا چه هلته ئے مردفین وئیلے دے او دلته منزلین او مسومین دے دویم دلته د بُشری سره لکم ذکر دے او هلته نیشته۔دریم دلته ئے بِهٖ لفظ روستو راوړیدے او سوره انفال کښ بِهٖ مخکښ راوړیدے۔څلورم دلته العزیز الحکیم په طریقه د صفت سره ذکر کړو او هلته ئے په جمله مستانفه سره ذکر کړیدے۔ د دے حکمتونه دادی۔
د اول فرق وجه داده چه یو زر ملائک خو نازل شو لیکن وروسته د نورو راتلو خبر وؤ او ارداف دلالت کوی په روستو راتلونکو باندے۔
د دویم فرق وجه داده چه په سوره انفال کښ اصل د قصے ذکر دے او په دے سورت کښ د هغے تکمیل مقصد دے نو د اصل سره اختصار مناسب وی نو لکم ئے نه دے ذکر کړے او تکمیل سره اطناب (راوړ دوالے) مناسب وی نو دلته ئے لکم ذکر کړے دے۔
د دریم فرق وجه داده په دے سورت کښ لکم خطاب ذکر شو نو په قلوبکم کښ خطاب د هغے سره متصل مناسب دے او په هغه سورت کښ خطاب نه وؤ ذکر کړے نو بِهٖ ئے مخکښ راوړو۔
د څلورم فرق وجه داده هر کله چه دلته مکرر خطاب او شو نو په دیکښ الفاظ د تسلئ (چه العزیز الحکیم دی) زر ذکر کول مناسب دی او هلته تاکید د خطاب نه وؤ نو په جمله مستانفه سره ئے په تاخیر سره ذکر کړو (وَاللهُ اَعْلَمُ بِحِکَمِ کِتَابِهٖ)

لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِينَ

دَ دے دَ پاره چه پریکړی یو ټکړه دَ هغه کسانو نه

كَفَرُوٓا أَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنقَلِبُوا

چه کفر ئې کړے دے یا په ذلیل کړی دوی تو واپس په اوګرځوی دوی

خَآئِبِينَ ﴿١٢٧﴾

نا امیدی کوونکی۔

ف۱۲۷: تیر شوی حکمتونه دَ مؤمنانو دَ ذات سره تعلق لری او په دے آیت کښ حکمتونه دَ دشمنانو سره تعلق لری او دَ مؤمنانو دَپاره بالواسطه بشارت دے۔

لِيَقْطَعَ ، دا متعلق دے دَ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ یا مَا النَّصْرُ یا دَ جَعَلَ سره یا يُمْدِدْكُمْ سره یا متعلق ئې پټ دے یعنی اَمَدَّكُمْ دَ نَصَرَكُمْ لِيَقْطَعَ. قطع په معنیٰ دَهلاکولو یا په معنیٰ دَ نړولو دے۔

طَرَفًا ، جماعت (ډله) او ټکړه مراد ده دا اویا کسان کافران وو چه په بدر کښ قتل کړے شوے وو۔ په دے لفظ کښ یو اشاره دا ده چه ټول کافران په کفر کښ ملګری دی او دا دَ هغوی نه یو طرف او یو ټوټه دے۔ او دیته اشاره ده په سوره رعد ۱۳ (نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا) کښ دویم اشاره ده چه مینځ دَ ډلے ته هله رسیدل کیدے شی چه طرف پریکړے شی۔

اَوْ يَكْبِتَهُمْ ، كَبْتَ کښ ډیر اقوال دی۔ هزیمت ، لعنت ، پرمخے غورځول ، شرمول ، غصه کول ، ذلیل کول ، او لفظ دَ پاره دَ تنویع دے یعنی یو قسم ئې قطع کړل او بل قسم ئې ذلیل او مغلوب کړل۔ یا او په معنیٰ دَ واو دے او دلته هم ضمیر راجع دے ټولو کافرانو ته ځکه دا واقعه سبب دَ ذلت دَ ټولو کافرانو دے او قطع خو خاص ده په یو ډله پورے نو دَ هغے سره ئې طرفًا ذکر کړو۔

لَيۡسَ لَكَ مِنَ الۡاَمۡرِ شَيۡءٌ

نیشته تا لره دَ کار دَ دوی نه هیڅ اختیار

اَوۡ يَتُوۡبَ عَلَيۡهِمۡ اَوۡ يُعَذِّبَهُمۡ

ترڅو پورې چه الله تعالیٰ به په دوی باندې مهرباني اوکړي (په توفیق دَ ایمان سره) یا به دوی له عذاب ورکوي

فَاِنَّهُمۡ ظٰلِمُوۡنَ ﴿۱۲۸﴾

یقینًا دوی ظالمان دي۔

فَيَنۡقَلِبُوۡا خَآئِبِيۡنَ، دا تفریع ده په يَكۡبِتَهُمۡ باندې۔ خیبت هغه نا امیدي او محرومي ده چه روستو دَ توقع او دَ امید نه پیدا شي او یأس عام دے که روستو دَ توقع نه وي او که مخکښ وي نو مقابل دَ خیبت ظفر دے او مقابل دَ یأس رجا ده۔ دلته ئې خیبت ذکر کړو ځکه چه په بدر کښ دَ کافرانو لوئے امید وو نه دَ غلبې وُو چه هغې ته اشاره ده په انفال ۴۷ کښ۔

۱۲۸ :- دا متعلق دے دَ واقعې دَ احد سره او په مینځ کښ واقعه دَ بدر په طریقه دَ جملې معترضې سره ده او ذکر دے په سبب کښ اختلاف دے اول روایت دا دے چه په غزوه احد کښ عتبه بن ابي وقاص دَ نبي صلی الله علیه وسلّم سر مبارک زخمي کړو او دَ رباعي غاښ ئې ورله شهید کړو نو هغه دَ خپل مخ نه وینې صفا کولے او وئیل ئې رکَيۡفَ يُفۡلِحُ قَوۡمٌ خَضَبُوۡا وَجۡهَ نَبِيِّهِمۡ بِالدَّمِ وَهُوَ يَدۡعُوۡهُمۡ اِلٰى رَبِّهِمۡ) څرنګ به بچ شي هغه قوم چه رنګ کړے ئې دے مخ (مبارک) دَ خپل نبي په وینو سره او هغه دوی ته دعوت ورکوي رب دَ دوی ته (بخاري، مسلم)۔ دویم روایت دے چه نبي صلی الله علیه وسلم لعنت اوکړو په معین اشخاصو باندې (ابوسفیان، حارث بن هشام، صفوان بن امیه) نو دا آیت نازل شو۔ دریم روایت کښ دي چه نبي صلی الله علیه وسلم په واقعه

دَ بئر معونه کښې په خاص قبیلو باندے لعنت اوکړو چه رعل، ذکوان او عصیه وو، په واقعه دَ بئر معونه کښې نو دا آیت نازل شو او په دے دواړه روایتونو کښې ثابت دی چه نبی صلی الله علیه وسلم دا دعا ګانے روستو دَ رکوع دَ دویم رکعت دَ صبا دَ مونځ نه لوستلے او دیته قنوت نازله وئیلے شی نو دَ دے ټولو په باره کښې نازل شول چه لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ، یعنی دَ دے خلقو دَ توبے یا دَ عذاب اختیار ستا په لاس کښې نیشته. یا دَ دوی هدایت او ګمراهئ اختیار ستا نه دے یا امرادکولو اختیار ستا سره نیشته یا عام مراد دے یعنی دَ الله تعالیٰ په کارونو او تصرفاتو کښې ستا وس نه رسی نو دا رد دَ شرک فی التصرف دے دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه او رد دے په هغه بے عقلو خلقو باندے چه نبی صلی الله علیه وسلم مختار کل ګڼړی۔

سوال:۔ هغه امر چه الله تعالیٰ په دے آیت کښې نبی صلی الله علیه وسلم دَ هغے نه منع کړے دے که هغه ئے په امر دَ الله تعالیٰ سره کړے وی نو منع ئے تر بیته څرنګه اوکړه۔ او که هغه بغیر دَ امر دَ الله تعالیٰ نه کړے وی نو بیا منافات راځی دَ دے آیت سره چه وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى؟

جواب ۱:۔ نهی کول دَ یو شخص مستلزم نه دہ چه هغه شخص به دغه کار کښې خامخا مشغوله وی دلته هم صحیح دادہ چه نبی صلی الله علیه وسلم دغه کار نه دے کړے صرف ډیر غم او غصه ئے ښکاره کړے او اراده ئے دَ دے کار اوکړه۔ نو دغه روایات به په تاویل دَ ارادے باندے حمل شی۔ (لیکن دَ ظاهر احادیثو نه دا تاویل بعید دے)۔

جواب ۲:۔ نبی صلی الله علیه وسلم دَ دے کار اذن طلب کړو دَ الله تعالیٰ نه نو الله تعالیٰ دَ هغے منع اوکړه (لیکن دا جواب هم دَ احادیثو ظاهره نه خلاف دے)۔ (دا سوال او جوابونه صاحب اللباب ذکر کړیدی)۔

جواب ۳ :- نبی صلی اللہ علیہ وسلم دا پخپل اجتهاد سره کړے وؤ او په داسے حال کښ نبی لره اجتهاد کول جائز او واقع دی لیکن الله تعالیٰ دَ هغے نسخ اوکړه په دے حصے سره۔
سوال :- په سبب نزول کښ حدیث دَ بخاری او مسلم دلالت کوی چه قنوت نازله وئیل منسوخ دی او حال دا دے چه دَ دینه روستو هم نبی صلی الله علیه وسلم او سلف صالحینو قنوتِ نازله لوستلے دے؟
جواب ۱ :- په دے قنوت کښ تخصیص دَ تومو تو دَ اشخاصو او دَ قبائیلو وؤ نو هغه تخصیص منسوخ شو او په طریقه دَ عموم (لفظ مشرکان، کافران، یهودیان، نصارای او هنود وغیره) سره وئیل سنت دی۔
جواب ۲ :- ابن عاشور وئیلی دی چه دا قول ډیر غریب دے چه څوک په دے آیت سره دَ نسخ قول کوی او دَ ابن عطیه نه ئے نقل کړیدی چه دا ضعیف قول دے او مقصد دَ حدیث دَ بخاری دا دے چه روستو دَ نزول دَ دے آیت نه دغه قنوتِ خاصه ئے پریخودلو دَ وجے دَ عمل کولو نه په کمال ادب باندے رد دے جواب هم رجح اول جواب ته کیږی)۔
اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ ، په دے کښ اقوال دی۔ اول قول، چه دا اَوْ په معنیٰ دَ اِلٰی اَنْ یا اِلَّا اَنْ سره دے۔ دویم قول دا چه دا عطف دے په لِيَقْطَعَ او يَكْبِتَهُمْ باندے چه دا علتونه دَ نصرتِ الٰهیه دی او لَيْسَ لَكَ په مینځ کښ جمله معترضه ده۔ دریم قول دا چه دا عطف دے په اَلْاَمْر یا په شَيْءٌ باندے ځکه دا هم په تاویل دَ اسم کښ دے۔ لیکن اول قول غوره دے۔ او مراد دَ يتوب نه توفیق دَ توبے ورکول دی بعضو ته لکه چه ابوسفیان او حارث بن هشام ته ئے توفیق دَ اسلام ورکړو۔
اَوْ يُعَذِّبَهُمْ ، مراد دَ دینه عذاب دنیوی یا عذاب اُخروی دے

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا

او خاص په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ هغه څیز دَ، ته چه په آسمانونو کښ دی او هغه څیزونه

فِي الْاَرْضِ ۭ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ

چه په زمکه کښ دی .بخنه کوی چالره چه اوغواړی

وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ

او عذاب ورکوی چالره چه اوغواړی او الله تعالیٰ

غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٢٩﴾

.بخنه کوونکے رحم کوونکے دے.

هغه چاته چه دَ کفر نه توبه نه اوباسی - فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ، دا علت دَ پاره دَ يُعَذِّبَهُمْ دے او ظلم نه مراد کفر او شرک بانديے کلک پاتے کیدل دی۔

۱۲۹: دا تاکید دَ مخکښ آیت دے هلته ئے جانب دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نفی ذکر کړه نو دلته جانب دَ اثبات ذکر کوی دَ پاره دَ اثبات دَ توحید فی التصرف۔

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ، حرف دَ لام دَ پاره دَ مِلك او مُلك او عبدیت دے او مخکښ راوړل دلالت کوی په تخصیص بانديے او لفظ دَ مَا عام دے عقل والو او غیر عقل والو ته۔

يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَاۗءُ، په دے جمله کښ تعمیم دَ مشیت او دَ ارادے دَ الله تعالیٰ ذکر دے روستو دَ تعمیم دَ تصرف نه او دا دلیل دے چه په طاعت دَ بنده سره په الله تعالیٰ بانديے جنت او مغفرت ورکول واجب نه دی او په معصیت دَ بنده سره عذاب ورکول واجب نه دی لیکن قانون الٰهی دا دے چه ملائکو او انبیاؤ علیهم السلام له بالکل عذاب نه ورکوی او مؤمنانو له عذاب همیشه نه ورکوی او مشرکانو او کافرانو ته بخنه نه ورکوی۔

وَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ، دَ دے جملے ذکر دلالت کوی چه جانب دَ رحمت غالب دے په غضب باندے۔